# فتاویٰ حقانیہ

## پښتو

له افاداتو د

شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب رحمة الله علیه

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سمیع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانیه

ترتیب، مفتی مختار الله حقانی

پښتو ژباړونکی

مولوی قاری محمد فاروق ملنګ مهتمم جامع دار العلوم ابوهریرة ارګون

ناشر:

جدید کتبخانه

جنوبی وزیرستان ایجنسی وانا بازار

وَلَوْ رَدُّوْهُ إِلَى الرَّسُوْلِ وَإِلٰى أُولِى الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ

دجامعة دار العلوم حقانيه اكوړه خټك د ديني پوښتنو د فتاواوو مجموعه

# فتاوىٰ حقانيه

## پښتو

له افاداتو د

شيخ الحديث حضرت مولانا عبد الحق صاحب رحمة الله عليه

او د دار العُلوم حقانيه نور مُفتيانِ كرام

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سميع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانيه

ترتيب

مُفتي مُختار الله حقاني

پښتو ژباړونكى

مولوى قارى محمد فاروق ملنګ مُهتمم جامعة دار العُلوم ابو هريرة ارګون

خپروونكى

جديد كُتب خانه

حاجى بخت عالم ماركيټ جنوبى وزيرستان الحنيفى وانا بازار

ولو ردوه الى الرسول والى اولى الامر منهم لعلمه الذين يستنبطونه

د جامعه دار العلوم حقانيه اكوړه ختك د ديني پوښتنو فتاواو مجموعه

# فتاوى حقانيه

## پښتو




له افاداتو د

شيخ الحديث حضرت مولانا عبد الحق صاحب رحمة الله عليه

او د دار العلوم حقانيه نور مفتيانِ كرام

څارنه او اهتمام

حضرت مولانا سميع الحق صاحب مهتمم جامعه حقانيه

ترتيب

مفتي مختار الله حقاني

پښتو ژباړونكى

مولوى قارى محمد فاروق ملنګ مهتمم جامعه دار العلوم ابو هريرة ارګون

جديد كتب خانه

حاجى بخت عالم ماركيټ جنوبى وزيرستان ايجنسى وانه

د کتاب نوم: فتاوی حقانیه (دریم جلد)

له افاداتو دي: شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق صاحب رحمة الله علیه باني جامعه دار العلوم حقانیه او د دې جامعې نور مفتیان کرام

څارنه او اهتمام: شیخ الحدیث حضرت مولانا سمیع الحق صاحب د دې جامعې مهتمم

ترتیب: مولانا مفتي مختار الله حقاني د تخصص فی الفقه و الافتاء د شعبې استاذ

پښتو ژباړه: حضرت مولانا قاري محمد فاروق ملنګ مهتمم جامعهٔ دار العلوم ابو هریرةؓ ارګون

کمپوز او د پښتو ژباړې ترتیب: قاري عبد القیوم لوګري

د چاپ کال: ۱۵ صفر المظفر ۱۴۳۱ هجري، په مطابق د ۳۱ دسمبر ۲۰۰۹ میلادي

د چاپ تعداد: ۱۱۰۰

خپروونکی: جدید کتب خانه حاجي بخت عالم مارکیټ جنوبي وزیرستان ایجنسي وانا

د لاس ته راوړلو ځایونه:
مکتبهٔ رشیدیه سرکي روډ کوئټه
مکتبه الحرم، سردار پلازه نزد جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک
وحیدي کتب خانه قصه خواني بازار پېښور
جدید مدینه کتب خانه حاجي رشید مارکیټ ارګون بازار
مکتبهٔ فریدیه محله جنګي، قصه خواني بازار پېښور، له مولوي امیر الله شیراني سره

ستاکست:



بسم الله الرحمن الرحیم

# د مضامینو فهرست

## فتاوی حقانیه دریم جلد

## کتاب الصلوٰة

### باب القضاء



### باب صلوٰة الاستسقاء

## باب سجود السهو







## باب صلٰوة المريض



## باب سجدة التلاوة

## باب صلوٰة المسافر







## باب الجمعة والعیدین

## کتاب الجنائز

## مسائل شتّٰی کتاب الجنائز







## باب فی حکم الشهید



## کتاب الزکات

## باب وجوب الزکات

## باب الزکوٰة فی الاموال

## باب زکوٰة السوائم



## باب العشر

# کتاب الزکوه

## باب صدقه الفطر

## باب مصارف الزکات

## زكات او متجددين



## كتاب الصوم

## باب رؤيه الهلال

## باب تعریف الصوم و اقسامه







## باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد

## باب القضاء و الکفاره







## باب الاعذار المبیحة للافطار



## باب الاعتکاف

## کتاب الحج

### باب شرائط الحج و ارکانه

## باب التمتع و القِران





## باب الحج عن الغیر

## باب الجنايات



## باب الهدی







## باب العمرة



## باب فی زيارة قبر النبی ﷺ

# کتاب النکاح

## باب آداب النکاح و شرائطه

## باب من یجوز بها النکاح و من لا یجوز







## باب المهر

## باب الاولیاء و الاکفاء

## باب الرضاع







## باب في حرمت المصاهره

## باب الحضانت



## باب الوليمة



## باب حقوق الزوجين

# باب القضاء

## (د قضاء شوي لمونځونو احکام او مسئلې)

### د بیا لپاره د ترتیب خاوند جوړیدل

**سوال:** که چېرته له یوه سړي څخه دومره لمونځونه قضا شي چه صاحب د ترتیب پاتې نه شي نو آیا د دغو لمونځونو د قضایي په کڅولو سره نوموړی بیا د ترتیب خاوند جوړیدلی شي او که یو ځل د ترتیب په ساقطیدو سره د بیا لپاره د ترتیب خاوند جوړیدل ممکن نه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ترتیب خاوند والی په حقیقت کښې یو د اسې صفت دی چه د سړي په ذمه باندې د شپې او ورځې لمونځونه پاتې نه وي۔ په نوموړي صورت کښې د قضایي په کڅولو سره چونکه غاړې خلاصیږي له دې وجهې د ټولو لمونځونو په راکڅولو سره د اسړی به بیا صاحبِ ترتیب ګڼل کیږي۔ هو! که چېرته په ذمه باندې له شپږو لمونځونو څخه کم لمونځونه پاتې شي نو بیا هم صاحب د ترتیب جوړیږي۔

قال العلامة ابن العابدینؒ: و قید بقضاء البعض لانه لو قضی الکل عاد الترتیب عند الکل الخ. (رد المحتار ج۲، ص۷۰، باب قضاء الفوائت)

قال صدر الشریعةؒ: فانه لما قضی صلٰوة الشهر الا فرضاً او فرضین قلت الفوائت بعد الکثرة فلا یعود الترتیب الا ان یقضی الکل و قال ناکث فانه اذا قضٰی جمیع الفوائت یلزمه الترتیب جدید. (شرح الوقایة ج۱، ص۲۱۹، قضاء الفوائت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۸۶، قضاء الفوائت)

### د نفلو په ځای د قضایي لمونځونو ادا کول بهتر دي

**سوال:** که چېرته د چا په ذمه باندې نا معلوم لمونځونه پاتې وي نو آیا د داسې سړي لپاره نفل بهتر دي او که قضائي لمونځونه؟ په داسې حال کښې چه د قضائي لمونځونه وخت او تعداد ورته معلوم نه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د نفلونو ادا کول پخپل ذات کښې د برکت موجب او د ثواب باعث دی لیکن د داسې سړي لپاره د نوافلو پر ځای د قضایي لمونځونو ادا کول بهتر دي۔ که چېرته تعداد او وختونه ئې ور معلوم نه وي لیکن په اجمالي توګه دومره ورته معلومه وي چه له ما څخه د دومره زمانې لمونځونه قضاء شوي دي نو د هر وخت له لمانځه سره دې لومړی قضایي لمونځ ادا کړي۔

قال فی [illegible]یة: و فی الحجة و الاشتغال با لفوائت اولی و اهم من النوافل الا السنن المعروفة الخ. (الهندیة ج۱، ص[illegible]، الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت، مسائل شتٰی)



قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: الاشتغال بقضاء الفوائت اولٰی و اهم من النوافل الا السنن المعروفة. (التاتارخانیة ج۱، ص۷۷۰، کتاب الصلٰوة، قضاء الفوائت) و مثله فی المبسوط ج۱، ص۱۵۵، باب قضاء الفوائت)

### په شـــــروع سره د نفلو د لزوم حکم

**سوال:** که چېرته چا د سهار په سُنتو شروع وکړه او ناڅاپه ئې د جماعت په لمانځه کښې د شریکیدو په غرض سُنت مات کړه نو آیا د دې سُنت قضائي پرې لازمه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په التحیاتو کښې له امام سره د شریکیدو امکان هم وي نو سُنت به ادا کوي لیکن په هر صورت کښې ئې په ماتولو سره قضاء پرې لازمیږي ځکه چه د نفلو یا سُنتو په شروع کولو سره د لزم النفل با لشروع له مخې د هغو نفلو یا سنتو ادا کول ضروري ګرځي۔

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و من شرع فی نافلة ثم افسدها قضاها الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۲۸، باب النوافل، فصل فی القرأة)

قال العلامة الکاسانیؒ: اما الاول فقد قال اصحابنا اذا شرع فی التطوع یلزمه المضی فیه و اذا افسده یلزمه القضاء الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۹۰، فصل فی صلٰوة التطوع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۱۳، الباب التاسع فی النوافل)

### د ماسپښین د څلورو مخکښیني سُنتو په پاتې کیدو ســـــره ئې له فرضو وروسته د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته له چا څخه د ماسپښین څلور رکعته مخکښیني سُنت د کوم عذر له وجهې پاتې شي نو د فرضو له ادا کولو وروسته ئې د ادا کولو حکم څه دی؟ او په کومه طریقه سره به ئې ادا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرضو له ادا کولو وروسته د ا سُنت ادا کیږي۔ له رسول اللهﷺ څخه دا ثابته ده چه که چېرته له فرضو څخه مخکښې د سُنتو د ادا کولو وخت پیدا نه شي نو له فرضو څخه وروسته له دوه رکعته سُنتو څخه مخکښې هم ادا کیږي لیکن بهتره دا ده چه تر دوه رکعتو سُنتو وروسته ادا شي۔

لما قال الحصکفیؒ: فانه ان خاف فوت رکعة یترکها و یقتدی ثم یأتی بها علی انها سنة فی وقته ای الظهر قبل شفعة عند محمدؒ و به یفتی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۸، باب ادراك الفریضة)

و فی الهندیة: و اما الاربع قبل الظهر اذا فاتته وحدها بان شرع فی صلٰوة الامام و لم یشتغل با لاربع فعامتهم علی انه یقضیها بعد الفراغ من الظهر ما دام الوقت باقیاً و هو الصحیح. و فی الحقائق یقدم الرکعتین عندهما و قال محمدؒ یقدم الاربع و علیه الفتوٰی. (الهندیة ج۱، ص۱۱۲، الباب التاسع فی النوافل) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۷۵، باب ادراك الفریضة.

## د سُنتو قضـــــايي ضروري نه ده

**سوال:** که چېرته يو داسې لمونځ له چا څخه قضاء شي چه سُنت هم ورسره وي نو د لمانځه د قضايي د راګرځولو په وخت کښې سُنت هم راګرځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له تصريحاتو څخه دا خبره ثابته ده چه د هيڅ يوه لمانځه قضايي له فرضو يا واجبو سره خاص نه ده۔ د دې لپاره که چېرته سُنت قضاء شي نو په بل وخت کښې ئې قضاء جائزه نه ده۔ البته د سهار دوه رکعته سُنت د تبعاً للفرض له مخې قضائي راګرځول صحيح دي۔

لما قال العلامة ابن نجيم المصريؒ: (قوله و لم تقض الا تبعاً) اى لم تقض سنة الفجر الا اذا فاتت مع الفرض فتقضى تبعاً للفرض سواء قضاها مع الجماعة او وحده لان الاصل فى السنة ان لا تقضى لاختصاص القضاء با لواجب. (البحر الرائق ج۲، ص۷۴، باب ادراك الفريضة)

قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: و اذا فاتته ركعتا الفجر لا يقضيها قبل طلوع الشمس و لا بعد ارتفاعها عند ابى حنيفةؒ و ابى يوسف....... و لهما ان الاصل فى السنة ان لا تقضى لاختصاص القضاء با لواجب و الحديث ورد فى فضائلها تبعاً للفرض فبقى ما رواه على الاصل و انما تقضى تبعاً لهٗ و هو يصلى با لجماعة او وحدهٗ الٰى وقت الزوال و فيما بعده اختلاف المشائخ و اما سائر السنن سواها لا تقضى بعد الوقت وحدها. (الهداية ج۱، ص۱۳۲، باب ادراك الفريضة) و مثله فى البناية ج۳، ص۱۲۷، باب ادراك الفريضة)

## په قضايي لمونځونو کښې د ترتيب رعايت

**سوال:** که چېرته ګڼ لمونځونه له چا څخه قضاء شوي وي نو د راګرځولو په وخت کښې به ئې د ترتيب کيفيت څنګه وي؟ آيا په هغه ترتيب سره ادا کيدلی شي په کوم ترتيب سره چه قضاء شوي وي او که په هر وخت کښې چه اداکوونکي ته وخت ميسر شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ترتيب د خاوند لپاره د قضائي د ګرځولو په وخت کښې د ترتيب رعايت ضروري دی۔ البته که هغه امور مخې ته ورشي په کومو امورو سره چه ترتيب ساقطيږي نو بيا ترتيب واجب نه وي۔ هو! په دې صورت کښې هم که چېرته قضاء شوي لمونځونه په ترتيب سره ادا شي نو بهتر دی۔

قال برهان الدين المرغينانىؒ: و لو فاتته صلٰوة رتبها فى القضاء كما وجبت فى الاصل الخ. و بعد اسطر قال الا ان يزيد الفوائت على سنة صلٰوة لان الفوائت قد كثرت فتسقط الترتيب الخ. (الهداية ج۱، ص۱۳۴، باب قضاء الفوائت)

و قال محمد بن عبد الله التمرتاشىؒ: الترتيب بين الفروض الخمسة و الوتر اداء و قضاء لازم الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ح۲، ص۶۵، باب قضاء الفوائت) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۷۹، باب قضاء الفوائت)

## د سفر په حالت کښې د قضاء شوي لمونځونو د قضاء حکم

**سوال:** د سفر په حالت کښې که چېرته له چا څخه لمونځ قضاء شي نو د مقيم والي په حالت کښې به دا لمونځ پوره ادا کيږي او که قصر (يعنې نيم)؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په قضايي کښې د وجوب حالت معتبر وي، د سفر په حالت کښې لکه څرنګه چه قصر وي د دې لپاره د مقيم والي په حالت کښې به هم د هغه قضائي قصر ادا کيږي۔

قال العلامة ابن العابدينؒ: و لذا يقضى المسافر فائتة الحضر الرباعية اربعاً و يقضى المقيم فائتة السفر ركعتين الخ. (رد المحتار ج۲، ص۷۶، باب قضاء الفوائتج، مطلب اذا اسلم المرتد هل الخ)

و فى الهندية: و من حكمه ان الفائتة تقضى على الصفة التى فاتت عنه الا لعذر و ضرورة فيقضى مسافر فى السفر ما فاتته فى الحضر من الفرض الرباعى اربعاً و المقيم فى الاقامة ما فاته فى السفر منها ركعتين. (الهندية ج۱، ص۱۲۱، الباب الحادى عشر فى قضاء الفوائت) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۷۹، باب قضاء الفوائت.

## د سهـــــار او مازديګر تر لمونځونو وروسته د قضايي لمونځـــونو اداکـــول جائز دي

**سوال:** د سهار او مازديګر له لمونځونو وروسته نفل خو جائز نه دي ليکن آيا په دغو وختونو کښې د قضايي لمونځونو راګرځول جائز دي او که د هغو حکم هم د نوافلو غوندې دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار تر لمانځه وروسته د لمر تر ختو پورې او د مازديګر تر لمانځه وروسته د لمر تر تغير مخکښې د قضائي لمونځونو اداکول له کراهيت پرته جائز دي۔

قال علاؤ الدين الحصكفىؒ: لا يكره قضاء فائتة الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۳۷۵، كتاب الصلٰوة)

و فى الهندية: فيجوز فيها قضاء الفائتة و صلٰوة الجنازة الخ. (الهندية ج۱، ص۵۲، الباب الاول فى المواقيت، الفصل الثانى الخ) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۵۱، باب قضاء الفوائت.

## د قـــرائت په مسئله کښې د وختي او قضايي لمانځـــــه يو شی والی

**سوال:** که چېرته د شپې او ورځې لمونځونه له چا څخه قضا شي او په بل وخت کښې ئې راګرځوي نو د قرائت حکم ئې څه دی؟ په داسې حال کښې چه د دواړو وختونو د قرائت حکم د سراً او جهراً له مخې مختلف دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضائي لمانځه حکم د وختي لمانځه غوندې دی۔ په کوم لمانځه کښې چه د ادا په وخت کښې د قرائت څه کيفيت وي نو په قضاء کښې د هم هغه کيفيت رعايتول مرخص دي۔

قال فى الهندية: و من حكمه ان الفائتة تقضى على الصفة التى فاتت عنه الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۲۱، الباب الحادى عشر فى قضاء الفوائت)

و قال علاؤ الدين ابى بكر الكاسانىؒ: و الاصل كل صلٰوة ثبت وجوبها فى الوقت و فاتت عن وقتها انه يعتبر فى كيفية قضائها وقت الوجوب و تقضى على الصفة التى فاتت عن وقتها. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۴۷، فصل فى بيان حكم الصلٰوة الفائتة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۷۹، باب قضاء الفوائت.

## د وتر د لمانځه قضـــايي

**سوال:** آیا د وترو قضايي ضروري ده او که د عامو سُنتو غوندې چه فوت شي نو قضاء ئې نشته؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** وتر لکه ځرنګه چه د امام ابو حنيفةؒ په نزد واجب دي د دې لپاره د فوت کيدو په صورت کښې ئې قضائي واجبه ده او چه څوک ئې قضايي نه راوړي نو ګنهګار به وي۔

كما قال محمد بن عبد الله التمرتاشيؒ: و قضاء الفرض و الواجب و السنة فرض و واجب و سنة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۶۶، باب قضاء الفوائت)

و فی الهندية: و القضاء فرض فی الفرض و واجب فی الواجب و سنة فی السنة الخ. (الهندية ج۱، ص۱۲۱، الفصل الحادی عشر فی صلوٰة قضاء الفوائت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۸۰، باب قضاء الفوائت)

## د قضاء عمـــــري حقيقت

**سوال:** د رمضان المبارك په آخري جُمعه کښې ځينې خلك د "قضاء عمري" تر نامه لاندې دوه رکعاته لمونځ په جماعت سره ادا کوي او د ائې عقيده او نظر وي چه په دې سره د ټول عمر له قضاء شوي لمونځونو څخه غاړې خلاصيږي۔ د دې خبرې شرعي حيثيت به څه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه قضايي پخپل ذات کښې يو رواکار دی ليکن د مروجه قضاء عمري دا رسم او رواج د ځينو پښتنو تر علاقو پورې محدود دی کوم چه په کوم صحيح دليل سره ثابت نه دی بلکه له عامو قواعدو او اصولو سره ټکر دی۔ د ديوبند علماوو دا په بدعت سيئه کښې شمار کړی دی کوم چه د عوامو لپاره يوه مهلکه خبره ده او خواصو ته ئې ضرورت نشته۔ د دې لپاره په هيڅ يوه ځای کښې په دې کښې بايد شرکت و نه کړی۔

لما قال العلامة عزيز الرحمنؒ: قضاء عمری عند الحنفيةؒ مشروع نيست پس التزام آن خصوصاً در آخر جمعۂ رمضان المبارك كه چهار ركعت نفل به نيت قضاء عمری ادا كرده شود شرعاً بی اصل است و اين چنين اعتقاد كردن كه از چهار ركعت نفل صلوٰة فائتة عمر حاصل شود خلاف نصوص صحيحه و صريحه و قواعد شرعية است. (عزيز الفتاوىٰ ج۱، ص۲۵۴، المعروف بدار العلوم ديوبند، فصل فی قضاء الفوائت)

لما قال المفتی كفايت اللهؒ: پس د قضاء عمري لمونځ بې اصله دی او په جماعت سره ادا کول ئې ناجائز دي۔ (کفايت المفتي ج۳، ص۳۳۸، قضاء لمونځونه)

## د غلو له ويرې د لمانځه د مؤخر کولو (ځنډولو) حکم

**سوال:** آيا مسافر سړی د لار وهونکو او غلو له ويرې لمونځ مؤخر کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت فرض لمونځونه پخپل خپل وخت کښې د ادا کولو حکم کړی



دی۔ هو! د شرعي عذر له وجهې ئې يو څوك مؤخر کولی شي۔ د غلو او لار وهونکو ويره هم په شرعي عذر کښې د اخله ده۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: كما اذا خاف المسافر من اللصوص او قطاع الطريق جاز له ان يؤخر الوقتية لانه بعذر. (رد المحتار ج۲، ص۶۲، باب قضاء الفوات)

## آیا د قضايي لمونځونو له وجهې مؤکد سُنت څوك ترك کولی شي؟

**سوال:** که چېرته د چا په ذمه باندې قضايي لمونځونه پاتې وي نو آيا هغو د ادا کولو له وجهې مؤکد سُنتونه پريښودلی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د قضايي لمونځونو په ادا کولو کښې مشغوليدل په نفلي عبادتو کښې له مشغوليدلو څخه بهتر دي ليکن د روايت د عامو نوافلو په باره کښې راغلی دی۔ تر کومه ځايه پورې چه مخصوص نوافل يا مؤکد سنتونه تعلق لري نو د قضايي لمونځونو له وجهې مخصوص نوافل او مؤکد سُنتونه نه شي پريښودل کيدلی۔

و فی الهندية: و الاشتغال با لفوائت اولى و اهمّ من النوافل الا السنن المعروفة و صلوٰة الضحىٰ و صلوٰة التسبيح و الصلوات التی رويت فی الاخبار فيها سور معدودة و اذكار معهودة فتلك بنية النفل وغيرها بنية القضاء. (الفتاوىٰ الهندية ج۱، ص۱۲۵، فی آخر الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه الله: الاشتغال بقضاء الفوائت اولىٰ و اهمّ من النوافل الا السنن المعروفة و صلوٰة الضحىٰ و صلوٰة التسبيح و الصلوات التی رويت فی الاخبار فيها سور معدودة و اذكار معهودة فتلك يصلّى بنية النفل وغيرها بنية القضاء. (الفتاوىٰ التاتارخانية ج۱، ص۷۷۰، باب صلوٰة الاستسقاء)

## قضايي لمونځ بايد فوراً ادا شي او که د ځنډ ګنجائش پکښې شته؟

**سوال:** که چېرته له چا څخه کوم لمونځ قضاء شي نو آيا راګرځول ئې زر تر زره ضروري دی او که تاخير او ځنډ پکښې جائز دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله يو لمونځ له چا څخه قضاء شي نو فوراً ئې بيرته راګرځول ضروري دي او پرته له کوم شرعي عذر څخه په هغه کښې تاخير او ځنډ جائز نه دی۔ البته په مکروه وختونو کښې ئې راګرځول صحيح نه دي۔

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفیؒ: و جميع اوقات العمر وقت للقضاء الا الثلاثة المنهية كما مر. قال ابن عابدينؒ: تحت (قوله وقت القضاء) ای لصحته فيها و ان كان القضاء على الفور الا لعُذر. (رد المحتار ج۲، ص۶۶، باب قضاء الفوائت)

قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه الله: و ذكر الولوالجی من الصوم ان قضاء الصوم على التراخی و قضاء الصلوٰة على الفور الا لعُذر. (البحر الرائق ج۲، ص۷۹، باب قضاء الفوائت)

## قضايي لمونځونه په جمعې سره ادا کيدلی شي

**سوال:** که چېرته له څو کسانو څخه په اجتماعي توګه څه لمونځونه قضاء شي او په جماعت سره ئې راګرځول غواړي نو آيا په جمعې سره ئې راګرځولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وختي لمونځونو غوندې د قضايي لمونځونو ادا کول هم په جمعې سره ادا کيدلی شي۔ که چېرته جهري لمونځونه وي نو په هغو کښې په جهر سره قرائت ويل ضروري دي او که سرّي لمونځونه وي نو په هغو کښې په پټه سره قرائت ويل ضروري دي۔

قال القاضی خانؒ: اذا ترك صلٰوة اللیل ناسیاً فقضاها فی النهار و امّ فیها وخافت ساهیا کان علیه السهو و ینبغی ان یجهر لیکون القضاء علی وفق الاداء و ان امَّ لیلاً فی صلٰوة النهار یخافت و لا یجهر فان جهر ساهیاً کان علیه السهو.
(فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۱۲۳، باب سجود السهو)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: ء اذا قضی الفوائت ان قضاها بجماعة و کان صلٰوة یجهر فیها با لقرأة یجهر فیها الامام و ان قضاها وحده یخیر ان شاء خافت و الجهر افضل و یخافت فیما یخافت حتماً و کذٰلك الامام.
(الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۷۶۷، باب قضاء الفوائت) و مثله فی امداد الاحکام ج۱، ص۶۶۸، باب القضاء)

## د ماسخوتن د وترو او د ماښام د فرضو په احتياطي توګه قضائي څنګه ادا کيږي؟

**سوال:** که چېرته يو څوك د احتياط له مخې د قضايي لمونځونو راګرځول غواړي نو د ماښام د فرضو او د ماسخوتن د وترو قضايي به څنګه ادا کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته يو څوك د احتياط له مخې د قضايي لمونځونو ادا کول وغواړي نو د ماښام فرض او د ماسخوتن وتر به څلور څلور رکعته ادا کوي ليکن په دې کښې به له سورت فاتحه سره يو بل سورت او تر دريم رکعت وروسته به قعده هم کوي۔ همدارنګه دعاء قنوت به د وترو په دريم رکعت کښې وايي۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و من قضی صلٰوة عمره مع انه لم یفته شیء منها احتیاطاً قیل یکره......... و یقنت فی الوتر یقعد قدر التشهد فی ثالثة ثم یصلّی رکعة رابعة فان کان وتراً فقد اداه و ان لم یکن فقد صلی التطوع اربعاً و لا یضره القعود و کذا یصلّی المغرب اربعاً بثلاث قعدات. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۴۳، باب القضاء)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: رجل یقضی صلوات عمره مع انه لم یفته شیء منها احتیاطاً قال بعضهم یکره و قال بعضهم لا یکره لانه اخذ با لاحتیاط لکنه لا یقضی بعد صلٰوة الفجر و لا بعد صلٰوة العصر و یقرأ فی الرکعات کلها الفاتحة مع السورة قد قدمنا من مآل الفتاوٰی انه یصلی المغرب اربعاً بثلاث قعدات و کذا الوتر. (البحر الرائق ج۲، ص۸۰، باب قضاء الفوات) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۲۴، باب القضاء.



## د وترو د قضاء کيدو سره سره د سهار د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي د شرع متين فقهاء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د يوه جومات امام د ماسخوتن تر لمانځه وروسته وتر و نه کړه او د سهار د لمانځه د ورکولو لپاره په محراب کښې تر دريدو وروسته او په لمانځه باندې د شروع له کولو څخه مخکښې ور په زړه شو چه ما خو وتر نه دي کړي او له دې سره سره ئې د سهار جمعه خلکو ته ورکړه۔ او په همدې ډول ئې څو ورځې لمونځونه خلکو ته ورکول۔ په د اسې حال کښې چه راقم السطور چېرته د اليدلي او ويلي دي چه که چېرته يو څوك د لمونځونو د ترتيب لحاظ و نه ساتي او د هغه مخکښينی لمونځ قضا شوی وي نو لمونځ ئې فاسديږي ليکن که چېرته پنځه لمونځونه په همدې ډول ادا کړي نو فساد له منځه ځي۔ اوس د پوښتنې وړ خبره دا ده چه د ترتيب د لحاظ نه ساتلو له وجهې د نوموړي امام د سهار او نورو وختونو لمونځونو څه حکم دی؟ او کومو خلکو چه لمونځونه پسې کړي او تللي دي او پاتې لمونځونه ئې نه دي پسې کړي د هغو د لمونځونو حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دُر مختار کښې دي چه: فلم یجز تفریع علی اللزوم فجر من تذکر انه لم یؤتر لوجوبه عندهٗ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۵۳۷، باب قضاء الفوائت)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و فساد اصل الصلٰوة موقوف عند ابی حنیفةؒ سواءٌ ظن وجوب الترتیب او لا فان کثرت و صارت الفوائت مع الفائتة ستا ظهر صحتها بخروج وقت الخامسة التی هی سادسة الفوائت الٰی. و فی رد المحتار (قوله فان کثرت) ای الصلٰوة التی صلاها تارکاً فیها الترتیب بان صلاها قبل قضاء الفائتة ذاکراً لها و هذا التفریع لبیان قوله موقوف و توضیحه انهٗ اذا فات صلٰوة و لو وترا فکلما صلی بعدها وقتیة و هو ذاکر لتلك الفائتة فان قضاها بعد ان یصلی بعدها خمس صلٰوة صار الفساد باتا و انقلبت الصلٰوة التی صلاها قبل قضاء المقضیة نفلاً و ان لم یقضها حتٰی خرج وقت الخامسة و صارت الفواسد مع الفائتة ستاً انقلبت صحیحة لانهٗ ظهرت کثرتها و دخلت فی حد التکرار المسقط للترتیب و بیان وجه ذٰلك فی البحر وغیره الخ. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۴۱، باب قضاء الفوائت)

د پورتني عبارت په رڼا کښې د مسئوله صورت حکم دا دی چه د جومات امام د قضاء شوي وتر لمونځ د ور په زړه کيدو تر څنګ چه کوم لمونځونه کړي دي هغه ټول فاسد دي ليکن فساد ئې موقوف دی په دې پورې چه که چېرته هغه نور پنځه لمونځونه په د اسې حال کښې ادا کړل چه قضاء شوی وتر ئې په زړه وو او د پنځم لمانځه د وخت له ختم کيدو څخه مخکښې ئې د هغه قضاء شوي لمانځه قضايي راوړه نو دا ټول لمونځونه ئې فاسد دي او که چېرته ئې د پنځم لمانځه د وخت له ختم کيدو څخه مخکښې د قضاء شوي لمانځه قضايي را نه وړه نو ټول لمونځونه ئې صحيح دي۔

## د وخت د کموالي له وجهې د قضایي لمانځه د ادا کولو په ځـــــای د وختي لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته له چا څخه د مازدیګر لمونځ قضاء شي او د ماښام دومره وخت پاتې وي چه که چېرته هغه د مازدیګر د لمانځه قضایي راوړي نو د ماښام د لمانځه د قضاء کیدو خطر وي. په دې صورت کښې به د اسړی لومړی قضایي لمونځ کوي او که د همدې وخت لمونځ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کوم سړي څخه چه کوم لمونځ قضاء شي نو باید چه په بل وخت کښې لومړی قضاء لمونځ را وګرځوي او بیا د هم هغه وخت لمونځ ادا کړي. لیکن که چېرته وخت کم وي او د قضایي لمانځه د راګرځولو څخه وروسته د وختي لمانځه لپاره وخت نه پاتې کیده نو په دې صورت کښې به د اسړی لومړی وختي لمونځ ادا کوي او بیا به قضایي لمونځ.

لما فی الهندیة: ان کان بحیث اذا قطع الجمعة و اشتغل با لفجر یفوته الوقت اتم الجمعة اجماعاً ثم یصلّی الفجر بعدها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۲، باب قضاء الفوائت)

## د قضائي لمونځونو د ادا کولو لپاره کوم خاص وخت نه دی ټاکل شوی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چېرته له چا څخه ډېر لمونځونه قضاء شوي وي او غواړي چه اوس ئې را وګرځوي نو آیا د قضایي لمونځونو لپاره کوم ټاکلی وخت شته او که کله چه فرصت پیدا کړي قضایي لمونځونه ادا کولی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضایي لمونځونو د ادا کولو لپاره کوم ټاکلی وخت نشته. چه کله چا ته وخت او فرصت پیدا کیږي هلته دې ادا کوي. البته د مکروه وختونو خیال او لحاظ ساتل پکښې ضروري دي.

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: ثم لیس للقضاء وقت معین. (البحر الرائق ج۲، ص۸۰، باب الفوائت)

لما قال العلامة اشرف علی التهانوی رحمه الله: د قضایي لمونځونو د ادا کولو کوم ټاکلی وخت نشته چه په کوم وخت کښې فرصت پیدا کړي ادا کوي دې. البته دومره خیال به کوي چه مکروه وخت نه وي. (بهشتي زیور ص۱۳٤، د قضایي لمونځونو د ادا کولو بیان)



# باب صلٰوه الاستسقاء

## (د استسقاء د لمانځــه احکام او مسئلې)

## د باران لپاره د سورت یٰسٓ تلاوت او آذان کول مسنونه طریقه نه ده

**سوال:** په ځینو علاقو کښې د باران د غوښتلو لپاره د استسقاء د لمانځه په ځای دا طریقه رائجه ده چه د ماسخوتن تر لمانځه وروسته یو سړی سورت یٰسٓ له ابتداء څخه واخله تر اول مبین پورې تلاوت کوي، له دې وروسته یو سړی په لوړ آواز سره د لمانځه لپاره مسنون آذان شروع کوي. د ده له آواز سره سم د جوماتونو په هر طرف کښې خلك آذان شروع کوي. وروسته له دې قاري د سورت یٰسٓ له شروع څخه تر دوم مبین پورې تلاوت کوي نو بیا په همدې طریقې سره آذانونه شروع کیږي تر دې پورې چه آخري مبین ته ورسیږي. او په آخر کښې د یوې اوږدې دُعا په کولو سره دا اسلسله پای ته رسیږي. آیا د باران لپاره دا طریقه اختیارول جائز دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء د لمانځه په ځای دا طریقه د سُنت په توګه د شریعت له مخې نه ده ثابته، همدارنګه د آذان په مسنونو ځایونو کښې د باران لپاره آذان ورکول ثابت نه دي.

قال العلامة ابن العابدینؒ: تحت قوله لا یسنّ بغیرها کعید. ای وتر و جنازة و کسوف و استسقاء الخ. (رد المحتار ج۱، ص۳۸۵، باب الآذان)

و فی الهندیة: و لیس لغیر صلٰوة الخمس و الجمعة نحو السنن و الوتر و التطوعات و التراویح و العیدین اذان و لا اقامة کذا فی المحیط و کذا للمنذورة و صلٰوة الجنازة و الاستسقاء و الضحٰی الخ. (الهندیة ج۱، ص۵۳، باب الآذان)

و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص٤۸، باب الآذان)

## د استسقاء د لمانځه په جمعې سره د ادا کولو حکم

**سوال:** د استسقاء لمونځ په جمعې سره ادا کول جائز دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه د ځینو خلکو خیال دا دی چه دا لمونځ په جمعې سره ادا کول بدعت دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء لمونځ په جمعې سره ادا کول د صاحبینؒ په نزد سُنت او د امام ابو حنیفةؒ په نزد مستحب دی لیکن بغیر له جماعت نه ئې ادا کول هم صحیح دي. په دې دواړو طریقو کښې یوې طریقې ته بدعت ویل له فقهي ذخائرو څخه د ناخبرۍ دلیل دی.

قال العلامة ابن العابدینؒ: فا لحاصل ان الاحادیث لما اختلف فی الصلٰوة با لجماعة و عدمها علی وجه لا یصح به اثبات السنیة لم یقل ابو حنیفةؒ بسنیتها و لا یلزم منها قوله بانها بدعة کما نقل عند بعض المتعصبین بل هو قائل با لجواز الخ. قلت و الظاهر ان المراد به الندب و الاستحباب. (رد المحتار ج۲، ص۱۸٤، باب الاستسقاء)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و الجماعة غیر مسنوة فی هٰذا الصلٰوة عندهٗ و عندهما سنة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۸۳، فصل فی بیان صلٰوة الاستسقاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۵۳، الباب التاسع عشر فی الاستسقاء)

## د استسقاء لمونځ باید په بیابان کښې ادا شي

**سوال:** د استسقاء لمونځ باید په کوم ځای کښې ادا شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء لپاره د بیابان خوا ته وتل بهتر دي۔

لما ورد فی الحدیث: حدثنا ابو داؤد قال حدثنا مسدد قال حدثنا هشیم عن یحیٰ بن سعید عن عبد الله بن ابی بکر عن عباد بن تمیم عن عبد الله بن زید ان رسول الله ﷺ خرج با لناس الی المصلی فاستسقٰی فحول ردائه و استقبل القبلة. (طحاوی ج ۱، ص ۲۲۵، باب الاستسقاء الخ)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: و یخرجون ای الی الصحراء کما فی الینابیع. هٰذا فی غیر اهل المساجد الثلاثة. (رد المحتار ج ۲، ص ۱۸۵، باب صلٰوة الاستسقاء) و مثله فی فتح القدیر ج ۲، ص ۵۸، باب صلٰوة الاستسقاء)

## د استسقاء لمونځ دوه رکعاته دی

**سوال:** د استسقاء لمونځ څو رکعاته دی په کموالي او زیاتوالي سره د استسقاء په لمانځه باندې کوم اثر لوېږي او که نه؟ که چېرته یو څوك دوه رکعاته له جماعت سره ادا کړي او دوه رکعاته له ځان سره یواځې په دې نیت سره ادا کړي چه د صاحبینو او امام صاحب رحمهم الله د دواړو په قول عمل وشي نو د دې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د صاحبینوؒ قول مفتٰی بهٖ دی۔ د دې لپاره له جمعې سره په دوه رکعتونو اکتفاء وکړی او د یواځې دوه رکعتونو د ادا کولو کوشش مه کوی۔ هو! که چېرته دوه رکعته یواځې څوك ادا کړي نو د استسقاء په اصل لمانځه کښې کوم فرق نه راځي۔

قال العلامة ابن العابدینؒ: ای بان یصلّی بهم رکعتین یجهر فیهما با لقرأة بلا اذان و لا اقامة ثمّ یخطب بعدها قائماً علیٰ الارض معتمداً علی قوس او سیف او عصا خطبتین عند محمدؒ و خطبة واحد عند ابی یوسفؒ. (رد المحتار ج ۲، ص ۱۸۵، باب الاستسقاء)

و قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: یصلی الامام رکعتین الخ. (الهدایة ج ۱، ص ۱٤٦، باب صلٰوة الاستسقاء) و مثله فی البحر الرائق ج ۲، ص ۱٦۸، باب الاستسقاء)

## د استسقاء د لمانځه مسنونه طریقه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د استسقاء د لمانځه د ادا کولو مسنونه طریقه کومه یوه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء د لمانځه مستحبه طریقه دا ده چه خلك د لمانځه لپاره تر وتلو مخکښې درې ورځې پر له پسې روژې ونیسي او نصوحا توبه وباسي او په څلورمه ورځ په پښو، سرونه به ئې ټیټ نیولي وي، زاړه او پرې مینځل شوي کالي به ئې اغوستي وي او له عجز، تواضع او انکساري سره په داسې حال کښې چه له الله تعالی څخه به ویریدونکی وي د استسقاء د میدان خوا ته به ځي او له تګ څخه مخکښې به صدقه ورکوي، واړه هلکان به له



میندو څخه جلا کوي او د لمانځه لپاره به له ځان سره کوچنیان، سپین ږیرې، کمزوري، ضعیفان او څناور هم بیایي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: یستحب للامام ان یأمرهم بصیام ثلاثة ایام قبل الخروج و با لتوبة ثم یخرج بهم فی الرابع مشاة فی ثیاب غسیلة او مرقعة متذللین متواضعین خاشعین لله ناکسین رؤسهم و یقدمون الصدقة کل یومٍ قبل خروجهم و یجد دون التوبة و یستغفرون للمسلمین و یستسقون با لضعفة و الشیوخ و العجائز و الصبیان و یبعدون الاطفال من امّهاتهم و یستحب اخراج الدواب الخ. (رد المحتار ج ۲، ص ۱۸۵، باب صلٰوة الاستسقاء)

## د استسقاء د لمانځه په دُعا کښې د لاسونو د پړ مخې نیولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یوه ورځ د استسقاء لمونځ ادا کیده چه امام صاحب خپل لاسونه سرچپه کړل او دُعا ئې وغوښته۔ آیا د استسقاء په لمانځه کښې د دُعا غوښتلو نوموړې طریقه صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء په لمانځه کښې د لاسونو په سر چپه نیولو سره دُعا غوښتل له جناب نبي کریم ﷺ څخه ثابت دي۔ د دې لپاره د اُمت فقهاوو د استسقاء د لمانځه په دوران کښې د دُعا په وخت کښې سرچپه لاسونه نیول سُنت ګرځولي دي۔ له دې وجهې ستاسو امام صاحب صحیح کار کړی دی۔ البته په استسقاء کښې د لاسونو د پړ مخې له نیولو څخه پرته هم دُعا جائزه ده۔

اخرج امام مسلم بن حجاج القشیریؒ: عن انس بن ماللك ان النبی ﷺ استسقی فاشار بظهر کفیه الی السمآء.

قال النوویؒ: تحته قال جماعة من اصحابنا و غیرهم السنة فی کل دُعاء الرفع بلاء لا لقحط و نحوه ان یرفع یدیه و یجعل ظهر کفیه الی السمآء و اذا دعا لسوال شیء و تحصیله جعل بطن کفیه الی السماء. (صحیح مسلم مع شرح للنوویؒ ج ۱، ص ۲۹۳، کتاب صلٰوة الاستسقاء)

اخرج ابو داؤد عن انس بن مالك ان النبی ﷺ کان یستسقی هٰکذا یعنی و مدّ یدیه و جعل بطونهما مما یلی الارض حتٰی رأیت بیاض ابطیه. (ابو داؤد ج ۱، ص ۱۷۲، باب رفع الیدین فی الاستسقاء) و مثله فی مشکٰوة المصابیح ج ۱، ص ۱۳۱، باب الاستسقاء)

## د استسقاء په لمانځه کښې د څادر د اړولو حکم

**سوال:** آیا د استسقاء په لمانځه کښې د څادر اړول ثابت دي او که نه؟ او که ثابت وي نو طریقه ئې څه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء په لمانځه کښې یواځې د امام لپاره مستحب دي چه تر لمانځه وروسته خپل څادر داسې واړوي چه د پورتنۍ برخه کښته راشي او کښتنۍ برخه پورته راشي په داسې حال کښې چه ښۍ خوا به کیڼې خوا ته راځي او کیڼه خوا به ښۍ خوا ته راځي۔

قال العلامة ابن الهمامؒ: و علم ان کون التحویل کان تفاولاً جاء مصرحا به فی المستدرك من حدیث جابر و

صححه قال و حول رداء ليتحول القحط و فى طوالات الطبرانى من حديث انس و قلب ردائه لكى ينقلب القحط الى الحصب. (فتح القدير ج۲، ص٦۲، باب الاستسقاء)

قال العلامة الزيلعىؒ: قال محمد يقلب الامام ردائه دون القوم (و بعد اسطرٍ) و ما رواه محمد محمول على انه عليه الصلوٰة و السلام فعله تفاولاً...... او عرف با لوحى تغير الحال عند تغيير الرداء و كيفية القلب على قول من يراه ان يجعل اعلاه اسفله ما امكن و ان لم يمكن كا لجبة جعل يمينه على يساره. (تبيين الحقائق ج۱، ص۲۳۱، باب الاستسقاء) و مثله فى الهندية ج۱، ص١٥٤، باب الاستسقاء)

## د استسقـــــاء تر لمانځه وروسته د ډير باران له وجهې له نقصـــــان څخه د بچ کيدو لپاره د دُعـــــا حکم

**سوال:** که چيرته د استسقاء تر لمانځه وروسته دومره زيات باران وشي چه خلکو ته نقصان ورکوونکى ثابت شي نو آيا د هغه د بندولو لپاره له الله تعالى څخه دُعا غوښتل کيدلى شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته باران دومره زيات وشي چه خلك تـــــرې تنګ شي او په هغه کښې د ځاني او مالي نقصان خطر وي نو د هغه د بندولو لپاره دُعا کيدلى شي۔ له رسول اللهﷺ څخه پخپله د اسې کول ثابت دي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (فلا بأس با لدعاء بحبسه) اى فيقول كما قالﷺ اللّٰهمّ حوالينا و لا علينا اللّٰهمّ على الآكام و الظراب و بطون الاودية و منابت الشجر. (رد المحتار ج۲، ص١٨٦، باب الاستسقاء)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: و اذا دام المطر حتىٰ خيف ضرره قالوا اللّٰهمّ حوالينا و لا علينا اللّٰهم على الآكام الى آخره. (كبيرى ص٤٢٨، باب الاستسقاء) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلتهٗ ج۲، ص٤٢٧، باب الاستسقاء)

## د استسقـــــاء د لمانځه لپاره تر دريو ورځو زيات د وتلو حکم

**سوال:** په عامه توګه خلك د استسقاء د لمانځه لپاره تر دريو ورځو پورې ووځي او وايي چه تر دريو ورځو څخه زيات وتل جائز نه دي۔ آيا دا خبره صحيح ده او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سلف صالحينو او فقهي ذخائرو څخه تر دريو ورځو پورې وتل منقول دي او له دې څخه زيات وتل نه دي راغلي۔ د دې لپاره يوازې تر دريو ورځو پورې پرله پسې وتل جائز دي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و يخرجون ثلاثة ايام لانه لم ينقل اكثر منها متتابعات. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص١٨٥، باب الاستسقاء)

قال العلامة الكاسانىؒ: ثم المستحب ان يخرج الامام و الناس ثلاثة ايام متتابعة لان المقصود من الدعاء الاجابة و الثلاثة مدة ضربت لابلاء العذر. (بدائع الصنائع ج۱، ص٢٨٤، صلوٰة الاستسقاء) و مثله فى الهندية ج۱، ص١٥٤، باب الاستسقاء.



## د استسقـــــاء د لمانځه لپاره يوازې په دُعـــــا باندې کفـــــايت کول جـــــائز دي

**سوال:** آيا د استسقاء لپاره يوازې لمونځ کول مسنون دي او که تر فرض لمونځونو وروسته يا په نورو حالاتو کښې دُعا هم غوښتل کيدلى شي؟ يوه مولوي صاحب د استسقاء د لمانځه په تقرير کښې يوازې دُعا بدعت و بلله؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء لپاره له حضورﷺ څخه مختلف اعمال مروي دي چه په هغو کښې دُعا هم راغلې ده۔ د دې لپاره امام ابو حنيفهؒ له جماعت سره استسقاء يوازې تر جواز پورې محدود بولي۔ له دې وجهې که چيرته د استسقاء لپاره يوازې دُعا وشي نو بيا هم جائز دي۔ او دې ته بدعت ويل د شرعي دلائلو څخه د ناخبرى دليل دى۔ البته امام به د دُعا لپاره قبلې ته مخامخ دريږي او مقتديان به ناست وي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: هو دعاء و استغفار لانه السبب لارسال الامطار بلا جماعة مسنونة بل هى جائزة آه. قال ابن عابدينؒ: (قوله هو دُعاء) و ذٰلك ان يدعوا الامام قائما مستقبل القبلة رافعاً يديه و الناس قعود مستقبلين القبلة يؤمنون على دائه با للّٰهم اسقنا غيثاً مغيثاً هنيئاً مَريئاً مريعاً غدقا مجللا سحا طبقاً دائماً الخ. (رد المحتار ج۲، ص١٨٤، باب الاستسقاء)

قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: قال ابو حنيفةؒ ليس فى الاستسقاء صلوٰة مسنونة فى جماعة فان صلّى الناس وحدانا جاز. انما الاستسقاء الدعاء و الاستغفار لقولهٖ تعالىٰ: اِسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ اِنَّهٗ كَانَ غَفَّاراً يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَاراً. (الهداية ج۱، ص١٥٨، باب الاستسقاء) و مثله فى الهندية ج۱، ص١٥٣، باب الاستسقاء)

صححه قال و حول رداء لیتحول القحط و فی طوالات الطبرانی من حدیث انس و قلب ردائه لکی ینقلب القحط الی الحصب. (فتح القدیر ج۲، ص ٦٢، باب الاستسقاء)

قال العلامة الزیلعیؒ: قال محمد یقلب الامام ردائه دون القوم (و بعد اسطرٍ) و ما رواه محمد محمول علی انه علیه الصلٰوة و السلام فعله تفاولاً...... او عرف با لوحی تغیر الحال عند تغییر الرداء و کیفیة القلب علی قول من یراه ان یجعل اعلاه اسفله ما امکن و ان لم یمکن کا لجبة جعل یمینه علی یساره. (تبیین الحقائق ج۱، ص ۲۳۱، باب الاستسقاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ١٥٤، باب الاستسقاء)

## د استسقـــــاء تر لمانځه وروسته د ډیر باران له وجهې له نقصـــــان څخه د بچ کیدو لپاره د دُعـــــا حکم

**سوال:** که چېرته د استسقاء تر لمانځه وروسته دومره زیات باران وشي چه خلکو ته نقصان ورکوونکی ثابت شي نو آیا د هغه د بندولو لپاره له الله تعالی څخه دُعا غوښتل کیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته باران دومره زیات وشي چه خلک تـــــــرې تنګ شي او په هغه کښې د ځاني او مالي نقصان خطر وي نو د هغه د بندولو لپاره دُعا کیدلی شي۔ له رسول اللهﷺ څخه پخپله د اسې کول ثابت دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (فلا بأس با لدعاء بحبسه) ای فیقول کما قالﷺ اللّٰهمّ حوالینا و لا علینا اللّٰهمّ علی الآکام و الظراب و بطون الاودیة و منابت الشجر. (رد المحتار ج۲، ص ١٨٦، باب الاستسقاء)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و اذا دام المطر حتی خیف ضرره قالوا اللّٰهمّ حوالینا و لا علینا اللّٰهم علی الآکام الی آخره. (کبیری ص ٤٢٨، باب الاستسقاء) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلتهٗ ج۲، ص ٤٢٧، باب الاستسقاء)

## د استسقـــــاء د لمانځه لپاره تر دریو ورځو زیات د وتلو حکم

**سوال:** په عامه توګه خلک د استسقاء د لمانځه لپاره تر دریو ورځو پورې ووځي او وایي چه تر دریو ورځو څخه زیات وتل جائز نه دي۔ آیا دا خبره صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سلف صالحینو او فقهي ذخائرو څخه تر دریو ورځو پورې وتل منقول دي او له دې څخه زیات وتل نه دي راغلي۔ د دې لپاره یو ائځې تر دریو ورځو پورې پرله پسې وتل جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یخرجون ثلاثة ایام لانه لم ینقل اکثر منها متتابعات. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ١٨٥، باب الاستسقاء)

قال العلامة الکاسانیؒ: ثم المستحب ان یخرج الامام و الناس ثلاثة ایام متتابعة لان المقصود من الدعاء الاجابة و الثلاثة مدة ضربت لابلاء العذر. (بدائع الصنائع ج۱، ص ٢٨٤، صلٰوة الاستسقاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ١٥٤، باب الاستسقاء.



## د استسقـــــاء د لمانځه لپاره یو ائځې په دُعـــــا باندې کفـــــایت کول جـــــائز دي

**سوال:** آیا د استسقاء لپاره یوائځې لمونځ کول مسنون دي او که تر فرض لمونځونو وروسته یا په نورو حالاتو کښې دُعا هم غوښتل کیدلی شي؟ یوه مولوي صاحب د استسقاء د لمانځه په تقریر کښې یوائځې دُعا بدعت و بلله؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استسقاء لپاره له حضورﷺ څخه مختلف اعمال مروي دي چه په هغو کښې دُعا هم راغلي ده۔ د دې لپاره امام ابو حنیفةؒ له جماعت سره استسقاء یوائځې تر جواز پورې محدود بولي۔ له دې وجهې که چېرته د استسقاء لپاره یوائځې دُعا وشي نو بیا هم جائز دي۔ او دې ته بدعت ویل د شرعي دلائلو څخه د ناخبرئ دلیل دی۔ البته امام به د دُعا لپاره قبلې ته مخامخ دریږي او مقتدیان به ناست وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: هو دعاء و استغفار لانه السبب لارسال الامطار بلا جماعة مسنونة بل هی جائزة آه. قال ابن عابدینؒ: (قوله هو دُعاء) و ذٰلك ان یدعوا الامام قائما مستقبل القبلة رافعاً یدیه و الناس قعود مستقبلین القبلة یؤمنون علی دائه با للّٰهم اسقنا غیثاً مغیثاً هنیئاً مّریئاً مریعاً غدقا مجللا سحا طبقاً دائماً الخ. (رد المحتار ج۲، ص ١٨٤، باب الاستسقاء)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: قال ابو حنیفةؒ لیس فی الاستسقاء صلٰوة مسنونة فی جماعة فان صلّی الناس وحدان جاز. انما الاستسقاء الدعاء و الاستغفار لقولهٖ تعالٰی: اِسْتَغْفِرُوا رَبَّکُمْ اِنَّهٗ کَانَ غَفَّاراً یُّرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَیْکُمْ مِّدْرَاراً. (الهدای ج۱، ص ١٥٨، باب الاستسقاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ١٥٣، باب الاستسقاء)

# باب سجود السهو

## (د سجدۂ سهو احکام او مسئلې)

### د سهوې د سجدې لپاره يوې خوا ته سلام اړول کافي دي

**سوال:** په سجدۂ سهو کښې دواړو خواوو ته سلام ګرځول کيږي او که يوې خوا ته؟ او آيا په دې کښې امام او يو اځې لمونځ کوونکی سره برابر دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام، مقتدي او يو اځې لمونځ کوونکي لپاره په سجدۂ سهو کښې د تولو فقهاوو په نزد يوې خوا يعني ښي خوا ته سلام ګرځول او سجده کول بهتر دي۔ ليکن ځينو محققينو لکه صاحبِ هدايه او د اسې نورو دواړو خواوو ته سلام ګرځول راجح بللی دی۔ اګر که د ځينو فقهاوو په نزد دواړو خواوو ته په سلام ګرځولو سره له لمانځه څخه د وتلو له وجهې سجدۂ سهو ساقطيږي۔ البته دواړه طريقې جائزې دي ليکن يوې خوا ته سلام ګرځول بهتر دي۔

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و یأتی بتسلیمتین هو الصحیح. (الهدایة ج۱، ص ۱۴۰، باب سجود السهو)

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: یجب بعد سلام واحد عن یمینه فقط. لانه المعهود و به یحصل التحلیل و هو الاصح بحر عن المجتبیٰ و علیه لو اتٰی بتسلیمتین سقط منه السجود. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۷۸، باب سجود السهو)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: (و یکتفی بتسلیمة واحدة) قاله شیخ الاسلام و عامة المشائخ و هو الاضمن للاحتیاط و الاحسن و یکون (عن یمینه) لانه المعهود به یحصل التحلیل فلا حاجة الی غیره خصوصاً و قد قال شیخ الاسلام خواهر زاده لا یأتی بسجود السهو بعد التسلیمتین لان ذٰلك بمنزلة الکلام (فی الاصح) و فی الهدایة و یأتی بتسلمیتین هو الصحیح. قال العلامة السید احمد الطحطاوی تحت قوله و یأتی بتسلیمتین هو الصحیح) ایده العلامة خسرو بما لا مزید علیه. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۷۷/۳۷۶، باب سجود السهو) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۵، الباب الثانی عشر فی سجود السهو)

### له سورت فاتحه څخه که چېرته يو حرف هم پاتې شي نو سجدۂ سهو واجبيږي

**سوال:** د لمانځه په لومړي رکعت کښې که چېرته له سورت فاتحه څخه اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَ اِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ سهواً پاتې شي نو آيا لمونځ ورسره کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرضو په لومړي دوه رکعتونو کښې او د سُنتو، وترو او نفلو په ټولو رکعتونو کښې که چېرته له سورت فاتحه څخه يو حرف هم پاتې شي نو سجدۂ سهو واجبيږي۔ او که چېرته سجدۂ سهو و نه کړي نو د لمانځه بيرته ګرځول پرې واجب دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (قرأة فاتحة الکتاب) فیسجد للسهو بترك اکثرها لا اقلّها. لکن فی المجتبیٰ یسجد بترك آیة منها و هو اولی. قلتُ و علیه فکل آیة واجبة.

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة ای و بناء علی ما فی المجتبیٰ فکل آیة واجبة و فیه نظر لان الظاهر ان ما فی



المجتبیٰ مبنی علی قول الامام بانها بتمامها واجبةٌ. و ذکر الآیة تمثیل لا تقید. اذ بترك شیء منها آیة او اقل و لو حرفاً لا یکون آتیا بکلها الذی هو الواجب کما ان الواجب ضم ثلاث آیات فلو قرأ دونها کان تارکا للواجب افاده الرحمتی. (الدر المختار و رد المحتار ج۱، ص۴۵۸، مطلب کل صلٰوة ادیت مع کراهیة التحریم تجب اعادتها)

قال ابن نجیم المصریؒ: الاوّل قرأة الفاتحة الخ الی ان قال و ان ترك اقلها لا یجب (ای السجود) لان للاکثر حکم الکل کذا فی المحیط و سواء کان اماماً او منفرداً کذا فی التجنیس و فی المجتبیٰ اذا ترك من الفاتحة آیة وجب علیه السجود و ان ترکها فی الاخرین لا یجب ان کان فی الفرض و ان کان فی النفل او الوتر وجب علیه لوجوبها فی الکل الخ.

و قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة (قوله و فی المجتبیٰ اذا ترك الخ) قال فی النهر و هو اولٰی و یؤیده ما سیأتی و حکاه فی المعراج عن شیخ الاسلام ثم قال و عند ابی یوسفؒ و محمدؒ اذا قرأ اکثرها لا یجب آه. (البحر الرائق علی صدر منحة الخالق ج۲، ص۹۴/۹۳، باب سجود السهو)

### د سورت فاتحې په پاتې کيدو سره سجدۂ سهو واجبيږي

**سوال:** زيد د سهار د لمانځه جمعه ورکوله چه له تکبير اولٰی څخه وروسته ئې د سورت فاتحه په ځای د کوم بل سورت تلاوت شروع کړ۔ د ور په زړه کيدو په صورت کښې که چېرته فاتحه تلاوت کړي نو آيا سجدۂ سهو پرې واجبيږي او که نه؟ همدارنګه که چېرته په همدې رکعت کښې ور په زړه نه شي بلکه په دوهم رکعت کښې ئې ور په زړه شي نو آيا په سجدۂ سهو باندې اکتفاء کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې اګر که د ور په زړه کيدو په صورت کښې امام سورت فاتحه تلاوت کړی دی ليکن د سورت فاتحه تر څنګ ضم سورت او د فاتحه تر منځ دا ترتيب هم واجب دی چه سورت فاتحه به مخکښې وايي او بل سورت به وروسته وايي۔ چونکه له زيد (امام) څخه ترتيب خراب شوی دی نو ځکه سجدۂ سهو پرې واجبه ده۔ لکه څرنګه چه د سورت فاتحه يا د ضم سورت په پاتې کيدو سره سجدۂ سهو واجبيږي۔

و قال ابن نجیم المصریؒ: و قد قدمنا فی ذکر الواجبات انهٗ یجب تقدیم الفاتحة علی السورة و انه یجب ان یؤخر السورة عن قرأة الفاتحة فکذا لو بدأ با لسورة ثم تذکر یبدأ با لفاتحة ثم یقرأ السورة و یسجد للسّهو و ان قرأ من السورة حرفاً کذا فی المجتبیٰ. و قیده فی فتح القدیر بان یکون مقدار ما یتأدی به رکن عن قرأة الفاتحة. (البحر الرائق ج۲، ص ۹۴، باب سجود السهو)

و ایضاً قال ابن نجیمؒ: الاوّل قرأة الفاتحة فان ترکها فی احدی الاولیین او اکثرها وجب علیه السجود. (البحر الرائق ج۲، ص۹۳، باب سجود السهو)

قال العلامة فخر الدین الزیلعیؒ: منها قرأة الفاتحة و السورة فلو ترك الفاتحة او اکثرها فی الاولیین وجب علیه سجود السهو........ و لو قرأ الفاتحة وحدها و ترك السورة یجب علیه سجود السهو کذا لو قرأ مع الفاتحة آیة قصیرة لان قرأة ثلاث آیات قصار او آیة طویلة مع الفاتحة واجبة و لو اخر الفاتحة عن السورة فعلیه سجود السهو. (تبیین الحقائق ج۱، ص۱۹۳، باب سجود السهو) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۶، باب سجود السهو)

## د ضم سورت په پاتې کېدو سره د سجدۀ سهو وجوب

**سوال:** که چېرته کوم لمونځ کوونکی د سورت فاتحه تر تلاوت کولو وروسته ضم سورت بالکل پرېږدي نو آیا لمونځ ئې کېږي او که نه؟ همدارنګه که چېرته په آخر کښې نوموړی سجدۀ سهو وکړي نو لمونځ ئې پوره کېږي او که بیرته را ګرځول ئې پرې واجب دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې نفس قرائت فرض دی۔ البته سورت فاتحه او له هغې سره کوم سورت یو ځای کول واجب دي۔ په دغو دواړو کښې چه کوم یو پاتې شي نو لمونځ نیمګړی کېږي او په آخر کښې د سجدۀ سهو په کولو سره بیرته پوره کېږي۔ او که چېرته په دغو دواړو کښې یو ئې په قصد سره پرېږدي نو بیا په سجدۀ سهو سره ئې هم لمونځ نه پوره کېږي بلکه د لمانځه بیرته ګرځول پرې واجبېږي۔ همدارنګه د نفس قرائت په پاتې کېدو سره د فرضو د پاتې کېدو له وجهې لمونځ نه کېږي۔

قال الامام الکاسانیؒ: منها قرأة الفاتحة و السورة فی صلٰوة ذات رکعتین و فی الاولیین من ذوات الاربع و الثلاث حتیٰ لو ترکهما او احدهما فان کان عامداً کان مسیئاً. و ان کان ساهیاً یلزمه سجود السهو. (بدائع الصنائع ج۱، ص ۱۶۰، باب سجود السهو)

قال ابن نجیمؒ: الاول قرأة الفاتحة فان ترکها فی احدی الاولین او اکثرها وجب علیه السجود و ان ترك اقلها لا یجب لان للاکثر حکم الکل کذا فی المحیط و سواءٌ کان اماماً او منفرداً کذا فی التجنیس. و ان ترکها فی الاخیرین لا یجب ان کان الفرض و ان کان النفل او الوتر وجب علیه لوجوبها فی الکل. قد قدمنا انه لترکها فی الاولیین لا یقضیها فی الآخرین فی ظاهر الروایة. و ایضاً قال فلو لم یقرأ شیئا مع الفاتحة او قرأ آیة قصیرة لزمه السجود. (البحر الرائق ج۲، ص۹۳/۹۴، باب سجود السهو)

## د وترو په لمانځه کښې د ضم سورت او فاتحه تر منځ د تکبیر په ویلو سره د سجدۀ سهو حکم

**سوال:** که چېرته یو لمونځ کوونکی د وترو په دریم رکعت کښې د سورت فاتحه تر لوستلو وروسته تکبیر ووایي، لاسونه پورته کړي لیکن فوراً ئې ضم سورت ور په زړه شي او سورت ووایي۔ بیا تکبیر ووایي، لاسونه پورته کړي او دعاء قنوت ولولي۔ نو آیا په دې صورت کښې سجدۀ سهو واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې د سجدۀ سهو د قواعدو له مخې سجدۀ سهو واجبه نه ده ځکه چه سجدۀ سهو په کوم رکن کښې په دومره ځنډ باندې واجبېږي چه په هغه کښې په مسنونې طریقې سره د لمانځه یو کوچنی رکن لکه رکوع یا سجده ادا کېږي۔ لهذا په رکوع یا سجدې کښې درې وارې سبحان ربی العظیم یا سُبحان ربی الاعلی په ویلو سره د ۱۴×۳=۴۲ حروفو د تلفظ وخت پکښې لګېږي۔ د دې لپاره په نوموړي صورت کښې د الله اکبر یوائې د اتو حروفو په تلفظ سره سجدۀ سهو نه واجبېږي۔



قال العلامة الشیخ احمد الطحطاویؒ: و من الواجب تقدیم الفاتحة علی السورة و ان لا یؤخر السورة عنها بمقدار اداء رُکن الخ. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۳۷۵، باب سجود السهو)

و فی الهندیة: و لو آخر الفاتحة عن السورة فعلیه سجود السهو کذا فی التبیین. (الهندیة ج۱، ص۱۲۶، باب سجود السهو) لیکن دا جزئیه مجمله ده او پورتنۍ جزئیه صریح ده د دې لپاره مفتٰی بهٖ قول د طحطاوي دی۔ منه (مرتب)

## د لمانځه د دوهمې سجدې د هېرېدو په صورت کښې له سلام اړولو څخه وروسته هغه سجده بیا ادا کېدلی شي

**سوال:** که چېرته له چا څخه په کوم رکعت کښې دوهمه سجده په هېرې سره پاتې شي او د سلام له اړولو څخه وروسته ور په زړه شي نو آیا د سلام په اړولو سره دا سړی له لمانځه څخه د باندې ګڼل کېږي او که د ننه ګڼل کېږي؟ همدارنګه که چېرته له لمانځه سره کوم منافي کار هم تر سره کړي نو بیا په دې صورت کښې به دی څه کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې ئې چه له لمانځه سره کوم منافي کار نه وي کړی نو د سلام له اړولو وروسته هم دا سړی په لمانځه کښې د ننه ګڼل کېږي۔ په دې صورت کښې دې دا سړی سجدۀ ثانیه صلٰوتیه صلبیه ادا کړي بیا دې قعده وکړي تشهد دې ووایي او سجدۀ سهو دې ادا کړي۔ بیا دې قعده وکړي او خپل لمونځ دې مکمل کړي سلام دې وګرځوي۔ او که چېرته یو داسې کار وکړي چه د لمانځه منافي وي نو بیا له لمانځه څخه وتلی دی او د سجدې په کولو سره ئې لمونځ نه مکمل کېږي بلکه د لمانځه بیرته را ګرځول پرې واجب دي۔

قال الامام الکاسانیؒ: و ان کان ساهیاً عنها (ای عن سجدة صلبیة و سجدة التلاوة و سلم) لا یخرج عن الصلٰوة. و علیه ان یسجد لکل واحدة منهما الاوّل فا لاوّل منهما ثم یتشهد بعدهما و یسلّم. ثم یسجد سجدتی السهو ثم یتشهد ثمّ یسلم الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص ۱۷۰)

قال الشیخ طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و ان سلّم و هو غیر ذاکرا لهما (ای سجدة صلبیة و سجدة التلاوة) فان سلامه لا یکون قطعاً و علیه ان یسجد للتلاوة و یسجد للصلٰوتیة الاوّل. فا لاوّل ثم یتشهد ثمّ یسلم ثم یسجد سجدتی السهو ثم یتشهد ثم یسلّم الخ. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص ۱۸۰، باب سجود السهو)

## د لومړي او دریم رکعت څخه وروسته اوږده جلسه د سهو موجب ده

**سوال:** په دوو یا څلورو رکعتونو کښې، امام په لومړي یا دریم رکعت کښې له دوهمې سجدې وروسته دومره ډېر کښېنیني چه مقتدیان ټول ودرېږي او بکر (مقتدي) فتح ورکړه بیا امام صاحب له قعدې څخه جګ شو او ودرېد۔ نو آیا په دې صورت کښې سجدۀ سهو واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا قعده له اول رکعت یا دریم رکعت څخه وروسته اوږده

شي یعنې دومره ځنډ وشي په څومره وخت کښې چه د لمانځه یو کوچنی رکن په مسنونه طریقه سره ادا کیدلی شي لکه په رکوع یا سجده کښې د درې ځله تسبیحاتو په ویلو باندې چه څومره وخت مصرفیږي نو د دومره ځنډ په کولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي۔

قال ابن عابدینؒ: و کذا القعدة فی آخر الرکعة الاولٰی او الثالثة فیجب ترکها. و یلزم من فعلها ایضاً تاخیر القیام الی الثانیة او الرابعة عن محله. و هذا اذا کانت القعدة طویلة. اما الجلسة الخفیفة التی استحبّها الشافعیؒ فترکها غیر واجب عندنا بل هو الافضل کما سیأتی. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۷، واجبات الصلٰوة)

قال صاحب ملتقی الابحر: تحت ان قرأ فی رکوع او قعود او قدم رکناً او اخرهٔ او کرره او غیّر واجباً او ترکه کرکوع قبل القرأة و تاخیر القیام الی الثالثة بزیادة التشهد قال شارحه شیخ زاده و اختلفوا فی مقدار الزیادة فقال بعضهم بزیادة حرف و کلام المصنف الی هذا و قال بعضهم بقدر رُکن و هو الصحیح کما فی اکثر الکتب. (مجمع الانهر ج۱، ص۱۴۸، باب سجود السهو) و مثله فی حاشیة امداد الفتاوٰی ج۱، ص۳۵۲ تا ۳۵۵، باب سجود السهو.

## د ماښام په لمانځه کښې له امام سره د یوه رکعت تر پیدا کولو وروسته په دوهم رکعت کښې د قعدې د پاتې کیدو په صورت کښې د سجدهٔ سهو حکم

**سوال:** یوه سړي د ماښام په لمانځه کښې له امام سره په داسې وخت کښې شامل شو چه امام صاحب دوه رکعته کړي وو۔ د عامو اقوالو مطابق دا سړی به یو بل رکعت ادا کوي او اوله قعده به کوي لیکن په داسې حالت کښې که چېرته له نوموړي مسبوق څخه دا قعده کومه چه له امام څخه ئې وروسته په یوائې توګه ادا کوي پاتې شي نو سجدهٔ سهو پرې واجبیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اوله قعده اګر که واجبه ده چه په پرېښودو سره ئې سجدهٔ سهو واجبیږي لیکن په نوموړي صورت کښې له مسبوق څخه د دې قعدې په پاتې کیدو سره استحساناً سجدهٔ سهو واجبه نه ده او لمونځ ئې هم صحیح دی۔

قال ابن عابدینؒ: (قولهٗ و علیه ان یقضی رکعة بتشهد الخ) یعنی الرکعة الاولٰی من الرکعتین. قال فی شرح المنیة حتٰی لو ادرک مع الامام رکعة من المغرب فانهٗ یقرأ فی الرکعتین الفاتحة و السورة. و یقعد فی اولهما لانها ثانیة و لو لم یقعد جاز استحساناً لا قیاساً و لم یلزمه سجود السهو و لو سهواً لکونها اولٰی من وجه آه. و لا یخالفه ما نقله العینیؒ عن المبسوط من ان هذا استحسان و القیاس ان یصلّی رکعتین ثم یقعد و وجه الاستحسان ان هٰذه الرکعة ثانیة لهذا المسبوق و القعدة بعد الرکعة الثانیة من المغرب سنة آه. (منحة الخالق علی البحر الرائق ج۱، ص۳۷۹، باب الحدث فی الصلٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: فمدرک رکعة من غیر فجر یأتی برکعتین بفاتحة و سورة و تشهد بینهما. قال ابن عابدینؒ (تحت قوله و تشهد بینهما) قال فی شرح المنیة و لو لم یقعد جاز استحساناً لا قیاساً و لم یلتزمه سجود السهو لکون الرکعة اولٰی من وجه. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۷، باب اللاحق و المسبوق) و مثله فی کبیری ص۴۶۸، باب سجود السهو)



## د اولې قعدې په پاتې کیدو یا په هغې کښې د زیاتوالي له وجهې د سجدهٔ سهو حکم

**سوال (۱):** یوه سړي د ماسپښین په څلورو مؤکدو سُنتو کښې اوله قعده پرېښوده نو آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې سُنت صحیح کیږي او که نه؟

**سوال (۲):** که چېرته یو څوك د څلورو مؤکدو سُنتو په لومړۍ قعدې کښې له تشهد برسیره د درود شریف یو څو کلمې هم زیاتې کړي نو د داسې سړي د لمانځه حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب (۱):** د فرض لمانځه غوندې په مؤکدو سُنتو کښې چونکه اوله قعده واجبه ده او د واجبو په پاتې کیدو سره سجدهٔ سهو واجبیږي د دې لپاره د سجدهٔ سهو په کولو سره لمونځ صحیح کیږي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: السادس القعود الاول و کذا کل قعدةٍ لیست اخیرة سواءٌ کان فی الفرض او فی النفل فانهٗ یلزمه سجود السهو بترکها ساهیاً. (البحر الرائق ج۲، ص۹۵، باب سجود السهو)

قال الحصکفیؒ: و القعود الاول و لو فی النفل علی الاصح. قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة لانهٗ و ان کان کل شفع صلٰوة علیحدة حتٰی افترضت القرأة فی جمیعه لٰکن القعدة انّما فرضت للخروج من الصلٰوة. فاذا قام الی الثالثة تبیّن ان ما قبلها لم یکن او ان الخروج من الصلٰوة فلم تبق الفریضة. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۵، واجبات الصلٰوة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۷، باب عشر الصلٰوة السهو)

**الجواب (۲):** د درود شریف لوستل پخپل ذات کښې د سجدهٔ سهو موجب نه دی بلکه د درود شریف په ویلو سره د دریم رکعت په قیام کښې ځنډ راځي کوم چه د سجدهٔ سهو موجب دی بلکه د اولې قعدې د تشهد تر لوستلو وروسته که چېرته یو څوك همداسې هم په کومې خاصې اندازې سره ځنډ وکړي نو بیا به سجدهٔ سهو واجبیږي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و منها لو کرر التشهد فی القعدة الاولٰی فعلیه السهو لتاخیر القیام و کذا لو صلّٰی علی النبیﷺ فیها لتاخیره و اختلفوا فی قدره و الاصح وجوبه با للّٰهم صلّ، علی محمد و ان لم یقل و علٰی آله. و ذکر فی البدائع انه یجب علیه السجود عندهٗ و عندهما لا یجب لانهٗ لو وجب لوجب لجبر النقصان و لا یعقل نقصان فی الصلٰوة علی رسول اللهﷺ. و ابو حنیفة رحمه الله یقول لا یجب علیه با لصلٰوة علی النبیﷺ بل بتاخیر الفرض و هو القیام الا ان التاخیر حصل با لصلٰوة فیجب علیه من حیث انها تاخیر لا من حیث انها صلٰوة علی النبیﷺ آه. و قد حکی فی المناقب ان ابا حنیفة رحمه الله رأی النبیﷺ فی المنام فقال لهٗ کیف اوجبت علی من صلّٰی علیّ سجود السهو فاجابه بکونه صلّٰی علیك ساهیاً فاستحسنه منه. (البحر الرائق ج۲، ص۹۷، باب سجود السهو)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: فان زار علی القدر التشهد. قال المشائخ: ان قال اللّٰهمّ صلّ علٰی محمد ساهیاً یجب علیه سجدتا السهو و عن ابی حنیفةؒ فیما رواه الحسن عنه ان زاد حرفاً واحدا فعلیه سجدتا السهو. قال المصنف و اکثر المشائخ علی هٰذا ای علی انه یلزمه السهو بزیادة حرف واحد. و فی الخلاصة و المختار انهٗ یلزمه السهو ان قال

اللّٰهم صلِّ علی محمّدٍ. قال البزازیؒ: لانه ادی سنة وکیدة فیلزم بتاخیر الرکن یجب سجود السهو. (کبیری ص ۳۳۰، باب سجود السهو) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۷، باب فی عشر الصلٰوة السهو، جنس آخر فی المقدمة.

## په څلورو رکعتو نفلو کښې د اولـــې قعدې په پاتې کیدو سره د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په څلورو رکعتو نفلو کښې په لومړۍ قعدې کښې د ناستې په ځای دریم رکعت ته لاړ شي نو لکه څرنګه چه د نفل هره شفعه د مستقل لمونځ والي له وجهې اوله قعده فرض وي د دې لپاره باید چه لمونځ ئې صحیح نه شي؟ شرعاً د دې حکم څرګند کړی تر څو عند الله ماجور وګرځی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د فقهاوو تر منځ اختلاف دی چه تر څو پورې لمونځ کوونکي د دریم رکعت سجده نه وي کړې نو د ځینو په نزد باید بیرته لومړۍ قعدې ته راشي، کښیني او تشهد دې ووایي بیا دې دریم رکعت ته لاړ شي۔ او د ځینو فقهاوو په نزد د فرضو غوندې دریم رکعت ته تر دریدو وروسته به بیرته نه ګرځي بلکه خپل لمونځ به جاري ساتي او په آخر کښې به د واجبو د ترك له وجهې سجدهٔ سهو وکړي نو لمونځ ئې پوره کیږي۔ د علامه شامي هم همدغه رأیه ده او دا رأیه آسانه هم ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: سها عن القعود الاول الی ان قال اما النفل فیعود ما لم یقید با لسجدة. قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة (قولهٗ اما النفل فیعود الخ) جزم به فی المعراج و السراج و علّله ابن وهبان بان کل شفع منه صلٰوة علی حدة. لا سیّما علی قول محمدؒ بان القعدة الاولٰی منه فرض فکانت کا لاخیرة و فیها یقعد و ان قام و حکی فی المحیط فیه خلافاً. و کذا فی شرح التمرتاشی قیل یعود. و قیل لا یعود. و قال بعد سطر واحدةٍ. لٰکن فی التاتارخانیة عن العتابیة قیل فی التطوع یعود ما لم یقیده با لسجدة و الصحیح انهٗ لا یعود. (رد المحتار ج۲، ص۸۳، باب سجود السهو)

و ایضاً قال الحصکفیؒ: و لو ترك القعود الاوّل فی النفل سهواً سجد (ای للسهو) و لم تفسد استحساناً لانهٗ کما شرع رکعتین شرع اربعاً ایضاً و قدمنا انهٗ یعود ما لم یقید الثالثة بسجدة. و قیل لا. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۸۸، باب سجود السهو)

قال ابن نجیم المصریؒ: اما فی النفل اذا قام الی الثالثة من غیر قعدة فانهٗ یعود و لو استتم قائماً ما لم یقیدها بسجدة کذا فی السراج الوهاج. و حکی فیه خلافاً فی المحیط. قیل لا یعود لانهٗ صار کا لفرض. و قیل یعود ما لم یقیدها با لسجدة. لان کل شفع صلٰوة علی حدة فی حق القراة فامرناه با لعود الی القعدة احتیاطاً. و متٰی عاد تبیّن ان القعدة وقعت فرضاً فیکون رفض الفرض لمکان فیجوز. (البحر الرائق ج۲، ص۱۰۱، باب سجود السهو)

## د اولـــې قعدې په پرېښودو او قیام ته په تلو سره د بیرته راګـــرځیدو په صورت کښې لمونځ نه فاسدیږي

**سوال:** که چېرته امام د ماسخوتن په لمانځه کښې په لومړۍ قعدې باندې د کښیناستو په ځای قیام ته لاړ شي او له شا څخه مقتدي فتح ورکړي او امام په مکمله توګه د دریدو تر څنګ فوراً

جلد سوم



بیرته کښیني نو آیا په لمانځه باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قواعدو له مخې اوله قعده واجبه ده او قیام فرض دی د دې لپاره د واجب په پاتې کیدو سره امام باید بیرته ور و نه ګرځي لیکن چه کله امام بیرته را وګرځي او کښیني نو د مفتٰی بهٖ قول مطابق لمونځ نه فاسدیږي لیکن نقصان پکښې پیدا کیږي۔ البته د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ پوره کیږي۔ او که چېرته سجدهٔ سهو و نه کړي نو لمونځ به واجب الاعاده وي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و ان سها عن القعود الاوّل و هو الیه اقرب عاد و الاّ لا و قال بعد عدة اسطر. و ذکر فی المبسوط من الثانیة الی الثالثة قبل ان یقعد فسبحوا بهٖ فعاد و روی انه لم یعد و کان بعد ما استتم قائماً و هٰذا لانهٗ لما استتم قائماً اشتغل بفرض القیام فلا یترك آه. و صححه الشارح. و فی فتح القدیر انه ظاهر المذهب و التوفیق بین الفعلین المرویین با لحمل علی حالتی القرب من القیام و عدمه لیس باولٰی منه با لحمل علی الاستواء و عدمه ثم لو عاد فی موضع وجوب عدمه اختلفوا فی فساد صلٰوته فصحح الشارح الفساد لتکامل الجنایة برفض الفرض بعد الشروع فیه لاجل ما لیس بفرض و فی المبتغٰی با لغین المعجمة انه غلط لانهٗ لیس بترك و انما هو تأخیر کما لو سها عن السورة فرکع فانه یرفض الرکوع و یعود الی القیام و یقرأ لاجل الواجب الخ. ان قال لا تفسد علی الاصح. (البحر الرائق ج۲، ص۱۰۰/۱۰۱، باب سجود السهو)

قال ابن عابدینؒ: و قد نقل المقدسی عن شرحی القدوری للمذکورین بعد نقله تصحیح الصحة عن المعراج و الدرایة. ما نصه ان عاد للقعود یکون مسیئاً و لا تفسد صلٰوته و یسجد لتاخیر الواجب. (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۰۱، باب سجود السهو)

## د ماسخوتن په آخـــري رکعت کښې جهر د سجدهٔ سهو موجب دی

**سوال:** د ماسخوتن په لمانځه کښې د فرضو په آخري دوه رکعتونو کښې په جهر سره د قرائت کولو په صورت کښې په لمانځه باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ آیا په دې کښې نسیان او عمد سره برابر دي او که فرق شته پکښې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماسخوتن د فرضو په دوه آخري رکعتونو کښې اخفاء واجبه ده۔ لهذا په جهر سره د قرائت ویلو په صورت کښې د واجبو د ترك له وجهې سجدهٔ سهوا واجبیږي۔ او په قصد سره په زوره د قرائت ویلو په صورت کښې په سجدهٔ سهو باندې کفایت نه کیږي بلکه د لمانځه اعاده به واجبه وي ځکه چه په سجده سهوه سره د هیرې (نسیان) جبیره (پتمی) کیږي۔

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو جهر فیما یخافت فیه و هو امام علیه السهو قل ذٰلك او کثر. و کذا اذا خافت فیما یجهر فیه قلّ ذٰلك او کثر علیه السهو ان فعل ساهیاً فی ظاهر الروایة. و علیه اعتماد شمس الائمة الحلوانیؒ لا علی روایة النوادر. و لا سهو علی المنفرد فی شیءٍ من ذٰلك و لو جهر فی الاخریین لزمه السهو. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۵، جنس فی القرأة و الاذکار)

قال العلامة الحصکفیؒ: و الجهر فیما یخافت فیه للامام (و عکسه) لکل مصل فی الاصح و الاصح تقدیره.

(بقدر ما تجوز به الصلٰوة فی الفصلین. و قیل قائله قاضی خانؒ یجب السهو بهما ای با لجهر و المخافة مطلقاً ای قل او کثر و هو ظاهر الروایة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۸۱، باب سجود السهو)

## د دُعاء قنوت په تکرار باندې د سجدۀ سهو حکم

**سوال:** د دُعاء قنوت د تکرار له وجهې سجدۀ سهو واجبیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دُعاء قنوت د تکرار له وجهې سجدۀ سهو واجبیږي ځکه چه په دې سره په رُکن کښې تاخیر راځي کوم چه د واجبو له ترک سره برابره ده۔

و فی الهندیة: و لا یجب السجود الاّ بترك واجب او تاخیره او تاخیر رکن او تقدیمه او تکراره او تغییر واجب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۶، باب سجود السهو)

قال ابن نجیم المصریؒ: و فی فتح القدیر و لو قرأ القنوت فی الثالثة و نسی قرأة الفاتحة او السورة او کلیهما فتذکر بعد ما رکع قام و لو قرأ او اعاد القنوت و الرکوع لانه رجع الی محله و یسجد للسهو. (البحر الرائق ج۲، ص۹۶، باب سجود السهو) و مثله فی فتح القدیر ج۱، ص۴۳۹، باب سجود السهو)

## په سهوه سره د دُعاء قنوت په پاتې کیدو باندې سجدۀ سهو واجبیږي

**سوال:** که چېرته په وترو کښې له چا څخه دُعاء قنوت هیر شي نو د سلام له ګرځولو څخه وروسته د ور په زړه کیدو په صورت کښې به څه طریقه اختیاروي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د وترو په لمانځه کښې له چا څخه دُعاء قنوت هیر شي او تر سلام ګرځولو وروسته د ور په زړه کیدو په صورت کښې فوراً سجدۀ سهو وکړي نو لمونځ ئې مکمل کیږي په دې شرط چه له سلام څخه وروسته کوم د اسې کار و نه کړي چه د لمانځه منافي وي او که نه نو بیا ئې لمونځ واجب الاعاده دی۔ همدارنګه که چېرته په قصد سره دُعاء قنوت پریږدي نو په دې صورت کښې هم د لمانځه بیرته راګرځول ضروري دي۔

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو سلم و علیه السجدة الصلٰوتیة و التلاوة او السهو. ان سلّم و هو غیر ذاکر للکل او ذاکرٍ للسهو لا یکون قطعاً. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۸۰، سجود السهو)

و ایضاً ذکر و ان سلّم و هو لا یرید ان یسجد لسهوه لم یکن تسلیمه ذٰلك قطعاً حتٰی لو بدا له ان یّسجد و هو فی مجلسه ذٰلك قبل ان یقوم و قبل ان یتکلم فانه یسجد سجدتی السهو فان تکلم او خرج من المسجد لا تأتی بهما و یسجد لسهوه بعد السلام عندنا و لو سجد قبل السلام لا یجب علیه اعادتهما بعد السلام ثم یتشهد ثانیاً بعد السجدتین و یقرأ التشهد. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۳، سجود السهو)

قال قاضی خانؒ: و لو ترك القنوت فذکر فی القعدة او بعد ما قام من الرکوع لا یقنت و علیه السهو. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۱۲۱، باب سجود السهو)



## د آخري قعدې په پریښودو سره د دوه نورو رکعتونو د وریو ځای کولو په صورت کښې د لمانځه فـرضیت په نفلو بدلیږي

**سوال:** یوه سړي د څلور رکعته فرضو نیت وتاړه، آخري قعده ئې پریښوده او دوه رکعته نور ئې ورسره یو ځای کړه۔ شرعاً د اسې سړي د لمانځه څه حیثیت دی؟ او سجدۀ سهو پرې واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چه کله لمونځ کوونکي آخري قعده پریښوده او دوه رکعته نور ئې ورسره یو ځای کړه نو دا شپږ رکعته ئې تول نفل شول او د سجدۀ سهو د کولو ضرورت ئې نشته، فرض لمونځ به بیا کوي۔

قال الشیخ ابراهیم الحلبیؒ: و ان سها عن القعدة الاخیرة فی ذوات الاربع و قام الی الخامسة الٰی ان قال و ان قید الرکعة الخامسة با لسجدة بطل فرضه تحولت صلٰوته نفلاً عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ. و بطلت اصلاً عند محمدؒ. و علیه ان یضم الیها (ای الخامسة) رکعة سادسة عندهما خلافاً لمحمدؒ. و قوله و یسجد للسهو. هو قول بعض المشائخ و فی النهایة و الاصح انه لا یسجد و کذا قال ابن الهمام الصحیح انهٗ لا یسجد لانّ النقصان با لفساد لا ینجبر با لسجود الخ. (کبیری ص۴۶۲، باب سجود السهو)

و فی الهندیة: و ان لم یقعد علی رأس الرابعة حتٰی قام الی الخامسة الٰی ان قال. و ان قید الخامسة با لسجدة فسد فرضه عندنا کذا فی المحیط و تحولت صلٰوته نفلاً عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ. و یضم الیها رکعة سادسة و لو لم یضم فلا شیءٌ علیه کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۹، باب سجود السهو) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۰۴، باب سجود السهو)

## په آخـري قعده کښې د واړو خواوو ته تر سلام ګرځولو وروسته د یوه رکعت د پاتې کیدو د غالب ګومان یا شك حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته په آخري قعده کښې د واړو خواوو ته تر سلام ګرځولو وروسته د یوه رکعت د پاتې کیدو غالب ګومان وشي او د همدې غالب ګومان له وجهې بناء وکړي او د پاتې شوي رکعت د ادا کولو لپاره جګ شي او د همدې رکعات د ادا کولو په وخت په قیام یـا رکوع کښې ور په زړه شي چه رکعتونه خو مې پوره کړي دي۔ نو د شریعت له مخې به دا سړی اوس څه کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك د ظن غالب له وجهې په آخري قعده کښې تر سلام وروسته یا مخکښې متصلاً جګ شي چه زما په ذمه باندې یو رکعت پاتې دی او بیا په قیام یا رکوع کښې بیرته ور په زړه شي چه رکعت مې نه دی پاتې بلکه لمونځ مې مکمل کړی دی نو دا سړی به فوراً کښیني، سلام به ګرځوي او که ئې په ولاړې سلام وګرځاوه نو بیا هم جائز دي لیکن د سُنتو خلاف دی۔

لما قال العلامة حماد بن حسن الشرنبلالیؒ: و ان قعد الجلوس الاخیر قدر التشهد ثم قام و لو عمداً او قرأ و رکع عاد للجلوس لان مادون الرکعة بمحل الرفض و سلّم فلو سلّم قائماً صح و ترك السنة لان السنة للتسلیم جالساً من غیر اعادة التشهد لعدم بطلانه با لقیام. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۸۳، باب سجود السهو)

قال العلامة الحصکفیؒ: و ان قعد فی الرابعة مثلاً قدر التشهد ثم قام عاد و سلم و لو سلّم قائما صح. قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله عاد و سلم ای عاد للجلوس لما مر ان ما دون الرکعة محل الرفض و فیه اشارة الی انه لا یعید التشهد و به صرح فی البحر قال فی الامداد و العود للتسلیم جالساً سُنّة لان السنة التسلیم جالساً الخ. (رد المحتار ج۲، ص۸۷، باب سجود السهو)

## تـــــر آخري قعدې وروسته د پنځم رکعت د سجدې د کولو یـــا نه کولو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته امام آخري قعده وکړي او بیا ودرېږي پنځم رکعت هم وکړي او په همدې پنځم رکعت باندې سجدهٔ سهو وکړي خپل لمونځ ختم کړي نو آیا د امام او مسبوق لمونځ به صحیح وي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آخري قعدې په کولو سره لمونځ پوره شو۔ د پنځم رکعت په کولو سره په سلام کښې د تاخیر له وجهې سجدهٔ سهو کفایت کوي۔ لهذا د سجدهٔ سهو تر ادا کولو وروسته د امام او مقتدیانو لمونځونه صحیح دي لیکن د مسبوق لپاره ضروري دي چه تر آخري قعدې وروسته له امام څخه جلا شي او خپل لمونځ یواځې پوره کړي۔ که چېرته مسبوق په پنځم رکعت کښې د امام اقتدا وکړي نو لمونځ ئې فاسدېږي او د عدم موافقت له وجهې په مسبوق باندې سجدهٔ سهو هم نه لازمېږي۔ د دې لپاره په امام باندې سجدهٔ سهو هلته لازمه شوه په کوم وخت کښې چه مسبوق له امام څخه جلا او یواځې شوی وو۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و ان قعد فی الرابعة) الخ (ثم قام عاد و سلم) و لو سلّم قائما صح ثم الاصح ان القوم ینتظرونه فان عاد اتبعوه (و ان سجد للخامسة سلّموا) لانهٗ تم فرضه اذ لم یبق علیه الاّ السلام الخ. الٰی ان قال و سجد للسهو فی الصورتین (یعنی لم یسجد للخامسة او سجد لنقصان فرضه بتاخیر السلام فی الاولٰی و ترکه فی الثانیة (یعنی بعد السجدة للخامسة). (الدر المختار علی هامش رد المحتار بتغیر عبارةٍ قلیلٍ و کثیر ج۱، ص۵۵۳، باب سجود السهو)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو قام امامه لخامسة فتابعه ان بعد القعود تفسد و الا لا حتٰی یقید الخامسة بسجدة. قال العلامة محمد امین قوله تفسد ای صلٰوة المسبوق لانه اقتداء فی موضع الانفراد و لان اقتداء المسبوق بغیره مفسد کما مر قوله الا ای و ان لم یقعد و تابعه المسبوق لا تفسد صلٰوته لان ما قام الیه الامام علی شرف الرفض و لعدم تمام الصلٰوة الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۹، باب اللاحق و المسبوق)

قال ابن نجیم المصریؒ: (و ان قعد فی الرابعة ثم قام عاد و سلم الخ) و قال بعد سطر واحدةٍ ثم قیل القوم یتبعونه فان عاد عادوا معه و ان مضی فی النافلة اتبعوه لان صلٰوتهم تمت با لقعدة. و الصحیح انهم لا یتبعونه لانه لا اتباع فی البدعة. فان عاد قبل تقیید الخامسة با لسجدة اتبعوه با لسلام فان قید سلموا فی الحال (و ان سجد للخامسة تم فرضه و ضمّ



الیها سادسة) ای لم تفسد فرضه بسجوده کما فسد فیما اذا لم یقعد هٰذا هو المراد با لتمام و الا فصلاته ناقصة کما سیأتی. و انما لم یفسد لان الباقی اصابة لفظ السلام و هی واجبةٌ. و انما یضم الیها اُخرٰی لتصیر الرکعتان لهٗ نفلاً للنهی عن الرکعة الواحدة. فاذا ضم فانهٗ یتشهد و یُسلم ثم یسجد للسهو کما سیأتی. (البحر الرائق ج۲، ص۱۰۴، باب سجود السهو)

و ایضاً قال ابن نجیم المصریؒ: و لو قام الامام الی الخامسة فی صلٰوة الظهر فتابعهُ المسبوق ان قعد الامام علٰی رأس الرابعة تفسد صلٰوة المسبوق و ان لم یقعد لم تفسد حتٰی یقید الخامسة السجدة. فاذا قیدها با لسجدة فسد صلٰوة الکل. لان الامام اذا قعد علی الرابعة تمت صلٰوته فی حق المسبوق فلا یجوز للمسبوق متابعته. (البحر الرائق ج۱، ص۳۷۸، باب الحدث فی الصلٰوة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۶۱/۱۶۴، الفصل فی السجود السهو)

## په فـــــرائضو او نوافلو کښې د سجدهٔ سهو حکم

**سوال:** په نوافلو کښې سجدهٔ سهو په سرې لازمېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدهٔ سهو په حقیقت کښې په لمانځه کښې د ننه د کوم واجب په پاتې کیدو سره چه کوم کمی په لمانځه کښې راځي د هغه جبیره وي او د واجبو پاتې کیدل یواځې له فرضو سره خاص نه دي بلکه په نوافلو کښې هم کیدلی شي۔ د دې لپاره د سجدهٔ سهو حکم په فرائضو او نوافلو کښې یو شان دي۔

و فی الهندیة: و حکم السهو فی الفرض و النفل سواءٌ. کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۶، باب سجود السهو)

قال ابن نجیم المصری رحمه الله: فان سجود السهو فی مطلق الصلٰوة و لا یختص با لفرائض. (البحر الرائق ج۲، ص۹۱، باب سجود السهو)

## د لمانځه په آخـــــر کښې د سلام حکم

**سوال:** یوه لمونځ کوونکي یوې خوا ته سلام واړاوه او بلې خوا ته ئې وا نه ړاوه بلکه همداسې را ولاړ شو، یا که چېرته دواړو خواوو ته سلام و نه ګرځوي نو د داسې لمونځ کوونکي د لمانځه حکم به څه وي؟ آیا بیا به لمونځ کوي او که همدغه لمونځ ئې کافي دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوې خوا ته تر سلام اړولو وروسته لمونځ بغیر له کراهیت څخه صحیح کیږي ځکه چه کله ئې سلام واړاوه نو لمونځ پوره شو، البته بلې خوا ته سلام اړول هم واجب دي۔ لهذا د سینې تر ګرځولو او د خبرو تر کولو مخکښې دې بلې خوا ته هم سلام واړوي۔ او که چېرته ئې دواړو خواوو ته سلام وا نه ړاوه نو له لمانځه سره تر منافي کار کولو مخکښې د ور په زړه کیدو په صورت کښې دې فوراً کښیني، سجدهٔ سهو دې وکړي بیا دې تشهد ووایي او سلام دې واړوي نو لمونځ به ئې صحیح ګڼل کیږي او که نه نو د واجبو د ترك له وجهې ئې لمونځ مکروه تحریمي کیږي او بیرته را ګرځول ئې پرې واجب دي۔ لکه څرنګه چه دواړو خواوو ته په قصد سره د سلام په پرېښودلو باندې لمونځ په سجدهٔ سهو نه پوره کیږي بلکه بیرته ګرځول به ئې واجب وي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لفظ السلام مرّتین فا لثانی واجب علی الاصح برهان دون علیکم و بتقضی قدوة با

لاول قبل علیکم علی المشهور عندنا و علیه الشافعیؒ خلافاً للتکملة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۶۸)

قال ابن نجیم المصریؒ: الثامن لفظ السلام و لا یتصوّر ایجاب السجود بترکه لانهٗ بعد القعود الاخیر اذا لم یأت بمنافٍ فانه یسلم و ان أتی بمنافٍ فلا سجود و لهٰذا قال فی التجنیس و السهو عن السلام یوجب سجود السهو. و السهو عنه ان یطیل القعدة و یقع عندهٗ انه خرج من الصلٰوة ثمّ یعلم ذٰلك فیسلّم و یسجد لانه آخر واجباً او رکناً علی اختلاف الاصلین آه. و انما یتصوّر ایجابه بتاخیره کما قدمناه و ذکرنا فی باب صفة الصلٰوة ان الواجب منه التسلیمة الاولٰی و هی السلام دون علیکم و رحمة الله. و فی البدائع انه لو سلّم من یساره اولا لا سهو علیه لانهٗ ترك السنة. و فی الظهیریة و اذا سلم الرجل عن یمینه و سها عن التسلیمة الاخرٰی فما دام فی المسجد یأتی با لاخرٰی و ان استدبر القبلة و عامة المشائخ علٰی انه لا یأتی متٰی استدبر القبلة. (البحر الرائق ج۲، ص۹۵، باب سجود السهو)

### د سجدۂ سهو په سلام کښې د امام د متابعت نه کوونکي د لمـــانځه حکم

**سوال:** که چېرته یو مقتدي له امام سره د سجدۂ سهو د سلام ګرځولو په وخت کښې په قصد سره سلام و نه ګرځوي او یواځې په سجدۂ سهو کښې شریك شي نو آیا د واجبو د ترك له وجهې به لمونځ بیرته ګرځوي؟ او که چېرته په سهوه سره سلام و نه ګرځوي نو په مقتدي باندې خو یواځې سجدۂ سهو نه واجبېږي د دې لپاره ئې لمونځ کیږي. آیا دا صحیح ده او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدۂ سهو که تر سلام اړولو مخکښې وي او که وروسته په دواړو صورتونو کښې جائزه ده. ځکه چه په روایتونو کښې له حضورﷺ څخه دواړه ډوله عمل راغلی دی. لیکن نبي کریمﷺ د عامې تشریع لپاره ویلي دي چه "لکل سهو سجدتان بعد السلام" د دې لپاره تر سلام ګرځولو وروسته سجدۂ سهو کول افضل دي او تر سلام ګرځولو مخکښې که قصداً وي او که سهواً په دواړو صورتونو کښې جائز دي.

قال ابن نجیم المصریؒ: و هذا الخلاف فی الاولویة حتٰی لو سجد قبل السلام لا یعیده لانهٗ لو عاد یتکرر و انهٗ خلاف الاجماع الخ. و ذٰلك کان مجتهداً فیه. و روی عن اصحابنا انه لا یجزئه یعیده کذا فی المحیط و فی غایة البیان ان الجواز ظاهر الروایة و فی التجنیس لو کان الامام یرٰی سجدتی السهو قبل السلام و المأموم بعد السلام قال بعضهم یتابع الامام لان حرمة الصلٰوة باقیة فیترك رأیه برأی الامام تحقیقاً للمتابعة. و قال بعضهم لا یتابع و لو تابعه لا اعادة علیه آه. و کان القول الاوّل مبنی علی ظاهر الروایة و الثانی علٰی غیرها کما لا یخفٰی. و ذکر الفقیه ابوا اللیث فی الخزانة انهٗ قبل السلام مکروه. و الظاهر انها کراهة تنزیه الخ. (البحر الرائق ج۱، ص۹۲، باب سجود السهو)

قال ظاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو سجد قبل السلام لا یجب علیه اعادتهما. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۳، باب سجود السهو)

### د فـــــاسد لمانځه بیرته راګرځول واجب دي

**سوال:** که چېرته له چا څخه د واجبو د ترك له وجهې سجدۂ سهو پاتې شي او تر سلام ګرځولو وروسته ورته د سجدۂ سهو د کولو موقع په لاس ور نه شي نو د شریعت له مخې ئې د لمانځه



حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د واجبو د ترك په صورت کښې د لمانځه بیرته ګرځول واجب دي۔ د غاړې د پوره خلاصولو لپاره دوباره ادا کول ئې ضروري دي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: (لها واجبات) لا تفسد بترکها و تعاد وجوباً فی العمد و السهو ان لم یسجد له.

قال ابن عابدینؒ تحت هٰذه العبارة. و هل تجب بترك سجود السهو لعذر کما نسیه او طلعت الشمس فی الفجر لم اره فلیراجع و الذی یظهر الوجوب کما هو مقتضی اطلاق الشارح. لان النقصان لا ینجبر بجابر و ان لم یأثم بترکهٖ فلیتأمل. (رد المحتار ج۱، ص۴۵۶، مطلب واجبات الصلٰوة)

لما قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: قوله و اعادتهما بترکه عمد ای مادام الوقت باقیا و کذا فی السهو ان لم یسجد له و ان لم یسجد له و ان لم یعدها حتٰی خرج الوقت تسقط مع النقصان و کراهة التحریم. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۳۰۰، باب واجبات الصلٰوة) و مثله فی امداد الاحکام ج۱، ص۴۸۱، کتاب الصلٰوة)

### د امام له سجدۂ سهو څخه تر فارغیدو وروسته د مسبوق لپاره د سجدۂ سهو حکم

**سوال:** که چېرته مسبوق له امام سره په د اسې حالت کښې یو ځای شي چه امام سجده سهو کړې وي نو آیا مسبوق مقتدي به سجدۂ سهو کوي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صوت کښې په مسبوق مقتدي باندې سجدۂ سهو واجبه نه ده۔ بلکه که چېرته همدغه مسبوق په دوهمې سجدې کښې له امام سره یو ځای شي بیا هم د اولې سجدې راګرځول پرې واجب نه دي۔

و فی الهندیة: و لو دخل معه (ای معل الامام) بعد ما سجد سجدتی السهو یتابعه فی الثانیة و لا یقتضی الاول و ان دخل معه بعد ما سجدهما لا یقضیهما کذا فی التبیین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۸، باب سجود السهو)

قال العلامة الحصکفیؒ: و المسبوق یسجد مع امامه مطلقاً سواءٌ کان السهو قبل الاقتداء و بعده. قال ابن عابدینؒ تحت هٰذه العبارة (قوله سواءٌ کان السهو الخ) بیان للاطلاق و شمل ایضاً ما اذا سجد الامام واحدة ثم اقتدٰی بهٖ قال فی البحر فانه یتابعه فی الاخرٰی و لا یقضی قضاء الاولٰی کما لا یقضیهما لو اقتدٰی بهٖ بعد ما سجدهما. (رد المحتار ج۲، ص۸۲، باب سجود السهو)

### د جُمعـــــې او اخترونو په لمونځونو کښې د ډیرې ګڼه ګونې لـــــه وجهې د سجدۂ سهو د نه کولو حکم

**سوال:** د اخترونو په لمونځونو کښې د تکبیراتو په پاتې کیدو سره سجدۂ سهو واجبه ده او که نه؟ او آیا د اخترونو په لمونځونو کښې د سجدۂ سهو د واجبیدو سره سره د پرېښودلو په صورت کښې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عیدینو تکبیرات واجب دي او د واجب په پاتې کیدو سره سجدۂ سهو واجبېږي لیکن د عیدینو په لمانځه کښې د ډیرې ګڼه ګونې او ازدحام له وجهې متاخرینو دا فتوٰی ورکـــړې ده چه د عیدینو په لمانځه کښې د سجدۂ سهو د واجبیدو

تـــــر ځنګ باید سجدۀ سهو و نه شي تر څو چه په خلکو کښې فتنه او فساد را منځته نه شي۔ هو! که چېرته سجدۀ سهو وشي نو د خلکو د جګیدو په صورت کښـــــې د هغو په لمونځونو کښې فساد نه راځي ځکه چه تر سجـــدۀ سهو وروسته که چېرته یو څوک جګ شي او لاړ شي نو لمونځ ئې پوره ګڼل کیږي۔ د دې وجه دا ده چه تر سجدۀ سهو وروسته قعده فرض نه بلکه واجبه ده د دې لپاره تر سجدۀ سهو وروسته د قعـدې په پاتې کیدو سره لمونځ له کراهیت سره جائز کیږي۔ او د کل صلٰوة ادیت مع کراهة التحریم یجب اعادتها قاعده پرې جاري کیږي۔ او که چېرته مجمع ډیره ګڼه نه وي نو بیا سجدۀ سهو باید چه وشي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و السهو فی صلٰوة العید و الجمعة و المكتوبة و التطوع سواءٌ. و المختار عند المتاخرین عدمه فی الاولیین لدفع الفتنة كما فی جمعة البحر و اقره المصنف و به جزم فی الدرر آه. قال ابن عابدینؒ تحت هٰذه العبارة (قوله عدمه فی الاولیین) الظاهر ان الجمع الكثیر فیما سواهما كذٰلك كما بحثه بعضهم و كذا بحثه الرحمتی. و قال خصوصاً فی زماننا و فی جمعة حاشیة ابی السعود عن العــزمیة ان لیس المراد عدم جوازه بل الاولٰی تركه لئلا یقع الناس فی فتنة آه. (قوله و به جزم فی الدرر) لكنه قیده محشیها الوانی بما اذا حضر جمع كثیر و الا فلا داعی الی الترك. (رد المحتار ج۱، ص۵۵٦، باب سجود السهو)

و فی الهندیة: قال فی الفتاوٰی القعدة بعد سجدتی السهو لیست بركنٍ و انما اُمر بها بعد سجدتی السهو لیقع ختم الصلٰوة بها حتّٰی لو تركها فقام و ذهب لا تفسد صلاته كذا قاله الحلوانی كذا فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲٦، باب سجود السهو)

و فی الهندیة: السهو فی الجمعة و العیدین و المكتوبة و التطوع واحدا الاّ ان مشائخنا قالوا لا یسجد للسهو فی العیدین و الجمعة لئلا یقع الناس فی فتنة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۸، باب سجود السهو)

## په لمانځـــــه کښې تر ډیره ځنډه پورې د غلي (چُپ) پاتې کیدلو حکـــم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب د وترو جمعه ورکوله نو چه کله دریم رکعت ته پورته شو نو د څو لمحو لپاره چُپ پاتې شو، بیا ئې قرائت شروع کړ او په آخر کښې ئې سجدۀ سهو وکړه۔ آیا د نوموړي امام د اسې کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې تر دومره ځنډه پورې چُپ پاتې کیدل چه درې واري سُبحان الله پکښې ویل کیدلی شي د سجدۀ سهو موجب دی۔ د دې لپاره په نوموړي صورت کښې د مذکوره امام سجدۀ سهو صحیح اقدام دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و اعلم انهٗ اذا شغله ذٰلك الشك فتفكر قدر اداء ركن و لم یشتغل حالة الشك بقراۃ و لا تسبیح ذكره فی الذخیرة وجب علیه سجود السهو. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۰٦، باب سجود السهو)

و فی الهندیة: و اذا شك فی صلٰوته فلم یدرأ ثلاثا صلّٰی ام اربعاً و تفكر فی ذٰلك كثیرا ثم استقین انهٗ صلّٰی ثلاث ركعات فان لم یكن تفكر شغل عن اداء ركن بان یصلّی و یتفكر فلیس علیه سجود السهو و ان طال تفكره حتّٰی شغله عن ركعة او سجدة او یكون فی ركوع او سجود فیطول تفكر فی ذٰلك و تغیر حاله با لتفكر فعلیه سجود السهو استحساناً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۱، باب سجود السهو)



# باب صلٰوة المریض

## (د مریض د لمانځه احکام او مسئلې)

## د بیمارۍ په حالت کښې د قضاء شوي لمونځونو د قضایي حکم

**سوال:** یو سړی ډیر سخت مریض دی او په هیڅ صورت کښې هم د لمانځه په ادا کولو باندې قدرت نه لري چه له دې وجهې ئې ډیر لمونځونه قضاء شوي دي۔ په د اسې حال کښې چه په همدې مرض کښې ئې له دنیا څخه هم سترګې پټې کړې۔ اوس د هغه د قضاء شوي لمونځونو د قضایي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له کوم مریض سړي څخه د شرعي عذر له وجهې څه لمونځونه قضاء شي نو تر جوړیدو وروسته به ئې قضایي خامخا راوړي۔ هو! که چېرته په همدې مرض کښې ئې انتقال وشي نو شرعاً له هغه څخه قضاء شوي لمونځونه ساقطیږي او د فدیې او د اسې نورو د ورکولو ضرورت ئې هم نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: فلو مات و لم یقدر علی الصلٰوة لم یلزمه القضاء حتّٰی لا یلزمه الایصاء بها كا لمسافر اذا افطر مات قبل الاقامة. (رد المحتار ج۲، ص۹۹، باب صلٰوة المریض)

قال العلامة ابن نجیمؒ: حتّٰی لو مات المریض ایضاً من ذٰلك الوجه و لم یقدر علی الصلٰوة لا یجب علی القضاء حتّٰی لا یلزمه الایصاء فصار كا لمسافر. (البحر الرائق ج۲، ص۱۱۵، باب صلٰوة المریض)

## مـــــریض د لمانځه لپاره جګـــول سُنت دي

**سوال:** که چېرته یو څوک د زړه او دماغو مریض وي او د همدې تکلیف له وجهې ئې تو له شپه تیره کړې وي او یواځې ئې د سهار خوا ته ویده شوی وي نو د د اسې بیمار د لمانځه حکم څه دی؟ او که چېرته ئې یو څوک د لمانځه لپاره جګ کړي نو شرعاً څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا مریض په لمانځه باندې قدرت درلود اګر که په اشارې سره هم وي نو د لمانځه لپاره ئې جګول بهتر بلکه د نیکي په کار کښې امداد او عبادت دی۔

لقولهٖ تعالٰی: تَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى. (سورة المائدة، پاره ٦، آیت ۲)

و بحدیث النبیﷺ عن ابی بكرة رضی الله تعالٰی عنه عن ابیه خرجت مع النبیﷺ الصبح فكان لا یمرّ برجل الاّ ناداه با لصّلٰوة اَو حركه برجله. (ابو داؤد ج۱، ص۱۷۹، باب الاضطجاع بعدها)

اخرج الامام ولی الدین ابو عبد الله بن محمد بن عبد الله الخطیب: عن ابی بكرة قال خرجتُ مع النبیﷺ الصّبح فكان لا یمر برجلٍ الا ناداه با لصلٰوة او حركه برجله.

قال الملا علی قاریؒ فی شرح الحدیث: فیه حث علی ایقاض النّائم و نحوه للصلٰوة و یؤخذ من تحریكه برجله جواز ذٰلك من غیر كراهة. (المرقات شرح مشكٰوة المصابیح ج۲، ص۱۵۷، باب الآذان، الفصل الثالث)

## د لمانځــــــه د قيام په نه کولو کښې د ډاکټر د مشورې حيثيت

**سوال:** يوه مريض ته ډاکټر وايي چه لمونځ په ناستو وکړه، په ولاړې سره د لمونځو کولو په صورت کښې دې مرض زياتيږي- ليکن هغه د ډاکټر دا خبره نه مني او په ولاړې سره لمونځ کوي- لهذا د دې سړي لپاره شرعاً څه حکم دی؟ د ډاکټر د مشورې مطابق په ناستې لمونځ کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې قيام (دريدل) فرض دی- که چېرته مريض په قيام قدرت ولري او د مرض د زياتوالي انديښنه ئې نه وي او په دريدو کښې تکليف هم ورته نه وي نو پرته له عذر څخه د قيام پريښودل جائز نه دي- البته معذور سړي ته قيام پريښودل روا دي- د عذر د تحقق د اړومدار په نفس الامر کښې په موجود الي پورې دی- که چېرته مريض ته پخپله دا احساس وي چه د دريدو په صورت کښې په لمونځ کولو سره مې مرض زياتيږي يا برسيره پر دې ډاکټر په نوموړي مرض باندې ماهر وي او د مسلمان والي تر څنګ د لمانځه د حقيقت قائل هم وي نو د داسې ډاکټر په مشوره يو مريض عمل کولی شي-

لما قال العـــــلامة ابن الهمامؒ: قوله اذا عجز المريض عن القيام صلّى قاعداً يركع و يسجد المـــــراد اعم من العجز الحقيقى حتٰى لو قدر على القيام لكن يخلف بسببه ابطاء برءٍ او كان يجد الماً شديداً اذا قام جاز له تركه. (فتح القدير ج١، ص٤٥٧، باب صلٰوة المريض)

قال ايضاً: لم معرفته (اى ازدياد المريض) ذٰلك باجتهاد المريض و الاجتهاد غير مجرّد الوهم بل هو غلبة ظن عن امارة او تجربةٍ او باخبار طبيب مسلم غير ظاهر الفسق. (الفتح القدير ج٢، ص٢٧٢، فصل و من كان مريضاً فى رمضان الخ)

قال العلامة الحصكفىؒ: من تعذر عليه القيام لمرض قبلها او فيها (اى الفريضة) بان خاف زيادته او بطاء برئهٖ بقيامهٖ او دوران رأسه او وجد لقيامه الماً شديداً صلّى قاعداً كيف شاء بركوع و سجود و ان قدرا على بعض القيام و لوم متكئا على عصا او حائطٍ قام. (ادر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص٩٥/٩٦، باب صلٰوة المريض

و ايضاً قال: او مريض خاف الزيادة لمرضه و صحيح خاف المرض و خادمة خافت الضعف بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبيب حاذق مسلم مستورٌ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص٤٢٢، فصل فى العوارض المبيعة للصوم) و مثله فى الهندية ج١، ص١٣٩، /ج١، ص٢٠٧، الباب الخامس فى الاعذار التى نبيح الافطار، صلٰوة المريض.

## په رکوع او سجدې باندې د قدرت نه درلودونکي سړي لپاره د قيام حکم

**سوال:** يوه مريض خپلې سترګې عمليات کړي دي او ډاکټر له رکوع او سجدې څخه منع کړی دی ليکن په قيام باندې ښه قادر دی- نو آيا په دې صورت کښې ئې لمونځ له قيام پرته په ناستو صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا-



**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړی په سجدې باندې قادر نه وي نو قيام هم ترې ساقط دی تر څو پورې چه جوړيږي- لهذا دا سړی به لمونځ په ناستې او رکوع او سجده به په اشاره سره کوي څکه چه د دريدو په ځای په ناستې باندې اشاره کول زمکې ته نژدې دي- د اشارې په وخت کښې به د رکوع په نسبت سجدې ته خپل سر لږ زيات کښته کوي-

قال الحصكفىؒ: او صلّى قاعدا كيف شاء بركوع و سجود و ان قدر على بعض القيام قام و ان تعذرا (اى الركوع و السجود) ليس تعذرهما شرطاً بل تعذر السجود كافٍ (لا قيام او ما قاعداً) و هو افضل من الايماء قائماً لقربهٖ من الارض. و يجعل سجوده اخفض من ركوعه لزوماً و لا يرفع الٰى وجهه شيئاً يسجد عليه فانهٗ يكره تحريماً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج٢، ص٩٧/٩٨، باب صلٰوة المريض)

قال عبد الله النسفىؒ: و ان خاف زيادة المرض صلّى قاعداً يركع و يسجد و مومياً ان تعذر و جعل سجودهٗ اخفض و لا يرفع الٰى وجه شيئاً يسجد عليه. فان فعل و هو يخفض رأسه صح و الاّ لا. و ان تعذر الركوع و السجود لا القيام اومأ قاعداً. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج٢، ص١١٢/١١٣، باب صلٰوة المريض) و مثله فى الهداية على صدر فتح القدير ج١، ص٤٥٧، باب صلٰوة المريض)

## د معـــــذور د لمانځه طـــــريقه

**سوال:** يو سړي د کومې سختې حادثې ښکار شوی دی او اوس ئې حال دا دی چه له نامه څخه لاندې بالکل بې حسه شوی دی- له حادثې څخه وروسته ئې متيازې د پائپ په ذريعې سره ايستل کيږي او شپه ورځ ئې پائپ د متيازو له نلکۍ سره لګيدلی وي چه د هغه په ذريعه سره ئې متيازې يو يو څاڅکی په يوه بوتل کښې جمع کيږي- نوموړی په قيام، رکوع او سجدې باندې هم قدرت نه لري- له دې برسيره پخپله په اودسه باندې هم قدرت نه لري او له بل چا څخه په اودسه او استنجاء کښې امداد غوښتل مشکل دي- نو د داسې سړي لپاره د تيمم، اودسه او لمانځه حکم څه دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې معذور سړي چه تر څو پورې دا عذر موجود وي تر هغو پورې په تيمم باندې لمونځ کولی شي او که چېرته په تيمم باندې هم قدرت و نه لري نو بې اودسه دې لمونځ کوي او بيائې راګرځول هم واجب نه دي-

قال العلامة الحصكفىؒ: (و المحصور فاقد) اى الماء و التراب الخ و كذا العاجز عنهما المرض (يؤخرها) عنده و قالا يتشبه با لمصلين وجوباً الخ. و به يفتٰى و اليه صح رجوعه اى الامام كما فى الفيض و فيه ايضا (مقطوع اليدين و الرجلين اذا كان بوجهه جراحة يصلى بغير طهارة و لا تيمم (و لا يعيد على الاصح). الدر المختار على هامش رد المحتار ج١، ص١٨٥، باب التيمم)

او چه کله په قيام، رکوع او سجدې باندې هم قادر نه وي نو داسې سړی به په اشارې سره لمونځ کوي، د اشارې کيفيت به ئې دا وي چه په کټ دې څملي پښې به د قبلې خوا ته غزوي، شاته به ئې يو څوك کښيني يا د سر لاندې به ئې يو بالښت يا بل شی ږدي تر څو چه سر

ئې لړ پورته وي او اشاره وکړی شي- او که چېرته په دې باندې هم قادر نه وي چه څنګه ورته ممکن وي په هغه کیفیت دې اشاره کوي او لمونځ دې وکړي-

قال الحصکفیؒ: (من تعذر علیه القیام) ای کله (لمرض) حقیقی وحده ان یلحقه با لقیام ضرر به یفتی. قبلها او فیها ای الفریضة (او) حکمی بان (خاف زیادته او بط برئه بقیامه دون رأسه او وجد لقیامه المأ شدیداً) او کان لو صلّی قائما سلسل بوله الخ. (صلی قاعدا) و لو مستنداً الی وسادة او انسان فانه یلزمه ذٰلك علی المختار کیف شاء علی المذهب لان المرض اسقط عنه الارکان فا لهیئات اولٰی الخ. و ایضاً قال (و ان تعذر القعود) و لو حکماً اومأ مستلقیا علی ظهره (و رجلاه نحو القبلة) غیر انه ینصب رکبتیه لکراهة مد الرجل الی القبلة و یرفع رأسه یسیراً لیصیر وجهه الیها الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۹۷/۹۸/۹۹، باب صلٰوة المریض) و مثله فی کنز الدقائق علٰی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۱۲/۱۱٤، باب صلٰوة المریض)



# باب سجدة التلاوة

## (د تلاوت د سجدې احکام او مسئلې)

### د سجدۀ تلاوت د وجوب لپاره د پوره آیت لوستل یا اوریدل ضروري دي

**سوال:** که چېرته د سجدې پوره آیت تلاوت نه شي بلکه نیم یا تر نیمایي زیاته برخه ئې تلاوت شي نو په دې صورت کښې به سجدۀ واجبه وي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدۀ تلاوت د وجوب لپاره د پوره آیت تلاوت یا اوریدل ضروري دي، که چېرته نیمایي یا تر نیمایي زیاته برخه ئې تلاوت شي او په کومې کلمې کښې چه د سجدې حروف راغلي وي د هغې تلاوت و نه شي نو سجده نه واجبیږي، البته داسې کول صحیح نه دي چه د سجدې ځای ته څوك ورسیږي او بیا ئې پریږدي-

قال العلامة ابن العابدینؒ: (تحت قوله یجب بسبب التلاوة آیة ای اکثرها مع حرف السورة) و الصحیح انهٗ اذا قرأ حرف السجدة و قبله کلمة او بعده کلمة وجب الخ. (رد المحتار ج۱، ص۱۰۳، باب سجود التلاوة)

لما فی الهندیة: و لو قرأ آیة السجدة الا الحرف الذی فی آخرها لا یسجد الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱. ص۱۳۲، الباب الثالث عشر فی سجود التلاوة)

### د تلاوت د سجدې لپاره اُودس شرط دی

**سوال:** د قرآنکریم په یادو تلاوت لپاره خو اودس شرط نه دی د دې لپاره که چېرته بې اودسه د تلاوت کولو په دوران کښې که چېرته د سجدې آیت تلاوت شي نو د سجدې د کولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د قرآنکریم د تلاوت لپاره اګر که اودس شرط نه دی لیکن د سجدۀ تلاوت د ادا کولو لپاره اودس شرط دی او لکه څرنګه چه د تلاوت سجده په فوري توګه واجبه نه ده د دې لپاره چه د سجدې کوم آیت په اودسي کښې تلاوت شوی دی نو د اوداسه له کولو وروسته دې سجده وشي- له اوداسه پرته که چېرته سجده وشي نو د شریعت له مخې ئې هیڅ اعتبار نشته-

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و اما شرائط الجواز فکل ما هو شرط جواز الصلٰوة من طهارت الحدث و هی الوضوء و الغسل و طهارت النجس و هی طهارت البدن الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸٦، فصل اما شرائط الجواز)

و قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و یشترط لاداء السجدة ما یشترط لاداء الصلٰوة من طهارة الثوب و البدن و المکان الخ. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۸۹، باب سجود التلاوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۳۵، الباب الثالث عشر فی سجود التلاوة.

## د سجدې د آیت په ویلو او اوریدو سره د سجدې وجوب

**سوال:** د سجدې د آیت په تلاوت کولو او اوریدلو سره د سجدې د وجوب دلیل څه دی؟ ډیر واري داسې شوي دي چه د تلاوت د اوریدو اراده نه وي۔ آیا د ارادې د نشتوالي تر څنګ سجدۂ تلاوت واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد د سجدې د آیت په تلاوت یا اوریدو سره سجده واجبیږي او د تلاوت کوونکي او اوریدونکي د قصد او ارادې هیڅ دخل پکښې نشته۔ که اراده وي او که نه وي نو سجده واجبیږي۔

لما ورد فی الحدیث: اذا قرأ ابن آدم السجدة اعتزل الشیطٰن یبکی و یقول یا ویله امر ابن آدم الخ. (الصحیح المسلم ج۱، ص۶۱، باب بیان اطلاق اسم الکفر الخ)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: قوله فکان فی الحدیث دلیل علی کون ابن آدم مامور با لسجود و مطلق الامر للوجوب الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۰، فصل اما سجود التلاوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۳۲، الباب الثالث عشر فی سجود التلاوة)

## د سجدې د آیت په اوریدو باندې هم سجده واجبیږي

**سوال:** آیا د تلاوت سجده د سجدې د آیت له تلاوت کولو پرته په اوریدو سره هم واجبیږي او که نه؟ همدارنګه په اوریدو کښې د قصد او ارادې دخل شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدۂ تلاوت د وجوبِ ادا لپاره د سجدې د آیت له تلاوت کولو برسیره اوریدل هم یو سبب دی۔ لهذا چه کله هم د سجدې آیت واوریدل شي نو سجده واجبیږي۔ البته که چیرته په هغه وخت کښې د سجدې د کولو فرصت نه وي نو بیا دې وروسته ادا کړي۔

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و السجدة واجبة فی هٰذه المواضع علی التال و السامع سواء قصد سماع القرآن او لم یقصد الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۲۲، باب سجود التلاوة)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و اما سبب وجوب السجدة فسبب وجوبها احد شیئین التلاوة و السماع الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۰، باب سجود التلاوة، فصل سبب الوجوب) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۱۰۸، باب سجود التلاوة.

## د تلویزون، رادیو، ټیپ ریکارډ په ذریعه د سجدۂ تلاوت عدم وجوب

**سوال:** له تلویزون، رادیو، ټیپ ریکارډ څخه که چیرته د سجدې آیت واوریدل شي نو آیا په اوریدونکي باندې به سجده واجبه وي او که نه؟ ډیر واري د کوم قاري آواز مخامخ اوریدل کیږي، آیا د ثبت شوي آواز او براه راست د آواز د دواړو حکم یو دی او که فرق پکښې شته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رادیو، ټي وي او ټیپ ریکارډ کښې چه کله تلاوت کیږي نو د



سجدې د آیت په اوریدو سره سجده نه واجبیږي۔ اګر که د ځینو په نزد د براه راست آواز له اوریدو څخه سجده واجبیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: لا تجب بسماعه من الصدی وا لطیر و من کل قال حرفاً و لا با لتهجی الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۰۸، باب سجود التلاوة)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: فینظر الی اهلیة التال و اهلیته با لتمیز و قد وجد فوجد سماع تلاوت صحیحة فتجب السجدة بخلاف السماع من الببغاء و الصدی فان ذٰلك لیس بتلاوت الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۶، باب سجود التلاوة، فصل بیان من تحبّ علیه) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۸۴، الفصل السابع عشر فی وجوب سجدة التلاوة.

## په مکروه وختونو کښې د سجدۂ تلاوت د ادا کولو حکم

**سوال:** که چیرته په مکروه وختونو کښې د تلاوت په دوران کښې د سجدې آیت مخې تلاوت شي نو آیا په همدې وخت کښې سجده جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له لمانځه څخه د باندې د تلاوت سجده په هغه ساعت نه واجبیږي بلکه چه کله ادا شي نو غاړې پرې خلاصیږي۔ په سجدۂ تلاوت کښې هم د مکروه او غیر مکروه وختونو رعایت ضروري دی۔ چه کله سجده په مشروع وخت کښې واجب شوې وي نو په مکروه وختونو کښې ئې ادا کول جائز نه دي۔ البته که چیرته په مکروه وختونو کښې د سجدې آیت تلاوت شي نو د سجدې ادا کول په همدې وختونو کښې جائز دي۔

لما فی الهندیة: و لو تلاها فی وقت مباح فسجدها فی اوقات مکروهة لم تجز الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۵، الباب الثالث عشر فی سجود التلاوة)

و قال علامة ابن العابدینؒ: (تحت قوله بشروط الصلٰوة) و کذا یشترط لها الوقت حتٰی لو تلاها او سمعها فی وقت غیر مکروه فادّها فی وقت مکروه لا تجز الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۶، باب سجود التلاوة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۹۰، قبیل الفصل الثامن عشر فی النذر و ما یلزمه الخ.

## د سجدې د ګڼو آیتونو لپاره یوه سجده کافي نه ده

**سوال:** که چیرته په یو مجلس کښې یوه سړی د قرآنکریم د تلاوت په دوران کښې د سجدې ګڼ شمیر آیتونه تلاوت کړي نو آیا دا سړی به د سجدې د هر آیت لپاره ځان ځانته سجدې کوي او که د ټولو آیتونو لپاره یوه سجده کافي ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدې د ګڼ شمیر آیتونو د لوستلو په وخت کښې د هرې سجدې سبب مختلف دی۔ د دې لپاره په دې صورت کښې په سجدو کښې د تداخل د نه روا والي له وجهې په هر آیت باندې ځان ځانته سجده باید وشي۔ البته د سجدې د یوه آیت په یوه مجلس کښې په بار بار تلاوت کولو سره تر څو چه له مجلس څخه پورته شوی نه وي نو یوه سجده ورته کافي وي۔

قال علامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لو کررها فی مجلسین تکررت) الاصل انه لا یتکرر الوجوب الا باحد امور الثلٰثة اختلاف التلاوت او السماع او المجلس الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱۱۴، باب سجود التلاوت)

و قال علاؤ الدين الكاسانيؒ: فنقول الاصل ان السجدة لا يتكرر وجوبها الا باحد امور الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۱، باب سجود التلاوة)

## د صلٰوتیه سجدې نیت په رکوع کښې جائز دی

**سوال:** په لمانځه کښې د تلاوت د سجدې په وجوب باندې که چېرته د مستقلې سجدې په ځای په رکوع کښې د سجدې نیت وشي نو آیا په دې سره غاړې خلاصیږي او که مستقله سجده ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرګنده دې وي چه د لمانځه سجده د باندې له لمانځه څخه نه صحیح کیږي۔ د دې لپاره چه کومه سجده د تلاوت په لمانځه کښې واجبه شي نو هغه به په همدغه لمانځه کښې ادا کوي۔ اوس که چېرته لمونځ کوونکی په لمانځه کښې مستقله سجده وکړي او خپل لمونځ جاري وساتي نو شرعا جائز دی او که چېرته رکوع ته د تلو په وخت کښې د سجدهٔ تلاوت لپاره په زړه کښې اراده وکړي نو بیا هم جائز دی۔ البته د نیت نه بغیر په رکوع کښې سجدهٔ صلٰوتیه نه ادا کیږي لیکن په رکوع کښې د سجدې د نیت لپاره دا شرط دی چه د سجدې د آیت له لوستلو وروسته او د رکوع د کولو تر منځ له دریو آیتونو څخه زیاته فاصله نه وي او که نه نو بیا په رکوع کښې د سجدې نیت نه صحیح کیږي۔

قال حسن بن عمارؒ: و يجزى عنها اى عن سجدة التلاوة ركوع الصلٰوة ان نواها اى نوى ادائها فيه و فيه و انقطاعه بان يقرأ اكثر من آيتين بعد آية السجدة بالاجماع. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ۲۶۴، باب سجود التلاوة)

و قال علاؤ الدين الكاسانيؒ: فينظر ان كانت آية السجدة فى وسط السورة فينبغى ان يختم الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۸۸، فصل فى كيفية ادائها) و مثله فى البحر الرائق ج۲،ص ۱۲۲، باب سجود التلاوة.

## د مازدیګر او سهار په وختونو کښې د تلاوت د سجدې حکم

**سوال:** له صبح صادق څخه واخله تر لمر ختو پورې یا له مازدیګر څخه واخله تر ماښامه پورې خو نفل جائز نه دي آیا په همدې وختونو کښې څوک د تلاوت سجده ادا کولی شي او که دا هم ممنوع ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دغو وختونو کښې نوافل اګر که ممنوع دي لیکن د قضایي لمونځونو غوندې په دغو وختونو کښې د تلاوت د سجدې ادا کول هم جائز دي۔

قال علاؤ الدين الحصكفىؒ: لا يكون قضاء فائتة و لو وترا او سجدة تلاوت و صلٰوة جنازة الخ. (الدر المختار ج۱، ص ۳۷۵، كتاب الصلٰوة)

و قال ابن الهمامؒ: و ادائها ليس على الفور حتى لو اداها فى اى وقت كان يكون مؤديا لا قاضيا. (فتح القدير ج۱، ص۲۰۷، كتاب الصلٰوة، فصل فى الاوقات التى تكره فيه الصلٰوة) و مثله فى الفتاوى الهندية ج۱، ص ۱۳۳، الباب الثالث عشر باب سجود التلاوة)



## آیا له دریدو پرته د تلاوت سجده جائزه ده؟

**سوال:** که چېرته یو څوک له لمانځه څخه د باندې د سجدې آیت تلاوت کړي او فوراً له دریدو پرته سجده وکړي نو آیا دا اسې سجده به جائزه وي او که خامخا به دریږي او بیا به سجده کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له لمانځه څخه د باندې د تلاوت د سجدې طریقه دا ده چه په ولاړې به نیت تړي او د لاسونو د پورته کولو بغیر تر الله اکبر ویلو وروسته به سجدې ته ځي، په سجده کښې به تسبیحات وایي او بیا به الله اکبر وایي او له سلام څخه پرته به له سجدې څخه جګیږي۔ البته که چېرته ئې یو څوک په ناستو الله اکبر ووایي او سجده وکړي نو بیا هم پروا نه لري۔

قال العلامة ابن نجيمؒ: و مما يستحب لادائها ان يقوم فيسجد لان الخرور و سقوط عن القيام و القرآن ورد به و هو مروى عن عائشة رضى الله عنها و ان لم يفعل لم يضره. (البحر الرائق ج۲، ص ۱۲۶، باب سجود التلاوة)

قال العلامة ابن همامؒ: و قيل يكبر فى الابتداء بلا خلاف و فى الانتهاء على قولهم محمدؒ نعم و على قول ابى يوسفؒ لا و الظاهر الاول للاعتبار المذكور و يستحب ان يقوم فيسجد روى ذٰلك عن عائشة رضى الله عنها. (فتح القدير ج۱، ص ۴۷۷، باب سجود التلاوة) و مثله فى امداد الفتاوٰى ج۱، ص۳۷۳، باب سجود التلاوة.

## له اودسه پرته د سجدهٔ تلاوت د ادا کولو حکم

**سوال:** یوه سړي بې اودسه د قرآنکریم تلاوت کاوه چه د سجدې آیت ئې تلاوت کړ۔ نو آیا دا سړی به بې اودسه د تلاوت سجده کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کوم عذر له وجهې ئې د تلاوت سجده په هغه وخت کښې نه شوای کولی نو د سجدې د آیت له تلاوت څخه وروسته دې دا کلمات سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ووایي او بیا چه کله وخت ورپیدا شي نو سجده دې وکړي۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و يستحب للتالى او السامع اذا لم يمكنه السجود ان يقول سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۷۸۹، كتاب الصلٰوة، فصل سجدة التلاوة)

قال العلامة حسن بن عمارؒ: و يستحب للتالى او السامع اذا لم يمكنه السجود ان يقول: سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ آه ثم يقضيها. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ۴۰۷، باب سجود التلاوة)

## له ویده سړي څخه د سجدې د آیت اوریدلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوک د ویده سړي له ژبې څخه د سجدې آیت واوري نو آیا سجدهٔ تلاوت پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدهٔ تلاوت د هغه آیت د تلاوت په اوریدو باندې واجبیږي چه له مکلف سړي څخه واورېدل شي که هغه ویده وي او که ویښ۔ لهذا په صورت مسئوله کښې سجدهٔ تلاوت واجبیږي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: تلا آیة السجدة و هو نائم فسمعه رجل تلزمه السجدة. (البحر الرائق ج ۱، ص ۱۶۱، باب سجود التلاوة)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: او من النائم الصحیح انها یجب ان سمعها منه. (خلاصة الفتاوٰی ج ۱، ص ۱۸٤، الفصل السابع عشر فی وجوب السجدة التلاوة) و مثله فی التاتارخانیة ج ۱، ص ۷۷۳، سجدة التلاوة.

## د سورت حج د سجدې په دویم آیت باندې د سجدې حکم

**سوال:** زمونږ د کلي قاري صاحب د سورت حج (اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ) د سجدې په دویم آیت باندې سجده وکړه کومه چه د امام شافعيؒ په نزد د سجدې مقام دی. نو آیا د حنفي فقهې مطابق په دې ځای کښې د سجدې په کولو سره په لمانځه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې ځای کښې د سجدې په کولو سره په لمانځه کښې کوم کمی نه راځي۔ البته که چېرته په دې ځای باندې سجده کوونکی عالم وي او د دلیل د قوت له مخې د راجح په ګڼلو سره سجده وکړه نو کوم کراهیت پکښې نشته او که چېرته ئې له دلیل پرته سجده وکړه نو چونکه د حنفي فقهې مطابق نوموړي له ضرورت پرته د لمانځه په رکن کښې ځنډ او تاخیر وکړ نو ځکه سجدهٔ سهو پرې واجبیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و الظاهر ان هٰذه السجدة من المجتهد فیه ای مما للاجتهاد فیه مساغ. (رد المحتار ج ۱، ص ۵۶۶، باب سجود التلاوة)

قال العلامة سید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و الحج) ای اولی الحج لا الثانیة و قال الشافعیؒ فیها سجدتان لنا ما عن ابن عباسؓ و ابن عمرؓ قالا سجدة التلاوة فی الحج الاولٰی و الثانیة سجدة الصلٰوة. (طحطاوی ص ۳۹۲، باب سجدة التلاوة)

## په سورت صٓ کښې د سجدې آیت کوم یو دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما ته یوه مسئله پیښه شوې ده او هغه دا چه په سورت صٓ کښې یو ځای خَرَّ رَاكِعاً وَّ اَنَابَ راغلي دي او یو ځای حُسْنَ مَاٰبٍ راغلي دي۔ په دغو دوو ځایونو کښې په کوم یوه د تلاوت سجده واجبیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سورت صٓ د سجدې په مقام کښې د فقهاوو تر منځ اختلاف دی۔ امام زیلعيؒ خَرَّ رَاكِعًا وَّ اَنَابَ د سجدې ځای مقرر کړی دی لیکن علامه شرنبلاليؒ حُسْنَ مَاٰبٍ د سجدې ځای مقرر کړی دی او دائې راجح هم بللی دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و فی صٓ عند حسن مآب هو اولٰی من قول الزیلعیؒ عند و اناب. (رد المحتار ج ۲، ص ۱۰٤، باب سجود التلاوة)

قال العلامة حسن بن عمارؒ: (و صٓ) وَ ظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَ خَرَّ رَاكِعاً وَّ اَنَابَ☆ فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ وَ اِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰی وَ حُسْنَ مَاٰبٍ و هذا هو الاولٰی مما قال الزیلعیؒ تجب عند قوله تعالٰی وَ خَرَّ رَاكِعاً وَّ اَنَابَ و عنده بعضهم عند



قوله تعالٰی: وَ حُسْنَ مَاٰبٍ. (مراقی الفلاح ص ۳۹۳، باب سجود التلاوة)

## د سجدې د آیت د پرینبودلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د تلاوت له سجدې څخه د ځان ساتلو لپاره د سجدې د آیت تلاوت پرېږدي نو آیا د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك د تلاوت په دوران کښې له سجدې څخه د ځان ساتلو لپاره د سجدې آیت پرېږدي نو د اسې کول له کراهیت څخه خالي نه دي۔ نو ځکه له د اسې عمل څخه باید ځان وساتي۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و یکره ان یقرأ سورة فی صلٰوة او غیرها و یترك آیة السجدة لانه یشبه الفرار عن السجدة و الاستنكاف عنها و ذا لیس من اخلاق المؤمنین. (کبیری ص ٤۷۰، باب سجود التلاوة)

قال العلامة الکاسانیؒ: یکره للرجل ترك آیة السجدة من سورة یقرأها لان فیه قطعاً لنظم القرآن و تغیر التالیف و اتباع النظم او التالیف مامور به قال الله تعالٰی فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ. ای تالیفه کا لتغیر مکروها یقتضی کراهة ذٰلك. (بدائع الصنائع ج ۱، ص ۱۹۲، باب سجود التلاوة) و مثله فی البحر الرائق ج ۲، ص ۱۲۷، باب سجود التلاوة.

## له لمانځه څخه د باندې سړي څخه په لمانځه کښې د سجدې د آیت اوریدلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په لمانځه باندې مشغول وي چه ناڅاپه یوه سړي چه په لمانځه کښې نه وو د سجدې آیت تلاوت کړ او یوه لمونځ کوونکي په لمانځه کښې واورید نو آیا اوریدونکی چه په لمانځه کښې ئې د سجدې آیت اوریدلی دی سجده به کله کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدهٔ تلاوت باید د سجدې د آیت په اوریدو سره ادا شي لیکن کوم آیت چه له نه لمونځ کوونکي څخه لمونځ کوونکي د لمانځه په حالت کښې واوري نو سجده دې تر لمانځه وروسته کوي، په لمانځه کښې ئې باید و نه کړي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو سمع المصلی السجدة من غیره لم یسجد فیها لانها غیر صلاتیة بل یسجد بعدها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۲، ص ۱۱۲، باب سجود التلاوة)

قال العلامة الکاسانیؒ: اما اذا سمع المصلی ممن لیس معه فی الصلٰوة حیث یسجد خارج الصلٰوة لان السجدة وجبت علیه و لیست من افعال الصلٰوة لان تلك التلاوة لیست من افعال الصلٰوة لعدم الشرکة بنیة بین التالی فی الصلٰوة و الوجوب علیه بسبب سماعه و السماع لیس من افعال الصلٰوة اذا لم یکن من افعال الصلٰوة امکن اداء خارج الصلٰوة فیؤدی آه. (البدائع الصنائع ج ۱، ص ۱۸۸، باب سجدة التلاوة) و مثله فی البحر الرائق ج ۲، ص ۱۲۱، باب سجود التلاوة)

## یوائې د سجدې د آیت په لیکلو سره سجده نه واجبیږي

**سوال:** که چېرته یو څوك د سجدې آیت په ګوتو باندې ولیکي لیکن په ژبه سره ئې و نه لولي نو آیا سجدهٔ تلاوت پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدهٔ تلاوت د وجوب لپاره د ټول آیت په ژبه سره لوستل ضروري

دي- که چېرته یو څوك د سجدې آیت په یوه کاغذ باندې ولیکي او په ژبې سره ئې و نه لولي نو په د اسې سرې باندې سجده نه واجبیږي-

قال العلامة الحصکفیؒ: یجب بسبب تلاوة آیة السجدة. قال ابن عابدینؒ: احترز عما لو کتبها او تهجاها فلا سجود علیه. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۳، باب سجود التلاوة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و کذا لا تجب با لکتابة او النظر من غیر تلفظ لانه لم یقرأ و لم یسمع. (کبیری ص ٤٦٤، باب سجود التلاوة)

## د سجدې د آیت په یواځې ترجمې سره هم سجدهٔ تلاوت واجبیږي

**سوال:** آیا د سجدې د آیت یواځې د ترجمې په ویلو سره سجده واجبیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قرآنکریم لکه څرنګه چه له الفاظ او معانیو دواړو څخه جوړ دی د دې لپاره که چېرته یو څوك د سجدې د پوره آیت ترجمه وکړي نو په هغه باندې د تلاوت سجده واجبیږي- البته د مفهوم یا تفسیر په بیانولو سره سجده نه واجبیږي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و السماع شرط فی حق غیر التالی و لو با لفارسیة اذا اخبر. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله اذا اخبر) ای بانها آیة سجدة سواء فهمها او لا. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۵، باب سجود التلاوة)

قال العلامة فخر الدین الشهیر بقاضی خانؒ: و لو تلی با لفارسیة تجب علیه و علی من سمعها السجدة فهم السامع او لم یفهم اذا اخبر السامع انهٗ قرأ آیة السجدة. (فتاوٰی قاضیخان علی هامش الهندیة ج۱، ص۱۵٦، فصل فی قرأة القرآن خطاء الخ) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۳۲، الباب الثالث عشر فی سجود التلاوة.

## په لمانځه کښې د تلاوت سجده له ځنډ پرته فوراً ادا کول ضروري دي

**سوال:** که چېرته یو چا په لمانځه کښې د سجدې آیت تلاوت کړ لیکن فوراً ئې سجده و نه کړه بلکه د یو څو نورو آیتونو له تلاوت کولو وروسته ئې سجده وکړه نو آیا د اسې کول جائز دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تلاوت د سجدې د سجدې د آیت له تلاوت کولو وروسته فوراً ادا کول واجبیږي- د دې لپاره ضروري ده چه د سجدې د آیت په ویلو او اوریدلو سره فوراً په هم هغه وخت کښې سجده وشي او ځنډول ئې ګناه ده- البته د مجبورۍ په صورت کښې ځنډ پکښې کیدلی شي-

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و صفتها الوجوب علی الفور فی الصلٰوة و علی التراخی ان کانت غیر صلٰوتیة. قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قولی علی الفور) ای فور التلاوة و ظاهر انه لو اخرها الی رکعة ثانیة اثم الخ. (طحطاوی حاشیه مراقی الفلاح ص ۲٦۰، باب سجود التلاوة)

قال العلامة الکاسانیؒ: اما وقت ادائها فی الصلٰوة فوقتها فوراً الصلٰوة لما مر ان وجوبها فی الصلٰوة علی الفور و هو ان لا تطول المدة بین التلاوة و بین السجدة فاما اذا طالت فقد دخلت فی القضاء و صار آثماً با لتفویت عن الوقت. (البدائع الصنائع ج۱، ص۱۹۱، باب سجود التلاوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۲٤، باب سجود التلاوة.



## د مرغۍ له ژبې څخه د سجدې د آیت د اوریدو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د طوطي یا کومې بلې مرغۍ له ژبې څخه د سجدې آیت واوري نو آیا سجدهٔ تلاوت پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجده تلاوت د وجوب لپاره ضروري ده چه تلاوت کوونکی مکلف او د تلاوت اهل وي- که چېرته د سجدې آیت له کوم غیر مکلف شي څخه واوریدل شي نو سجدهٔ تلاوت نه واجبیږي- د دې لپاره که چېرته یو څوك د کومې مرغۍ له ژبې یا کوم بل غیر مکلف شي لکه ټلویزون، راډیو، ټیپ ریکارډ او د اسې نورو څخه د سجدې آیت واوري نو سجدهٔ تلاوت نه پرې واجبیږي-

قال العلامة ابن نجیمؒ: و لو سمع آیه السجدة من حیوان صرحوا بعدم وجوبها علی المختار لعدم اهلیة القاری. (الاشباه و النظائر ج۱، ص۱۸۱، القاعدة الثانیة ص ۳٤۰، خاتمة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: لکن ذکر شیخ الاسلام انهٗ لا تجب با لسماع من مجنون و نائم و طیر لان السبب سماع تلاوة صحیحة و صحتها التمیز و لم توجد. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۷، باب سجدة التلاوة)

## له پاګل او لیوني څخه د سجدې د آیت د اوریدلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك له کوم پاګل او لیوني څخه د سجدې د آیت تلاوت واوري نو آیا په دې سره په اوریدونکي او پخپله په تلاوت کوونکي باندې سجده واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه د تلاوت د سجدې د وجوب لپاره د تلاوت کوونکي اهل والی او مکلفیت ضروري دی او لیونی ئې مکلف او اهل نه دی نو د دې لپاره له لیوني څخه د سجدې د آیت په اوریدو سره سجده نه واجبیږي- البته ویده سړی خو د حقیقت په بناء سره مکلف دی نو ځکه له ویده څخه د سجدې د آیت په اوریدو سره د غوره شوي قول مطابق سجده لازمیږي- لیکن پخپله په ویده باندې د نه خبرتیا له وجهې سجده نه لازمیږي-

قال العلامة ابن نجیمؒ: و السماع من المجنون لا یوجبها و من النائم یوجبها علی المختار. (الاشباه و النظائر ج۱، ص۱۸۱، القاعده الثانیة خاتمة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و تجب بتلاوتهم یعنی المذکورین خلا المجنون المطبق فلا تجب بتلاوته لعدم اهلیته. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۰۷، باب سجدة التلاوة)

## د سورت حج د آیت سجده په تلاوت کښې د شافعي مذهبه امـــــام د متابعت کولو حکم

**سوال:** د احنافوؒ په نزد خو د سورت حج په آخري آیت (یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ارْکَعُوْا وَ اسْجُدُوْا وَ اعْبُدُوْا رَبَّکُمْ وَ افْعَلُوا الْخَیْرَ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ) باندې خو سجده نه واجبیږي لیکن که چېرته د یوه شافعي مذهب امام په اقتداء کښې چه کله امام په دې آیت سجده وکړي نو حنفي مسلکه مقتدي په دې صورت

کبنې باید څه وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په داسې اجتهادي او اختلافي مسائلو کبنې باید له سختۍ او شدت څخه کار وانه خیستل شي بلکه د امام د متابعت د ضروري والي له وجهې له امام سره یو ځای سجده وشي۔

قال العلامة ابن العابدينؒ: (تحت قوله للمتابعة) و ظاهره انه يتبعه فيها لو كان فى الصلٰوة لكونه تابعاً...... الخ.

(رد المحتار ج۲، ص۱۰۵، باب سجود التلاوة)

## د سجــــدې د آیت له تلاوت څخه وروسته پنځه یـــا شپږ آیتونه لوستل او بیا سجده کول

**سوال:** که چېرته یوه سړي لمونځ کاوه او په قرائت کبنې ئې د سجدې آیت تلاوت کړ لیکن سجده ئې هیره شوه او د نورو پنځه یا شپږو آیتونو له تلاوت کولو وروسته ئې سجده ور یاده شوه او فوراً ئې سجده وکړه. نو آیا د نوموړي سړي لمونځ وشو او که نه په داسې حال کبنې چه په آخر کبنې ئې سجده سهو هم وکړه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سجدې د آیت له تلاوت وروسته باید فوراً سجده وشي که چېرته په لمانځه کبنې له کومې وجهې تاخیر پکبنې وشي او د ور په زړه کیدو په صورت کبنې فوراً سجده وکړي نو لمونځ ئې کیږي لیکن د تاخیر یا ځنډ له وجهې سجدهٔ سهو ضروري کیږي۔ ځکه چه سجدهٔ تلاوت پرې واجب شوی وي او د سجدهٔ سهو د نه کولو په صورت کبنې به د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب وي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: فعلى الفور لصيرورتها جزاء منها و يأثم بتاخيرها و يقضيها ما دام فى حرمة الصلٰوة و لو بعد السلام. قال ابن عابدينؒ: ثم تفسير الفور عدم طول المدة بين التلاوة و السجدة بقرأة اكثر من آيتين او ثلاث على ما سيأتى حلية قوله يأثم بتاخيرها الخ لانها وجبت ما هو من افعال الصلٰوة و هو القرأة و صارت اجزائها فوجب اداؤها مضيقا كما فى البدائع و لذا كان المختار وجوب سجدة السهو لو تذكرها بعد محلها. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۹/۱۱۰، باب سجود التلاوة)



# باب صلٰوة المسافر

## (د مسافر د لمانځه احکام او مسئلې)

## د قصر (سفرانه) لمانځه لپاره د سفر اندازه

**سوال:** آیا د مطلق سفر په ارادې سره له کوره په وتلو باندې قصر کیږي او که د قصر لپاره د سفر کومه شرعي اندازه ټاکلې ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفي فقه له مخې په مطلق سفر سره لمونځ نه قصر کیږي بلکه کم تر کمه د دریو ورځو په اندازه سفر ورته ضروري دی. په موجوده وخت کبنې علماوو اته څلویښت (۴۸) میله یا دوه اویا (۷۲) کیلو متره اندازه ټاکلې ده۔ له دې څخه د کمې مسافې په ارادې سره د وتلو په صورت کبنې سفر ته شرعي سفر نه ویل کیږي۔

قال برهان الدين المرغينانيؒ: السفر الذى يتغير به الاحكام ان يقصد مسيره ثلٰثة ايام و لياليها الخ. (الهداية ج۱، ص۱۴۸، صلٰوة المسافر)

و فى الهندية: اقل مسافة تتغير فيها الاحكام مسيرة ثلٰثة ايّام كذا فى التبيين. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۳۸، الباب الخامس عشر فى صلٰوة المسافر) و مثله فى الزيعلى ج۱، ص۲۰۹، باب صلٰوة المسافر.

## قصــــر (سفرانه) تر فرائضو پورې خاص دی

**سوال:** له فرائضو برسیره په سُنتو کبنې د قصر د کولو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د سُنتو د ادا کولو لپاره وخت او مرقع نه وي نو د ادا کولو ضرورت ئې نشته۔ البته چه کله وخت او موقع وي نو سُنت به پوره ادا کوي۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و يأتى المسافر با لسنن ان كان فى حال امن و قرار و الا لا. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۱، باب صلٰوة المسافر)

و قال علاؤ الدين الكاسانيؒ: و كذا لا قصر فى السنن و التطوعات...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۹۲، فصل الكلام فى صلٰوة المسافر) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فى صلٰوة المسافر)

## د اتـــه څلویښت میله په مقابله کبنې فرسخونه معتبر نه دي

**سوال:** په ځینو کتابونو کبنې فراسخو ته د اعتبار د نشتوالي سره سره احناف اته څلویښت میلو ته ولې اعتبار ورکوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په مذهب کبنې په بنیادي توګه فرسخونو ته اعتبار نشته بلکه د سفر موده د دریو ورځو په اندازې پورې اړه لري۔ لیکن په یوه ورځ کبنې یو انسان په اوسط ډول شپاړس میله مسافه وهلی شي۔ د دې لپاره مونږ ۱۶×۳=۴۸ میلو ته اعتبار ورکړ۔

قال برهان الدين المرغينانيؒ: و لا معتبر با لفراسخ هو الصحيح. (الهداية ج۱، ص۱۴۸، باب صلٰوة المسافر)

و قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا اعتبار با لفراسخ علی المذهب...... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۴، صلٰوۃ المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۲۹، باب المسافر)

## د مسافر د پوره لمونځ کولو په صورت کښې د غاړې د خلاصیدو حکم

**سوال:** که چېرته یو مسافر د قصر (سفرانه) په ځای پوره لمونځ وکړي نو آیا غاړې ئې پرې خلاصیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په منځ کښې قعده وکړي نو لمونځ ئې صحیح کیږي او غاړې ئې پرې خلاصیږي۔ البته د سلام د تاخیر له وجهې به ګنهګار وي۔ لیکن که چېرته اوله قعده و نه کړي او بې له قعدې دریم رکعت ته پورته شي او څلور رکعته پوره کړي نو لمونځ ئې باطلیږي او لهٔ سره به ئې ادا کوي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: فلو اتم مسافر ان قعد فی قعدة الاولٰی تم فرضه لکنه اساء الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۸، صلٰوۃ المسافر)

و فی الهندیة: فان صلّٰی اربعاً و قعد فی الثانیة قدر التشهد اجزأته و الاخریان نافلة و یصیر مسیئاً لتاخیر السلام و ان لم یقعد فی الثانیة قدرها بطلت کذا فی الهندیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوۃ المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۰، باب المسافر)

## د قصر (سفرانه) لمانځه لپاره په سفر کښې مشقت او تکلیف ضروري خبره نه ده

**سوال:** د موجوده زماني په سفرونو کښې کوم خاص ډول مشقت او تکلیف چا ته نه وي د مثال په ډول یو سړی چه کله له کراچۍ څخه پښاور ته سفر کوي نو پرته له کوم تکلیف څخه په څو ساعتونو کښې خپل منزل مقصود ته رسیږي۔ آیا په د اسې صورت کښې د آسانتیاوو او راحتونو باوجود په لمانځه کښې قصر کول جائز دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سفر کښې د رخصت رعایت په کوم مشقت او تکلیف پورې نه دی تړلی بلکه د مطلق سفر له وجهې رخصت ورکړ شوی دی۔ پخپله سفر د مشقت لپاره د سبب کیدو له وجهې په هغه باندې د احکامو د مرتب کیدو په خاطر محض د سفر په موجود والي کښې قصر روا شوی دی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: حتی لو اسرع فوصل فی یومین قصر الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۴، صلٰوۃ المسافر)

و فی الهندیة: و لو کانت المسافة ثلاثاً با لسیر المعتاد فسار الیها علی الفرس جر یا حثیثاً فوصل فی یومین او اقل قصر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوۃ المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۲۹، باب المسافر)



## په اصلي وطن کښې تعدّد (ګڼ والی) ممکن دی

**سوال:** آیا د یوه سړي لپاره په ګڼو ځایونو کښې د ځان لپاره وطن اصلي جوړول ممکن دي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په هر یو ځای کښې د ده د مستقلو اوسیدو اراده وي۔ تر دې پورې چه شپږ میاشتې په یوه کلي کښې او شپږ میاشتې په بل کلي کښې تیروي او هلته ورته د ژوند ټول ضروریات مهیا وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په وطن اصلي کښې تعدد ممنوع نه دی۔ د صورت مذکوره مطابق چه په هر یو ځای کښې چه کله د مستقلو اوسیدو د اسې اراده وي چه شپږ میاشتې په یوه ځای او شپږ میاشتې په بل ځای کښې تیروي۔ د مثال په ډول په دواړو ځایونو کښې ئې کور آباد کړی وي نو دواړه ځایونه د نوموړي په حق کښې اصلي وطن ګڼل کیږي او په دواړو ځایونو کښې به پوره لمونځ کوي۔

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: ثم الوطن الاصلی یجوز ان یکون واحداً او اکثر من ذٰلک بان کان لهٗ اهل و دار فی بلدتین او اکثر و لم یکن من نیة اهله الخروج منها و ان کان هو ینتقل من اهل الٰی اهل فی السنة انه لو خرج مسافر من بلدة فیها اهله و دخل فی ای بلدة من بلاد التی فیها اهله فیصیر مقیماً من غیر نیة الاقامة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۰۳، فصل فی بیان ما یصیر به المسافر مقیماً)

و فی الهندیة: و یبطل وطن الاصلی با لوطن الاصلی اذا انتقل عن الاول باهله و اما اذا لم ینتقل باهله و لٰکنه استحدث اهلاً ببلدة اخری فلا یبطل وطنه الاول و یتم فیها. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۴۲، الباب الخامس عشر فی صلٰوۃ المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۶، باب المسافر.

## د یوه وطن اصلي په بل وطن اصلي باندې د متاثر کیدلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوک خپل وطن اصلي پریږدي او د سفر د مسافې په اندازه سره په کوم بل ځای کښې له خپل اهل او عیال سره استوګن غوره کړي نو د اسې سړی که چېرته د دوه درې ورځو لپاره خپل پلرنی وطن ته راشي نو د هغه لمانځه حکم به څه وي؟ په د اسې حال کښې چه دلته ئې په پلرنی وطن کښې تر ملکیت لاندې زمکه هم موجوده وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه سړي له خپل وطن څخه د سفر د مسافې په اندازه د سفر په نیت وتل او هلته له پنځلسو ورځو څخه د کم وخت قیام کولو په صورت کښې قصر پرې واجب دی۔ البته د ا سړی که چېرته خپل پلرني وطن ته لاړ شي او هلته ئې تر ملکیت لاندې جائداد هم موجود وي نو د ا ځای د هغه وطن اصلي ګڼل کیږي او پوره لمونځ کول پرې لازم دي ځکه چه سړی کولی شي چه څو ځایه خپل وطن اصلي جوړ کړي۔

لما قال صاحب مجمع الانهر: (تحت قوله) و یبطل الوطن الاصلی بمثلهٖ لو کان لهٗ اهل الکوفة و اهل البصرة فمات اهله با لبصرة و بقی له دور و عقار با لبصرة قبل البصرة لا تبقی وطناً له لانهٗ انما کانت وطناً لهٗ با لاهل لا با لعقار الا

ترٰی انه لو تأهل ببلدة و لم یکن لهٗ عقار صارت وطناً له و قبل تبقی وطناً له لانه کانت وطناً لهٗ با لاهل و الدور و جمیعاً وال احدهما لا یرتفع الوطن کموطن القامة تبقی ببقاء الثقل. (مجمع الانهر ج۱، ص ۱۶۴، باب المسافر)

لما فی الهندیة: و لو انتقل باهله و متاعه الٰی بلدٍ و بقی لهٗ دور و عقار فی الاوّل قبل بقی الاوّل وطناً لهٗ و الیه اشار محمدؒ فی الکتاب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۲، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲،ص۱۳۶، باب المسافر.

## لــه ودیدو وروسته د نجلۍ لپاره د پلار کور وطن اصلي نه پاتې کیږي

**سوال:** له واده وروسته که چېرته یوه ښځه د خو ورځو لپاره د خپل پلار کره راشي نو د هغې د لمانځه حکم به څه وي؟ آیا قصر به کوي او که به پوره لمونځ کوي؟ په د اسې حال کښې چه د سفر مسافت ئې اته څلویښت میله وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د والدینو کور اگر که د ښځې لپاره اصلي وطن وو لیکن له ودیدو وروسته ئې د خاوند په کور کښې د مستقل اوسیدو په غوره کولو سره د الوطن الاصلی یبطله مثله مخې اوس دا وطن د دې لپاره وطن اصلي نه پاتې کیږي۔ له دې وجهې دلته د اقامت د نیت د نه کولو په صورت کښې به قصر لمونځ کوي۔

قال ابن عابدینؒ: تحت قوله الوطن الاصلی هو مؤطن ولادته او تأهله او توطنه ای عزم علی القرار فیه و عدم الارتحال و ان لم یتاهل فلو کان لهٗ ابوان ببلد غیر مولده و هو بالغ و لم یتاهل بهٖ فلیس ذٰلك وطنا لهٗ الا اذا عزم علی القرار فیه و ترك الوطن الذی کان لهٗ قبلهٗ. (رد المحتار ج۲، ص ۱۳۱، صلٰوة المسافر، مطلب فی الوطن الاصلی الخ)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: اما اذا کان لهٗ ابوان ببلدة و هو بالغ فلیس بوطن لهٗ....... الخ. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۰۴، الفصل الثانی و العشرون فی صلٰوة المسافر) و مثله فی کبیری ص۵۴۴، صلٰوة المسافر، الرابع فی الوطن.

## د وطن اصلي د آبادي له حدودو څخه په وتلو سره سفر شروع کیـــږي

**سوال:** ډیر ځله د وطن اصلي حدود ډیر زیات او اوږده وي په د اسې حالت کښې سفر له کوم ځای څخه باید سرې شروع کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اقامت د ځای له حدودو څخه په وتلو سره سفر شروع کیږي۔ په لویو ښارونو کښې په عمومي ډول د گمرکاتو له مراکزو څخه د ښار حدود شروع کیږي۔ البته په ځینو ځایونو کښې تقدیم او تاخیر هم ممکن دی۔

قال عبد الله التمرتاشیؒ: من خرج من عمارة موضع اقامته قاصداً مسیرة ثلٰثة ایام و لیالیها با لسیر الواسط مع الاستراحات المعتادة صلی الفرض الرباعی رکعتین الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۱۲۴، باب صلٰوة المریض)

و فی الهندیة: الصحیح ما ذکر انه یعتبر مجاوزة عمران المصر الخ. (الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الفصل الخامس عشر فی صلٰوة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۲۸، باب المسافر.



## د سامان له پاتې کیدو سره سره د سفر له انشاء څخه د اقامت وطن نه باطلیږي

**سوال:** ډیر ځله د اقامت له وطن څخه د سفر د مسافې په اندازه وتل مخ ته راځي لیکن د اقامت له وطن څخه د تعلق د پرېښودو اراده بالکل نه وي، همدا وجه ده چه تول کور او سامان پخپل ځای کښې پاتې وي۔ آیا په د اسې صورت کښې د سفر له انشاء څخه وطن اقامت په باطلیدو سره د بیرته راتگ په صورت کښې د دوباره نیت ضرورت پیدا کیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه کله کله د پنځلسو ورځو په دننه کښې د بیا لپاره د سفر اراده پیدا کیږي۔

**الجواب بـــــاسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه اهل، عیال او سامان د اقــــامت په وطن کښې موجود وي تر هغو پورې د سفر په انشاء سره وطن اقامت نه باطلیږي۔ په د اسې صورت کـــــښې دوه درې ورځې په وطن اقامت کښې د موقع د پیدا کیدو په صورت کښې هم پوره لمونځ کیږي۔ هو! د دې لپاره به دا ضروري وي چه یو ځل د پنځلسو ورځو د باقاعـــــده اوسیدلو د ارادې په کولو سره قیام وکړی تر څو چه د اقامت د وطن حقیقت ثابت شي او د دوباره باطل والي له صورت څخه بچ شی۔

قال علامة ابن نجیمؒ: کوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل و ان قام بموضع آخر. (البحر الرائق ج۲، ص۱۳۶، باب المسافر)

و قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یبطل بمثله اذا لم یبقی له با لاول اهل فلو بقی لم یبطل بل یتم فیها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۴، صلٰوة المسافر) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۴۲، الفصل الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

## مسافـــــر چه په کومې لارې باندې یو ځای ته ځي د هم هغـــې لارې مسافه به معتبره وي

**سوال:** که چېرته منزل مقصود ته د رسیدو دوه لارې وي چه یوه نژدې او بله لرې وي نو د سفر لپاره به مسافر کومه لاره غوره کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومه لاره باندې چه مسافر سفر کوي د هم هغې لارې مسافه به معتبره وي۔ لهذا که چېرته مسافر په لرې لارې باندې سفر کوي او د شرعي سفر مسافه ئې پوره کوله نو تلونکی به مسافر بلل کیږي اگر که دویمه لار نژدې هم وي۔

لما فی الهندیة: فاذا قصد بلدة و الٰی مقصده طریقان احدهما مسیرة ثلٰثة ایام و لیالیها و الآخر دونها فسلك الطریق الا بعد کان مسافراً عندنا الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۸، الفصل الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

و قال علامة ابن نجیم المصریؒ: و فی فتاوٰی قاضی خان الرجل اذا قصد بلدة و الٰی مقصده طریقان احدهما مسیرة ثلٰثة ایام و لیالیها و الآخر دونها فسلك الطریق الابعد کان مسافرا عندنا الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۲۹، باب المسافر) و فی خلاصة الفتاوٰی هٰکذا ج۱، ص۱۹۸، الفصل الثانی و العشرون فی صلٰوة المسافر.

## په غیــــر آباد ځای کښې د اقامت د نیت حکم

**سوال:** ډیر واري انسان په یوه د اسې ځای کښې خیمه لګوي چه شاوخوا هیڅ آبادي نه وي، دا هم ممکنه ده چه د ژوند انه د ضروریاتو د نشت والي له وجهې نومړی د خپل نیت مطابق یوه ورځ هم پوره تیره نه کړي نو آیا په د اسې ځنګل او غیر آباد (بیابان) کښې د اقامت نیت صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اقامت د نیت لپاره د هغه ځای صلاحیت ضروري دی۔ په صورت مذکوره کښې په د اسې غیر آباده ځای کښې د اقامت نیت معتبر نه دی۔ نو ځکه د نیت د کولو سره سره به هم قصر لمونځ کوي۔

کما فی الهندیة: حتٰی لو نوی الاقامة فی برّ او بحر او جزیرة لم یصح الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: و قید با لبلد و القریة لان نیة الاقامة لا تصح فی غیرهما فلا تصح فی مفازة و لا جزیرة و لا بحر و لا سفینة الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۳۱، صلٰوة المسافر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۱، ص۹۸، فصل فی بیان ما یصیر المسافر به مقیماً.

## د اقــــامت د مودې له نیت څخه پرته قصــــر واجب دی

**سوال:** که چېرته یو څوك د اقامت له وطن څخه د اته څلویښت میلو په اند ازه د سفر په ارد اه باندې ووځي لیکن د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو یقین ئې نه وي نو په دې صورت کښې به لمانځه حکم ئې څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کوم موزون ځای کښې په باقاعده توګه د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو له نیت نه بغیر نومړی به د مسافرو په حکم کښې وي کوم چه په لمانځه کښې قصر پرې واجب دی۔

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و لا یزال علی حکم السفر حتٰی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة یوماً او اکثر و ان نوٰی اقل من ذٰلك قصر..... الخ. (الهدایة ج۱، ص۱٤۹، باب صلٰوة المسافر)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: فا لذی یصیر المقیم به مسافر نیة مدة السفر و الخروج من عمران المصر الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۹۳، فصل فی بیان یصیر به المقیم مسافر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر.

## پـــــه اقامت کښې ماتحت (تر امر لاندې) کسان به د امیرانو تابع وي

**سوال:** د عسکري تعلیم او تربیې په دوران کښې چه کله فوځیان په یوه ځای کښې اقامت کوي نو آیا پوره لمونځونه به کوي او که به قصر کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې حالت کښې د ټولو فوځیانو د نیت د ارو مد ار په پورتنیو



افسرانو یا امیرانو پورې تړلی دی۔ که چېرته اختیار لرونکو امیرانو د اقامت د مودې نیت وکړ نو لاندیني مامورین به د نیت د نه کولو تر څنګ هم پوره لمونځونه کوي او که نه نو د اقامت له مودې څخه په کمو ورځو باندې په فوجي تربیت ځایونو کښې قصر کاوه شي۔

قـــــال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و المعتبر نیة المتبوع لانه الاصل لا التابع کامرأة وفاها مهرها المعجل و عبد غیر مکاتب و جندی اذا کان یرزق من الامیر او بیت المال الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳۳، باب صلٰوة المسافر)

و فی الهندیة: و کل من کان تبعاً لغیره یلزمه طاعته یصیر مقیماً باقامته و مسافراً بنیه و بعد اسطر قال و الجندی مع امیره فهٰؤلآء لا یصیرون مقیمین بنیة انفسهم فی ظاهر الروایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱٤۱، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۰۳، الفصل الثانی و العشرون فی صلٰوة المسافر)

## د افغــــانستان د مهاجرینو د اقــــامت نیت

**سوال:** له افغانستان څخه د هجرت په کولو سره راغلي مسلمانانو په ډاګونو او بیابانونو کښې خیمې لګولي او د اوسیدو ځایونه ئې جوړ کړي دي، آیا په دغو بیابانونو کښې د هغو د اقامت نیت صحیح دی او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د اقامت د نیت لپاره دا ضروري ده چه په هغه ځای کښې اوسیدل ممکن وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهاجرینو کیمپونه د لویو کلیو د شکلونو په اختیارولو سره بیابانونه د کلي غونډې شوي دي۔ لهذا د ژوند انه د ټولو ضروریاتو د میسر کیدو له وجهې د هغو د اقامت نیتونه صحیح دي۔ نو ځکه دوی مستقل مقیم ګڼل کیږي۔

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و اختلف المتاخرون فی الاعراب و الاکراد و الترکمان الذی یسکنون فی بیوت الشعر و الصفوف. قال بعضهم لا یکون مقیمین ابداً و ان نوی الاقامة مدة الاقامة لان المفازاة لیست موضع الاقامة و الاصح انهم مقیمین لان عادتهم الاقامة فی المفاز دون الامصار و القرٰی فکانت المفاوز لهم کا لامصار الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۹۹، فصل فی بیان ما یصیر المسافر بهٖ مقیماً)

و فی الهندیة: اختلف المتاخرون فی الذین یسکنون فی الخیام و الاخبیة فی المفازاة من الاعراب و التراکة هل صاروا مقیمین با لنیة عن ابی یوسفؒ فیه روایتان فی احدهما لا و فی الاخرٰی قال یصیرون مقیمین و علیه الفتوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۳، صلٰوة المسافر.

## د دائمي مسافر د لمانځــــه حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په ټول ژوند کښې مسافر وي او په یوه ځای کښې د مستقل امامت موقع کم ورته پیدا شي لکه موټروان یا پیلوټ کوم چه د تل لپاره په سفر کښې وي نو د د اسې خلکو د لمانځه حکم به څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اقامت لپاره په باقاعده توګه د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو نیت

ضروري دی، چه چېرته نیت نه وي نو هلته مسافر ګڼل کیږي- په نوموړي صورت کښې د اسې په ځای کښې به پوره لمونځ کوي اګر که دلته د یو څو لمونځونو موقع په لاس ورځي- البته د خپل اوسید و خلك چه کله هم پخپلې وظیفې باندې پاتې وي نو د قصر لمونځ به کوي-

قـــال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و من طاف الدنیا بلا قصد لم یقصر مسیرة ثلٰثة ایام و لیالیها صلی الفرض الرّباعی رکعتین حتٰی یدخل موضعا مقامه او ینوی اقامة نصف شهر الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۲، باب صلوٰة المسافر)

و قال علامة ابن نجیمؒ: و اما الثانی فهو ان یقصد مسیرة ثلٰثة ایام فلو طاف الدنیا من غیر قصد الٰی قطع مسیرة ثلٰثة ایام لا یترخص الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۲۸، باب المسافر) و مثله فی الزیلعی ج۱، ص۲۰۹، صلوٰة المسافر.

## د مقیم امام په اقتد اء کښې به مسافر پوره لمونځ کوي

**سوال:** که چېرته یو مسافر په مقیم امام پسې اقتد اء وکړي نو د هغه د لمانځه حکم به څه وي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام د متابعت له وجهې مسافر مقتدي قصر نه شي کولی بلکه پوره لمونځ به کوي-

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و ان اقتدی المسافر با لمقیم فی الوقت اتم اربعاً لانه یتغیّر فرضه الی اربع للتبعیة کما تتغیّر بنیّة الاقامة لاتصال المغیر با لسبب و هو الوقت. (الهدایة ج۱، ص۱٤۹، باب صلوٰة المسافر)

و قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و اما اقتداء المسافر با لمقیم فیصح فی الوقت و یتم الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳۰، باب صلوٰة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳٤، صلوٰة المسافر.

## د مسافـــــر امام په اقتد اء کښې د مقیم مقتدي لپـــــاره په پاتې لمانځه کښې قـــرائت نشته

**سوال:** که چېرته یو مقیم مقتدي په کوم مسافر امام پسې اقتد اء وکړي نو د امام له فراغت څخه وروسته مقیم مقتدي به په پاتې رکعتونو کښې قرائت وايي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام له فراغت وروسته په مقیم مقتدي باندې د پاتې لمانځه ادا کول ضروري دي لیکن لکه څرنګه چه دی د امام په اقتد اء کښې ګڼل کیږي د دې لپاره د مقتدي په ذمه باندې په آخري رکعتونو کښې قرائت ضروري نه دی بلکه د سورت فاتحه د ویلو په اندازه به چُپ (غلی) دریږي او بیا به رکوع کوي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و صح اقتداء المقیم با لمسافر فی الوقت و بعدهٗ فاذا قام المقیم الی الاتمام لا یقرأ الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۹، باب صلوٰة المسافر)

و فی الهندیة: و صاروا منفردین کا لمسبوق الا انهم لا یقرؤن فی الاصح الخ. (الهندیة ج۱، ص۱٤۲، الباب [illegible] صلوٰة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۵، صلوٰة المسافر.



## د مسافر امام د پوره لمونځ کولو له وجهې د مقتدیانو د لمانځه د فساد حکم

**سوال:** که چېرته مقیم مقتدیان په مسافر امام پسې اقتد اء وکړي او په دې حالت کښې امام د قصر په ځای لمونځ پوره ادا کړي او مقتدیان هم پوره لمونځ ورسره وکړي نو د مقیمو مقتدیانو د لمانځه حکم د شریعت له مخې څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسافر امام په حق کښې آخري دوه رکعتونه نفل وي په د اسې حال کښې چه د مقیمو مقتدیانو ټول لمونځ فرض دی- له دې وجهې د فرض کوونکو اقتد اء په نفل کوونکي پسې د راتلو په صورت کښې لمونځ فاسد وي نو ځکه ئې بیرته راګرځول ضروري دي-

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله لم یصر مقیماً) فلو اتم المقیمون صلٰوتهم معه فسدت لانه اقتداء المفترض با لمتنفل الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱۳۰، باب صلوٰة المسافر)

قال ابن عابدینؒ: حتٰی لو اتم المقیمون صلٰوتهم معه فسدت صلٰوتهم لان هٰذا اقتداء المفترض با لمتنفل و لا یصح الخ. (منحة الخالق حاشیة البحر الرائق ج۲، ص۱۳۵، صلوٰة المسافر) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۰۲، صلوٰة المسافر.

## د امـــــام له حالت څخه د واقفیت (خبرتیا) ضرورت

**سوال:** د کوم امام د سفر یا اقامت په باره کښې چه کله مقتدي علم و نه لري نو مقتدي به څه کوي او د اناخبرۍ د ده په لمانځه باندې څه اثر کوي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام د سفر یا اقامت له حالت څخه د ناخبرۍ له وجهې ډېر وارې مقتدي د شکوکو او شبهاتو ښکار کیږي د دې لپاره د امام له حالت څخه خبرتیا د مقتدي لپاره ضروري خبره ده نو ځکه مقتدي باید د امام د سفر یا اقامت حالت معلوم کړي تر څو چه اقتد اء ئې ورپسې صحیح شي او که نه نو د ناخبرۍ په حالت کښې ئې اقتد اء نه صحیح کیږي-

قال علامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله ان العلم بحال الامام شرط لٰکن) و حاصله تسلیم اشتراط العلم بحال الامام. (رد المحتار ج۲، ص۵۳۱، صلوٰة المسافر)

و قال علامة ابن نجیم المصریؒ: و هٰذا محمل ما فی الفتاوٰی اذا اقتدٰی با لامام لا یدری ا مسافر هو ام مقیم لا یصح لان العلم بحال الامام شرط الاداء بجماعة الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۳۵، باب المسافر) و مثله فی الکبیری ص۵۹۱، باب صلوٰة المسافر.

## د عـــــرفات په میدان کښې د حنفي مسلکه ســـــړي لپاره د مقیم امام پسې د اقتد اء حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د حج په دوران کښې د عرفې په ورځ که چېرته له شرعي مسافې څخه د کمې مسافې څخه راتلونکی امام د قصر لمونځ خلکو ته ورکړي نو آیا د حَنفي مسلکه سړي لپاره د هغه په اقتد اء کښې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد د قصر له مسافت څخه په کمې اندازې سره په سفر کښې د قصر لمانځه ادا کول جائز نه دي له دې وجهې کوم امام چه سره د مقیم والي د قصر لمونځ کوي نو د حنفي مقتدي لپاره په هغه پسې اقتداء جائزه نه ده۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: لو كان مقيماً كامام مكة صلى بهم صلوٰة المقيمين لا يجوز له القصر و لا للحاج الاقتداء به. قال الامام الحلوانيؒ كان الامام النسفي يقول العجب من اهل الموقف يتابعون امام مكة فى القصر فانى يستجاب لهم او يرجى لهم الخير و صلوٰتهم غير جائز. (رد المحتار ج٢، ص٥٠٥، كتاب الحج، مطلب فى شروط الجمع بين الصلوٰتين بعرفة)

قال العلامة عبد الرحيم لاجپوریؒ: په عرفات کښې حنبلي امام سره د مقیم والي قصر لمونځ کوي نو د حنفي مقتدي که مسافر وي او که مقیم لمونځ ئې ورپسې نه صحیح کیږي۔ (فتاوٰی رحیمیه ج١، ص١٥٩، باب صلوٰة المسافر)

## د مسافـــــر په غلطۍ سره د څلورو رکعتونو د نیت ترلو حکم

**سوال:** که چیرته مسافر په غلطۍ سره د دوه رکعتونو په ځای د څلورو رکعتونو نیت وتړي نو څه به کوي؟ آیا د نیت مطابق څلور رکعته به کوي او که به دوه رکعته کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په نیت کښې د لمانځه، تعداد د رکعتونو او د وخت تعین ضروري نه دی دا په ضمن کښې پخپله راځي۔ لکه څرنګه چه د مسافر په ذمې باندې دوه رکعته فرض دي د دې لپاره نیت به ئې هم مسافرانه وي که چیرته په غلطۍ سره په ژبې باندې د رکعتونو تعداد ترې زیات وویل شي نو هیڅ اعتبار به ئې نه وي۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: لا بد من التعيين عند النية...... لفرض......دون تعيين عدد ركعاته لحصولها ضمناً فلا يضر الخطاء فى عددها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص٤١٨/٤٢٠، باب شروط الصلوٰة، مطلب فى النية)

و فى الهندية: النية ارادة الدخول فى الصلوٰة و الشرط ان يعلم بقلبه اى صلوٰة يصلى و ادناها ما لو سئل لامكنه ان يجيب على البديهة...... و لا عبرة للذكر باللسان. (الفتاوى الهندية ج١، ص٦٥، الباب الرابع)

و فيه ايضاً عزم على الظهر و جرى على لسانه العصر. (الفتاوى الهندية ج١، ص٦٦، الفصل الرابع فى النية)

## پـــلار او زوی په مختلفو ښارونو کښې اوسیږي د هغو د لمونځونو حکم

**سوال:** که یو پلار او زوی په دوه مختلفو ښارونو کښې اوسیږي او پلار د زوی کره یا زوی د پلار کره لاړ شي نو قصر به کوي او که پوره لمونځ کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې د هر سړي لپاره خپل خپل وطن اعتبار لري۔ په صورت مسئوله کښې چه کله د دواړو اصلي وطنونه جلا جلا دي نو دواړه چه کله یوه او بل ته ورځي نو مسافر بلل کیږي او د قصر لمونځ به کوي۔



قال العلامة الحصكفيؒ: الوطن الاصلى هو موطن ولادته او تأهله او توطنه يبطل بمثله اذا لم يبق له بها لاول اهل. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٣٢، باب صلوٰة المسافر)

قال الشيخ وهبة الزحيلي: الوطن الاصلى هو الذى ولد فيه او تزوّج او لم يتزوج و قصد ا لتعيش فيه لا الارتحال فيه. (الفقه الاسلامى و ادلتهٔ ج٢، ص٣٤٠، العودة الى محل الاقامة الدائم)

## د عمرې لپاره سعودي عـــرب ته په تلونکو باندې د قصر د لمانځه حکم

**سوال:** کوم خلک چه د عمرې د ادا کولو لپاره سعودي عرب ته ځي او ویزه ئې د پنځلسو ورځو وي، په دغو ورځو کښې دا خلک په مدینې منورې کښې هم یو څو ورځې پاتې کیږي او مکه مکرمه کښې هم۔ نو آیا داسې خلک د اقامت د وطن غوندې په مکه او مدینه کښې پوره لمونځونه کوي او که به قصر پکښې کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اقامت لپاره د پنځلسو ورځو په یوه ځای کښې د اوسیدلو نیت ضروري دی۔ په صورت مسئوله کښې لکه څرنګه چه دا خلک دا پنځلس ورځې په دوه مختلفو ځایونو کښې تیروي نو ځکه د هغو د اقامت نیت اعتبار نه لري بلکه دوی به قصر لمونځونه کوي۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: لو دخل الحاج مكة ايام العشر لم تصح نيته لانه يخرج الى منى و عرفة فصار كنيته الاقامة فى غير موضعها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٢٦، كتاب المسافر)

قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: و اذا نوى المسافر ان يقيم بمكة و منى خمسة عشر يوما لم يتم الصلوٰة لان الاعتبار النية فى موضعين يقتضى اعتبارها فى مواضع و هو ممتنع. (الهداية ج١، ص١٤٧، كتاب المسافر) و مثله فى الهندية ج١، ص١٤٠، الباب الخامس عشر فى صلوٰة المسافر.

## مجـــاهدین به د غلبې په دوران کښې قصر کوي او که اتمام (پوره لمونځ)

**سوال:** د افغانستان په جهاد کښې ځینې علاقې د مجاهدینو په لاس فتح شوي دي لیکن مکمل تسلط ئې لا نه دی حاصل کړی۔ نو آیا مجاهدین به هلته د غلبې په دوران کښې پوره لمونځ کوي او که به قصر کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسلمان فوځونه چه کله کومې علاقې ته د فتح په صورت کښې داخل شي لیکن مکمل تسلط ئې د هغو په لاس کښې نه وي نو دا فوځونه به هلته قصر کوي۔ البته چه کله تول تسلط ئې تر لاسه شي او دا علاقه خپله علاقه وبولي نو بیا د اقامت د نیت په صورت کښې پوره لمونځونه کوي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: تحت قوله (للتردد بين القرار و الفرار) و فى البحر عن التجنيس اذا غلبوا على مدينة الحرب ان اتخذوها دارا اتموا و الا بل ارادوا الاقامة بها شهرا او كثر قصروا لبقائها دار حرب و هم محاربون فيها بخلاف الاول. (رد المحتار ج١، ص١٢٧، كتاب المسافر)

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و اذا دخل العسكر ارض الحرب فنووا الاقامة بها قصروا و كذا اذا حاصروا فيها مدينة او حصناً لان الداخل بين ان يهزم فيضرّو بين ان يهزم فيفر فلم تكن دار اقامة. (الهداية ج١، ص١٤٦، كتاب المسافر) و مثله فى الهندية ج١، ص١٤٠، الباب الخامس عشر فى صلوة المسافر.

## د جهاد په دوران کښې د قومندان په یوه ځای کښې د پنځلسو ورځو د اقامت د نیت کولو حکم

**سوال:** د افغان مجاهدین که چېرته په یوه علاقه کښې له روسي فوځونو سره په جنګ کښې وي نو آیا د خپل قومندان د پنځلسو ورځو د نیت په بناء سره به هلته پوره لمونځونه کوي او که به قصر کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تابعینو لپاره اګر که د متبوع نیت معتبر دی چه هغه چېرته هم د اقامت نیت کوي نو تابع خلك به ئي تول پوره لمونځونه کوي لیکن د جنګ میدان یو د اسې ځای دی چه هلته د ډلي د قومندان نیت هم هیڅ اعتبار نه لري. هلته قصر کول لازمي دي. لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې د جنګ صورت دی نو ځکه مجاهدین به هلته قصر کوي.

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: اذا دخل العسكر ارض الحرب فنووا الاقامة بها قصروا و كذا اذا حاصرو فيها مدينة او حصناً لان الداخل بين ان يهزم فيقرو بين ان يهزم فيفر فلم تكن دار اقامة. (الهداية ج١، ص١٤٦، كتاب المسافر)

و فى الهندية: حاصر قوم مدينة فى دار الحرب او اهل البغى فى دار الاسلام فى غير مصر و نوو الاقامة خمسة عشر يوماً قصروا لان حالهم متردد بين قرار و فرار فلا تصح نيتهم و ان نزلوا فى بيوتهم. (الفتاوى الهندية ج١، ص١٤٠، الباب الخامس عشر فى صلوة المسافر) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٢٧، كتاب المسافر.

## د مسافر په سهوې سره د پوره لمونځ کولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم مسافر په سهوې سره د قصر لمانځه په ځای پوره لمونځ ادا کړي نو حکم به ئي څه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مسافر باندې په څلور رکعتیزو لمونځونو کښې یو اځي دوه رکعته سفرانه لازم دي. که چېرته کوم مسافر په سهوه سره پوره څلور رکعته لمونځ وکړي او اوله قعده هم پکښې وکړي نو لمونځ ئي صحیح دی اګر که سجدهٔ سهو پرې هم واجبېږي. او که چېرته اوله قعده و نه کړي نو لمونځ ئي نه کیږي دوباره ادا کول ئي پرې فرض دي.

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفي: فلو اتم مسافر ان قعد فى القعدة الاولى تم فرضه و لكنه اساء لو عامداً لتاخير السلام و ترك واجب القصر و واجب تكبيرة افتتاح النفل و خلط النفل با لفرض و هٰذا لا يحل. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٢٨، كتاب المسافر)

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: ان صلى اربعا و قعد فى الثانية قدر التشهد اجزأته الاوليان عن الفرض و الاخريان لهٗ نافلة اعتباراً با لفجر و يصير مسيئا لتاخير السلام. (الهداية ج١، ص١٤٦، كتاب المسافر) و مثله فى الهندية ج١، ص١٣٩، الباب الخامس عشر صلوة المسافر.



## د مسافر په قصد سره د پوره لمونځ کولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم مسافر په قصد سره پوره لمونځ وکړي نو لمونځ ئي کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سفر کښې سفرانه لمونځ کول د شریعت له مخې عزیمت دی او د ځان له خوا څخه قصداً او عمداً په لمانځه کښې زیاتوالی د ګناه موجب دی. د دې لپاره چه کوم سړی په قصد سره په سفر کښې پوره لمونځ وکړي نو ګنهګار به وي چه له دې څخه توبه ایستل پرې لازم دي.

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: ان صلى اربعا و قعد فى الثانية قدر التشهد اجزأته الاوليان عن الفرض و الاخريان لهٗ نافلة اعتباراً با لفجر و يصير مسيئا لتاخير السلام. (الهداية ج١، ص١٤٦، كتاب المسافر)

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفي: فلو اتم مسافر ان قعد فى القعدة الاولى تم فرضه و لكنه اساء لو عامداً لتاخير السلام و ترك واجب القصر و واجب تكبيرة افتتاح النفل و خلط النفل با لفرض و هٰذا لا يحل. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٢٨، كتاب المسافر) و مثله فى الهندية ج١، ص١٣٩، الباب الخامس عشر صلوة المسافر.

## قیدي مجاهدین به قصر کوي او که اتمام؟

**سوال:** زمونږ ځیني مجاهدین ورونه په افغانستان کښې د دښمن په قید کښې دي کوم چه له خپلو کورونو څخه تر شرعي مسافت هم ډیر لرې دي لیکن هغه ته دا معلومه نه ده چه دښمن به هغوی کله له دې ځای څخه باسي؟ نو آیا دا قیدي مجاهدین به قصر (سفرانه) لمونځونه کوي او که به پوره لمونځونه کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته قیدیانو ته خپلو کورونو ته یا کوم بل ښار ته د منتقل کیدو په باره کښې معلومات نه وي چه دښمن هغوی کله او له څو ورځو وروسته خوشي کوي یا کوم بل ښار ته ئي منتقل کوي. نو د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق دا قیدیان به قصر (سفرانه) لمونځونه کوي اګر که ډیر کلونه هم په همدې ځای کښې پرې تیر شي.

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و لو دخل مصراً على عزم ان يخرج غداً او بعد غد و لم ينو مدة الاقامة حتى بقى على ذٰلك سنين قصر لان ابن عمرؓ باذربيجان ستة اشهر و كان يقصر و عن جماعة من الصحابة مثل ذٰلك. (الهداية ج١، ص١٤٦، كتاب المسافر)

و فى الهندية: و لو بقى فى المصر سنين على عزم انهٗ اذا قضى حاجته يخرج و لم ينوى الاقامة خمسة عشر يوماً قصر. (الفتاوى الهندية ج١، ص١٣٩، الباب الخامس عشر فى صلوة المسافر) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص١٢٦، كتاب المسافر.

## په قصر او اتمام کښې فوځیان د خپلو پورتنیو امیرانو تابع دي

**سوال:** زه یو فوځي عسکر یم چه کله زه له خپل کوره ووځم نو له ما پرته د نورو ملګرو د پاتې کیدو ځایونه هم معلوم نه وي کله چېرته او کله چېرته، کله په ځینو ځایونو کښې تر میاشتو

میاشتو پورې اوسیږو او کله کله له دوه ورځو وروسته له هغه ځای څخه بیرته ځو- نو په د اسې حالاتو کښې مونږ باید څه وکړو؟ آیا پوره لمونځونه به کوو او که به قصر پکښې کوو؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فوځي عسکر یا ملازم د خپلو پورتنیو افسرانو یا امیرانو تابع وي- که چېرته پورتني امیران ئې په کوم ځای کښې د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو نیت وکړي نو هلته په لاندیني فوځیانو هم پوره لمونځ کول لازم دي- او په کوم ځاي کښې چه تر پنځلسو ورځو د کم پاتې کیدو نیت وکړي نو هلته به قصر کوي- البته که چېرته چا ته د خپل فوځي مشر یا امیر نیت معلوم نه وي نو تر صحیحو معلوماتو پورې به قصر کوي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا بد من علم التابع بنیة المتبوع فلو نوی المتبوع الاقامة و لم یعلم التابع فهو مسافر حتٰی یعلم علی الاصح. و فی الفیض و بهٖ یفتی کما فی المحیط وغیره. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۱۳۴، کتاب المسافر)

و فی الهندیة: ان لم یعلم التبع باقامة الاصل قیل یصیر مُقیماً و قیل لا یصیر مقیماً و هو الاصح لان فی لزوم الحکم قبل العلم بهٖ حرجاً و ضرراً و هو مدفوع شرعاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۱٤۱، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

## آیا په سنت مؤکدو کښې هم قصر شتـــــه؟

**سوال:** د سفر په حالت کښې څلور رکعتیزه فرض خو دوه رکعته ګرځي نو آیا په مؤکدو سُنتونو کښې هم کوم تخفیف شته او که به هغه پوره څلور رکعته کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې خبرې باندې خو ټول فقهاء متفق دي چه له فرض لمونځونو څخه پرته په هیڅ یوه لمانځه کښې هم قصر نه کیږي- البته په پرینښودو او نه پرینښودو کښې ئې د فقهاوو اختلاف دی لیکن افضله او بهتره د اده چه که چېرته موقع وه او قافله نه روانیدله یا په مقصود کښې د خلل (نقصان) د راتلو اندیښنه نه وه نو سُنت باید ادا شي-

لما فی الهندیة: و لا قصر فی السنن کذا فی المحیط السرخسی و بعضهم جوزوا للمسافر ترك السنن و المختار انه لا یأتی بها فی حال الخوف و یأتی بها فی حال القرار و الامن هٰکذا فی الوجیز للکردری. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۳۹، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یأتی المسافر با لسنن ان کان فی حال امن و قرار و الا بان کان فی خوف و قرار لا یأتی بها هو المختار لانهٗ ترك لعُذر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳۱، کتاب المسافر) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۳٤۹، سابعاً صلٰوة السنن فی السفر.

## د مسافر سړي په مقیم امام پسې د لمانځه په آخر کښې د یو ځای کیدلو حکم

**سوال:** که چېرته یوه مسافر په مقیم امام پسې د لمانځه په آخر کښې اقتداء وکړي نو آیا په دې صورت کښې هم په مسافر باندې اتمام (پوره لمونځ) ضروري دی او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسافر مقتدي چه کله هم په مقیم امام پسې د اقتداء نیت وکړي نو د امام د متابعت له وجهې به هغه پوره لمونځ کوي اګر که په آخر کښې هم ورسره یو ځای شي-



قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و ان اقتدٰی مسافر مقیما یصلّی رباعیة و لو فی التشهد الاخیر. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳٤۷، کتاب المسافر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و اما اقتداء المسافر با لمقیم فیصح فی الوقت و یتم. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله او القراۃ). فی السراج الی الحواشی فیدخل فیه ما لو اقتدٰی به فی القعدة الاخیرة. (رد المحتار ج۲،ص ۱۳۰، باب صلٰوة المسافر)

## د بحـــــري بیړۍ نوکران د بیړۍ د چلوونکو تابع دي

**سوال:** د بحري بیړۍ نوکران د تل لپاره د کپتان (بیړۍ چلوونکي) تابع وي، کپتان په کوم ملك چه څومره ورځې غراړې تیروي ئې، آیا د سفر په نیت کښې هم نوکران د خپل کپتان د نیت تابع دي او که د هر ملازم یا نوکر به خپل خپل نیتونه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بحري بیړۍ نوکران لکه څرنګه چه په تګ، راتګ او په کوم ملك کښې د پاتې کیدو په صورت کښې د خپل کپتان تابع وي نو همدارنګه د سفر په احکامو کښې هم د خپل کپتان د نیت تابع دي- نوکران چه د هر څومره ورځو د پاتې کیدو نیت وکړي نو هغه به معتبر نه وي- د فقهې په کتابونو کښې د دې مثال د امیر الجیش یا آقا (بادار) غوندې دی-

و فی الهندیة: و کل من کان تبعاً لغیره یلزمه طاعته یصیر مقیما باقامته و مسافراً بنیته و خروجه الی السفر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۱٤۱، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و المعتبر نیة المتبوع لانه الاصل لا التابع کامرأة وفاها مهرها المعجل و عبد غیر مکاتب و جندی اذا کان یرتزق من الامیر او بیت المال و اجیر و اسیر و غریم الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲،ص ۱۳٤، کتاب المسافر) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳٤۵، کتاب المسافر.

## د سفر د نیت د نه شتون تر څنګ په میاشتو میاشتو سفر کول

**سوال:** ځینې خلك په میاشتو میاشتو سفر کوي لیکن نیت ئې د سفر نه وي نو آیا دا خلك به قصر کوي او که به پوره لمونځ کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسافر لپاره د دریو ورځو د سفر (په موجوده دور کښې د اته څلویښت میلو یا ٦۵ کیلو مترو په برابره مسافه) نیت ضروري دی، د سفر له نیت څخه پرته سفر کوونکی سړی مسافر نه ګڼل کیږي اګر که په میاشتو یا کلونو پورې سفر وکړي- نو ځکه د اسې سړی به پوره لمونځ کوي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و من طاف الدنیا بلا قصد لم یقصر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲،ص ۱۲۲، باب صلٰوة المسافر)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و الثانیة بنیة مدة السفر لان الانسان قد یخرج من مصره الی موضع لاصلاح الضیعة ثم تبدو له حاجة اخرٰی الی المجاوزة عنده الٰی موضع آخر لیس بینهما مدة السفر و ثم الٰی ان یقطع مسافة بعدة اکثر من مدة السفر. (بدائع الصنائع ج۱، ص۹۳، کتاب المسافر)

## شاګرد یا مُرید په سفر کښې د خپل استاذ او مُرشد (پیر) تابع وي

**سوال:** شاګرد یا مُرید که چېرته له خپل استاذ یا مُرشد سره په سفر لاړ شي نو آیا شاګرد او مرید به د خپل اُستاذ او مُرشد تابع وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د شاګرد او مُرید د سفر خرڅ او اخراجات اُستاذ او مُرشد په غاړه اخیستي وو نو په دې صورت کښې به شاګرد او مُرید تابع وي، د اُستاذ او مُرید په نیت باندې به مسافر یا مقیم وي او که د اسې نه وي نو تابع به نه وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله (و تلمیذ) اذا کان یرتزق من استاذه و المراد بهٖ مطلق المتعلم مع معلمه الملازم له لا خصوص طالب العلم مع شیخه. (رد المحتار ج۲، ص۱۳٤، کتاب المسافر)

و فی الهندیة: و التلمیذ مع استاذه و الاجیر مع مستاجر و الجندی مع امیره فهؤلاء لا یصیرون مقیمین بنیة انفسهم فی ظاهر الروایة...... اما اذا کانت ارزاقهم من اموال انفسهم فا لعبرة لنیتهم. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱٤۱، الباب الخامس عشر فی صلٰوة المسافر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۸، باب صلٰوة المسافر.

## فرمانبردار بالغ زوی د پلار تابع دی

**سوال:** آیا په سفر کښې بالغ زوی د پلار تابع دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته زوی فرمانبرداره وي او د پلار خبره مني نو له بالغ والي سره سره به په سفر کښې د پلار تابع وي او د پلار د اقامت په نیت سره به مقیم او د سفر په نیت سره به مسافر ګڼل کیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: قلتُ و مثله با لاولی الابن البار البالغ مع ابیه. (رد المحتار ج۲، ص۱۳٤، کتاب المسافر)

## په پښاور کښې اوسیدونکی سړی په کراچۍ کښې د خُسر په کور د پاتې کیدو په وخت کښې به قصر کوي او که اتمام؟

**سوال:** د پښاور یوه اوسیدونکي په کراچۍ کښې واده کړی دی۔ اوس که چېرته نوموړی د خُسر کره کراچۍ ته لاړ شي په داسې حال کښې چه نیت ئې له پنځلسو ورځو څخه د کمو ورځو وي نو آیا دا سړی به په لمونځونو کښې قصر کوي او که اتمام؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوازې د واده په کولو سره د خُسر وطن وطن اصلي نه شي جوړیدلی بلکه له واده وروسته د مستقل پاتې کیدو نیت هم ضروري دی۔ لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې دا سړی په کراچۍ کښې یوازې واده کړی دی او هغه ځای ئې د خپل اوسیدو ځای نه دی جوړ کړی نو څکه دا سړی چه کله په کراچۍ کښې له پنځلسو ورځو څخه د کمو ورځو د پاتې کیدو نیت وکړي نو هلته به مسافر ګڼل کیږي او په لمانځه کښې به قصر کوي۔

قال الامام فخر الدین الشهیر بقاضی خانؒ: المسافر اذا جاوز عمران مصره..... و ان کان ذٰلك وطناً اصلیاً بان کان مولدهٗ و سکن فیه او لم یکن مولده لکنه تأهل به و جعله داراً. (فتاوٰی قاضیخان علی هامش الهندیة ج۱،



ص۱٦۵، باب صلٰوة المسافر)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: فا لاصلی هو مولد الانسان او موضع تأهل به و من قصده التعیش به لا الارتحال. (کبیری ص۵٤۵، فصل فی صلٰوة المسافر) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۱٦، کتاب المسافر.

## د تښتول شوی سړی به قصر کوي او که اتمام؟

**سوال:** کوم سړی چه اغوا (وتښتول) شي او کوم لرې ځای ته وبیول شي او بندي کړی شي نو آیا داسې سړی به په لمانځه کښې قصر کوي او که به پوره لمونځ کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه اغوا شي او د شرعي مسافې اندازه لرې وبیول شي نو هغه به د اغوا کوونکو تابع وي که چېرته اغوا کوونکي هلته مقیم وي نو دا سړی به پوره لمونځ کوي او که هغوی مسافر وي نو دی به هم قصر کوي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله (و اسیر) ذکر فی المنتقی ان المسلم اذا اسره العدو ان کان مقصده ثلاثة ایام قصر و ان لم یعلم سأله فان لم یخبره و کان العدو مقیما اتم و ان کان مسافرا قصر. (رد المحتار ج۲، ص۱۳٤، کتاب المسافر)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: ان المسلم اسره العدو و ان کان مقصده ثلاثة ایام قصر و ان لم یعلم سأله فان لم یخبره و کان العدو مقیماً اتم و ان کان مسافراً قصر. (کبیری ص۵٤۱، فصل فی صلٰوة المسافر)

## آیا د تښتیدلي سړي د اقامت نیت صحیح دی؟

**سوال:** که چېرته یو سړی د کوم جرم له مخې د ګرفتارید و له ویرې وتښتي او کوم لرې ځای یا ښار ته لاړ شي او هلته د اقامت نیت وکړي نو آیا د دې سړي به د نیت اعتبار وي؟ په داسې حال کښې چه هر کله چه ګرفتار شي نو له هغه ځایه به ایستل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك و تښتي او داسې ځای ته لاړ شي چه د هغه ځای منتظمینو د خپل وطن د منتظمینو سره د مجرمینو د نیولو او یوه او بل ته ئې د ورسپارلو معاهده کړې وي نو د دې سړي د نیت اعتبار به نه وي۔ څکه چه د دې قرار او فرار تر منځ شك او تردد واقع دی۔ البته که چېرته یو داسې ځای ته لاړ شي چه هلته د دوو ښارونو تر منځ د مجرمینو د ورکولو او ورسپارلو وعده نه وي نو بیا به ئې نیت معتبر وي او مقیم به ګڼل کیږي۔

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: لان حالهم یخالف عزیمتهم للتردد بین القرار و الفرار. (البحر الرائق ج۱، ص۱۳۳، باب صلٰوة المسافر)

قال العلامة الحصکفیؒ: او حاصر اهل البغی فی دارنا فی غیر مصر مع نیة الاقامة مُدتها للتردد بین القرار و الفرار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۲۷، کتاب المسافر) و مثله فی کبیری ص۵٤۰، فصل فی صلٰوة المسافر.

## په دار العلوم حقانیه اکوړه ختك کښې مقیم د بلوچستان طلبهٔ کرام به په پښاور کښې قصر کوي او که اتمام؟

**سوال:** مونږ څو ملګري له بلوچستان څخه دلته دار العلوم حقانیه ته د تعلیم د حاصلولو لپاره راغلي یو، د تلعیم په دوران کښې که چېرته مونږ له مدرسې څخه پښاور ته د کوم کار لپاره لاړ شو نو هلته به قصر کوو او که به پوره لمونځونه کوو؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ستاسو سفر تر دې ځایه پورې ختم شوی دی اوس تاسو دلته مقیم ګڼل کیږی. که چېرته تاسو له دې ځای څخه یوه داسې ځاي ته لاړ شی چه له اکوړې څخه له شرعي مسافې په کمې اندازې باندې واقع وي نو پوره لمونځ به کوی او که چېرته په شرعي مسافې باندې یا تر دې زیاتې مسافې باندې واقع وي نو بیا قصر کول درباندې واجب دي ځکه چه ستاسو دوهم سفر له اکوړې څخه شروع کیږي نه له بلوچستان څخه.

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و الحاصل ان انشاء السفر یبطل وطن الاقامة ان کان منه اما لو انشائه من غیره فان لم یکن فیه مرور علی وطن الاقامة او کان و لکن بعد سیر ثلٰثة ایام فکذٰلك و لو قبله لم یبطل الوطن بل یبطل السفر لان قیام الوطن مانع عن صحته. و اللّٰه اعلم. (رد المحتار ج۲، ص۲۳۲، کتاب المسافر)

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: و قد اتفق الفقهاء علی ان اول السفر الذی یجوز به القصر و نحوه هو ان یخرج المسافر من بیوت البلد التی خرج منها و یجعلها وراء ظهره. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۳۲٤، الباب الثالث الموضح الذی یبدأ منه المسافر) و مثله فی مراقی الفلاح ص۷۱، باب صلٰوة المسافر.

## د سفـــــــر د څو مسائلو په باره کښې معلومات

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام د لاندیني مسائلو په باره کښې چه:

﴿۱﴾ د مسافر او مسافې توضیح د حضرت امام ابو حنیفةؒ په نزد څه دی او څومره او په څه شي باندې دی؟ آیا د اوسنی زمانې سفر او آسانتیاوو ته په کتو سره په شرعي حکم کښې تبدیلي جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

﴿۲﴾ آیا د مسافر لپاره قصر لمونځ ضروري دی او که نه؟ که چېرته ئې پوره ادا کړي نو آیا ګنهګار به وي او که به ثواب ورکول کیږي؟

﴿۳﴾ آیا کوم آثار یا داسې نور په دې باره کښې شته چه د اسلام مجاهدینو به د جنګ په حالت کښې قصر کاوه؟ او که به قید وو نو که ئې قید لس پنځلس کاله پورې وو نو هغو ته د قصر د لمانځه د اداکولو حکم وو ځکه چه د قیام غرض خو ئې نه وو. همدارنګه په نننی دور کښې که چېرته اسلامي عسکر د کوم داسې خدمت یا کار لپاره ولیږل شي، څوك د سریې په شکل کښې، څوك د حفاظت په شکل کښې. نو آیا دوی به ټول قصر کوي؟ او آیا د هغو لپاره د مؤکدو سُنتونو اداکول ضروري دي او که د پرېښودلو اجازه ورته شته؟ آیا اطمینان پکښې شرط دی او که نه؟



﴿٤﴾ داسې مسافر کوم چه مطمئن نه وي او هیڅ معلومات ورته نه وي چه زه څو ورځې دلته تیروم او آیا په دې صورت کښې انفرادي اراده کار ورکوي او که اجتماعي؟ آیا د نقل او حرکت اعتبار په فرد (هر سړي) باندې دی او که د حاکم په حکم پورې اړه لري؟

﴿٥﴾ داسې مجاهدین کوم چه د پورتنیو امیرانو یا قومندانانو د حکم منتظر وي او په انتظار کښې چه هر څومره وخت تیروي هغوی به قصر لمونځونه کوي او که نه؟

﴿٦﴾ آیا داسې عسکر به هر وخت مسافر ګڼل کیږي او که د اطمینان په حالت کښې مقیم ګڼل کیږي؟ آیا مسافر امام د جُمعې لمونځ ورکولی شي او که نه؟ نو ګواکه دا ضروري نه ده چه جمعه پرېښودل شي بلکه د اجر باعث دی او په نه اداکولو کښې ګناه نشته.

﴿۷﴾ د اسلام عسکر که چېرته د جومات سامانونه له ځان سره یوسي او کار ترې واخلي نو آیا دا ورته جائز دي؟ ځکه چه د مقامي جوماتو د سفر سامان ګرځي را ګرځي نو د داسې سامان د جائز والي او ناجائز والي په باره کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ د مسافت په توضیح کښې حضرت ګنګوهي رحمه اللّٰه په "فتاوٰی رشیدیه" کښې فرمایلي دي چه عبارت ئې دا دی: "څلور بریده چه شپاړس میله درې منزلونه دي د مؤطاء امام مالك له حدیث څخه ثابتیږي لیکن د میل مقدار مختلف دی. له دې وجهې د دریو منزلونو سفر د ټولو په نزد متفق دی، همدا د شرعي سفر مقدار دی کوم چه له وجهې ئې په احکامو کښې تغیر واقع کیږي او کوم چه فقهاء کرامو په مختلفو عباراتو پخپلو خپلو کتابونو کښې ذکر کړي دي او همدغه د امام ابو حنیفةؒ مسلك دی. لکه څرنګه چه په فتاوٰی عالمګیري کښې دي چه: "اقل مسافة تتغیر فیها الاحکام مسیرة ثلٰثة ایام کذا فی التبیین هو الصحیح کذا فی جواهر الاخلاطی. (فتاوٰی عالمګیری ج۱، ص۱٤٦)". د دومره اندازې د سفر قصد کوونکي ته شرعاً مسافر ویل کیږي او کوم احکام چه په دومره اندازه سفر سره تغیر خوري هغه دا دي: الاحکام التی تتغیر با لسفر هی قصر الصلٰوة و اباحة الفطر و استد او مدة المسح الی صلٰوة ایام و سقوط وجوب الجمعة و العیدین و الاضحیة و حرمة الخروج علی الحرة بغیر محرمٍ کذا فی العتابیة. (فتاوٰی عالمګیری) او د دې اندازې سفر په طی کولو کښې منځنی رفتار معتبر دی. و المعتبر السیر الوسط کذا فی السراجیة. او فقهاء کرام د دې منځني رفتار څرګندونه داسې کوي: هو سیر الابل و مشی الاقدام فی اقصر ایام السنة کذا فی التبیین.

له دې څخه دا هم څرګندیږي چه اعتبار مسافت لره دی اګر که د سورلۍ د تیز رفتارۍ له وجهې هغه مسافه ډیر زر طی شي. لکه څنګه چه د ریل ګاډي، طیارې او داسې نورو د سفر همدا حکم دی. د مثال په ډول یو سړی خپل منزل مقصود ته که چېرته په پښو یا په اوښ باندې په دریو ورځو کښې رسیږي او د ریل ګاډي په ذریعه په یوه ورځ او د طیارې په ذریعه سره په پنځه ویشتو یا دیرشو دقیقو کښې رسیږي نو دا سړی به قصر کوي ځکه چه اعتبار مسافې لره ده او فقهاوو هم دغه خبره ذکر کړې ده. لکه څرنګه چه په عالمګیري کښې دي چه: و لو کانت المسافة ثلاثاً با

لسير المعتاد فسار اليها على الفرض جرباً فوصل فى يومين او اقل قصر، كذا فى الجوهرة النيرة. (فتاوىٰ عالمگيرى)

له دې ځخه ثابته شوه چه د ننني زمانې د تيز رفتارو سورليو ځخه په شرعي حکم کښې تبديلي جائزه نه ده. خاص په همدې ډول حضرت تهانويؒ هم په امداد الفتاوىٰ ج۱ کښې ليکلي دي.

﴿۲﴾ د امام ابو حنيفةؒ د مسلك مطابق قصر واجب دی. و القصر واجب عندنا كذا فى الخلاصة. اوس چه څوك ئې پوره کوي نو خامخا به ګنهګار وي. فان صلى اربعا و قعد فى الثانية قدر التشهد اجزأته و الاخريان نافلة و يصير مسيئاً لتاخير السلام الخ كذا فى الهداية. په دُر مختار کښې دي چه: صلى الفرض الرباعى ركعتين وجوباً..... علامه شامي ئې په شرح کښې ليکي: فيكره الاتمام عندنا حتى روى عن ابى حنيفةؒ لانه قال من اتم الصلوٰة فقد اساء و خالف السنة. (شرح منية..... شامى ج۱، ص۷۳۵)

﴿۳﴾ (الف) اسلامي عسکر که چېرته دار الحرب ته داخل شي يا په دار الحرب کښې کوم ښار يا کلا محاصره کړي او هغوی د اقامت نيت هم وکړي نو د هغو د اقامت نيتونه نه صحيح کيږي او هغوی به قصر کوي ځکه چه د قرار او فرار په منځ کښې واقع دي. په هدايه کښې دي چه: و اذا دخل العسكر ارض الحرب فنووا الاقامة بها قصر و كذا اذا حاصروا فيها مدينة او حصناً. لان الداخل بين ان يهزم فيفروا بين ان يهزم فيفر فلم تكن دار اقامة. (په شامي او عالمګيري کښې هم همداسې ليکلي دي) او يو مسافر به تر هغه وخته پورې مسافر وي تر څو پورې ئې چه په کوم ښار يا کلي کښې د کم تر کمه د پنځلسو ورځو د پاتې کيدو نيت نه وي کړی او د زياتو ورځو حد نشته. او که چېرته له پنځلسو ورځو ځخه د کمو ورځو نيت وکړي نو هغه به مسافر وي او قصر به کوي. همدارنګه امام طحاويؒ له حضرت ابن عباسؓ او ابن عمرؓ ځخه د نقل په کولو سره دا مسئله ايستلې چه: و لا يزال على حكم السفر حتى ينوى الاقامة فى بلدة او قرية خمسة عشر يوما او اكثر و لو نوى اقل من ذلك قصر و هو ماثور عن ابن عباسؓ و ابن عمرؓ (اخرجه الطحاوى عنهما) و الاثر فى مثله كالخبر لانه لا دخل للرأى فيه فا لظاهر ان الصحابى. رواه عن النبىﷺ. (الهداية ج۱، ص۱۴۹، باب صلوٰة المسافر)

لهذا د نن زمانې اسلامي عسکر که چېرته په داسې يوه خدمت يا کار پسې په دار الحرب کښې وګمارل شي يا هلته کوم ښار يا کلی محاصره کړي نو هغوی که چېرته د اقامت نيت وکړي نو بيا به هم اتمام نه کوي.

(ب) پاتې شوه د سنتو مسئله، نو د سنتو لپاره په سفر کښې اطمينان شرط دی. په فتاوىٰ عالمګيري کښې دي چه: و لا قصر فى السنن كذا فى محيط السرخسىؒ و بعضهم جوزوا للمسافر ترك السنن و المختار انهٗ لا يأتى بها فى حال الخوف و يأتى بها فى حال القرار و الامن هٰكذا فى الوجيز للكردرى. (فتاوىٰ عالمگيرى ج۱، ص۱۷۸) او همدارنګه صاحبِ دُر مختار هم همداسې ليکلي دي.

﴿۴﴾ داسې مسافر کوم چه د څه حاجت لپاره کوم ښار ته داخل شي او اراده ئې دا وي چه کله مې هم حاجت پوره شي نو زه به له دې ښاره ووځم او د پنځلسو ورځو د اقامت نيت ئې و نه کړ او په همدې ډول دی په کلونو کلونو پاتې شو نو بيا به هم قصر کوي. په عالمګيري کښې دي



چه: و لو بقى فى المصر سنين على عزم انه اذا قضىٰ حاجته يخرج و لم ينو الاقامة خمسة عشريوما قصر كذا فى التهذيب. (عالمگيرى ج۱، ص۱۳۹، باب صلوٰة المسافر)

همدارنګه په هدايې کښې دي چه: و لو دخل مصراً على عزم ان يخرج غداً او بعد غدٍ و لم ينو مدة الاقامة حتىٰ بقى على ذٰلك سنين قصر لان ابن عمرؓ اقام بآذربيجان ستة اشهر و كان يقصر. (رواه عبد الرزاق) و عن جماعة من الصحابة مثل ذٰلك. (رواه البيهقى عن سعد ابن ابى وقاص و انس وغيرهما). (الهداية ج۱، ص۱۴۹، باب صلوٰة المسافر)

په داسې صورت کښې د انفرادي او اجتماعي ارادې په اړه فقهاء کرامو ليکلي دي چه د اقامت د نيت لپاره پنځه شرطونه دي چه له هغو ځخه يو شرط د رأيې استقلال او آزادي ده. که چېرته پخپلې ارادې کښې مستقل نه وي بلکه د کوم بل چا تابع وي نو د هغه په اړه فقهاء کرامو ليکلي دي چه: الاصل ان من لا يمكنه الاقامة باختياره لا يصير مقيماً بنية نفسه حتىٰ ان المرأة اذا كانت مع زوجها فى السفر و الرقيق مع مولاه و التلميذ مع استاذه و الاجير مع مستاجره و الجندى مع اميره فهٰؤلآء لا يصيرون مقيمين بنية انفسهم فى ظاهر الرواية كذا فى المحيط. (عالمگيرى ج۱، ص۱۴۱)

له دې عبارتونو ځخه په ځرګنده توګه معلوميږي چه د اسلامي عسکر د اقامت او نه اقامت دارومدار د حاکم يا قومندان په حکم پورې اړه لري. او پخپله د عسکر د اقامت نيت کار نه ورکوي.

﴿۵﴾ چه کله دا ځرګنده شوه چه فوځي يا عسکر د خپل واك مالك نه دی پس که چېرته د اقامت نيت هم وکړي نو څه ګټه نه ور رسوي. نو تر څو پورې چه د فوځ اعلىٰ حاکم د اقامت نيت نه وي کړی نو د هغه لاندې ټول خلك مسافر دي. او په مسافر باندې اګر که د اطمينان حالت هم وي د جُمعې لمونځ نشته ځکه چه د جُمعې له شرائطو ځخه يو شرط اقامت هم دی. د سفر په حالت کښې جُمعه پرېښودل کيږي او د ملسپښين لمونځ به ادا کوي. د دې شرعاً اجازه شته ليکن که چېرته مسافر د جُمعې لمونځ ادا کړ نو دا به د اجر او ثواب باعث وي ليکن د وخت له فرضو ځخه به ګڼل کيږي.

د جُمعې د وجوب په شرائطو کښې فقهاء کرام ليکي: و هى الحرية و الذكورة و الاقامة و الصحة كذا فى الكافى. حتىٰ لا يجب الجمعة على العبد و النسوان و المسافرين و المرضىٰ كذا فى المحيط. له دې ځخه څو ليکې مخکښې څه داسې ډول عبارت دی: و من لا جُمعة عليه ان اداها جاز من فرض الوقت كذا فى الكنز. (فتاوىٰ عالمگيرى ج۱، ص۱۴۴، الباب السادس عشر فى صلوٰة الجُمعة)

﴿۷﴾ لکه ځرنګه چه اسلامي عسکر نور ضروري سامان له ځان سره اخيستلی شي همدارنګه د جومات سامان لکه درۍ او داسې نور له ځان سره واخلي نو په دې کښې کومه مضائقه نشته.

(فقط و الله اعلم)

## د داسې سفر حکم چه په منځ کښې ئې د اقـــــامت وطن وي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د نوکرۍ په سلسله کښې په نوښار کينټ کښې نوکر يم، يوه ورځ د کوم کار لپاره مردان ته لاړم او له هغه ځايه مې اسلام آباد ته د تلو اراده وکړه، چه کله رسالپور ته ورسيدم نو ما د مازديګر لمونځ دوه رکعته وکړه، په دې باندې زما يوه ملګري ووېل چه تا

باید پوره لمونځ کړی وای، ستا قصر له نوښار څخه تر وتلو وروسته شروع کیږي۔ اوس د پوښتنې وړ خبره دا ده چه آیا زما د ملګري خبره صحیح ده او که زما عمل؟ د قرآن او سنتو په دې باره کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مقدس شریعت له مخې د سفر انشاء د اقامت له وطن څخه کیږي نه له کوم بل ځای څخه۔ لکه څرنګه چه ستاسو د اقامت وطن نوښار دی نه مردان، په داسې حال کښې چه د نوښار او مردان تر منځ د سفر مسافت هم نشته۔ د دې لپاره تا باید پوره لمونځ کړی وای، د قصر حکم له نوښار څخه تر وتلو وروسته درته متوجه کیږي۔ نو ځکه ستاسو د ملګري خبره صحیح ده، که چېرته تا دوباره لمونځ نه وي کړی نو لمونځ بیرته را وګرځوه۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و الحاصل ان انشاء السفر یبطل وطن الاقامة اذا کان منه اما لو انشائه من غیره فان لم یکن فیه مرور علی وطن الاقامة او کان و لکن بعد سیر ثلٰثة ایام فکذٰلك و لو قبله لم یبطل الوطن بل یبطل السفر لان قیام الوطن مانع من صحته و اللّٰه اعلم........ و قال فی الفتح ان السفر الناقص لوطن الاقامة ما لیس فیه مرور علی وطن الاقامة او یکون فیه المرور به بعد سیر مدة السفر. (رد المحتار ج۱، ص ۸۳۰، کتاب السفر)

## د پنځلسو ورځو د پاتې کیدو له نیت څخه وروستــــــه د ارادې د بدلیدو په صورت کښې به سړی قصر کوي او که اتمام؟

**سوال:** یو سړی په یوه ښار کښې د پنځلسو ورځو د اقامت نیت وکړ لیکن ناڅاپه ئې اراده بدله شوه او تر دریو یا څلورو ورځو وروسته ئې د تګ اراده وکړه تر دې پورې چه د سفر لپاره د موټر ټکټ هم تر لاسه کړ نو آیا دا سړی به اوس قصر کوي او که به پوره لمونځ کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړي چه یو ځل د اقامت په نیت سره په یوه ځای کښې اوسیدل شروع کړي نو هغه به تر هغو پورې په دې ښار کښې مقیم ګڼل کیږي تر څو پورې چه د همدې ښار له حدودو څخه د باندې وتلی نه وي اګر که ئې نیت بدل شوي وي او د مودې تر پوره کیدو مخکښې ئې د تګ اراده کړې وي۔

قال العلامة السرخسیؒ: و لا یکون مسافراً با لنیة کما یکون مقیماً با لنیة لانه لا یکون مسافراً حتٰی یسیر و الاقامة تکون با لنیة لان الاقامة لیس بعملٍ. (مبسوط السرخسی ج۱، ص ۲۰۰)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و الثالث الخروج من عمران المصر فلا یصیر مسافراً بمجرد نیة السفر ما لا یخرج من عمران المصر. (بدائع الصنائع ج۱، ص ۹٤، فصل ما یصیر به المقیم مسافر)

## د کرفیو (فوځي بندیز) له وجهې د قصر او اتمام حکم

**سوال:** یو سړی یوه ښار ته د کوم ضروري کار لپاره لاړ لیکن په ناڅاپي توګه هلته کرفیو (فوځي بندیز) نافذه شوه چه له وجهې ئې له هغه ځایه تر پنځلسو ورځو مخکښې وتل ناممکن شو۔ نو آیا دا سړی به هلته مقیم ګڼل کیږي او که مسافر؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله په کوم ښار کښې د پنځلسو ورځو پاتې کیدل یقیني وي نو هلته سړی مقیم ګڼل کیږي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه د کرفیو له وجهې تر پنځلسو ورځو مخکښې وتل ناممکن وګرځید اګر که دا یوه ناڅاپي واقعه هم وي نو بیا به هم دا سړی مقیم ګڼل کیږي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا یزال علی حکم السفر حتٰی ینوی الاقامة فی بلدة او قریة خمسة عشر یوما او اکثر. (الهدایة ج۱، ص ۱۳۲، باب المسافر)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و لا یزال المسافر علی حکم السفر حتٰی ینوی الاقامة مدة معینة ستذکرها. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص ۳۲۵، الثالث الموضع الذی یبدأ منه الخ) و مثله فی کبیری ص ۵۳۹، فصل فی صلٰوة المسافر.

## په کوم بل ښار کښې د ذاتي ځای د درلودو په صورت کښې د قصر او اتمام حکم

**سوال:** ځینې مالداره خلك د ګرمۍ په موسم کښې سوات، چترال، ایبټ آباد، مري او داسې نورو سړو علاقو ته ځي۔ د دې مقصد لپاره هغو هلته خپل ذاتي ځایونه او کورونه جوړ کړي وي نو آیا دا خلك په دغو علاقو کښې مقیم ګڼل کیږي او که مسافر؟ خواه که د یوې یا دوه ورځې لپاره هم هلته ځي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه په یوه ښار کښې ذاتي کور جوړ کړي او د ګرمۍ موسم یو ځل پکښې تیر کړي نو هغه د هغه سړي وطن اصلي ګڼل کیږي۔ همدارنګه دا سړی چه کله دې ښار ته راشي مقیم ګرځي او پوره لمونځ به کوي چه تر څو پورې ئې دا کور په همدې ښار کښې وي۔ د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق داسې خلك مقیم ګرځي او هغوی به پوره لمونځونه کوي۔

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: الوطن الاصلی هو وطن الانسان فی بلدته او بلدة اخری اتخذها داراً او توطن بها مع اهله و ولده و لیس من قصده الارتحال عنها بل التعیش بها. (البحر الرائق ج۲، ص ۱۳۶، باب صلٰوة المسافر)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: فا لاصلی هو مولد الانسان او موضع تأهل به و من قصده التعیش به لا الارتحال عنه. (کبیری ص ٥٤٤، فصل فی صلٰوة المسافر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۱، ص ۱۰۳، مطلب فی ان الاوطان ثلٰثة.

# بـــــاب الجمعة و العيــــدين

## (د جُمعې او اخترونو احکام او مسئلې)

### د جُمعې د لمانځه له فرضیت څخه د منکر سړي حکم

**سوال:** د جُمعې د لمانځه شرعي حیثیت څه دی؟ که چېرته یو څوك د جُمعې د لمانځه له فرضیت څخه انکار وکړي نو کافر کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نورو لمونځونو غوندې د جُمعې لمونځ هم فرض عین دی، چه انکار ترې د کفر موجب دی۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: هی فرض عين يكفر جاحدها لثبوتها با لدليل القطعی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳۶، باب الجمعة)

و قال العلامة ابن نجيمؒ: و هی فريضة محكمة با لكتٰب و السنة و الاجماع يكفر جاحدها الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۳٤، باب الجمعة) و مثله فی فتح القدير ج۲، ص۲۱، باب الجمعة)

### د جُمعې د وجوب لپاره د حاکم د اجازې شرعي حیثیت

**سوال:** فقهاوو د جُمعې د لمانځه د اداء د وجوب لپاره د بادشاه اجازه ضروري بللې ده لیکن چېرته چه د مسلمانانو حاکم نه وي نو هلته د جُمعې د لمانځه شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومو ځایونو کښې چه اسلامي سلطنت قائم وي نو هلته صراحتاً یا دلالتاً اجازه ضروري ده، لیکن په کومو ځایونو کښې چه د اسې انتظام نه وي نو د شرائطو تر رعایتولو وروسته عام مسلمانان دې د خپلو ذمه واریو د محسوسولو له مخې د جُمعې د لمانځه اهتمام وکړي۔

لما ذكر فی الهندية: و لو تعذر الاستيذان من الامام فا جتمع الناس علی رجل يصلّی بهم الجمعة جاز. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱٤٦، باب صلٰوة الجُمعة)

و قال الشبليؒ فی حاشية الزيلعی: و لو اجتمعت العامة علی ان يقدموا رجلا من غير امر خليفة الميت او القاضی لم يجز و لم تكن جمعة لانه لم يفوض اليهم امرهم الاّ اذا لم يكن فيهم قاض و لا خليفة الميت بان كان الكل ميت فحينئذٍ يجوز لاجل الضرورة الخ. (الزيلعی ج۲، ص۱٤۳، باب صلٰوة الجُمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱٤۳، باب صلٰوة الجُمعة.

### د مصر (ښار) په توابعو کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته لوی کلي ته نژدې کوم کوچنی کلی وي او د خپلې آبادۍ له مخې کم وي لیکن په رسم، رواج، غم او ښادي کښې ئې ټول تعلقات په لوی کلي پورې تړلي وي او تر منځه ئې څه خالي میدان هم شته کوم چه تر اوسه پورې کومه آبادي پکښې نه ده شوې۔ آیا په دې کوچني کلي کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د دې کوچني کلي حیثیت د یوې محلې غوندې وي نو بیا په منځ کښې خالي میدان د دې مانع نه ګرځي چه په لوی کلي کښې وګڼل شي۔ د تابع والي په صورت کښې به دلته د جُمعې او اخترونو لمونځونه واجب وي اګر که ئې خپله مستقله آبادي کمه هم وي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و كذا لا يصح اداء الجمعة الا فی المصر و توابعه فلا تجب علی اهل القرٰی التی ليست من توابع المصر الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۵۹، فصل بيان شرائط الجمعة)

و قال محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ: تقع فرضا فی القصبات و القرٰی او فنائه و هو ما اتصل به لاجل مصالحه. (رد المحتار ج۲، ص۱۳۸، باب الجمعة) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱٤۵، صلٰوة الجمعة.

### د ښـــــار د فناء اندازه

**سوال:** د کوم ښار یا لوی کلي د توابعو او فناء دائره تر کومې اندازې پورې کیدلی شي په داسې حال کښې چه د لویو کليو دائره څو څو میلو ته رسیږي آیا دا ټوله علاقه په فناء یا توابعو یا مضافاتو کښې شماریږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کلي یا ښار د توابعو د تعین یا ټاکنې په باره کښې مختلف اقوال وجود لري۔ لیکن د قاضي ابو یوسفؒ د رأیې مطابق تر کومه ځایه پورې چه د آذان آواز اوریدل کیږي نو هغه علاقه په توابعو کښې شمارل کیږي۔ نور ګڼ قولونه هم د مسافت په باره کښې راغلي دي لیکن په موجوده وخت کښې د کوم لوی کلي هغه برخه کومه چه د لوی کلي انتظامي امور پکښې چلیږي په توابعو کښې شمارل کیږي لکه د کوم کلي په کمیټې پورې تړلي ټوله علاقه توابع ګڼل کیږي۔ د دې لپاره همدا علاقه د تنظیمونو د آمدني او مصارفو لپاره مخصوصه ګڼل کیږي۔ البته یونین کونسل په دې زمره کښې راتلل مشکل دي۔ بیا هم د داسې لوی کلي علاقه باید د عرف تابع وي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و اما تفسير توابع المصر فقد اختلفوا فيها روی عن ابی يوسفؒ ان المعتبر فيه سماع النداء ان كان موضعاً يسمع فيه النداء من المصر فهو من توابع المصر الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲٦۰، فصل فی بيان شرائط الجمعة)

و قال علامة ابن عابدينؒ: و جملة اقوالهم فی تقديره ثمانية اقوال او تسعة علوه ميل ميلان ثلٰثة فرسخ فرسخان ثلٰثة سماع الصوت سماع الآذان الخ. (شامی ج۲، ص۱۳۹، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱٤۱، باب صلٰوة الجمعة.

### د ګڼې آبادۍ لرونکي کلي کښې د جُمعې د جواز حکم

**سوال:** څو واړه کلي چه مجموعي آبادي ئې لوی کلي ته رسیږي لیکن په انفرادي توګه هر یو کلی د واړه کلي په حکم کښې دی۔ آیا د دغو ګڼو آبادیو د یو ځای کولو په صورت کښې هلته د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړي واړه کلي د محله جاتو په شکل کښې وي او د یوې او بلې محلې تر منځ خالي ځای موجود وي نو د دې معمولي مسافې له وجهې اګر که د هغو

نومونه ځان ځانته وي لیکن بیا هم د یو له بله تعلقاتو، غم، ښادي او د اسې نورو شیانو د شرکت له وجهې یو لوی کلی ګڼل کیږي او په د اسې ځای کښې د جُمعې او عیدینو ادا کول صحیح دي. او که چیرته د یوه کلي له بل سره کوم ځانګړی تعلق نه وي او په هر یوه کښې انفرادیت (یواځې والی) وي او د هر یوه حیثیت د جلا جلا کلیو وي نو بیا مجموعي حیثیت نه ورکول کیږي او په واړو کلیو کښې د احنافو فقهاوو په نزد د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز نه دي.

قال علامة ابن العابدینؒ: تقع فرضٌ فی القصبات و القری الکبیرة التی فیها اسواق الخ. (شامی ج۲، ص۱۳۸، باب الجمعة)

قال ابن نجیمؒ: وجوب الجمعة علی ثلٰثة اقسام فرض علی البعض و واجب علی البعض و سنة علی البعض اما الفرض فعلی الامصار و اما الواجب فعلی نواحیها و اما السنة فعلی القری الکبیرة و المستجمعة للشرائط. (البحر الرائق ج۲، ص۱٤۱، باب الجمعة) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۱، ص٤٥۰، باب الجُمعة.

## د هنګامي حالاتو لاندې په بازار کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** که چیرته د کوم ځاي مقامي آبادي قریهٔ کبیره (لوی کلي) ته نه رسیږي لیکن د جُمعې په ورځ د کاروبار د مرکز کیدو له وجهې د خلکو ګڼه ګونه وي نو آیا د دې وختي زیاتوالي له وجهې دلته د جُمعې لمونځ ادا کیدلی شي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په ټول کال کښې د جُمعې په ورځو کښې همدا کیفیت وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ناڅاپي حالاتو له مخې چه د جُمعې په ورځ له دې ځای څخه قریه کبیره یا ښار جوړ شي نو په هغه کښې د "منٰی" غوندې د وختي زیاتوالي له وجهې د جُمعې لمونځ جائز دی.

قال العلامة المرغینانیؒ: و یجوز بمنٰی ان کان الامیر امیر الحجاز او کان الخلیفة مسافراً عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ و قال محمدؒ لا جمعة بمنٰی لانها من القرٰی حتٰی لا یعتد بها. و لهما انها تتمصر فی ایام الموسم الخ. (الهدایة ج۱، ص۱٦۸، باب صلٰوة الجمعة)

و قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و جازت الجمعة بمنٰی فی الموسم الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱٤٤، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱٤۲، باب صلٰوة الجمعة.

## د یوه ښار په ګڼو ځایونو کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** که چیرته په کوم ځای کښې د جُمعې شرطونه پوره وي نو په څو جوماتونو کښې د جُمعې د ادا کولو حکم څه دی؟ آیا د یوه جامع جومات په موجود والي کښې په نورو جوماتونو کښې د جُمعې د لمانځه شروع کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جُمعې د شرائطو تر پوره کیدو وروسته چه کله یو ځل د جُمعې او اخترونو لمونځونه واجب شي نو په ګڼو ځایونو کښې ئې ادا کول پروا نه لري. په دې کښې دا ضروري نه ده چه له ابتداء څخه دې په ګڼو ځایونو کښې جُمعه شروع شي بلکه د یوه جامع



جومات په موجود والي کښې چه کله په بل ځای کښې هم د جُمعې د لمانځه ضرورت محسوس شي نو د جُمعې لمونځ پکښې روا دی. هو! د فتنې، فساد او د مسلمانانو تر منځ په جدا والي کښې د آلې د جوړیدو په صورت کښې له جامع جومات څخه د جلا والي بهانې جوړول د عقلمندۍ او پوهې تقاضا نه دی.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و تؤدی فی مصر واحد بمواضع کثیرة مطلقاً علی المذهب و علیه الفتوٰی الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱٤٤، باب الجمعة)

و فی الهندیة: و تؤدی فی مصر واحد فی مواضع کثیرة و هو قول ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالٰی و هو الاصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص٤٥، صلٰوة الجمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱٤۲، باب صلٰوة الجمعة

## په فوځي چاونۍ یا کومې ممنوعه علاقه کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** په ځینو حساسو علاقو یا فوځي چاونیو کښې د عامو خلکو د اخلیدل د قانون له مخې منع وي. په د اسې ځایونو کښې (چیرته چه هر چا ته د داخلیدو د نه اجازې له وجهې د "اذن عام" شرط مفقود وي) د جُمعې لمونځ جائز دی او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د فقهې په کتابونو کښې یو شرط "اذن عام" هم لیکلی دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې ځایونو کښې له داخلیدو څخه ممانعت د انتظامي امورو یوه برخه ده تر څو چه د اشرارو او مفسدینو له شر څخه محفوظ پاتې وي. د دې لپاره له د اسې ممانعت څخه د جُمعې حیثیت نه خرابیږي. هو! له دې ځای سره د تعلق لرونکو خلکو د کُلي اجازې تر څنګ اضافي اذن عام هم میندل کیږي. د دې لپاره د اسې ځای چه کله په د اسې علاقې کښې واقع وي چیرته چه جُمعې او عیدین واجب وي نو په ګڼو ځایونو کښې د لمانځه د روا والي له وجهې دلته هم د جُمعې او عیدینو په ادا کولو کښې کوم حرج نشته.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: تحت قوله "الاذن العام" فلا یضر غلق باب القلعة لعدو او لعادة قدیمة لان الاذن العام مقرر لاهله الخ. (در مختار ج۲، ص۱٥۲، باب الجمعة)

قال داماد آفندی: و ما یقع فی بعض القلاع من غلق ابوابه خوفاً من الاعداء او کانت لهٗ عادة قدیمة عند حضور الوقت فلا باس بهٖ لان الاذن العام مقرر لاهله الخ. (مجمع الانهر ج۱، ص۱٦٦، باب الجمعة)

## په کلیو کښې د جُمعې او اخترونو حکم

**سوال:** په کلیو کښې د جُمعې او اخترونو د لمونځونو شرعاً حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو فقهاووؒ د جُمعې د لمانځه د وجوب لپاره تر نورو شرائطو برسیره قریهٔ کبیره، ښار یا د ښار فنا هم ضروري بللي دی. د دې لپاره په کلیو کښې د شرائطو د نه موجود والي له وجهې د جُمعې او اخترونو لمونځونه واجب نه دي او په کوم ځای کښې چه واجب نه وي هلته ئې ادا کول مکروه تحریمي دی.

قال علاؤ الدین الحصكفیؒ: و فی القنیة صلوٰة العید فی القریٰ تكره تحریماً ای لانه اشتغال بما لا یصح الخ.

(الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۶۷، باب العیدین)

و قال علامة ابن نجیم المصریؒ: ای شرط صحتها ان تؤدی فی مصر حتیٰ لا تصح فی قریة و لا مفازة الخ.

(البحر الرائق ج۲، ص۱۴۰، صلوٰة الجمعة) و مثله فی الزیلعی ج۱، ص۲۱۷، باب صلوٰة الجمعة.

## په کلیو کښې د جُمعې په اداکولو سره د ماسپښین د لمانځه ځخه غاړې نه خلاصیږي

**سوال:** چېرته چه جُمعه واجبه نه وي او د مسئلې د معلوم والي سره سره ځینې خلك محض د ضد او تضاد له مخې د جُمعې لمونځ اداکوي نو آیا د هغو له غاړې ځخه د ماسپښین لمونځ ساقطیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله په کوم ځاي کښې جُمعه واجبه نه وي نو د ماسپښین لمونځ هلته فرض وي. په داسې حالت کښې سره له دې چه جُمعه واجبه نه وي د جُمعې د لمانځه اداکول مکروه تحریمي دی او د ماسپښین د لمانځه ځخه د غاړې د خلاصیدو لپاره گټه نه کوي.

قال العلامة ابن العابدینؒ: و فیما ذكرنا اشارة الی انه لا تجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاض و منبر و خطیب كما فی المضمرات و الظاهر انه أرید به الكراهة لكراهة النقل با لجماعة الا تریٰ ان فی الجواهر لو صلوا فی القریٰ لزمهم اداء الظهر الخ. (شامی ج۱، ص۱۳۸)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: قوله شرط ادائها المصر ای شرط صحتها ان تؤدی فی مصر حتیٰ لا تصح فی قریة و لا مفازة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۰، باب الجمعة) و مثله فی البنایة شرح الهدایة ج۳، ص۲۸۶، باب الجمعة.

## په بیابان کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** په کوم بیابان کښې د خلکو د یو ځای کیدو په صورت کښې د جُمعې د لمانځه د اداکولو حکم ځه دی؟ خصوصاً په داسې حال کښې چه خلك په زیاته اندازه یو ځای شوي وي لیکن په مستقله توگه هلته نه اوسیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا بیابان د لوی کلي یا ښار له توابعو ځخه نه وي نو په داسې ځای کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز نه دي.

قال علاؤ الدین الحصكفیؒ: و لا بعرفات لانها مفازاة الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴۴، باب الجُمعة)

و فی الهندیة: و لا جمعة بعرفات اتفاقاً كذا فی الكافی. (الهندیة ج۱، ص۱۴۵) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۴۲، باب الجمعة.

## په دیهاتو یعنې کلیو کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** په عامو علاقو کښې د جُمعې د لمانځه په باره کښې د احنافو په نزد د ښار یا د ښار د فناء د کیدو په شرائطو کښې ځه نا ځه اختلافات لیدل کیږي. ځینې خلك په څو کورونو باندې



مشتمله آبادي کافي گڼي او د جُمعې لمونځ پکښې شروع کوي. په داسې حال کښې چه په فقه حنفي کښې د مصر تعریف په مختلفو عباراتو سره شوی دی چه د ټولو تعریفونو له جملې ځخه د یوه تعریف په پام کښې نیولو سره مونږ ځه فیصله وکړو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد د جُمعې د لمانځه د وجوب لپاره تر نورو شرائطو برسیره مصر (ښار)، فناء د مصر یو مستقل شرط دی. هو! قریهٔ کبیره هم د مصر په حکم کښې داخل دی لیکن د مصر یا لوی کلي کومه ټاکلې اندازه نشته چه مونږ هغې ته د اعتبار ورکړو. دا یو عرفي حقیقت دی کوم چه د زمانې او حالاتو له مخې بدلیږي را بدلیږي. همدا وجه ده چه د احنافو فقهاوو د خپلې زمانې په اعتبار سره د مصر تعریف کړی دی کوم چه زمونږ په کتابونو کښې په مختلفو عباراتو سره نقل شوی دی. تر دې پورې خو اتفاق دی چه په کلیو کښې د جُمعې لمونځ مکروه تحریمي دی او د ماسپښین له لمانځه ځخه ذمه نه فارغیږي. د موجوده وخت په اعتبار سره د کوم کلي مستقله آبادي د ښځو او نرانو، لوی او واړه، مسلمان او غیر مسلمان تر د۱۰ ، زره کسانو پورې ورسیږي نو هغه لوی کلی گڼل کیږي او په هغه کښې د ورځني ژوند د ضروریاتو سامانونه هم موجود وي.

لهذا د جُمعې د لمانځه د وجوب لپاره د یوه کلي آبادي کم تر کمه تر دوه زره کسانو پورې ضروري ده. لیکن ځرگنده دې وي چه دا د همدغه کلي خپله آبادي وي او که نه نو د شاوخوا (کوم چه د دې کلي په فناء کښې نه وي) آبادیو په یو ځای کولو سره که چېرته زرگونو ته ورسیږي نو د دې کلي په کلي والي په حیثیت باندې کوم اثر نه اچوي.

قال العلامة الحصكفیؒ: و فی القنیة صلوٰة العید فی القریٰ تكره تحریماً ای لانه اشتغال بما لا یصح لان المصر شرط لصحته. (رد المحتار ج۲، ص۱۶۷، باب العیدین)

قال العلامة ابن نجیمؒ: ای شرط صحتها ان تؤدی فی مصر حتیٰ لا تصح فی قریة و لا مفازة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۰، باب الجمعة) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۲۱۷، باب الجمعة.

## د مسافر لپاره د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** په مسافر باندې د جُمعې د لمانځه د نه واجب والي سره سره که چېرته د جُمعې لمونځ اداکړي نو آیا د ماسپښین له لمانځه ځخه ئې غاړې خلاصیږي او که به د ماسپښین لمونځ بیا اداکول پرې ضروري دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اقامت (مقیم والی) د جُمعې د لمانځه د ادا له هغو شرائطو ځخه دی چه د هغه په نه موجودوالي کښې هم د جُمعې لمونځ اداکیدلی شي. د دې لپاره د مسافر لپاره د جُمعې لمونځ صحیح دی او د جُمعې تر اداکولو وروسته د ماسپښین لمونځ پرې لازم نه دی.

قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله و اقلها ثلثة رجال اطلق فیهم فشمل العبید و المسافرین و المرضیٰ و الأمیین و الخرسیٰ لصلاحیتهم للامامة الخ. (شامی ج۲، ص۱۵۱، باب الجمعة)

و فی الهندية: و تنعقد الجمعة باتمام العبيد و المسافرين و المرضٰی و كذا با لاميين و الخرس الخ. (الهندية ج۱، ص۱۴۸، صلٰوة الجمعة) و مثله فی فتح القدير ج۲، ص۳۳، باب صلٰوة الجمعة.

## د جُمعې او اخترونو د لمونځونو لپاره د ښځو د راوتلو حکم

**سوال:** په جوماتونو کښې د جُمعې او اخترونو لپاره د ښځو لپاره د وتلو شرعاً څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځو لپاره په مستقله توګه د جُمعې او اخترونو اهتمام روا نه دی او نه په هغو باندې واجب دی۔ هو! په کوم جامع مسجد کښې تبعاً شرکت پخپل ذات کښې ممنوع نه دی لیکن په نن دور کښې د ښځو وتل له فتنې او فساد څخه خالي نه وي د دې لپاره د جُمعې د لمانځه لپاره د وتلو په ځای دې ښځې باید پخپلو کورونو کښې لمونځونه وکړي او د اخترونو لمونځونه هم په ښځو واجب نه دي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و اما المرأة فلانها مشغولة بخدمة الزوج ممنوعة عن الخروج الی محافل الرّجال لكون الخروج سبباً للفتنة و لهذا لا جماعة عليهن و لا جمعة الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۵۸، فصل بيان شرائط الجُمعة)

و ذكر السرخسیؒ: و المرأة كذٰلك مشغولة بخدمة الزوج منهية عن الخروج شرعاً لما فی خروجها الی مجمع الرّجال فتنة. (المبسوط ج۲، ص۲۲، باب الجُمعة) و مثله فی الطحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص۴۱۱، باب الجمعة.

## په معذور سړي باندې د جُمعې لمونځ واجب نه دی

**سوال:** د اسې سړی چه تګ او راتګ نه شي کولی د هغه لپاره د جُمعې د لمانځه ادا کول څه حکم لري؟ بينو اتوجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله کوم نژدې جامع جوماته پورې د جُمعې د لمانځه لپاره په رسيدو باندې څوک قادر نه وي نو د اسې سړی د نورو معذورو خلکو په حکم کښې راځي او د جُمعې د لمانځه له وجوب څخه مستثنی دی۔ البته که چېرته په کومې طريقې سره لاړ شي او د جُمعې لمونځ ادا کړي نو لمونځ ئې صحيح دی ليکن په نه ورتګ سره نه ګنهګاريږي۔

قال العلامة ابن العابدينؒ: (تحت قوله و قدرتهٖ علی المشی) فلا تجب علی المقعد و ان وجد حاملاً اتفاقاً خانية. لانه غير قادر علی السعی اصلاً فلا يجری فيه الخلاف فی الاعمٰی كما نبه عليه القهستانی. (سامی ج۲، ص۱۵۴، مطلب فی شروط وجوب الجمعة)

و فی الهندية: حتٰی لا تجب الجمعة علی العبيد و النسوان و المسافرين و المرضٰی كذا فی المحيط السرخسی و لا علی المقعد با لاجماع الخ. (الفتاوٰی الهندية ج۱، ص۱۴۴، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۵۱، باب صلٰوة الجمعة.

## د خطبې آذان باید خطيب ته مخامخ وشي

**سوال:** د جُمعې لپاره د خطبې آذان په کوم ځای کښې کیږي؟ آیا د امام بنی. او چپې خوا ته آذان کول جائز دي او که به خامخا امام ته مخامخ آذان کیږي؟



**الجواب:** اګر که آذان د یوه اعلان په حیثیت له کوم ځانګړي ځای سره مخصوص نه دی لیکن له خطبې څخه مخکښې د آذان کولو لپاره فقهاء کرامو دا تصریح کړې ده چه دا آذان دې باید په جومات کښې د ننه خطيب ته مخامخ وشي۔

قال علاؤ الدين الحصكفیؒ: و يؤذن ثانياً بين يديه ای الخطيب. (رد المحتار ج۲، ص۱۶۱، مطلب فی حكم الآذان بين يدی الخطيب)

و فی الهندية: و اذا جلس علی المنبر اذن بين يديه....... الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۴۹، صلٰوة الجمعة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۵۷، باب صلٰوة الجمعة.

## د جُمعې لپاره په یوې خطبې باندې اکتفاء کول د سنتو خلاف دی

**سوال:** که چېرته کوم خطيب د دوو خطبو په ځای په یوې خطبې باندې اکتفاء وکړي نو آیا خطبه ئې ادا کیږي او که نه؟ او په همدې حالت کښې ئې د لمانځه حکم څه دی؟ بينو اتوجروا۔

**الجواب:** د یوې خطبې په ویلو سره اګر که د خطبې شرط پوره کیږي لیکن دوه خطبې مسنونې دي۔ د دې لپاره په یوې خطبې باندې اکتفاء کول د سُنتو خلاف عمل دی البته په لمانځه باندې کوم اثر نه کوي۔

قال محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ و يسن خطبتان بجلسة بينهما. (تنوير الابصار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴۸، باب الجمعة)

قال برهان الدين المرغينانیؒ: و يخطب خطبتين يفصل بينهما بقعدة و به جرٰی التوارث. (الهداية ج۱، ص۱۴۸، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فی الزيلعی ج۱، ص۲۲۰، باب الجمعة.

## د خطبې د اوریدو لپاره د ناستې کیفیت

**سوال:** د خطبې په وخت کښې سړی باید څنګه کښيني؟ آیا په تشهد کښې د ناستې غوندې ناستی ضروری دی او که څنګه؟ بينو اتوجروا۔

**الجواب:** په عامو کتابونو کښې د تشهد د ناستې غوندې ناستې ته بهتر ویل شوي دي لیکن د روایتونو له مخې له دې پرته په طبعي کیفیت باندې ناسته هم ممنوع نه ده۔

لما ورد فی الحديث: حدثنا داؤد بن رشيدنا خالد بن حيان الرقی نا سليمان بن عبد الله بن الزبرقان عن يعلی بن شداد بن اوس قال شهدت مع معاويةؓ بيت المقدس فجمع بنا فنظر فاذا اجل من فی المسجد اصحاب النبیﷺ فرايتهم محتبين و الامام يخطب. قال ابو داؤد و كان ابن عمر يحتبی و الامام يخطب...... الخ. (ابو داؤد ج۱، ص۱۵۸)

و فی الهندية: اذا شهد الرجل عند الخطبة ان شاء جلس محتبياً او متربعاً او كما تيسّر لانه ليس بصلٰوة عملاً و حقيقة كذا فی المضمرات. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۴۸، الباب السادس عشر فی صلٰوة الجمعة) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۶۳، باب الجمعة، شرائط الجمعة.

## په منبر باندې خطبه ویل سُنّت دي

**سوال:** له منبر نه بغیر په بل ځای کښې د خطبې ویلو حیثیت څه دی؟

**الجواب:** په منبر باندې خطبه ویل یو نبوي سُنّت دی۔ او له منبره پرته خطبه ویل د سنتو خلاف دی۔

قال العلامة جلال الدين عبد الرحمٰن ابن ابى بكر السيوطیؒ: و اخرج ابن ابى شيبةؒ عن الشعبيؒ قال كان رسول الله اذا صعد المنبر يوم الجمعة استقبل الناس بوجه الكريم فقال السلام عليكم و يحمد الله و يثنى عليه و يقرأ سورة ثم يجلس ثم يقوم فيخطب ثم ينزل و كان ابو بكرؓ و عمرؓ يفعلانه. (تفسير در منثور ج۶، ص۲۲۲)

و قال العلامة ابن العابدينؒ: و من السنة ان يخطب عليه اقتداءً به ﷺ...... الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱۶۱، باب العيدين) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فى صلوٰة الجمعة.

## د خطبې په دوران کښې د خلفاء راشدینو د یادونې حکم

**سوال:** په عامو کتابونو کښې د جُمعې په خطبه کښې د حمد، صلات، وعظ او نصیحتونو تذکره (یادونه) تر سترګو کیږي، آیا له دې پرته د خلفاء راشدینو یادونه هم پکښې ضروري ده او که نه؟ او که چېرته ئې څوک یاد کړي نو شرعي حیثیت ئې څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** اګر که د خطبې روا والی د خلفاء راشدینو په یادونې پورې اړه نه لري لیکن بیا هم د صحابهٔ کرامو په ځانګړې توګه د خلفاء راشدینو یادونه یو ښه عمل دی۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و يندب ذكر الخلفاء الراشدين و العمين الخ. (در مختار ج۲، ص۱۴۹، مطلب فى قول الخطيب الخ)

و فى الهندية: و ذكر الخلفاء الراشدين و العمين رضوان الله تعالى عليهم اجمعين مستحسن بذلك جرى التوارث كذا فى التجنيس. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فى صلوٰة الجمعة)

## د خطبې په وخت کښې د درود شریف د لوستلو حکم

**سوال:** د خطبې په وخت کښې د دې آیت چه: "يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَ سَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا☆ په اوریدو سره د درود شریف د لوستلو حکم څه دی؟

**الجواب:** په د اسې حالت کښې بهتره دا ده چه په رسول الله ﷺ باندې په زړه کښې درود شریف وویل شي او په ژبې باندې له ویلو څخه ځان وساتي تر څو چه د خطبې اوریدل متاثر نه شي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و روى عن ابى يوسفؒ انهٗ ينبغى ان يصلى على النبى ﷺ فى نفسه عند سماع اسمه....... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۶۴، فصل بيان شرائط الجمعة)

قال العلامة الحصكفیؒ: و الصواب انه يصلى على النبى ﷺ عند سماع اسمه فى نفسه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۹، باب الجمعة) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۳۸، باب الجمعة.

## د خطبې په وخت کښې د خبرې کولو حکم

**سوال:** د خطبې په وخت کښې د خبرو حکم څه دی؟ که چېرته یو خطیب د خطبې په دوران کښې کومه خبره وکړي نو آیا خطبه ترې متاثره کیږي او که نه؟



**الجواب:** د خطبې په وخت کښې د خطیب لپاره له امر بالمعروف نه بغیر نورې خبرې مکروه دي لیکن د خطبې بیرته راګرځول ضروري نه دي۔ البته اوریدونکو ته د خطبې د اوریدلو د واجب والي له وجهې په مطلقه توګه خبرې کول یا اشاره کول مکروه دي۔

قال علاؤ الدين الحصكفیؒ: و يكره تكلمه فيها الاّ لامر بمعروف لانه منها...... الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴۹، باب الجمعة)

و ايضاً كل ما حرّم فى الصلوٰة حرم فيها اى فى الخطبة خلاصة و غيرها فيحرم اكل و شرب و كلام و لو تسبيحاً او رد السلام او امراً بمعروف بل يجب عليه ان يستمع و يسكت. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۹، مطلب فى شروط وجوب الجمعة)

لما قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: (تحت قوله و اذا خرج الامام فلا صلوٰة و لا كلام) و يكره للخطيب ان يتكلم فى حال الخطبة الا اذا كان امراً بمعروف فلا يكره..... اما وقت الخطبة قال كلام مكروه تحريماً لو كان امراً بمعروف او تسبيحاً او غيره. (البحر الرائق ج۲، ص۱۵۵، باب الجمعة) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۰۶، الفصل الثالث و العشرون فى صلوٰة الجمعة.

## د خطبې په وخت کښې د دُعا حکم

**سوال:** د جُمعې د دواړو خطبو په منځ کښې د خطیب یا اوریدونکو لپاره د دُعا د کولو حکم څه دی؟

**الجواب:** له رسول الله ﷺ څخه د هیڅ یوې دُعا د کولو ثبوت نه دی راغلی۔ د دې لپاره په دې وخت کښې د دُعا لپاره د لاسونو پورته کول مکروه دي۔

حدثنا احمد بن منيع، حدثنا هشيم، حدثنا حصين قال سمعتُ عمارة بن رُوَيْبَة و بشر بن مروان يخطب فرفع يديه فى الدعاء فقال عمارة قبح الله هاتين اليدين القصيرتين لقد رأيت رسول الله ﷺ و ما يزيد على ان يقول هٰكذا و اشار هشيم با لسبابة قال ابو عيسىٰ هذا حديث حسن صحيح. (الجامع الترمذى ج۱، ص۱۱۴)

و قال الشيخ عبد الحق دهلویؒ: و آنحضرت ﷺ در میان دو خطبه لحظه بنشستي چنانچه در حديث جابر بن سمرةؓ آمد و خاموش بودی و دُعا از آنحضرت ﷺ درين وقت بصحت نه رسيد. (شرح سفر السعادت ص۲۷۲) و مثله فى غاية الاوطار ج۱، ص۳۷۳، باب الجمعة.

## د جُمعې د لمانځه لپاره جومات شرط نه دی

**سوال:** آیا له جومات څخه د باندې په کوم کور او د اسې نورو کښې د څو کسانو په یو ځای کیدو سره د جُمعې لمونځ ادا کیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په مقامي توګه دا ځای د لوی کلي یا ښار په حکم کښې وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې د لمانځه لپاره جومات شرط نه دی د دې لپاره په کوم مید ان یا له جومات څخه پرته په کوم بل ځای کښې د جُمعې د لمانځه ادا کول د کوم الزام باعث نه دی۔ په د اسې حال کښې چه دا ځای د لوی کلي په فناء کښې وي۔ البته بهتره دا ده چه د جُمعې لمونځ په جامع جومات کښې ادا شي۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و يشترط لصحتها...... الخ المصر الخ او فنائه و هو ماحوله اتصل به اولاً الخ.

(الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳۷، باب الجمعة)

و قال ابن نجيم المصريؒ: او مصلاه اى مصلى المصر لانه من توابعه فكان فى حكمه و الحكم غير مقصور على المصلى بل يجوز فى جميع افنية المصر لانها بمنزلة المصر...... الخ. (البحر الرائق ج۲، ص ۱۴۰، باب صلوة الجمعة) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص ۲۴، باب الجمعة.

## د اخترونو د جماعت ترکيدو وروسته د دوهم جماعت د اداکولو حکم

**سوال:** د اخترونو په لمانځه کښې د جماعت ترکيدو وروسته چه کوم خلک له لمانځه څخه پاتې شوي وي نو آيا دا خلک دوهمه جمعه کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په يوه ښار کښې د ننه په ګڼو ځايونو کښې په يوه وخت د جُمعې او اخترونو لمونځونه صحيح دي ليکن په يوه ځای کښې څو واري جماعت جائز نه دی۔ لهذا له کومو خلکو څخه چه د اختر لمونځ پاتې شوی وي هغوی که په کوم بل ځای کښې د کوم بل امام پسې اقتداء کولی شي يا په کوم بل ځای کښې د جماعت د اداکولو اهتمام کولی شي نو صحيح دی او که نه شي کولی نو په همدې ځای (جومات يا عيدګاه) کښې د دوهم ځل لپاره لمونځ جائز نه دی۔

و قال العلامة ابن نجيمؒ: و الا اذا فاتت مع امام و امكنه ان يذهب الى امام آخر فانه يذهب اليه لانهٗ يجوز تعدادها فى مصر واحد فى موضعين و اكثر اتفاقاً. (البحر الرائق ج۲، ص ۱۶۲، باب العيدين)

## د اختر په لمانځه کښې د مسبوق حکم

**سوال:** که چېرته يو څوک د عيدينو په لمانځه کښې له امام سره په دوهم رکعت کښې شريک شي نو پاتې شوی رکعت به څرنګه اداکوي؟

**الجواب:** د امام تر سلام ګرځولو وروسته به مسبوق دريږي او له سورت فاتحه سره به کوم بل سورت يو ځای کوي او وروسته به د خپل مسلک مطابق زائد تکبيرونه وايي او خپل رکعت به پوره کوي۔

قال علاؤ الدين الكاسانيؒ: فاذا فرغ الامام من صلوته يقوم الى قضاء ما سبق به ثم ان كان رأيه يخالف رأى الامام يتبع رأى نفسه لانهٗ منفردٌ فيما يقضى بخلاف اللاحق لانهٗ فى الحكم كانه خلف الامام و ان كان رأيه موافقاً لرأى امامه بان كان امامه يرى رأى ابن مسعودؓ و هى كذٰلك بدأ با لقراة ثم با لتكبيرات...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۹، فصل بيان صلوة العيدين)

و قال العلامة ابن العابدينؒ: يقرأ ثم يكبر اى اذا قام الى قضائها لئلا يتوالى التكبير. (شامى ج۲، ص ۱۷۴، باب العيدين، مطلب امر الخليفة لا يبقى بعد موته) و مثله فى الطحطاوى ص ۴۳۷، باب احكام العيدين.

## د اختر د لمانځه د اداکولو لپاره د باندې وتل بهتر دي

**سوال:** د عيدينو لمونځ دې د کلي يا علاقې په جامع جومات کښې وشي ښه دی او که له آبادۍ څخه د باندې عيدګاه ته وتل ورته ضروري دي؟ په داسې حال کښې چه په ځينو ځايونو کښې عيدګاه نه وي؟ بينوا توجروا۔



**الجواب:** د عيدګاه له کلي څخه د باندې والی يو داسې کار نه دی چه واجب يا فرض وګڼل شي او نه فقهاء کرامو د دې په اشتراط باندې قول کړی دی، نه د عيدينو د لمانځه صحت پرې موقوف دی۔ البته له ځينو اقوالو او آثارو څخه د عيدګاه له کلي يا علاقې څخه د باندې بهتري څرګندېږي۔ ليکن د کلي په جامع جومات کښې هم د عيدينو لمونځونه جائز دي۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و الخروج اليها اى الجبانة لصلوة العيد سنة و ان وسعهم المسجد الجامع...... الخ. (در مختار ج۲، ص ۱۶۹، باب العيدين)

و فى الهندية: الخروج الى الجبانة فى صلوة العيد و ان كان يسعهم المسجد الجامع على هذا عامة المشائخ و هو الصحيح هٰكذا فى المضمرات. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۵۰، صلوة العيدين) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص ۱۵۹، باب صلوة العيدين)

## د جُمعې د لمانځه لپاره بهترين وخت

**سوال:** د فقه حنفي له مخې د ماسپښين په لمانځه کښې په ساړه موسم کښې تعجيل او د ګرمي په موسم کښې اِبراد افضل دی۔ نو آيا د جُمعې د لمانځه هم همدا حکم دی او که څنګه؟

**الجواب:** د وخت د تعين او افضليت د دواړو په اعتبار سره د جُمعې حکم د ماسپښين د لمانځه غوندې دی۔ د دې لپاره د جُمعې د لمانځه لپاره په ساړه موسم کښې تعجيل او د ګرمي په موسم کښې اِبراد مستحب دی۔

قال العلامة ابن نجيم المصريؒ: و الجمعة كا لظهر اصلاً و استحباباً فى الزمانين كذا ذكره الاسبيجابى. (البحر الرائق ج۱، ص ۲۴۷، كتاب الصلوٰة فى المواقيت الصلوٰة)

و قال برهان الدين المرغينانيؒ: و من شرائطها الوقت فتصح فى وقت الظهر و لا تصح بعدهٗ لقوله عليه السلام اذا مالت الشمس فصل با لناس الجمعة الخ. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۲۷، باب الجمعة) و مثله فى الزيلعى ج۱، ص ۲۱۹، باب الجمعة.

## د عيدينو لپاره د پاکو او صفا جامو د اغوستلو حکم

**سوال:** په عيدينو کښې د نوي يا مينځل شويو جامو اغوستلو د اهتمام شرعي حيثيت څه دی؟

**الجواب:** په داسې اجتماعي مواقعو کښې پاکې او صفا جامې يا نوې جامې اغوستل مستحب دي۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و ندب يوم الفطر اكله الخ و بعد سطر و لبس احسن ثيابه و لو غير ابيض. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۶۸، باب العيدين)

و فى الهندية: و يستحب يوم الفطر للرجل الاغتسال و السواك و لبس احسن ثيابه...... الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۱۴۹، صلوة العيدين) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص ۱۵۷، باب صلوة العيدين.

## د جُمعې په ورځ د نوکانو د پرې کولو وخت

**سوال:** د جُمعې په ورځ د نوکانو د پرې کولو شرعي حيثيت څه دی او په کوم وخت د نوکانو پرې کول مناسب دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** ځینو علماوو د جُمعې د سعادتمندی د لاس ته راوړو په خاطر د جُمعې تر لمانځه وروسته د نوکانو پرې کول موزون او ښه بللي دي۔ لیکن له رسول اللهﷺ څخه تر لمانځه مخکښې د نوکانو د پرې کولو په باره کښې روایت ثابت دی۔ اګر که محدثینو په دې روایت کښې څه ویلي دي لیکن په فضائلو کښې د اسې روایتونو ته اعتبار ورکول کیږي۔

عن ابی هریرةؓ کان یقلم اظفاره و یقص شاربه یوم الجمعة قبل ان یخرج الی الصلٰوة اخرجه البزاز و الطبرانی و البیهقی بسند حسن هٰکذا فی الدر المنثور ج۱، ص۱۱۲)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: قال کان رسول اللهﷺ یقص شاربه و یقلم اظفاره یوم الجمعة قبل ان یروح الی الصلٰوة. قال السیوطیؒ و با لجملة فارجحها ای الاقوال دلیلاً و نقلاً یوم الجمعة و الاخبار الواردة فیه لیست بواهیة جداً مع ان الضعیف یعمل به فی فضائل الاعمال. (الدر المختار مع رد المحتار ج۵، ص۲۸۷، فصل فی البیع) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۴۷، الفصل التاسع فی الخطر و الاباحة، کتاب الطهارة.

## د جُمعې تر آذان وروسته د خوراك حکم

**سوال:** که چېرته د جُمعې په ورځ د خوراك او څښاك په دوران کښې د جُمعې آذان شروع شي نو آیا له هغه څخه وروسته خوراك څښاك جائز دی او که د اخیستلو او خرڅولو غوندې حرام دی؟

**الجواب:** د آذان په وخت کښې که چېرته خوراك ته رغبت زیات وي یا له لمانځه څخه تر فارغیدو پورې د خوراك د شیانو د خرابیدو یا بې خونده کیدو خطره وي نو بیا دې خوراك جاري وساتي او له فارغیدو وروسته دې لمونځ وکړي۔ البته که چېرته د جُمعې د لمانځه د فوت کیدو خطره وي نو بیا دې خوراك بند کړي او د لمانځه خوا ته باید متوجه شي ځکه چه هر هغه عمل چه پکښې د جُمعې د فوت کیدو اندیښنه وي تر آذان وروسته د هغه جاري ساتل حرام دی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: سمع النداء و هو یاکل ترکه ان خاف فوت الجمعة او مکتوبة و ذکر الشامی تحت قوله و الاکل ای الذی تمیل الیه النفس و یخاف ذهاب لذته عذر فی ترك الجماعة. (شامی ج۲، ص۱۶۳، قبل مطلب اذا شرك فی عبارته الخ)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی کثیر من الکتب لو سمع النداء وقت الاکل یترکه اذا خاف فوت الجمعة الخ.
(البحر الرائق ج۲، ص۱۵۷، باب الجمعة) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۸۱، باب صلٰوة الجمعة المتفرقات.

## د عیدینو لپاره آذان د سُنتو خلاف دی

**سوال:** د لوی او کوچني اختر لپاره د آذان د کولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د پنځه وخته لمونځونو او جُمعې له لمانځه څخه پرته د نورو لمونځونو لپاره آذان او اقامت دواړه د سُنتو خلاف دی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: لا یسن لغیرها کعید.... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۸۵، باب الآذان)

و فی الهندیة: و لیس لغیر الصلٰوة الخمس و الجمعة نحو السنن و الوتر و التطوعات و التراویح و العیدین آذان



و لا اقامة کذا فی المحیط. (الهندیة ج۱، ص۵۳، الباب الثانی فی الآذان) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۴۸، الفصل الاوّل فی الآذان.

## د خطیب د ټاکنې حق د چا دی؟

**سوال:** که چېرته څو کسان په کوم جومات کښې د خطیب د جوړیدو دعوه وکړي نو په هغو کښې کوم یو ډیر د خطیب د جوړیدو ډیر حقدار دی؟

**الجواب:** په کوم ځای کښې چه قاضي یا حاکم خپله ذمه واري محسوسه کړي او څوك چه خطیب مقرر کړي نو هغه به د خطبه د ورکولو زیات حقدار وي۔ البته چېرته چه د اسې انتظام نه وي نو بیا د قوم له خوا ټاکل شوی خطیب د جُمعې د خطبې ډیر حقدار دی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: او القاضی الماذون لهٗ فی ذٰلك الی ان قال و نصب العامة الخطیب غیر معتبر مع وجود من ذکر اما مع عدمهم فیجوز للضرورة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴۳، باب الجمعة)

و قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و لو اجتمعت العامة علی تقدیم رجل لم یامره القاضی و لا خلیفة المیت لم یجز و لم تکن جمعة و لو لم یکن ثمة القاض و لا خلیفة المیت فا جتمع العامة علی تقدیم رجل جاز للضرورة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۳، باب الجمعة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۴۶، صلٰوة الجمعة.

## د رسول اللهﷺ لومړنی جُمعه

**سوال:** رسول اللهﷺ اولنی جُمعه په کوم ځای باندې ادا کړه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې په ورځ رسول اللهﷺ له قباء څخه مدینې منورې ته تشریف راوړ او په دې وخت کښې یو جومات هم آباد نه وو۔ د دې لپاره رسول اللهﷺ په وادي بني سالم بن عمرو کښې د جُمعې خطبه وویله، دا د جُمعې اولنی خطبه وه چه له ده مبارکﷺ څخه واوریدل شوه۔

کما فی البدایة و النهایة: قال ابن جریر حدثنی یونس بن عبد الاعلٰی اخبرنا ابن وهب بن سعید بن عبد الرحمٰن الجمحی انه بلغه عن خطبة النبیﷺ فی اول الجُمعة صلاها با لمدینة فی بنی سالم بن عمرو بن عوف رضی الله عنهم الخ.
(البدایة و النهایة ج۳، ص۲۱۳)

قال العلامة السیوطیؒ: و اخرج الزبیر بن بکار فی اخبار المدینة عن شهاب قال رکب رسول اللهﷺ یوم الجمعة من قباء فمر علی بنی سالم فصلّٰی فیهم الجمعة ببَنی سالم و هو المسجد الذی فی بطن الوادی و کانت اوّل جمعة صلاها رسول اللهﷺ. (الدر المنثور ج۶، ص۲۱۸، سورة الجُمعة) ومثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۳۹، باب الجمعة.

## د ایام تشریق تکبیرات په کومو خلکو واجب دي؟

**سوال:** آیا د ایام تشریق تکبیرونه یوازې په نارینه وو باندې واجب دي او که ښځې هم په دې حکم کښې شریکې دي؟ په د اسې حال کښې چه ښځې په عمومي توګه یوازې لمونځونه کوي؟

**الجواب:** لکه څرنګه چه د صاحبینؒ په نزد د ایام تشریق د تکبیرونو لپاره جماعت، اقامت او ښار شرط نه دی بلکه په ټولو لمونځ کوونکو باندې واجب دي که له جماعت سره لمونځونه کوي او

که یو ائې لمونځونه کوي- بنا پر دې صورت د نارینه وو غوندې په ښځو باندې هم د ا تکبیرونه واجب دي- البته د ښځو لپاره ضروري ده د تکبیرونه ټیټ یعنې پټ آواز سره ووایي- د فقهې له کتابونو څخه د صاحبینؒ قول راجح معلومیږي او په همدې باندې فتوٰی هم ده-

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و قالا بوجوبه فور كل فرض مطلقاً و لو منفرداً او مسافراً او امرأة لانهٗ تبع للمكتوبة الى عصر يوم الخامس آخر ايام التشريق و عليه الاعتماد و العمل و الفتوٰى فى عامة الامصار و كافة الاعصار..... الخ. (در مختار ج۲، ص۱۷۹، قبل با لكسوف، مطلب المختار..... الخ)

قال حسن بن عمار الشرنبلاليؒ: و قالا اى ابويوسفؒ و محمدؒ يجب التكبير فور كل فرض على من صلاه و لو كان منفردا او مسافرا او قرويا لانه تبعٌ للمكتوبة من فجر عرفة الى عقيب عصر اليوم الخامس من يوم العرفة فيكون الى آخر ايام التشريق و به اى بقولهما يعمل و عليه الفتوٰى. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۴۴۳، احكام العيدين و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۱۶۶، باب العيدين.

## په بحري بیړه کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** د حج ځینې عازمین د بیړه په ذریعه د حج د ادا کولو لپاره ځي، که چېرته هغوی تول سره یو ځای شي او په بیړه کښې د جُمعې لمونځ ادا کړي نو آیا د فقه حنفي له مخې د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** د جُمعې د فرضیت لپاره د امام ابو حنیفهؒ په نزد ښار ضروري دی او بیړه چونکه د ښار په حکم کښې نه راځي اګر که حج ته تلونکي په کافي اندازه پکښې موجود وي- د دې لپاره د فقه حنفي مطابق په بحري بیړه کښې د جُمعې لمونځ جائز نه دی-

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و يشترط لصحتها سبعة اشياء المصر و هو ما لا يسع اكبر مساجده اهله المكلفين بها و عليه فتوٰى اكثر الفقهاء. (الدر المختار على هامش الطحطاوى ج۱، ص۳۳۸، باب الجمعة)

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: لا تصح الجمعة الا فى مصر جامع او فى مصلى المصر و لا تجوز فى القرى لقوله عليه السلام لا جمعة و لا تشريق لا فطر و لا اضحى الا فى مصر جامع. (الهداية ج۱، ص۱۵۰، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۴۵، الباب السادس عشر فى صلٰوة الجمعة.

## په جیل (بندیخانه) کښې د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** نن صبا په پاکستان کښې اکثر جیلونه د ښارونو په منځ کښې واقع وي چه له باندې څخه چا ته د ننوتلو اجازه نه وي نو په د اسې حال کښې چه په دغو جیلونو کښې د بندیانو تعداد زرګونو ته رسیږي په دې صورت کښې په د اسې جیلونو کښې د جُمعې د لمانځه شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** د فقه حنفي مطابق د جُمعې د ادا کولو لپاره اذن عام شرط دی- چونکه جیل ته له باهر څخه خلکو ته د ورتلو اجازه نه وي نو ځکه په جیل کښې د جُمعې او اخترونو لمونځونه جائز نه دي-



لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاريؒ: الشرط السادس الاذن العام و هو ان تفتح ابواب الجامع فيؤذن با لناس كافة حتٰى ان جماعة لو اجتمعوا فى الجامع و اغلقوا ابواب المسجد علٰى انفسهم و جمعوا لم يجزهم. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۷۰، شرائط الجمعة)

قـــال الشيخ ظفر احمد العثمانيؒ: د جُمعې د صحت له شرائطو څخه اذن عام هم دی او په دې سوال کښې نوموړی شرط مفقود دی له دې وجهې جُمعـــــــه به صحیح نه وي- (امداد الاحکام ج۱، ص۷۵۷، فصل فى الجمعة و العيدين) و مثله فى كتاب الفقه على مذاهب الاربعة ج۱، ص۳۸۰، فصل شروط الجمعة.

## د اختر لمونځ په جومات کښې د ادا کولو حکم

**سوال:** نن صبا په اکثرو کلیو او ښارونو کښې هم د اختر لمونځ په جوماتونو کښې ادا کیږي- آیا د اسې کول جائز دي او که عیدګاه ته وتل ضروري دي؟

**الجواب:** رسول اللهﷺ د اختر لمونځ د باندې په عیدګاه کښې ادا کړی دی د دې لپاره د عیدینو د لمانځه لپاره عیدګاه ته وتل مسنون دي- البته په جوماتونو کښې ئې هم ادا کول جائز دي-

و فى الهندية: الخروج الى الجبانة فى صلٰوة العيد سنة و ان كان يسعهم المسجد الجامع على هٰذا عامة المشائخ و هو الصحيح. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۵۰، الباب السابع عشر فى صلٰوة العيدين)

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و فى التجنيس و الخروج الى الجبانة سنة لصلٰوة العيد ان كان يسعهم المسجد الجامع عند عامة المشائخ و هو الصحيح. (البحر الرائق ج۲، ص۱۵۹، باب صلٰوة العيد) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلتهٗ ج۲، ص۳۷۰، رابعاً موضح اداء صلٰوة العيد.

## په خطبه کښې په زوره د اعوذ با لله او بسم الله د لوستلو حکم

**سوال:** که چېرته کوم خطیب د خطبې تر شروع کولو مخکښې اعوذ بالله او بسم الله په زوره ووایي نو دا به ورته جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** د خطیب لپاره د خطبې تر شروع کولو مخکښې په پټه سره اعوذ با لله او بسم الله ویل منقول دي- البته که چېرته ئې څوك په زوره هم ووایي نو پروا نه لري-

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله قال فى الدرر يبدأ با لتعوذ سراً) اى قبل الخطبة الاولى با لتعوذ سرا ثم بحمد الله...... و الثانية كا لاولى الا ان يدعوا للمسلمين مكان الوعظ. (رد المحتار ج۲، ص۱۴۹، باب الجمعة، مطلب فى قول الخطيب)

لما قال الشيخ ظفر احمد العثمانيؒ: د لومړی خطبې تر شروع کولو مخکښې دې خطیب اعوذ با لله من الشيطن الرجيم په پټه سره ووایي او جهر دې پکښې نه کوي او د بسم الله الخ ویل منقول نه دي------ د دې عبارت له آخري برخې څخه د قیاس له مخې حيث قال و الثانية كا لاولى څرګنده شوه چه په دو همه خطبه کښې دې هم اعوذ با لله په پټه سره ووایي او خطبه دې شروع کړي- (امداد الاحکام ج۱، ص۴۷۳، فصل فى الجمعة و العيدين)

## د بل سړي له امداد پرته د ړانده سړي لپاره د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** د زید ورور د سترګو له نعمت څخه بې برخې دی لیکن په تګ او راتګ کښې ورته تکلیف نه وي بلکه پرته د بل سړي له امداد څخه تر لرې ځایونو پورې ځي او راځي۔ آیا په دا سې ړانده سړي باندې د جُمعې لمونځ واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** هر هغه ړوند سړی چه د بل سړي له امداد پرته خپل دنیوي کاروبار پر مخ بیولی شي او په تګ او راتګ کښې ورته تکلیف نه وي نو په هغه باندې د جُمعې لمونځ واجب دی۔ هغه ته د جُمعې او اخترونو لپاره تګ ضروري دی۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و اقول بل يظهر لي وجوبها على العميان الذى يمشي فى الاسواق و يعرف الطرق بلا قائد و لا كلفة و يعرف اى مسجد اراده بلا سوال احد لانهٗ حينئذٍ كالمريض القادر على الخروج بنفسه. (رد المحتار ج۲، ص۱۵٤، مطلب شروط الجمعة)

كتب الشيخ عبد الكريم و صححه العلامة ظفر احمد العثمانيؒ: الجواب: کوم ړوند سړی چه بغیر د بل سړي له امداده تګ راتګ کولی شي او کوم تکلیف ورته نه وي نو په هغه باندې جُمعه واجبه ده۔ (امداد الاحکام ج۱، ص۷٦۰، فصل فى الجمعة و العيدين)

## په خطبه کښې د عصا نیولو حکم

**سوال:** آیا د جُمعې او عیدینو په خطبو کښې په لاس کښې د عصا نیول جائز دي او که نه؟

**الجواب:** د خطبې لپاره په لاس کښې عصا نیول مسنون دي لیکن دا باید یو مقصودي سُنت و نه بلل شي بلکه د اتر استحبابي عمل پورې باید محدود وساتل شي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: و يكره ان يتكى على قوس او عصا. قال ابن عابدينؒ: نقل القهستانى عن عبد المحيط ان اخذ عصا سنة كا لقيام. (رد المحتار ج۲، ص۱٦۳، باب الجمعة، مطلب اذا شرك فى عبادته الخ)

قال الشيخ ظفر احمد العثمانيؒ: د عصا په لاس کښې نیول مستحب دي لیکن که چېرته ضروري وګڼل شي او په نه نیوونکي باندې بد رد وویل شي نو د التزام ما لا يلزم له وجهې به منع وي۔ (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۱۵۹، فصل فى الجمعة و العيدين)

## د اختر تر لمانځه وروسته د دُعا غوښتلو حکم

**سوال:** په عیدګاوو کښې خلک د اختر تر لمانځه وروسته دُعاګانې غواړي۔ آیا د اختر تر لمانځه وروسته دُعا غوښتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** قرآن او سُنت د دُعا د غوښتنې لپاره کوم وخت نه دی ټاکلی بلکه د دُعا وخت ئې مطلق ذکر کړی دی۔ چه هر وخت چه خوک دُعا غواړي نو جائز دي۔ د عیدینو تر لمانځه وروسته د دُعا په غوښتنې باندې د اُمت د مشرانو او لویانو تعامل هم راغلی دی۔ د دې لپاره په دې کښې شرعاً کوم قباحت نشته بلکه دُعا غوښتل مستحب دي۔



لما قال الله تبارك و تعالى: اِذَا سَاَلَكَ عِبَادِیْ عَنِّیْ فَاِنِّیْ قَرِیْبٌ اُجِیْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ. (سورة البقرة آية ۱۸٦)

قال الشيخ ظفر احمد العثمانيؒ: پس د عیدینو د لمانځه نه وروسته زاری او دُعاګانې د حدیثو له عموماتو څخه مستحب دي بلکه تر هر لمانځه وروسته هم مستحب دي۔ (امداد الاحکام ج۱، ص۷٤۲، فصل فى الجُمعة و العيدين)

## د جُمعې تر خطبې وروسته او تر اقامت مخکښې د کوم حدیث د ترجمه کولو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات خطیب صاحب د جُمعې تر خطبې وروسته او تر اقامت مخکښې کله کله د خطبې د کوم حدیث یا د اسې نورو الفاظو ترجمه کوي، آیا د اسې کول صحیح دي او که نه؟

**الجواب:** د جُمعې د خطبې او اقامت تر منځ له دنیوي خبرو څخه منع راغلې ده البته دیني وعظ یا کومه مسئله که چېرته په لنډو الفاظو بیان کړی شي نو بیا پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: فاذا اتم اقمت و يكره الفصل بامر الدنيا ذكره العينى. قال ابن عابدينؒ: ........ اما بنهيگى عن منكر او امر بمعروف فلا. (الدر المختارت على صدر رد المحتار ج۲، ص۱٦۱، باب الجمعة)

قال العلامة السيد احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و يكره الفصل بامر الدنيا) يفهم منه انه لا يكره الفصل بامر الآخرة كذكر. (حاشية طحطاوى على الدر المختار ج۱، ص۳٤۸، باب الجمعة)

## د جُمعې په ورځ د دوهم آذان د جواب ورکولو حکم

**سوال:** د فرض لمونځونو لپاره د ورکول کیدونکي آذان ځواب ورکول خو ضروري دي آیا د جُمعې په ورځ د دوهم آذان ځواب ورکول هم ضروري دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د آذان ځواب ورکول ضروري دي لیکن د جُمعې په ورځ د دوهم آذان په ژبې سره ځواب ورکول د فقهاوو تر منځ یوه اختلافي مسئله ده۔ مناسبه دا ده چه ځواب ورنه کړل شي۔ البته که چېرته په زړه کښې ځواب ورکړي نو بیا پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و ينبغى ان لا يجيب بلسانه اتفاقاً فى الآذان بين يدى الخطيب. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۳۹۹، باب الآذان)

قال الشيخ العلامة عبد الحى اللكهنویؒ: ينبغى ان لا يجيب بلسانهٖ اتفاقاً فى الآذان بين بدى الخطيب و ان يجيب اتفاقاً فى الآذان الاوّل يوم الجمعة. (السعاية فى حل شرح الوقاية ج۲، ص۵۳، باب الآذان)

## د جُمعې د لمانځه د ځنډولو حکم

**سوال:** ځیني خطیب صاحبان د جُمعې لمونځ دومره ناوخته کوي چه د مثل اول وخت ختم شوی وي۔ آیا د جُمعې دومره ځنډول صحیح دي او که څنګه؟

**الجواب:** د ماسپښین وخت د مثل ثاني تر ختمیدو پورې دی او له مثل اول څخه د مثل ثاني وخت مکروه دی۔ د دې لپاره چه خوک د جُمعې لمونځ له مثلِ ثاني څخه وروسته کوي نو هغه

به مکروه وي- اګر که د ځینو علماوو په نزد له مثل اول څخه وروسته د جُمعې لمونځ نه کیږي- د دې لپاره د جُمعې لمونځ باید له مثل اول څخه مخکښې ادا کړی-

لما قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و یستحب الابراد با لظهر) و فی الخزانة الوقت المکروه فی الظهر ان یدخل فی حد الاختلاف و اذا اخره حتی صار ظل کل شیء مثلهٗ فقد دخل فی حد الاختلاف. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ١٤٥، کتاب الصلٰوة)

قال الشیخ محمد یوسف البنوریؒ: قال شیخنا و الحق ما قاله صاحب الدر المختار فان المثل الثانی وقت الضرورة للظهر و حکی الشیخ السید احمد زینیؒ دخلان الشافعی فی رسالة لهٗ عن الفتاوی الظهیریة و خزانة المفتیین رجوع ابی حنیفة الی المثل الاول آه. (معارف السنن ج٢، ص ١٢/١١، باب ما جاء فی مواقیت الصلٰوة)

## په یوه ورځ کښې د جُمعې او اختر د ادا کولو د خطبو حکم

**سوال:** ځینې خلك وايي چه که چېرته جُمعه او اختر دواړه په یوه ورځ کښې سره یو ځای شي نو د اختر د لمانځه په ادا کولو سره د جُمعې لمونځ ساقطیږي ځکه چه دوه خطبې په یوه ورځ کښې سره یو ځای کول صحیح نه دي- آیا په رښتیا هم دوه خطبې په یوه ورځ کښې سره جمع کول صحیح نه دي او که څنګه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** د جُمعې او اختر لمونځونه دواړه جلا جلا لمونځونه دي د یوه په ادا کولو سره بل نه ساقطیږي- د دې لپاره د دواړو ادا کول ضروري دي-

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: اما مذهبنا فلزوم کل واحد منهما. (رد المحتار ج٢، ص١٦٦، باب العیدین مطلب فی الفال و الطیرة)

قال العلامه برهان الدین المرغینانیؒ: فی الجامع الصغیر عیدان اجتمعا فی یوم واحد فا لاوّل سنة و الثانی فریضة و لا یترك واحد منهما. قال بدر الدینؒ: تحته ای من العید و الجمعة اما الجمعة فلانها فریضة و اما العید فلان ترکها بدعة و ضلالٌ. (البنایة ج٣، ص ٣٥٠، باب صلٰوة العیدین) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج١، ص ٤٣١، باب صلٰوة الجعة و العیدین.

## د جُمعې په ورځ تر لمانځه مخکښې د سورت کهف د تلاوت کولو حکم

**سوال:** زمونږ د ځینو ملګرو معمول دی چه د جُمعې په ورځ تر لمانځه مخکښې سورت کهف خامخا تلاوت کوي- آیا شرعا د دې څه ثبوت شته او که نه؟

**الجواب:** په مبارکو احادیثو کښې د جُمعې په ورځ د سورت کهف د تلاوت کولو ډیر فضیلت راغلی دی چه دا سورت د دوه جُمعو تر منځ نور وي- د حدیثو شارحینو دا خبره د زړه، قبر او حشر په ښکلا او رڼایي باندې محمول کړی دی-

عن ابی سعیدؓ ان النبی ﷺ قال من قرأ سورة الکهف فی یوم الجُمعة اضاء له النور ما بین الجُمعتین. (رواه البیهقی) قال العلامة الطیبیؒ: قوله اضاء له فی قلبه او فی قبره او یوم حشره (مشکٰوة ج١، ص١٨٩)

عن ابی سعید الخدریؓ: انهٗ قال من قرأ سورة الکهف یوم الجُمعة اضاء له من لنور ما بینه و بین البیت العتیق هکذا وقع موقوفاً. (تفسیر ابن کثیر ج٣، ص٧٩، سورة الکهف) و مثله فی الدر المنثور ج٤، ص ٢٠٩، سورة الکهف.



## د باران له وجهې د جُمعې د ترك کولو حکم

**سوال:** که چېرته د جُمعې د آذان څخه وروسته تیز باران شروع شي نو آیا بیا هم د جُمعې لپاره جومات ته ورتګ ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** که چېرته باران دومره تیز وي چه جومات ته ورتګ ممکن نه وي نو د دې مجبورۍ له وجهې د جُمعې پرېښودل جائز دي- البته کوشش کول او تلل بهتر دي-

قال العلامه طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: اذا اصاب الناس مطر شدید یوم الجمعة فهم فی سعة من التخلف. (خلاصة الفتاوٰی ج١، ص ٢١١، باب الجُمعة و ما یتصل بهٰذا)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: فلا بُد لمن تجب علیه الجمعة من الصحة و الامن و الحریة و البصر و القدرة علی المشی و عدم الحبس و عدم المطر الشدید و لو حل و الثلج و نحوها. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٢، ص٢٧٠، باب الجُمعة، السلامة من الاعذار) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٢، ص ١٥٤، باب الجُمعة.

## د مریض په خدمت باندې د مامور خادم لپاره د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** په شفاخانې کښې د مریض په خدمت باندې له مامور سړي څخه د جُمعې لمونځ ساقط دی او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** که چېرته د مریض حالت ډیر خراب وي او د خدمت کوونکی جُمعې ته د تګ له وجهې د هغه د هلاکیدو خطره وي نو له خدمت کوونکي څخه جُمعه ساقطه ده- له مریض سره د پاتې کیدو په صورت کښې دې یوائې د ماسپښین لمونځ ادا کړي- او که چېرته د هلاکیدو خطره نه وي نو جُمعه ترې نه ساقطیږي-

قال العلامه السید احمد الطحطاویؒ: الحق با لمریض الممرض ان بقی المریض ضائعا بخروجه علی الاصح. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ٤١٢، باب الجُمعة)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: فلا تجب الجمعة علی مریض لعجزه عن ذٰلك و ممرضی ان بقی المریض ضائعاً و شیخ فانٍ. (الفقه الاسلامی و ادلته ج٢، ص٢٧٠، باب الجُمعة، السلامة من الاعذار) و مثله فی رد المحتار ج٢،ص١٥٣، باب الجُمعة، مطلب فی شروط وجوب الجمعة.

## د جُمعې د خطبې په وخت کښې یو څوك له بد کار څخه د منع کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د جُمعې د خطبې په دوران کښې یو سړی د کوم منکر (بد) کار په کولو ووینې او د اشارې په کولو سره ئې منع کړي نو آیا د اسې کول به صحیح وي او که څنګه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** د خطبې په ترڅ کښې هر د اسې عمل چه د خطبې له اوریدو سره ټکر وي ناجائز دی- البته که چېرته یو څوك ولیدل شي چه منکر کار کوي او په اشارې سره ئې منع کړي نو په دې کښې کومه بدي نشته-

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و كذا لو اشار برأسه او عینه او یده عند رؤیة المنكر و لم یتكلّم بلسانه الصحیح انه لا یكره. (كبیری ص ۵۶۰، باب الجمعة)

ذكر العلامة ابن نجیمؒ: و عن ابی یوسفؒ انهٗ كان ینظر فی كتابه و یصححه وقت الخطبة و لو لم یتكلّم لكن اشار بیده او بعینه حین رأی منكر الصحیح انهٗ لا بأس به. (البحر الرائق ج۲، ص۱۵۶، باب الجمعة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فی الجمعة.

## د خطبې په دوران کښې د خطیب ښۍ او کینې خواته د کتلو حکم

**سوال:** ځینې خطیبان د خطبې د ویلو په وخت کښې ښۍ او کینې خواته ګوري۔ آیا د اسې کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د خطبې په دوران کښې سُنت طریقه دا ده چه خطیب د مخې خواته توجه وکړي او یوې او بلې خواته و نه ګوري۔ فقهاء کرامو له د اسې کولو څخه منع فرمایلې ده۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و ما یفعله بعض الخطباء من تحویل الوجه جهة الیمین وجهه الیسار عند الصلٰوة علی النبیﷺ فی الخطبة الثانیة لم ازا من ذكره و الظاهر انه بدعة ینبغی تركه لئلا یتوهم انه سنة ثم رأیت فی منهاج النووی و لا یلتفت یمیناً و شمالاً فی شیء منها قال ابن حجر فی شرحه لان ذٰلك بدعة. (رد المحتار ج۲، ص۱۴۹، باب الجمعة، مطلب فی قول الخطیب الخ)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: اما سُنن الخطبة فهی عند الحنفیة ثمانی عشر سنة..... استقبال القوم بوجهه دون التفات یمیناً و شمالاً سُنة با لاتفاق لما روی ابن ماجة عن عدی بن ثابت عن ابیه عن جده قال كان النبیﷺ اذا قام علی المنبر استقبله الناس بوجوههم. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۲۹۱، المطلب السادس سُنن الخطبة و مكروهاتها)

## د خطبې په دوران کښې د سُنتونو د ادا کولو حکم

**سوال:** ځینې خلك عین د خطبې په دوران کښې د جُمعې د لمانځه لپاره جومات ته راځي او له راتګ سره د سُنتو په ادا کولو باندې شروع کوي۔ آیا د خطبې په دوران کښې د سُنتو ادا کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جُمعې د خطبې اوریدل واجب دي۔ په دې دوران کښې هر هغه عمل چه د خطبې له اوریدو څخه توجه اړوي ناجائز دی۔ د دې لپاره د فقه حنفي له مخې د خطبې په وخت کښې د سُنتو ادا کول صحیح نه دي۔

لما قال العلامة ابو البركات النسفیؒ: اذا خرج الامام فلا صلٰوة و لا كلام..... قال ابن نجیمؒ فی شرحه لما رواه ابن ابی شیبة فی مصنّفه عن علیؓ و ابن عباس و ابن عمر رضی الله عنهم كانوا یكرهون الصلٰوة و الكلام بعد خروج الامام و قول الصحابة حُجّة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۵۵، باب الجُمعة)

قال العلامة الحصكفیؒ: اذا خرج الامام من الحُجرة ان كان و الا فقیامه للصعود شرح المجمع فلا صلٰوة و لا كلام الی تمامها. قال ابن عابدینؒ: (قوله فلا صلٰوة) شمل السنة و تحیة المسجد. (رد المحتار ج۲، ص۱۵۸، باب الجمعة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۵۱، باب الجُمعة.



## د خطبې په دوران کښې د جومات لپاره د چندې راټولولو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي په جومات کښې د جُمعې د خطبې په دوران کښې د جومات لپاره چنده ټولیږي۔ آیا د خطبې په دوران کښې د چندې ټولول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې د خطبې اوریدل، ورته متوجه کیدل او چُپ اوسیدل واجب دي۔ په دې دوران کښې د لمانځه او خبرو غوندې کارونه جائز نه دي۔ لهذا د خطبې په وخت کښې د جومات لپاره د چندې جمع کول صحیح نه دي۔ د چندې لپاره کوم بل وخت باید وټاکل شي۔

لما قال العلامة ابو البركات النسفیؒ: و اذا خرج الامام فلا صلٰوة و لا كلام. (كنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۵۵، باب الجمعة)

قال العلامة الحصكفیؒ: اذا خرج الامام من الحُجرة ان كان و الا فقیامه للصعود شرح المجمع فلا صلٰوة و لا كلام الی تمامها و ان كان فیها ذكر الظلمة فی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۸، باب الجُمعة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۵۱، باب الجمعة.

## د خطبې لپاره په منبر باندې د کښیناستو په وخت کښې د خطیب د السلام علیکم ویلو حکم

**سوال:** زمونږ خطیب صاحب چه کله د خطبې لپاره په منبر باندې کښیني نو حاضرینو ته السلام علیکم وایي۔ آیا په دې وخت کښې سلام اچول سُنت دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** چه کله خطیب د خطبې لپاره په منبر باندې کښیني نو په دې وخت کښې په حاضرینو باندې سلام اچول د احنافو په نزد صحیح نه دي۔ اګر که امام شافعي ئې د جواز قول نقل کړی دی۔ لیکن چونکه دا هم خبرې دي کوم چه د حدیث په نص سره ممنوع دی۔ د دې لپاره فقهاء کرامو دې ته مکروه ویلي دي۔

لما قال العلامه محمد ابراهیم الحلبیؒ: الخطیب اذا صعد المنبر لا یسلم علی القوم عندنا و به قال مالك و قال الشافعی و احمد یسلم علیهم (المروی من سلام عندنا غیر مقبول) قال البیهقیؒ لیس با لقوی. و قال عبد الحق فی الاحكام الكبرٰی هو مرسل قال و اسنده ابو احمد من حدیث ابن لهیعة و هو معروف فی الضعفاء و لا یحتج به. (كبیری ص۵۶۲، باب الجمعة البحث الثالث)

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و من السنة جلوسه فی مخدعه عن یمین المنبر و لبس السواد و ترك السلام من خروجه الی دخوله فی الصلٰوة. و قال الشافعیؒ اذا استوی علی المنبر سلم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۰، باب الجمعة) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۱، ص۴۰۸، باب صلٰوة الجمعة و العیدین.

## آیا خطبه باید په لوړ آواز سره وویل شي؟

**سوال:** زمونږ د جومات خطیب صاحب په دومره آواز سره خطبه لولي چه په مشکله سره ئې دوه صفونو خلك اوریدلی شي۔ آیا خطبه باید په لوړ آواز سره وویل شي او که په ټیټ آواز

**الجواب:** په اصل کښې د خطبې په کلماتو باندې له آواز سره تلفظ ضروري دی۔ اګر که مستحبه خو دا ده چه خطبه په معتاد آواز سره لږ په زوره وویل شي۔

لما فی الهندیة: و من المستحب ان یرفع الخطیب صوته و ان یکون الجهر فی الثانیة دون الاولٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فی الجمعة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و من المستحب ان یرفع الخطیب صوته کما فی السراج الوهاج و منه ان یکون الجهر فی الثانیة دون الاولٰی. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۸، باب الجُمعة)

## د خطبې په دوران کښې د کښیناستو طریقه

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام چه د خطبې د اوریدو لپاره به په څه شکل کښې باید سړی کښیني؟ په داسې حال کښې چه ځینې خلك په لومړۍ خطبې کښې خپل لاسونه د نامه لاندې ږدي او په دوهمې خطبې کښې د التحیاتو غوندې خپل لاسونه په ورنونو باندې ږدي۔ آیا دا طریقه صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د خطبې اوریدل واجب دي او د اوریدو لپاره چه په کومې طریقه کښې آسانتیا وي کښیناستل جائز دي۔ البته مستحبه دا ده چه د خطبې د اوریدو لپاره باید داسې کښیني لکه څرنګه چه په لمانځه کښې د التحیاتو لپاره کښیني۔ پاتې شوه دا چه په لومړۍ خطبې کښې د نامه لاندې او په دوهمې خطبې کښې په ورنونو باندې د لاسونو ایښودل نو دا یو عامیانه عمل دی چه شرعاً ئې هیڅ ثبوت نشته۔

و فی الهندیة: اذا شهد الرجل عند الخطبة ان شاء جلس متحبیا او متربعا او کما تیسر لانه لیس بصلٰوة عملا و حقیقة کذا فی المضمرات و یستحب ان یقعد فیها کما یقعد فی الصلٰوة کما فی معراج الدرایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۸، الباب السادس عشر فی الجمعة)

قال العلامه مفتی رشید احمد لدهیانویؒ: د دې په شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته له دې وجهې دا فعل بدعت دی۔ د دواړو خطبو په وخت کښې د التحیاتو غوندې کښیناستل مستحب دي۔ په دواړو کښې دې خلك لاسونه په ورنونو باندې کښیږدي، دا ناسته مستحبه ده او که نه وي نو چه څرنګه غواړي کښیناستلی شي۔ (احسن الفتاوٰی ج۴، ص۱۳۳، باب الجمعة)

## د خطبې په دوران کښې د وعظ کولو حکم

**سوال:** ځینې خطیبان د خطبې په دوران کښې د خطبې ترجمه د وعظ په صورت کښې شروع کوي بلکه کله کله د ټولې خطبې ترجمه هم کوي۔ آیا د اسې کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د خطیب لپاره د خطبې په دوران کښې خبرې کول مکروه دي۔ د امت د علماوو په دې باندې تعامل پاتې شوی دی چه هغو به په خطبه کښې له عربي عبارت پرته د بلې یوې ژبې الفاظ هم نه یو ځای کول۔ د دې لپاره د خطبې په دوران کښې د خطبې ترجمه کول د سُنتو



خلاف دی۔ البته د کومې لنډې خبرې په کولو کښې کومه بدي نشته۔

لما قال الامام شاه ولی الله المحدث الدهلویؒ: و لما لا خطبنا خطب النبیﷺ و خلفائه رضی الله عنهم و هلم جرا فتنفحنا وجود اشیاء منها الحمد و الشهادتین و الصلٰوة علی النبیﷺ و الامر با لتقوٰی و تلاوة آیة و الدعاء للمسلمین و المسلمات و کون الخطبة عربیة الٰی قوله و اما کونها عربیة فلاستمرار اهل المسلمین فی المشارق و المغارب به مع ان فی کثیر من الاقالیم کان المخاطبون اعجمین. و قال النووی فی الاذکار رحمه الله تعالی و یشترط کونها ای خطبة الجمعة وغیرها با لعربیة. (المصفّٰی شرح مؤطا امام مالك بحوالهٔ الجواهر الفقه ج۱، ص۳۵۴)

قال العلامة الشیخ اشرف علی التهانویؒ: د جناب نبي کریمﷺ له مبارکې زمانې څخه تر اوسه پورې په امت کښې دا تعامل او توارث پاتې شوی دی چه له خطبې سره ئې بل کوم شی نه زیاتول۔ د دې لپاره یوائې باید په عربي خطبه باندې اکتفاء وشي۔ البته که چېرته په مناسب وخت کښې په کومې پېښې شوې واقعې کښې کوم نصیحت وشي نو جائز دی۔ (مخکښې د یوه بل سوال په ځواب کښې لیکي)------ باقي د دې عادت جوړول او بې له ضرورته د اسې کول د خطبې د زیاتې برخې ترجمه کول یا اوږد وعظ کول د خطبې په منځ کښې د سُنتو خلاف دی۔ (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۴۳۵/۴۳۶، باب صلٰوة الجمعة و العیدین) و مثله فی الجواهر الفقه ج۱، ص۳۶۶، خلاصة احکام الخطبة.

## د خطبې له ویلو پرته د جُمعې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** آیا له خطبې پرته د جُمعې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خطبه د جُمعې په شرائطو کښې داخله ده د دې لپاره له خطبې پرته د جُمعې لمونځ نه کیږي۔

و فی الهندیة: و منها الخطبة قبلها حتّٰی لو صلوا بلا خطبة او خطب قبل الوقت لم یجز. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۶، الباب السادس عشر فی صلٰوة الجُمعة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی فتح القدیر و اعلم ان الخطبة شرط الانعقاد فی حق من ینشیء التحریمة للجُمعة الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۷، باب الجمعة) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۲۸۲، باب الجمعة الخطبة قبل الصلٰوة.

## د پاچا یا د هغه له نائب له حاضرید و پرته د جُمعې د لمانځه حکم

**سوال:** د فقهي په کتابونو کښې په دې خبرې باندې تصریح شوې ده چه د جُمعې د امامت لپاره امام (پاچا) یا د هغه د ټاکل شوي نائب وجود ضروري دی کوم چه په نننۍ زمانې کښې یوه ناشونې خبره ده۔ په داسې حال کښې چه په هر ځای کښې د جُمعې لمونځ ادا کیږي۔ آیا د امام یا د هغه له نائب څخه پرته جُمعه جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د فقهي ذخائرو په عباراتو باندې د غور له کولو څخه د دې شرط په باره کښې سړي ته دا څرګندیږي چه د سلطان یا د هغه د نائب وجود مقصود بالذات نه دی بلکه د

فتنې د دروازې د بندولو لپاره دی۔ لهذا که چېرته مسلمانان د خپل منځي رضامندۍ له مخې کوم بل سړی د جُمعې د امـــــامت لپاره وټاکي نو د هغه په تابعداري کښې د جُمعې په ادا کېدو کښې هيڅ شك نشته۔ له دې وجهې په موجوده زمانه کښې د جُمعې امـــــامت او د اسې نور لمونځونه صحيح دي۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و لا يجوز اقامتها الا للسلطان او لمن امره السلطان لانها تقام بجمع عظيم و قد تقع المنازعة فى التقدم و التقديم. (الهداية ج۱، ص۱۵۱، باب الجمعة)

قال العلامة الحصكفي: و نصب العامة الخطيب غير معتبر مع وجود من ذكر اقامتها مع عدمهم فيجوز للضرورة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲ ص۱۴۳، باب الجمعة، مطلب فى جواز استنابة الخطيب) و مثله فى امداد الفتاوٰى ج۱، ص۴۲۴، باب صلٰوة الجمعة و العيدين.

## د جُمعې د خطبې او لمانځه لپاره د جلا جلا امامانو حکم

**سوال:** په ځينو ځايونو کښې د جُمعې خطبه يو سړی وايي او لمونځ بل سړی ورکوي۔ آيا د اسې کول جائز دي او که نه او آيا د اعمل د جُمعې په لمانځه څه اثر کوي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې خطبه او لمونځ دواړه تقريبا يو شی دي۔ د دې لپاره د دغو دواړو لپاره بايد چه يو امام وټاکل شي۔ البته که چېرته په کوم ځای کښې د اسې وشي نو د جُمعې لمونځ کيږي ليکن خپل عادت ئې بايد و نه ګرځوی۔ هو! تقرير او د جُمعې خطبه او لمونځ که ځان ځانته سړي ادا کړي نو بيا څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصكفي: لا ينبغى ان يصلى غير الخطيب لانهما كشىء واحد فان فعل بان خطب صبى باذن السلطان و صلى بالغ جاز. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۶۲، باب الجمعة)

و فى الهندية: و لا ينبغى ان يصلى غير الخطيب كذا فى الكافى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فى الجمعة) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۲، ص۲۸۴، الخطبة قبل الجمعة.

## د دوو خطبو په منځ کښې د ناستې اندازه

**سوال:** د دوو خطبو په منځ کښې تر څومره ځنډه پورې کښيناستل سُنت دي؟

**الجواب:** د دوو خطبو په منځ کښې يو ځل دومره پورې کښيناستل چه د بدن ټول اندامونه پخپل ځای باندې آرام ونيسي سُنت دي۔

و فى الهندية: و الخامس عشر الجلوس بين الخطبتين هٰكذا فى البحر الرائق و مقدار الجلوس بينهما مقدار ثلاث آيات فى ظاهر الرواية هٰكذا فى السراج الوهاج ناقلاً عن الفتاوٰى. قال شمس الائمة السرخسي فى تقدير الجلسة بين الخطبتين انه اذ تمكن فى موضع جلوسه و استقر كل عضو منه فى موضعه قام من غير مكث و لبث. كذا فى التاتارخانية و المختار ما قاله شمس الائمة السرخسي. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۴۷، الباب السادس عشر فى الجمعة)

قال العلامة الحصكفي: و يسنُّ خطبتان خفيفتان و تكره زيادتهما على قدر سورة من طوال المفصل بجلسة



بينهما بقدر ثلٰث آيات على المذهب و تاركها مسيء على الاصح. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴۸، باب الجمعة) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۲، ص۲۸۳، الخطبة قبل الجمعة.

## د جُمعې او عيدينو د خطبې ويل په ناستې هم جائز دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د جُمعې او عيدينو خطبې په ناستې ويل هم جائز دي او که په ولاړې ويل ئې ضروري دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جُمعې او عيدينو خطبې په ولاړې باندې ويل سُنت مؤكد دي او په ناستو باندې د سُنتو خلاف دی۔ البته که چېرته کوم شرعي عذر وي نو بيا په ناستو سره هم پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصكفي: و يُسنُّ خطبتان...... و طهارته و ستر عورة قائماً. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۰، باب الجمعة)

قال الشيخ وهبة الزحيلي: قال الحنفية...... و يخطب قائما...... و لو خطب قاعداً او على غير طهارة جاز لحصول المقصود الا انه يكره لمخالفته الموروث (الفقه الاسلامى و ادلته ج۲،ص۲۸۳، باب الجمعة، الخطبة قبل الصلٰوة) ومثله فى امداد الفتاوٰى ج۱، ص۴۲۸، باب صلٰوة الجمعة و العيدين.

## غير مستقل امام يا خطيب د جُمعې او عيدينو لمونځونه ورکولی شي

**سوال:** که چېرته کوم ديني عالم د کوم جومات امام يا خطيب نه وي او د عيد لمونځ خلکو ته ورکړي نو د عيد لمونځ ادا کيږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه يوه عالم ئې په نه کيدو باندې خبره کړې ده؟

**الجواب:** مناسبه او بهتره د اده چه د جُمعې او اخترونو لمونځونه د هم هغه جومات امام او خطيب پخپله ورکړي او که چېرته هغه امام يا خطيب کوم شرعي عذر ولري نو د کوم بل ديني عالم لپاره د جُمعې او اخترونو د لمونځونو ورکول له کراهيت پرته جائز دي۔ البته که چېرته کوم شرعي عذر نه وي نو په دې صورت کښې اګر که د عيدينو او جُمعې لمونځونه خو کيږي ليکن د اولٰى خلاف دي۔

لما قال العلامه الحصكفي: الشرط الخامس للجمعة لكن سيجيء انه لا يشترط الامام و الخطيب. (و قال بعد صفحات)..... لا ينبغى ان يصلى غير الخطيب...... جاز هو المختار. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵۱/۱۶۲، باب الجمعة)

قال الشيخ وهبة الزحيلي: و لا يشترط اتحاد الامام و الخطيب لكن لا ينبغى ان يصلى غير الخطيب لانهما كشىء واحد. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۲. ص۲۸۴، الخطبة قبل الصلٰوة، باب الجمعة) و مثله فى امداد الفتاوٰى ج۱، ص۴۲۶، باب صلٰوة الجمعة و العيدين.

## د خطيب لپاره د خطبې په دوران کښې له کوم منکر څخه د منع کولو حکم

**سوال:** د جُمعې د خطبې په دوران کښې د جومات په سرای کښې څو هلکانو شور او غوغا کوله چه ناڅاپه خطيب هلکانو ته وويل چه چپ شی او په آرام سره کښينی۔ د پوښتنې خبره د اده چه آيا د خطبې په دوران کښې د خطيب صاحب د اويل صحيح دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې د خطبې په دوران كښې اګر كه خبرې كول ناجائز دي ليكن خطيب د امر با لمعروف او نهى عن المنكر لپاره له دې څخه مستثنىٰ دى۔ كه چېرته هغه د خطبې په دوران كښې يو څوك له منكر او ناجائز كار څخه منع كړي نو په دې كښې څه بدي نشته او نه په دې سره په خطبې باندې كوم اثر لويږي۔

لما فى الهندية: و يكره للخطيب ان يتكلّم فى حال الخطبة الا ان يكون امراً با لمعروف. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۹٤، باب الجمعة)

قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: يكره للخطيب ان يتكلم فى حالة الخطبة للاخلال با لنظم الا ان يكون امر بمعروف لقصة عمرؓ و عثمانؓ و هى معروفة. (فتح القدير ج۱، ص۳۰، باب الجمعة و من شرائطها الخطبة)

## د اخترونو د لمانځه اصل وخت

**سوال:** د اخترونو لمونځونه د لمر له ختو څخه څومره وروسته بايد ادا شي؟

**الجواب:** چه كله لمر ديوې نيزې په اندازه را وخيژي له هغه وخت څخه را ونيسه تر زواله پورې د اخترونو لمونځونه جائز دي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و وقتها من الارتفاع قدر رمح فلا يصح قبله بل تكون نفلا محرما الى الزوال باسقاط الغاية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۷۱، باب صلٰوة العيدين)

قال العلامة حسن بن العمار الشرنبلالىؒ: و ابتداء وقت صحة صلٰوة العيد ارتفاع الشمس قدر رمح او رمحين حتٰى تبيض للنهى عن الصلٰوة وقت الطلوع ان ان تبيض لانه ﷺ كان يصلى العيد حتٰى ترفع الشمس قدر رمح او رمحين فلو صلوا قبل ذٰلك لا تكون صلٰوة عيد بل نفل محرما. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص٤٣٦، باب صلٰوة العيدين) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۱٤، الفصل الرابع و العشرون فى صلٰوة العيدين.

## د حنفي مذهب لپاره په شافعي مذهب امام پسې د اختر د لمانځه د اداكولو حكم

**سوال:** مونږ د كاروبار لپاره په سعودي عرب كښې اوسيږو۔ د اخترونو په لمونځونو كښې زمونږ امام شافعي مذهب وي كوم چه تكبيرات زوائد له شپږو څخه زيات يعنې دولس تكبيرونه وايي۔ آيا مونږ په داسې امام پسې اقتداء كولى شو او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** په عيدينو كښې تكبيرات زوائد د شريعت له مخې مختلف فيه مسئله ده۔ احنافوؒ شپږو ته ترجيح وركړې دى په داسې حال كښې چه نورو ائمه وو دولسو ته ترجيح وركړې دى۔ لكه څرنګه چه دا اجتهادي ترجيح ده د دې لپاره له شپږو څخه په زياتو تكبيراتو ويونكو پسې په اقتداء كښې كوم حرج نشته۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و لو زاد تابعه الى ستة عشر لانه ماثور آه. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله الى ستة عشر) كذا فى البحر عن المحيط و فى الفتح: قيل يتابعه الى ثلٰث عشرة و قيل الى ستة عشر آه...... فهذا يؤيد القول الاول و لذا قدمه فى الفتح و نسبه فى البدائع الى عامة المشائخ على ان ضم الثلاث الاصلية الى الزوائد بعيد جداً لان



القرأة فاصلة بينهما. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۲، باب صلٰوة العيدين، مطلب امر الخليفة لا يبقى بعد موته)

قال محمد فى الجامع: اذا دخل الرجل مع الامام و فى صلٰوة العيد و هٰذا الرجل يرىٰ تكبير ابن مسعود رضى الله عنهما فكبر الامام غير ذٰلك اتبع الامام الا اذا كبر الامام تكبيراً لم يكبره احد من الفقهاء فحينئذ لا يتابعه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱٥۱، باب صلٰوة العيدين)

## عيدګاه ته د تلو په وخت كښې تكبيرات په زوره ويل كيږي او كه په پټه

**سوال:** آيا د لوى اختر د لمانځه لپاره عيدګاه ته د تلو په وخت كښې په لارې تكبيرات په لوړ آواز سره ويل كيږي او كه په پټه يعنې په ټيټ آواز سره؟

**الجواب:** د لوى اختر د لمانځه لپاره عيدګاه ته د تلو په وخت كښې تكبيرات په لوړ آواز سره ويل كيږي په داسې حال كښې چه د كوچني اختر د لمانځه لپاره د تلو په وخت كښې تكبيرات په پټه (په زړه كښې) ويل كيږي۔ همدا له امام ابو حنيفةؒ څخه مروي دى او علامه قاسم بن قطلوبغا هم همدا خبره غوره كړې ده۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و يوم الفطر لا يجهر به عنده و عندهما يجهر و هو رواية عنه و الخلاف فى الافضلية اما الكراهة فمنتفية عن الطرفين. و قد ذكر الشيخ القاسم فى تصحيحه ان المعتدل قول الامام. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۰، باب صلٰوة العيدين، مطلب يطلق المستحب على السنة با لعكس)

قال العلامة الكاسانىؒ: و منها ان يغدوا الى المصلى جاهراً با لتكبير فى عيد الاضحٰى فاذا انتهٰى الى المصلى ترك...... و اما فى عيد الفطر فلا يجهر با لتكبير عند ابى حنيفة الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۹، باب صلٰوة العيدين) و مثله فيه الهندية ج۱، ص۱٥۰، باب صلٰوة العيدين.

## آيا يو اځې په دوه كسانو سره د اختر لمونځ اداكيږي او كه نه؟

**سوال:** زمونږ په كلي كښې د اختر لمونځ يو مولوي صاحب وركوي او خطبه بل مولوي صاحب وايي۔ آيا داسې كول جائز دي او آيا په دې سره په لمانځه باندې څه اثر لويږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** كه چېرته د اختر لمونځ يو مولوي صاحب وركړي او خطبه بل مولوي صاحب ووايي نو په دې سره په لمانځه كښې كوم فرق نه راځي بلكه لمونځ به صحيح وي ليكن مناسبه دا ده چه لمونځ او خطبه دواړه يو امام اداكړي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: ما يسُنُّ فى الجمعة و يكره يسنّ فيها و يكره. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۷٥، باب صلٰوة العيد)

و قال ايضاً: لا ينبغى ان يصلى غير الخطيب لانهما كشىء واحد. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱٦۲، باب الجمعة)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: و يسن فيها ما يسن فى خطبة الجمعة و يكره فيها ما يكره فيها. (كبيرى ص٥۷۱،

باب صلٰوة العيدين)

و فی الهندية: و لا ينبغی ان يصلّی غير الخطيب كذا فی الكافی. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱٤۷، الباب السادس عشر فی الجمعة) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۲۸٤، الخطبة قبل الجمعة.

## د تکبیرات زوائد د هیرېدو حکم

**سوال:** که چېرته کوم امام ته تر سورت فاتحې وروسته ور په زړه شي چه تکبیرات زوائد خو درنه پاتې شول نو په دې حالت کښې به نوموړی امام څه کوي؟

**الجواب:** د عیدینو په لمانځه کښې تکبیرات زوائد واجب دي۔ که چېرته امام ته د سورت فاتحه د ویلو په منځ کښې یا تر سورت فاتحه وروسته ور په یاد شي خو په دې شرط چه بل سورت ئې نه وي لاتلاوت کړی نو په دې صورت کښې به امام لومړی تکبیرونه وایي او بیا به له سره سورت فاتحه او کوم بل سورت وو ایي۔ او که چېرته ئې سورت ویلی وي نو تکبیرات ساقطیږي او سجدهٔ سهو پرې لازمیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: فی البحر عن المحيط بدأ الامام با لقرأة سهواً فتذكر بعد الفاتحة و السورة يمضی فی صلوته و ان لم يقرأ الا الفاتحة كبّر و اعاد القرأة لزوما لان القرأة اذا لم تتم كان امتناعا عن الاتمام لا رفضا للفرض. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۳، باب صلٰوة العيدين، مطلب امر الخليفة لا يبقی بعد موته)

قال العلامة الكاسانیؒ: فاما اذا تذكر قبل الفراغ منها بان قرأة الفاتحة دون السورة ترك القرأة و يأتی با لتكبيرات لانه اشتغل با لقرأة قبل اوانها فيتركها و يأتی بما هو الاهم ليكون المحل محلا له ثم يعيد القرأة لان الركن متٰی ترك قبل تمامه ينتقض من الاصل. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۸، باب صلٰوة العيدين، فصل بيان قدر صلٰوة العيدين و كيفية ادائها) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۶۱، باب صلٰوة العيدين.

## له تکبیرات زوائدو څخه وروسته په لمانځه کښې د شاملېدلو حکم

**سوال:** که چېرته څوك د تکبیرات زوائدو له ویلو وروسته په لمانځه کښې شامل شي نو هغه به په دې حالت کښې څه کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** څوك چه له تکبیرات زوائدو څخه وروسته په لمانځه کښې له امام سره شریك شي نو د هغه څو صورتونه دي:

﴿۱﴾ که چېرته په لومړي رکعت کښې شامل شي نو لومړی به له ځان سره درې تکبیرونه وایي۔

﴿۲﴾ او که چېرته په دوهم رکعت کښې له امام سره شریك شي نو د امام له سلام ګرځولو وروسته چه کله د قضاء شوي رکعت لپاره پورته کیږي نو لومړی به تکبیرات وایي او بیا قرائت او د اسې نور پوره کوي۔

﴿۳﴾ او که چېرته له امام سره په رکوع کښې شامل شي نو که چېرته د رکوع د پیدا کولو هیله وي نو لومړی به تکبیرونه وایي او بیا به له امام سره په رکوع کښې شریکیږي او که چېرته ئې د رکوع د پیدا کولو هیله نه وي نو تکبیرات دې په رکوع کښې وایي۔

﴿٤﴾ او که چېرته د تکبیراتو په دوران کښې امام له رکوع څخه سر پورته کړي نو چه څومره تکبیرونه ئې ویلي وي هغه دې ویلي وي نور ترې ساقطیږي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و لو ادرك المؤتم الامام فی القيام بعد ما كبّر كبّر فی الحال برأی نفسه لانه مسبوق و لو سبق بر كعة يقرأ ثم يكبر لئلا يتوالی التكبيرات. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله فی القيام) ای الذی قبل الركوع اما لو ادركه راكعاً فان غلب علی ظنه ادركه فی الركوع كبر قائماً برأی نفسه ثم ركع و الا ركع و كبّر فی ركوعه خلافا لابی يوسفؒ و لا يرفع يديه لان الوضع علی الركبتين سنة فی محله و الرفع لا فی محله و ان رفع الامام رأسه سقط عنه ما بقی من التكبير لئلا تفوته المتابعة و لو ادركه فی قيام الركوع لا يقضيها فيه لانه يقضی الركعة مع تكبيراتها. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۳، باب صلٰوة العيدين)

قال العلامة ابو بكر الكاسانیؒ: و ان ادركه بعد ما كبر الامام الزوائد و شرع فی القرأة فانه يكبر تكبيرة الافتتاح و يأتی با لزوائد برأی نفسه لا برأی الامام لانه مسبوق و ان ادرك الامام فی الركوع فان لم يخف فوت الركوع مع الامام يكبر الافتتاح قائماً و يأتی با لزوائد ثم يتابع الامام فی الركوع........ فان رفع الامام رأسه من الركوع قبل ان يتمّها رفع رأسه لان متابعة واجبة و سقط عنه ما بقی من التكبيرات لانه فات محلها........ هٰذا اذا ادرك الامام فی الركعة الاولٰی فان ادركه فی الركعة الثانية كبر للافتتاح و تابع الامام فی الركعة الثانية يتبع فيها رأی امامه لما قلنا فاذا فرغ الامام من صلٰوته يقوم الٰی قضاء ما سبق به. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۸/۲۷۹، باب صلٰوة العيدين، فصل بيان قدر صلٰوة العيدين و كيفية ادائها) و مثله فی كبيری ص۵۷۲، باب صلٰوة العيدين.

## د تشریق د تکبیراتو شمیر

**سوال:** تکبیرات تشریق تر فرض لمونځونو وروسته څو څو واره ویل کیږي؟

**الجواب:** تر فرض لمونځونو وروسته یو ځل تکبیرات تشریق یعنې الله اکبر الله اکبر لا اله الاّ الله و الله اکبر الله اکبر و لله الحمد ویل واجب دي۔ له دې څخه زیات یعنې درې واره ویل مستحب دي اګر که ځینو فقهاوو زیات ویل د سُنتو خلاف بللی دی۔ لیکن علامه رافعيؒ له حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه د درې واره ویلو نقل کړی دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: يجب تكبير التشريق فی الاصح للامر به مرة و ان زاد عليها يكون فضلاً قال العينیؒ: صفته الله اكبر الله اكبر لا اِله الاّ الله و الله اكبر الله اكبر و لله الحمد.

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و ان زاد الخ) افاد ان قوله مرة بيان للواجب لٰكن ذكر ابو السعود ان الحموی نقل عن القر احصاری ان الاتيان به مرّتين خلاف السنة. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۸، باب صلٰوة العيدين)

قال العلامة عبد القادر الرافعیؒ: (تحت قول خلاف السنة) لٰكن ا[illegible]اج ابن المنذر ان ابن عمرؓ كان يكبر ثلاثا و لاداء الصلٰوة يقول لا اله الا الله وحده لا شريك لهٗ له الملك و له الحمد و هو علٰی كل شیء قدير. (تقريرات رافعی علی رد المحتار ج۱، ص۱۱۶، باب صلٰوة العيدين) و مثله فی الطحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص٤٤۲، باب صلٰوة العيدين.

## د اختر تر لمانځه وروسته د تکبیرات تشریق د ویلو حکم

**سوال:** په فقهي ذخائرو کښې د تکبیرات تشریق په باره کښې د هر فرض لمانځه وروسته د ویلو حکم راغلی دی۔ زمونږ د کلي امام ئې د لوی اختر تر لمانځه وروسته هم د ویلو امر کوي۔ آیا د ده دا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** تر هر فرض لمانځه وروسته یو ځل د تکبیرات تشریق ویل واجب دي او د اختر تر لمانځه وروسته ویل مستحب دي۔ فقهاء کرامو په دې باندې تصریح کړې ده۔ د دې لپاره ستاسو د جومات د امام عمل صحیح دی او په فقهي ذخائرو کښې د دې عمل سره څه تعارض نشته۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و لا بأس بهٖ عقب العید لان المسلمین توارثوه فوجب اتباعهم و علیه البلخیون.

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله لا بأس بهٖ) قد استعمل فی المندوب كما فی البحر من الجنائز و الجهاد و منه هٰذا الموضع لقولهٖ فوجب اتباعهم قوله فوجب الظاهر ان المراد با لوجوب الثبوت لا الوجوب المصطلح علیه و فی البحر عن المجتبٰی و البلخیون یكبرون عقب صلٰوة العید لانها تؤدی بجماعة فاشبهت الجمعة. (رد المحتار ج۲، ص ۱۸۰، باب صلٰوة العیدین، مطلب كلمة لا بأس الخ)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و لا بأس با لتكبیر عقب صلٰوة العیدین كذا فی المبسوط ابی اللیث التوارث المسلمین ذٰلك. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۴۴۴، باب صلٰوة العیدین)

## د تکبیرات تشریق د هیریدلو حکم

**سوال:** که چېرته له چا څخه تکبیرات تشریق هیر شي نو آیا په هغه باندې ئې دوباره ویل واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له چا څخه تکبیرات تشریق هیر شي او په همدې حالت کښې له جومات څخه وتلی وي یا په کوم کار کښې مشغول شوی وي نو د اسې سړي له ذمې څخه تکبیرات ساقطیږي۔ البته که چېرته پخپل ځای باندې ناست وي نو یوائې د ځنډ له وجهې ئې تکبیرات له ذمې نه ساقطیږي او ویل ئې پرې ضروري دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: عقب كل فرض عینی بلا فصل یمنع البناء فلو خرج من المسجد او تكلم عامداً او ساهیاً او احدث عامداً سقط عنه التكبیر و فی استدبار القبلة روایات و لو احدث ناسیاً بعد السلام الاصح انه یكبر و لا یخرج للطهارة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۷۹، باب صلٰوة العیدین)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و قالا ای ابو یوسف و محمد رحمهما الله یجب التكبیر فور كل فرض علی من صلاه و لو كان منفرداً او مسافراً او قرویاً لانه تبع للمكتوبة من فجر عرفة الٰی عقب عصر الیوم الخامس من یوم عرفة فیكون الٰی آخر ایام التشریق و به ای بقولهما یعمل و علیه الفتوٰی. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۴۴۳، باب صلٰوة العیدین)



## په تکبیرات تشریق کښې مفتٰی بهٖ قول

**سوال:** په تکبیرات تشریق کښې چه د احنافو د امامانو کوم اختلاف دی نو په هغو کښې آیا د امام صاحبؒ رأیه مفتٰی بهٖ ده او که د صاحبینوؒ۔ مهرباني وکړی له حوالې سره ځواب راکړی؟

**الجواب:** د امام ابو حنیفةؒ په نزد تکبیرات تشریق د عرفې د ورځې له سهار څخه واخله د اختر د ورځې (لسم د ذي الحجې) تر مازدیګر پورې په هر هغه سړي واجب دی چه فرض لمونځ په جماعت سره ادا کړي۔ او د صاحبینوؒ په نزد د عرفې د ورځې له سهار څخه واخله د ذي الحجې د میاشتې د دیارلسمې ورځې تر مازدیګر پورې په هر هغه مسلمان عاقل او بالغ باندې واجب دی چه فرض لمونځ کوي که سړی او که ښځه، متاخرینو فقهاوو د صاحبینوؒ رأیه مفتٰی بهٖ ګرځولې ده۔

قال العلامة الحصكفیؒ: قالا بوجوبه فور كل فرض ملطقاً و لو كان منفرداً او مسافراً او قرویاً لانه تبع للمكتوبة الٰی عصر الیوم الخامس آخر یوم التشریق و علیه الاعتماد و العمل و الفتوٰی فی عامة الامصار و كافة الاعصار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۱۸۰، باب صلٰوة العیدین)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و قالا ای ابو یوسف و محمد رحمهما الله یجب التكبیر فور كل فرض علی من صلاه و لو كان منفرداً او مسافراً او قرویاً لانه تبع للمكتوبة من فجر عرفة الٰی عقب عصر الیوم الخامس من یوم عرفة فیكون الٰی آخر ایام التشریق و به ای بقولهما یعمل و علیه الفتوٰی. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۴۴۳، باب صلٰوة العیدین) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۶۶، باب صلٰوة العیدین.

## د تکبیرات زوائد په وخت کښې د لاسونو تر نامه لاندې تړل د سُنتو خلاف دی

**سوال:** آیا د تکبیرات زوائد په وخت کښې لاسونه د نامه لاندې تړل کیږي او که کښته زوړند یږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د تکبیرات زوائد د ویلو په وخت کښې د لاسونو کښته زوړندول مسنون دي او د نامه لاندې نیول ئې د سُنتو خلاف دی۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و یرفع یدیه عند كل تكبیرة منهن و یرسلهما فی اثنائهن...... فاذا قام الی الركعة الثانیة یبتدی با لقرأة ثم یكبر بعدها ثلٰث تكبیرات علی هیئة تكبیرة الاولٰی. (كبیری ص۵۶۷، باب صلٰوة العیدین)

و فی الهندیة: و یرفع یدیه فی الزوائد و یسكت بین كل تكبیرتین مقدار ثلاث تسبیحات كذا فی التبیین و به افتی مشائخنا و یرسل الیدین بین التكبیرتین و لا یضع هٰكذا فی الظهیریة (الهندیة ج۱، ص۱۵۰، الفصل السابع عشر فی صلٰوة العیدین) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۵، ص۲۲۸، مسائل نماز عیدین.

## په دوه یا درې سوه کسیزه کلي کښې د اختر د لمانځه حکم

**سوال:** د کوم کلي آبادي چه له دوه یا درې سوه کسانو څخه جوړه شوې وي نو آیا په د اسې کلي کښې د اختر لمونځ جائز دی او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جُمعې غوندې د احنافو په نزد د اختر د لمانځه لپاره هم ښار یا د لوی کلي

موجودوالی شرط دی۔ چونکه د صورت مسئوله مطابق په داسې کلي باندې د ښار یا د لوی کلي تعریف نه صادقیږي نو ځکه په هغه کښې د اختر لمونځ جائز نه دی۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: و تقع فرضاً فی القصبات و القری الکبیرة التی فیها اسواق....... و فیما ذکرنا اشارة الی انه لا تجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاض و امیر. (رد المحتار ج۲، ص۱۳۸، باب الجمعة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: لا تصح الجمعة الا فی مصر جامع او فی مصلّی المصر و لا تجوز فی القری لقوله علیه السلام لا جمعة و لا تشریق و لا فطر و لا اضحیٰ الا فی مصر جامع و المصر الجامع کل موضع له امیر و قاض ینفذ الاحکام و یقیم الحدود. (الهدایة ج۱، ص۱۴۸، باب صلٰوة الجمعة) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۵، ص۲۲۳، مسائل نماز عیدین.

## د اختر د لمانځه لپاره عیدګاه ته په پښو باندې تلل سُنت دي

**سوال:** د اختر د لمانځه لپاره عیدګاه ته په پښو باندې تلل سُنت دي او که په سورلۍ کښې تلل بهتر دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهې په کتابونو کښې په تصریح سره دا خبره موجوده ده چه د اختر د لمانځه لپاره په پښو باندې تلل سُنت دي البته که چېرته د بیرته راتګ په صورت کښې په سورلۍ باندې راشي نو پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: ثم خروجه...... ماشیاً الی الجنانة هی المصلی العام و الواجب مطلق التوجه....... و لا بأس بعوده راکباً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۸۶، باب العیدین)

و فی الهندیة: و الخروج الی المصلی ماشیا و الرجوع فی طریق آخر کذا فی القنیة و لا بأس با لرکوب فی الجمعة و العیدین و المشي افضل فی حق من یقدر علیه کذا فی الظهیریة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۹، الباب السابع عشر فی صلٰوة العیدین) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۴۳۵، باب صلٰوة العیدین.

## د یوه کلي کښې په دوو عیدګاوو کښې د اختر د لمانځه حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې دوه عیدګاوې دي چه په دواړو کښې د اختر لمونځونه کیږي۔ آیا په دوه عیدګاوو کښې په یوه وخت او یوه کلي کښې د اختر لمونځونه جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د یوه ښار یا یوه کلي په ګڼو ځایونو کښې د اختر د لمانځه ادا کول جائز دي۔ د دې لپاره ستاسو په کلي کښې په دواړو عیدګاوو کښې د اختر د لمونځونو په ادا کولو کښې کوم حرج نشته۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و تؤدی بمصر واحد بمواضع کثیرة اتفاقاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۷۶، باب العیدین)

و فی الهندیة: و تؤدی الجمعة فی مصر واحد فی مواضع کثیرة و هو قول ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالی و هو الاصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۴۵، الباب السادس عشر فی صلٰوة الجمعة) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۵، ص۲۰۸، مسائل نماز عیدین.



## د تشـــریق په ورځو کښې د قضایي لمونځونو نه وروسته د تکبیرات تشریق د لوستلو حکم

**سوال:** یو سړی د تشریق په ورځو کښې خپل قضا شوي لمونځونه راګرځوي نو آیا هغه به د قضایي لمونځونو نه وروسته د تشریق تکبیرونه لولي او که نه؟

**الجواب:** علامه ابن عابدینؒ په شامي کښې د دې مختلف صورتونه لیکلي دي۔

﴿۱﴾ د تشریق له ورځو بغیر د نورو ورځو د لمونځونو قضایي د تشریق په ورځو کښې ادا کول۔

﴿۲﴾ د تشریق د ورځو قضاء شوي لمونځونه په همدغو ورځو کښې راګرځول۔

﴿۳﴾ د یوه کال د تشریق د ورځو قضاء شوي لمونځونه د بل کال د تشریق په ورځو کښې ګرځول۔

﴿۴﴾ د یوه کال د تشریق د ورځو قضاء شوي لمونځونه د هم هغه کال د تشریق په ورځو کښې ګرځول۔

په دغو ټولو صورتونو کښې یوائې په آخري صورت کښې تر قضایي لمونځونو وروسته تکبیرات تشریق ویل کیږي په نورو صورتونو کښې نه ویل کیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او قضٰی فیها منها من عامه لقیام وقته کا لاضحیة. قال ابن عابدینؒ: تحته المسئله رباعیة فائتة غیر العید قضاها فی ایام العید فائتة ایام العید قضاها فی غیر ایّام العید فائتة ایام العید قضاها فی ایّام العید عام آخر، فائتة ایام العید قضاها فی ایام العید من عامه ذٰلك لا یکبر الا فی الاخیر فقط. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۹، باب العیدین)

قال السید احمد الطحطاویؒ: تحت (قوله و قضی فیها) و المسئلة رباعیة فائتة غیر العید قضاها فی ایام العید فائتة ایام العید قضاها فی غیر ایام العید فائتة ایام العید قضاها فی ایام العیدین من عام آخر و فائتة ایام العید قضاها ایام العید من عامه ذٰلك و لا یکبر الا فی الاخیر فقط. (الطحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۳۵۶، باب العیدین)

## د احنافوؒ په نزد په عیدینو کښې د تکبیرات زوائدو شمیر

**سوال:** د احنافوؒ په نزد د عیدینو په لمانځه کښې د تکبیرات زوائدو تعداد څومره دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عیدینو په لمانځه کښې د تکبیرات زوائدو مسئله د فقهاوو تر منځ مختلف فیه ده۔ د احنافوؒ په نزد تکبیرات زوائد شپږ دي یعنې په هر رکعت کښې درې تکبیرونه۔ لومړی رأیه د عبد الله بن مسعودؓ او نورو ګبارو صحابه کرامو ده۔ او یو روایت له عبد الله بن عباسؓ څخه هم مروي دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یُصلّی الامام بهم رکعتین مثنیا قبل الزوائد و هو ثلاث تکبیرات فی کل رکعة.

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله ثلاث تکبیرات) هذا مذهب ا ن مسعودؓ و کثیر من الصحابةؓ و روایة ابن عباسؓ و به اخذ ائمتنا الثلاثة. (رد المحتار ج۲، ص۱۷۲، باب العیدین، قبل م لملب..... الخ)

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و یصلّی الامام با لناس ِکعتین یکبر فی الاول للافتتاح و ثلاثا بعدها ثم یقرأ

الفاتحة و سورة و یکبر تکبیرة یرکع بها ثم یبتدی فی الرکعة الثانیة با لقرأة ثم یکبر ثلاثا بعد و یکبر رابعة یرکع بها، و هذا قول ابن مسعودؓ و هو قولنا. آه قال بدر الدین العینیؒ (تحت قوله و هو قولنا) ای قول ابن مسعود مذهبنا و هو مذهب جماعة من الصحابة و التابعین علی ما ذکرناه انفا. (البنایة شرح الهدایة ج۳، ص۳۶۳/۳۶۴، باب صلوٰة العیدین) و مثلی فی کبیری ص۵۶۹، باب صلوٰة العیدین.

## په واړه کلي کښې د جاري شوي جُمعې لمانځه د بندولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په کلي (بټنګي هزاره) کښې تقریباً له اتو کلونو څخه د جُمعې لمونځونه کیږي. د تبلیغ، درود او سلام سلسله هم جاري ده، په همدې اوس حال کښې چه یو مولوي صاحب دا کلی په واړه کلي کښې د شمارلو په صورت کښې عوام د جُمعې له لمانځه څخه بند کړل. د کلي آبادي په دې ډول دی چه کورونه تقریبا ۳۰۰، ووټ ۸۰۰، جوماتونه ۸ دي، یو ابتدایي مکتب، یو وړوکی بازار، ټوله آبادي تقریبا ۴۰۰۰، یو نمبردار، یو پټواري، یو د یونین کونسل ممبر، یو څوکیدار، یو د مکتب معلم هم شته. دا کلی د یونین کونسل له خوا څخه یو جلا وارډ دی، د کلي ټول بالغ کسان که چېرته سره یو ځای شي نو په یوه لوی جومات کښې نه شي ځاییدلی. د پورتني معلوماتو په رڼا کښې شرعي حکم صادر کړی چه که چېرته په رښتیا هم په دې کلي کښې د جُمعې لمونځ نه کیږي چه د راتلونکي لپاره پرېښودل شي او د مخکښینیو لمونځونو قضایي را وګرځول شي.

**الجواب:** جناب ته به معلومه وي او د فقهې په کتابونو کښې به ئې کتلي وي چه زمونږ د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په مسلك کښې د جُمعې د صحت او جواز لپاره له نورو شرائطو سره سره یو شرط دا هم دی چه هغه ځای به یا ښار وي او یا به د ښار فناء وي. که چېرته هغه ځای ښار یا د ښار فناء نه وي نو اګر که نور شرائط پکښې پوره وي بیا هم د امام اعظم ابو حنیفةؒ په نزد هلته به جُمعه جائزه او صحیح نه وي. د ښار په تحدید او اندازه کښې اګر که د فقهاوو پخپل منځ کښې اختلاف لیدل کیږي او د ښار ئې مختلف تعریفونه کړي دي چه له هغو څخه یو تعریف دا دی چه: ما لا یسع اکبر مساجده اهلهٗ المکلفین بها. او دوهم تعریف کوم چه ظاهر المذهب ورته ویل شوي دي دا دی چه: انهٗ کل موضعٍ له امیر و قاض یقدر علی اقامة الحدود. (الدر المختار)

علامه ابن عابدین چه په شامي سره مشهور دی له "شرح منیه" څخه چه کوم صحیح حد او اندازه را نقل کړې ده او کومه چه صاحب د هدایې غوره کړی دی هغه دا دی چه: انه الذی لهٗ امیر و قاضٍ ینفذ الاحکام و یقیم الحدود.

په هر حال د ښار د تحدید په باره کښې ډیر قولونه راغلي دي چه په ځینو کښې افراط او په ځینو کښې تفریط، ځینې اعدل او اوسط دي او هم هغه د قبول ډیر حقداره هم دي.

د صورت مسئوله مطابق نوموړی کلی په هر حال کښې د اعدل الاقاویل له مخې په ښار کښې خو داخل نه دی لیکن د فقهاوو له تصریحاتو څخه دا ثابتیږي چه قصبې او لوی کلي



هم د ښار په حکم کښې دي. لکه څرنګه چه د رد المحتار په ج۱، ص۷۴۸ کښې په صراحت سره راغلي دي چه: و عبارة القهستانی و تقع فرضاً فی القصبات و القری الکبیرة التی فیها اسواق الی قوله لا یجوز فی الصغیرة التی لیس فیها قاضی و منبر و خطیب آه.

او د سوال نوموړي حالت ته په کتو سره دا کلی په لوی کلي کښې خامخا داخل معلومیږي او د کبیره او صغیره تر منځ فرق که چېرته د آبادۍ اندازه واخیستله شي نو مدار به ئې په عرف پورې تړلی وي او د عرف له تتبع څخه څرګندیږي چه د وخت حاکمان کوم چه د تمدن حکیمان هم دي د څلورو زرو آبادي لرونکي کلی په قصبه کښې شماروي. او څلورو زرو ته ور نژدې د نه معتبر والي له وجهې د کسر له مخې د څلورو زرو په حکم کښې دی. پس نوموړی کلی که چېرته قصبه نه دی نو په لوی کلي والي کښې ئې خو شك او شبهه نشته. په دې بناء باندې خو مناسبه دا ده چه په نوموړي کلي کښې د جُمعې د لمانځه جواز ومنل شي. لیکن فقهاوو د واړه او لوی کلي کښې د فرق له مخې هغه صفات را اخیستي دي کوم چه په مرقومه عبارت کښې د واړه او لوی کلي په صفت کښې وارد دي. یعني اسواق، حاکم، د خطیب موجود والی یا نه موجود والی، په دې بناء باندې نوموړی کلی په قریهٔ کبیره کښې داخل نه دی او د جُمعې د لمانځه جواز نه شي تسلیمیدلی ځکه چه په دې ځای کښې یو وړوکی غوندې بازار دی کوم چه د کوچني کلي نښه ده. په ښار او لوی کلي کښې خو کم تر کمه باید دړې بازارونه خو وي. د محقق ابن الهمامؒ له خبرو څخه څرګندیږي چه له حاکم څخه لوی حاکم یعني قاضي او والي مراد دی کوم چه هم هلته به مقیم وي. دا صفت هم په نوموړي کلي کښې نشته. د دې لپاره دا کلی دې باید په صغیره کلي کښې وګڼل شي. او چه کله قریهٔ صغیره شي نو بیا د جُمعې د جواز تر څنګ څو نور مفاسد ورسره زیاتیږي ځکه چه بیا د جُمعې لمونځ نفل وي او نفل په تداعي او جماعت سره مکروه دی. ماسپښین کوم چه اصل فرض دی د هغه پرېښودل یا د جماعت پرېښودل لازمیږي. د دې لپاره ذاتي مشوره دا ده او د دیوبند اکابرینو هم دا لیکلي دي چه که چېرته په یوه واړه کلي کښې له ډیر وخته راهیسې د جُمعې لمونځ کیده او د هغه په بندولو کښې د فساد او فتنې خطره وه نو هغه په چټکۍ سره بندوی مه بلکه د جُمعې لمونځونه پکښې کوی او خلك په قراره قراره پوه کوی چه لکه څرنګه چه دا ځای نه ښار دی او نه د لوی کلي په حکم کښې راځي او زمونږ په مذهب کښې په داسې ځای کښې د جُمعې لمونځ نه کیږي او خپل کور ته لاړ شی څلور رکعته د آخر ماسپښین په نیت سره ادا کړی. په دې طریقې سره مسئله هم صحیح څرګندیږي او فساد هم منځ ته نه راځي. فقط و الله اعلم.

## د جُمعې د خطبې په باره کښې څو پوښتنې

**سوال:** څه فرمایي د دین او شرع متین علماء کرام د دې مسائلو په باره کښې چه:

﴿۱﴾ د جُمعې خطبه دې په دستور سره په عربي ژبې باندې پرېښودل شي او که د عوامو د

پوهنې په خاطر دې په مقامي ژبې باندې هم جاري کړی شي؟

﴿۲﴾ که چېرته خطبه په عربي ژبې باندې پرېښودل شي نو کوم خلك چه د عربي ژبې په پوهه کښې مشکل لري د هغه حل به څه وي؟

﴿۳﴾ په خطبه کښې دې د وخت د بادشاه نوم واخيستل شي او که نه؟

**الجواب:** ﴿۱﴾ په دې مسائلو باندې له ډېرې زمانې راهيسې راسخينو علماء کرامو د قران، حديث او حنفي فقهې په رڼا کښې خپلې فتواوې د رسالو په شکل کښې شائع کړي دي۔ او د قوي دلائلو له مخې ئې دا ثابته کړې ده چه که چېرته د جُمعې او عيدينو کښې خطبه د عربي ژبې په ځای په اردو يا فارسي کښې ووېل شي نو د امام اعظم رحمه الله په نزد به دا مکروه تحريمي وي۔ او د صاحبينوؒ په نزد په يوه قول کښې خو به خطبه بالکل صحيح نه وي۔ او چه کله خطبه ادا نه شي نو د جُمعې لمونځ نه کيږي ځکه چه د جُمعې د اداکولو له شروطو څخه يو شرط خطبه هم ده۔ حضرت مولانا مفتي عزيز الرحمٰن صاحبؒ په فتاوٰی دار العلوم ديوبند کښې د ''عزيز الفتاوٰی'' په برخه کښې د دې فتوٰی په دلائلو کښې د ''دُر مختار'' دا عبارت وړاندې کوي چه: و الرابع الخطبة فيه فلو خطب قبله و صلّٰى فيه لم تصح. در مختار باب الجمعة كما صح لو شرع بغير عربية الخ. و شرط عجزه و على هذا الخلاف لو سبح فى الفارسية فى الصلٰوة او دعا الخ. اى يصح عنده لٰكن هيناتى كراهة الدعاء بالاعجمية الخ. شامى باب صفة الصلٰوة و فى باب الجمعة من رد المحتار لم يقيد الخطبة با لعربية اكتفاء بما قدمه فى باب صفة الصلٰوة من انها غير شرط و لو مع القدرة على العربية عنده خلافاً لهما حيث شرطاها الا عند العجز الخ.

له دې عباراتو څخه څرګندېږي چه په عربي ژبې باندې د قدرت تر څنګ په اردو، فارسي يا نورو ژبو باندې د خطبې ويل د صاحبينوؒ په نزد او د هغو د قول مطابق صحيح نه دي۔ او د امام صاحبؒ په نزد اګر که خطبه اداکيږي ليکن مکروه تحريمي به وي۔

همدارنګه مولانا محمد تميم بن محمد الدراسي، په دې موضوع باندې دوه رسالې د زبدة التحقيقات او عمدة التحقيقات فى اكراهة الخطبة بغير العربية تاليف. کړي دي۔ چه مفتي اعظم پاکستان حضرت مولانا مفتي محمد شفيع پرې تقريض ليکلی د،۔ په همدې ډول حضرت مفتي صاحب هم په دې موضوع باندې يوه مستقله رساله په نامه د ''الاعجوبه'' ليکلې ده۔ حضرت مفتي صاحب په تقريظ کښې ليکلي دي چه: الخطبة با لعربية سنة مؤكدة لمواظبة النبى عليه الصلٰوة و السلام لا يقال ان المواظبة تكون دليل السنة اذا لم يكن ثمه دليل الخصوص و كفٰى كونه عليه الصلٰوة و السلام عربياً و كون لغته عربية دليل الخصوص فانا نقول ان الخلفاء الراشدون و من سواهم من اصحابه عليه الصلٰوة و السلام بلغوا مشارق الارض و مغاربها و افتتحوا العرب و العجم و لم يثبت من احد منهم انه خطب بغير العربية مع القدرة عليه لما ثبت من كثير من الصحابة معرفتهم بلغة العجم و قدرتهم على الخطبة بها كزيد بن ثابت رضى الله تعالٰى عنه كان يعلم اللسان العجمى و الحبش و الرومى و كسلمان الفارسىؓ كان يعلم الفارسية و مع ذٰلك لم يأمرهم النبى ﷺ با لخطبة بلسان العجم مع مس الحاجة اليه و معرفتهم به فى شىء من الاحاديث على انه قد ثبت من الاحاديث الصحيحة و السيرة النبوية حضور



العجمين عنده ﷺ وحدانا و جماعات و كانوا اوّل امرهم لا يعرفون العربية فان كان تفهيم الخطبة الحاضرين من ضروريات الخطبة فقد مس الحاجة الٰى ترجمتها بلسانهم و لم يفعله النبى ﷺ مع القدرة عليه باقامة الترجمان من جماعة الصحابة فعلم ان مواظبة عليه السلام على اللغة العربية فى الخطبة ليس لمحض كونه عربياً و على سبيل جريان العادة كما ظنه بعض الفضلاء بل كان ذٰلك مقصوداً منه عليه الصلٰوة و السلام و الحاصل ان جعل الخطبة با لعربية سنة مؤكدة.

په دې تقريظ کښې د هند محدث حضرت شاه ولي الله صاحبؒ حجة الله فى ارض الله قول را نقل کوي کوم چه هغه په شرح د مؤطا کښې کړې ده۔ و لما لاحظنا خطب النبى ﷺ و خلفائه و هلم جرا فنقحنا وجود اشياء فيها الحمد و الشهادتين و الصلٰوة على النبى ﷺ و الامر با لتقوٰى و تلاوة آيته و الدعاء للمسلمين فى المشارق و المغارب بہ مع ان فى كثير من الاقاليهم كان المخاطبون اعجمين.

مخکښې د امام نووي رحمه الله قول را نقل کوي کوم چه هغه د ''اذکار کتاب حمد الله تعالٰی'' کښې ذکر کړې ده: و يشترط كونها يعنى خطبة الجمعة و غيرها با لعربية انتهى و الحاصل ان اللغة العربية فى الخطبة سنة مؤكدة عندنا و لٰكن ترك العربية و جعلها با لعجمية مكروه تحريماً و تاركها آثم و لا سيماً المدمن عليه.

په دې موقع باندې د تقريظ صاحب د يوه اعتراض په نقل کولو سره د هغه دفع هم کوي: و لا يرد علينا ما نص عليه فى رد المحتار من ان ترك الواجب مكروه تحريماً و ترك السنة تنزيهاً و ايضاً صرح به الحلبى فى شرح المنية حيث قال و المراد بها ما لزمه ترك السنة و هو كراهة تنزيهة او ترك واجب و هو كراهة تحريم كما ذكره المصنفؒ فى رسالته هٰذه زبدة التحقيقات و ذٰلك لان الحكم بتنزيهية الكراهة فى ترك السنة انما هو اذا لم يخالطه غيره من احداث بدعة او ادمان على تركها و الا فا لفقهاء مصرحون بكونهٖ آثماً ضالاً. قال الشامىؒ فى اوائل سنن الوضوء و هو سنن المؤكدة القريبة من الواجب التى يضلل تاركها لان تركها استخفاف با لدين. (ج۱، ص۹۶) ثم قال فى المضمضة و الاستنشاق فلو تركهما اثم على الصحيح. (سراج) و قال فى الحلينه لعله محمول على ما اذا جعل الترك عادة لهٗ من غير عذرٍ كما قالوا مثله فى التثليث. (شامى ج۱، ص۱۰۸) و قال فى البدائع لان من لم ير سنة رسول الله ﷺ سنة فقد ابتدع فيلحقه الوعيد. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۲) قلت و المراد با لوعيد قوله عليه السلام فى حديث الاعرابى من زاد على هٰذا او نقص فقد تعدّٰى و ظلم. و من هٰذه الجملة وضح ان تارك العربية فى الخطبة آثم مبتدع فانه لا يراه سنة فا لحاصل ان اختصاص اللغة العربية فى الخطبة و ان كان فى الاصل من السنن الا انه لحق بتركه امور آخر من ابداع بدعة و آثم الادمان على ترك السنة و ترك البدعة واجب فجاء الوجوب من هٰذا القبيل لا بمحض المواظبة عليه و با لجملة فا لحكم بوجوب العربية و آثم تاركها فى خطبة الجمعة و ان ترجمتها بغير العربية بدعة حق لا ريب.

همدا ډول حکيم الامت حضرت تهانوي رحمه الله هم په ''امداد الفتاوٰی'' کښې ليکلي دي چه: ''د قرآن کريم او خطبې دواړو اصل مقصد يو شی دی۔ چنانچه خطبې ته قرآنکريم ذکر الله ويلي دي او همدغه د ذکر لفظ ئې د قرآن کريم لپاره هم ويلي دي اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَ اِنَّا لَهٗ لَحَافِظُوْنَ

بلکه د قرآن مجيد لپاره د ذکرٰی لفظ د تذکير په معنٰی سره هم راغلی دی چه اِنْ هُوَ اِلاَّ ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ

پس که چېرته د ذکر لفظ په دې باندې د ال وي چه له دې ځخه خلکو ته د هغو په ژبو باندې نصيحت وکړی شي نو بايد چه د قرآن کريم په ځای هم يا له دې سره په لمانځه کښې هم د حاضرينو خلکو په ژبو باندې ترجمه ولوستل شي بلکه د ذکرٰی لفظ په دې باندې زيات دلالت کوي. او که چېرته له قرآن کريم ځخه د خلکو د پوهولو لپاره له لمانځه ځخه د باندې سره مخصوص کړی شي او په لمانځه کښې محض د تلاوت حکم ورکړل شي نو په خطبې سره د خلکو د پوهولو لره هم د خطبې د هيئت خارج وويل شي. مثلا له خطبې ځخه مخکښې يا تر لمانځه وروسته د تفهيم يعني د خلکو د پوهولو ضرورت تر مونږ صحابهٔ کرامو زيات پېژندل او روم او فارس په هغه کښې فتح هم وو او په صحابهٔ کرامو کښې په دغو ژبو باندې پوه خلك هم وو. بيا ځه وجه وه چه په هغه وخت کښې د اسې و نه شول. بيا که چېرته په سامعينو کښې د اتو يا لسو ژبو خلك ناست وي نو آيا د خطيب لپاره به دا شرط وي چه هغه به د تول ژبو ماهر وي. که چېرته نه وي نو بيا به د نورو ژبو د خلکو ځه رعايت وشي؟ همدارنګه په همدې بحث کښې حضرت تهانويؒ د يوه سوال په ځواب کښې ليکي چه د جُمعې خطبه له عربۍ ژبې پرته په نورو ژبو کښې لوستل د سنتِ متوارثه وو خلاف دی د دې لپاره منع ده. انتهٰی.

حضرت مولانا عبد الحی صاحب نور الله مرقده په "مجموعه الفتاوٰی" کښې په دې باره کښې په تفصيل سره خبره کړې ده چه ځو عبارتونه ئې قلم ته ور سپارل کيږي:

(سوال) د جُمعې خطبه په اردو يا فارسي ژبو باندې يا په اردو يا فارسي اشعارو کښې جائزه ده او که نه او که جائز وي نو بيا په کوم کتاب کښې راغلي دي؟ بينوا توجروا هو العليم الخبير.

(ځواب) د جُمعې خطبه په اردو يا فارسي ژبو باندې که نظم (شعر) وي او که نثر و على هذا القياس. کومه خطبه چه د هغه ځه عبارتونه په عربي کښې وي او ځه په فارسي يا اردو او د اسې نورو ژبو کښې که نظم وي او که نثر مکروه ده په کراهيت تحريمي سره ځکه چه دا د سُنت هدٰی مخالفت دی. د دې لپاره چه د خدای پيغمبر عليه التحيه و الثناء او صحابهٔ کرامو په دوامداره توګه په عربي ژبې باندې خطبه ويلې ده. او په هغه وخت کښې هيچا ځخه په غير عربي ژبې باندې د خطبې ويل منقول نه دي. لکه ځرنګه چه په "آکام النفائس في اداء الاذکار بلسان الفارس" نومي کتاب کښې راغلي دي چه: و هٰذه عبارته الکراهة انما هی لمخالفة السنة لان النبی ﷺ و اصحابه قد خطبوا دائماً دائماً با لعربية و لم ينتقل عن احد منهم انهم خطبوا خطبةً و لو خطبة غير الجمعة بغير العربية. انتهٰی.

او پټ دې نه وي پاتې چه د غير عربي خطبې د احداث باعث نه وو ليکن د عجميانو په عربي لغاتو باندې د نه پوهيدلو، حالانکه دا خبره په قرونِ ثلاثه کښې هم موجوده وه په دې وجه چه کله په مختلفو اطرافو کښې ښارونه او علاقې فتح شوې او د فارس او حبش اکثره خلك په اسلام مشرف شول، هغه خلك د اسلام د شعائرو مجالسو ته لکه د جُمعې او د اسې نورو ته حاضريدل. او ښکاره ده چه هغه خلك په عربي لغاتو باندې د نه پوهيدو له وجهې په عربي عباراتو نه پوهيدل،



سره له دې تولو خبرو هيچا هم د خلکو د نه پوهيدنې له وجهې له عربي ژبې پرته خطبه نه ده ويلې. سره له دې چه تعليم او تفهيم د خطباوو او علماوو شان دی او د دې مقتضٰی هم وه. چه کله د اسې و نه شول نو د غير عربي خطبې په مکروه والي کښې کومه د ضلالت ادنٰی مرتبه ده ځه شك پاتې نه شو. الٰی آخر ما قال و اطال نوّر الله مرقده.

د محققينو د غو تحقيقاتو ته په کتو سره ثابتيږي چه د جُمعې او عيدينو خطبې دې په دستور سره په عربۍ ژبې باندې شي او په نورو ژبو لکه اردو، فارسي او د اسې نور باندې بدلول ئې مکروه تحريمي دي.

﴿۲﴾ ستاسو د دې سوال ځواب د اول سوال د ځواب په ضمن کښې شوی دی. البته دومره ليکل به مناسب وي چه له عربۍ خطبې ځخه مخکښې د وعظ او تبليغ په کولو کښې دا اشکال رفع کيدلی شي. خاص د خطبې د الفاظو معاني او د هغې په مطالبو باندې خلك پوهول په دې وخت کښې کوم شرط نه دی.

﴿۳﴾ په خطبه کښې د کوم سړي شخصي نوم اخيستل شرط نه دي. د اسلام فقهاوو د خطبې په اړه چه کوم تفصيل بيان کړی دی په هغه کښې د دې ذکر چېرته نه دی تر سترګو شوی. په مشهورې فتاوٰی عالمګيري کښې دي چه د جُمعې له شرائطو ځخه يو شرط خطبه ده. (و منها الخطبة قلبها) مخکښې ليکي چه: الخطبة تشتمل على فرض و سنة فا لفرض شيئان الوقت الٰی قوله و الثانی ذکر الله...... مخکښې ليکي چه: و اما سننها فخمسة عشر.

د خطبې په تفصيل کښې هم چېرته د کوم بادشاه د شخصي نوم اخيستلو تصريح نشته، په جلا ډول هم کومه جزئيه لاسته را نغله. د دې لپاره بهتره دا ده چه په خطبې کښې د چا شخصي نوم را نه وړل شي، په خطبه کښې په اوصافو باندې دُعا او ترغيب او ترهيب بايد وي لکه ځرنګه چه په خطبو کښې د اسلافو معمول پاتې شوی دی چه د هغو په خطبو کښې دا الفاظ موجود دي: و السلطان المسلم ظلّ الله فی الارض من اهان سلطان الله فی الارض اهان الله.

هٰذا ما عندی و الله اعلم.

## د اخترونو لمونځونه تر ځو ورځو پورې ادا کيدلـــــی شي

**سوال:** د کوچني او لوی اختر لمونځونه تر ځو ورځو پورې ادا کيدلی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کوچني اختر لمونځ په اوله ورځ د کومې شرعي مجبوری له وجې ادا نه شي نو په دوهمه ورځ ادا کيدلی شي او له دې وروسته بيا جائز نه دی. او د لوی اختر لمونځ تر دريمې ورځې پورې هم جائز دی په دې شرط چه د کوم شرعي عذر له وجهې په اوله او دوهمه ورځ پاتې شوی وي.

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاریؒ: و لو زالت الشمس يوم الفطر قبل ان يصلی صلٰوة العيد سقطت صلٰوة العيد و لا يصلی من الغد الا اذا ترکوا بعذر فيصلی من الغد قبل الزوال و ان زالت الشمس من الغد سقطت

صلٰوة العید سواء ترکوها بعذر او بغیر عذر و فی عید الاضحٰی اذا لم یصل من الغد حتٰی زالت الشمس یصلی بعد الغد قبل الزوال فاذا زالت الشمس فی آخر ایام النحر و لم یصل سقطت سواء کان بعُذر او بغیر عذر غیر ان التاخیر ان کان بعذرٍ لا یلحقهم الاساءة و ان کان بغیر عذرٍ فقد اساءوا. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۱٤، باب صلٰوة العیدین)

و فی الهندیة: و تؤخر صلٰوة عید الفطر الی الغد اذا منعهم من اقامتها عذر بان غیم علیهم الهلال و شهد عند الامام بعد الزوال او قبله بحیث لا یمکن جمع الناس قبل الزوال او صلاها فی یوم غیم فظهر انها وقعت بعد الزوال و لا تؤخر الی بعد الغد و الامام لو صلاها مع الجماعة و فاتت بعض الناس لا یقضیها من فاتته خرج الوقت او لم یخرج و اذا حدث عذر یمنع من الصلٰوة فی یوم الاضحٰی صلاها من الغد و بعد الغد و لا یصلیها بعد ذٰلك ثم العذر هٰهنا النفی الکراهة حتٰی لو اخروها الٰی ثلٰثة ایام من غیر عذر جازت الصلٰوة و قد اساؤا و فی الفطر للجواز حتٰی لو آخروها الی الغد من غیر عذر لا یجوز. (الفتاوی الهندی ج۱، ص۱۵۱، الباب السابع عشر فی صلٰوة العید) و مثله فی الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۴۳۹، باب صلٰوة العیدین.

## د اختر او صدقهٔ فطر احکام او مسئلې

د دار العلوم حقانیه د دار الافتاء له خوا څخه د عوامو د افادې لپاره د احکام او مسائلو تر عنوان لاندې په ماهنامه الحق کښې وخت په وخت سره مضمونونه خپرېږي۔ لاندینی مضمون هم په ماهنامه الحق کښې شائع شوی دی له فتاویٰ سره د مناسبت له مخې دلته هم شاملوو۔ (مرتب)

☆ په اول شوال کښې د شکرانې په توګه دوه رکعته د اختر لمونځ اداکول واجب دي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: تجب صلٰوة العید علی کل من تجب علیه صلٰوة الجمعة. (الهدایة ج۱، ص۱۵۱، باب العیدین)

☆ د اختر په ورځ باید غسل وشي، مسواك ووهل شي، ښې جامې چه میسرې وي واغوستل شي، خوشبویي ولګول شي او د سر وېښتان غوړ او بیا ږمنځ شي۔

ندب یوم الفطر اکله حلواً وتراً قبل خروجه الی صلٰوتها و استیاکه و اغتساله تطیبه و لبسه احسن ثیابه و لو غیر ابیض....... ثم خروجه الی الجبانة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱٦۸، باب العیدین)

☆ سهار وختې عیدګاه ته د زر رسیدو کوشش وشي او د اختر د لمانځه لپاره تر تګ مخکښې باید څه خواږه شیان وخوړل شي۔

ندب یوم الفطر اکله حلواً وتراً قبل خروجه الی صلٰوتها و استیاکه و اغتساله تطیبه و لبسه احسن ثیابه و لو غیر ابیض....... ثم خروجه الی الجبانة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱٦۸، باب العیدین)

☆ د اختر د لمانځه د اداکولو لپاره په یوې لارې باندې لاړ شی او تر لمانځه وروسته په بلې لارې باندې راشی او که چېرته ممکن وي نو عیدګاه ته په پښو لاړ شی۔

په کومې لارې باندې چه د اختر لمانځه ته ځي له هغې بغیر په بلې لارې باندې به ترې راځي۔ (بهشتي زیور ص۱۰۱۷، د اخترونو د لمانځه بیان)

☆ په لار کښې دا تکبیرونه باید ورو ورو ولوستل شي چه: اللّٰه اکبر اللّٰه اکبر لا اله الاّ اللّٰه و اللّٰه اکبر اللّٰه اکبر و للّٰه الحمد.



لما قال العلامة ابو بکر الحداد الیمنیؒ: و لا یکبر فی طریق المصلی عند ابی حنیفةؒ یعنی جهراً اما سراً فمستحب و هٰذا فی یوم الفطر لان الاصل فی الثناء الاخفاء. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۱۲، باب العیدین)

☆ د اختر تر لمانځه مخکښې د نفلو اداکول مکروه دي۔ البته د اختر تر لمانځه وروسته په کور کښې نفل اداکیدلی شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یتنفل قبلها مطلقا ...... و کذا لا یتنفل بعدها فی مصلاها و ان تنفل بعدها فی البیت جاز. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲. ص۱۷۰، باب العیدین)

☆ د اختر په لمانځه کښې یوولس شپږ تکبیرونه زائد دي، په لومړي رکعت تر سبحانك اللّٰهُمَّ وروسته درې تکبیرونه د لاسونو په کښته زوړندولو سره ویل کیږي او په دوهم رکعت کښې تر رکوع مخکښې درې تکبیرونه د لاسونو په کښته زوړندولو سره ویل کیږي، پاتې لمونځ د نورو لمونځونو غوندې دی۔ تر لمانځه وروسته د خطبې اوریدل واجب دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یصلی الامام بهم رکعتین مثنیا قبل الزوائد و هی ثلاث تکبیرات فی کل رکعة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۷۲، باب العیدین)

## د اختر د لمانځه متفرقې مسئلې

☆ د اخترونو د خطبې شروع کول په تکبیر سره مستحب دي، په لومړۍ خطبه کښې نهه ځله تکبیر ویل کیږي۔

و فی الهندیة: و یستحب ان یفتتح الخطبة الاولٰی بتسع تکبیرات تقری و الثانیة بسبع. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۱۵۰، باب العیدین)

☆ د اختر د دواړو خطبو په منځ کښې د امام لپاره لږ غوندې کښیناستل مسنون دي۔

و یسن خطبتان....... بجلسة بینهما. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱٤۸، باب العید

☆ د اختر په ورځ د ښځو، مریضانو او مسافرو لپاره هم د اختر تر لمانځه مخکښې نفل اداکول مکروه دي۔

ښځې او هغه خلك چه له کومې وجهې د اختر لمانځه ته حاضر شوي نه وي هغوی تولو ته د اختر تر لمانځه مخکښې نفل کول مکروه دي۔ (بهشتي زیور ص۸۸، یوولسمه برخه)

☆ د عیدینو لمونځ په عیدګاه کښې اداکول مسنون دي۔ البته د معذورو لپاره په جوماتونو کښې هم د اختر د لمانځه اداکول جائز دي۔

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و السنة ان یخرج الامام الی الجبانة و یستخلف غیره لیصلی فی المصر با لضعفاء و المرضی بناء علی ان صلٰوة العیدین فی موضعین جائزة با لاتفاق. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۱۳، باب العیدین)

☆ د اختر لمونځ په جماعت سره اداکول شرط دي۔ له دې وجهې که چېرته څوك د کوم عذر له

وجهې په جماعت کښې شریك نه شو نو یو اځې ئې نه شي اداکولی. همدارنګه که چېرته له چا

څخه په کومه وجه د اختر لمونځ فاسد شو نو قضاء ئې پرې واجبه نه ده.

و فی الهندیة: و لو صلاها مع الامام با لجماعة و فاتت بعض الناس لا یقضیها من فاتته خرج الوقت او لم یخرج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۲، باب العیدین)

☆ که چېرته د کوم شرعي عذر له وجهې د اختر لمونځ په اوله ورځ ادا نه شو نو په دوهمه ورځ دې ادا کړی شي.

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و ان فاتت مع الامام و تؤخر بعذر الی الغد فقط. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۶۲، باب صلٰوة العیدین)

☆ که چېرته له چا څخه واجب زائد تکبیرونه تیر شوي وي او هغه له امام سره په قیام کښې شریك شي نو د نیت تر تړلو وروسته دې تر ټولو مخکښې زائد تکبیرونه ووایي اګر که امام قرائت شروع کړی هم وي.

لما فی الهندیة: و لو انتهٰی رجلٌ الی الامام فی الرکوع فی العیدین فانه یکبر الافتتاح قائما فان امکنه ان یأتی با لتکبیرات و یدرك فعل و یکبر علی رأی نفسه و ان لم یمکنه رکوع اشتغل با لتکبیرات و لا یرفع یدیه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۱، الباب السابع عشر فی صلٰوة العیدین)

☆ یو سړي د لمانځه په دوهم رکعت کښې له امام سره شریك شو نو په داسې موقع باندې که چېرته د هغه یقین داوي چه درې تکبیرونه ویلی شم او له امام سره په رکوع کښې شریکیدلی شم نو هغه به لومړی له نیت څخه وروسته په ولاړې درې تکبیرونه وایي او وروسته به په رکوع کښې له امام سره شریکیږي. که چېرته د رکوع د تیریدو ویره وي نو په رکوع کښې دې له امام سره شریك شي او د سبحان ربی الاعلٰی په ځای دې په رکوع کښې زائد تکبیرونه ووایي لیکن په رکوع کښې به لاسونه تر غوږو نه پورته کوي.

لما فی الهندیة: و لو انتهٰی رجلٌ الی الامام فی الرکوع فی العیدین فانه یکبر الافتتاح قائما فان امکنه ان یأتی با لتکبیرات و یدرك فعل و یکبر علی رأی نفسه و ان لم یمکنه رکع اشتغل با لتکبیرات و لا یرفع یدیه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۱، الباب السابع عشر فی صلٰوة العیدین)

☆ که چېرته د دریو تکبیرونو تر پوره کولو مخکښې امام صاحب له رکوع څخه سر پورته کړي نو هغه به هم د امام په اقتداء کښې دریږي چه څومره تکبیرونه ترې پاتې شي هغه معاف دي.

لما فی الهندیة: و لو رفع الامام رأسه بعد ما ادّی بعض التکبیرات فانه یرفع رأسه و یتابع الامام و تسقط عنه التکبرات الباقیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۱، باب صلٰوة العیدین)

☆ که چېرته له چا څخه یو رکعت د اختر لمونځ تیر شوی وي نو هغه باید د امام له سلام ګرځولو وروسته خپل رکعت بیرته را وګرځوي، تر ټولو مخکښې دې قرائت وایي او بیا دې زائد



تکبیرونه ووایي او رکوع ته دې لاړ شي.

و لو ادرکــــــــه فی القومة لا یقضی فیها لانهٗ یقضی الرکعة الاولٰی مع التکبیرات. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۱، باب العیدین)

☆ که چېرته د امام صاحب له رکوع څخه مخکښې تکبیرونه هیر شي او د رکوع په حالت کښې ئې ور په زړه شي نو په رکوع کښې دې تکبیرونه ووایي او بیا دې قیام ته را ګرځي. هو! که چېرته په غلطۍ سره امام صاحب بیا ودریږي او په ولاړې زائد تکبیرونه ووایي نو دا صورت هم جائز دی لمونځ نه فاسدیږي.

و اذا نسی الامام تکبیرات العیدین حتٰی قرء فانه یکبر بعد القرأة او فی الرکوع ما لم یرفع رأسه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۱، الباب السابع عشر فی صلٰوة العیدین)

☆ د ګڼه ګوڼې د زیاتوالي له وجهې د عیدینو په لمانځه کښې د سهوې سجده معاف ده.

لما فی الهندیة: الا مشائخنا قالوا لا یسجد للسهو فی العیدین و الجمعة لئلا یقع الناس فی الفتنة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲۸، باب العیدین)

☆ د عیدینو خطبه په ولاړې سُنت مؤکده ده لیکن که چېرته امام د کومې مجبورۍ له وجهې دریدلی نه شوای نو په ناستې خطبه ویل هم صحیح دي.

و منها ای یخطب قائماً فا لقیام سنة فلیس بشرط حتٰی لو خطب قاعداً یجوز عندنا. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۶۳، باب الجمعة)

☆ مستحبه دا ده چه کوم سړی چه د اختر لمونځ ورکړي هغه دې خطبه هم ووایي، البته که چېرته امام ته کوم شرعي عذر ور مخکښې شي نو بل سړی هم خطبه ویلی شي.

قال العلامة الحصکفیؒ: لا ینبغی ان یصلی غیر الخطیب لانهما کشیء واحد فان فعل بان خطب صبیٌ باذن السلطان و صلی بالغ جاز هو المختار. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۵۵۲، باب الجمعة)

☆ مسنونه طریقه دا ده چه لمونځ اوږد وي او خطبه لنډه وي یعنې تر پوره لمانځه څخه دې په کم وخت کښې خطبه ختمه شي.

قال العلامة الکاسانیؒ: و عن عمر رضی اللّٰه عنه انهٗ قال طولوا الصلٰوة و قصروا الخطبة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۶۳، باب الجمعة)

## د فطـــــــــر صدقه

☆ د فطر صدقه په هغه سړي واجبه ده چه له هغه سره د کور له ضروریاتو څخه علاوه دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر یا د هغه د وزن په اندازه روپۍ یا ګینه وي، یا مال او جائداد ولري یا د تجارت مال ولري یا اوه نیمې تولې سره زر او یا د هغه په برابر اشرفۍ یا ګینه وي. په دې کښې دا شرط نه دی چه په هغه مال دې کال تیر وي. که چېرته له چا سره ډیر مال وي لیکن

دومره پور پرې ولاړ وي چه که چېرته پور اداکړي نو دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر یا د هغه له قیمت سره برابر کوم شی نه ورسره پاتې کیږي نو په داسې سړي باندې د فطر صدقه واجبه نه ده. له چاسره چه په پورتنۍ اندازې سره مال یا له هغه څخه زیات وي هغه به د ځان له خوا څخه هم صدقه اداکوي او د خپلو نابالغو بچیانو او ښځې له طرف څخه هم اداکوي.

صدقة الفطر واجبة على الحر المسلم اذا کان مالکا لمقدار النصاب فاضلاً عن مسکنه و ثیابه و اثاثه و فرسه و سلاحه و عبیده. اما وجوبها فلقوله علیه السلام فی خطبته ادوا عن کل حرّ و عبد صغیر او کبیر نصف صاع من بر او صاعٍ من شعیرٍ. رواه ثعلبة بن صعیر العدوی. (الهدایة ج۱، ص ۱۹۰، باب صدقة الفطر)

د یو تن صدقه فطر د انګریزي په وزن سره پاو کمې دوه سیره غنم یا د هغه قیمت دی او وربشې درې نیم سیره دي او تر ټولو زیات مستحقین ئې خپل دوستان او خپلوان دي. یوه سړي ته د ډیرو کسانو صدقۀ فطر ورکول جائز دي او که چېرته د یوه سړي صدقۀ فطر ډیرو کسانو ته ورکړل شي نو بیا هم جائز دي. د اختر تر لمانځه مخکښې ئې اداکول د ډیر ثواب باعث دی. چا چه د کوم عذر یا غفلت له وجهې روژې نه وي نیولې په هغه باندې هم صدقۀ فطر واجب دی. په دې شرط چه په پورتنۍ اندازې سره مال ولري. د فطر صدقه امام یا مؤذن ته په اجرت کښې ورکول جائز نه دي او همدارنګه د جومات په آبادۍ او د هغه په مصارفو کښې لګول ئې هم جائز نه دي.

د صاع وزن د انګریزي تقریبا نیم پاو او درې نیم سیره جوړیږي او نیمه صاع پاو کمې دوه سیره یو څټانک وي. (بهشتي زیور، باب صدقه الفطر)

# کتاب الجنائز

# کتاب الجنائز

## (د جنازې د لمانځه احکام او مسئلې)

### د جنازې د لمانځه حکم

**سوال:** د کوم مسلمان په فوت کیدو باندې د جنازې په باره کښې په ژوندي مسلمانانو باندې کومه ذمه واري راګرځي؟ او دا ذمه واري په کومو خلکو راتلي شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احادیثو له مخې د فوت شوي مسلمان د جنازې لمونځ په ټولو مسلمانانو باندې فرض کفایه ده. یعنې د څینو مسلمانانو په ادا کولو سره د ټولو مسلمانانو غاړې خلاصیږي. البته که چېرته ټول خلك په اجتماعي توګه د جنازې لمونځ پرېږدي نو ټول به ګنهګار وي.

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و الاجماع منعقد علی فرضیتها ایضا الا انها فرض کفایة اذا قام به البعض یسقط عن الباقین..... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۱، فصل الکلام فی صلٰوة الجنازة)

و فی الهندیة: الصلٰوة علی الجنازة فرض کفایة اذا قام به البعض واحداً کان او جماعة ذکراً کان او اُنثٰی سقط عن الباقین و اذا ترك الکل اثموا. هٰکذا فی التاتارخانیة. (ج۱، ص۱۶۲، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹، فصل السلطان احق بصلٰوته.

### له نیت پرته د جنازې لمونځ هیڅ اعتبار نه لري

**سوال:** د جنازې په لمانځه باندې د دریدلو په وخت کښې که چېرته نیت له چا څخه هیر شي نو د اسې ډول جنازې د ادا کولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** د نورو لمونځونو غوندې د جنازې په لمانځه کښې هم نیت ضروري دی. لهذا له نیت پرته ادا شوې جنازه هیڅ اعتبار نه لري.

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: اما ما تصح به فکل ما یعتبر شرطاً لصحة سائر الصلٰوة من الطهارة الحقیقة و الحُکمیة و استقبال القبلة و ستر العورة و النیة یعتبر شرطا لصحتها. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۵، فصل بیان تصح و به ما یفسد)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما الشروط التی ترجع الی المصلّی فهی شروط بقیة الصلٰوة من الطهارة الحقیقة بدناً و ثوباً و مکاناً و الحکمیة و ستر العورة و الاستقبال و النیة..... الخ. (رد المحتار ج۱، ص۶۴۰، مطلب فی صلٰوة الجنازة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۴، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت.

### د جنازې د لمانځه لپاره د ځای پاکوالی ضروري دی

**سوال:** د جنازې د لمانځه لپاره چه په کوم ځای کښې صفونه جوړیږي آیا د هغه ځای پاکوالی ضروري دی او که د نجس والي او پاکوالي له تمیز پرته د هغه ځای استعمال جائز دی؟

**الجواب:** د جنازې د لمانځه لپاره د ځای پاکوالی ضروري دی، لهذا په ناپاکه ځای باندې که

قال اللّٰه تعالٰی

واعبد ربّك حتّٰی یاتیك الیقین

چېرته د جنازې صفونه جوړ شي او د جنازې لمونځ ادا شي نو صحيح به نه وي۔ لکه څرنګه چه له اوداسه بغير د جنازې لمونځ نه کيږي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: امام ما تصح به فكل ما يعتبر شرطاً لصحه سائر الصلوٰة من الطهارة الحقيقية و الحكمية الخ. (بدائع الصنائع ج١، ص٣١٥، فصل بيان ما تصح به و ما يفسد)

قال العلامة ابن العابدينؒ: و اما الشروط التى ترجع الى المصلّى فهى شروط بقية الصلوٰة من الطهارة الحقيقة بدناً و ثوباً و مكاناً....... الخ. (رد المحتار ج١، ص٦٤٠، مطلب فى صلوٰة الجنازة) و مثله فى الهندية ج١، ص١٦٤، الفصل الخامس فى الصلوٰة على الميت.

## د ولـــد الزنا د جنازې حکم

**سوال:** که چېرته کوم هلك په يوې غير شرعي طريقې په نتيجه کښې يعني له زنا څخه پيدا شي نو د داسې هلك د مړ کيدو په صورت کښې به د هغه د جنازې حکم څه وي؟

**الجواب:** د زنا د قباحت نسبت د کوچني د مور او د زاني خوا ته کيږي، پخپله کوچنی له دغو جرائمو څخه برى الذمه ګڼل کيږي۔ له دې وجهې د هغه معصوم والي ته په کتو سره په مسلمانانو باندې د داسې کوچني په مړينې باندې د جنازې ادا کول ضروري دي۔ که چېرته غور وکړی شي نو پخپله په زاني او زانيې باندې د دې بد او شنيع فعل د کولو ترڅنګ په هغو باندې د جنازې لمونځ ادا کيږي نو بيا به د کوچني جنازه خو به په طريقه اولٰی سره بايد وشي۔

لما ورد فى الحديث: قال النبیﷺ صلوا خلف كل بر و فاجر و صلوا على كل بر و فاجر. (كنز العمال ج٦، ص٥٤، حديث ١٤١١٥)

و فى الهندية: و يصلّى على مسلم مات بعد الولادة صغيراً كان او كبيراً ذكراً كان او انثٰى....... الخ. (الفتاوى الهندية ج١، ص١٦٣، الفصل الخامس فى الصلوٰة على الميت) و مثله فى رد المحتار ج٢، ص٢١٠، باب الجنائز.

## د جنازې د نه ادا کولو په صورت کښې به څوك مسئول وي؟

**سوال:** يو مسلمان که چېرته له جنازې پرته خښ کړی شي نو ګناه به ئې په چا وي؟ آيا مړ شوی مسلمان به ګنهګار وي او که دا د هغه د وارثانو ذمه واري ده؟

**الجواب:** کوم سړی چه شرعاً د جنازې مستحق وي نو د هغه د جنازې ادا کول د ټولو مسلمانانو مذهبي او اخلاقي ذمه واري ده۔ لهذا کوم مسلمان چه له جنازې پرته خښ کړی شي نو هغه مسلمان به ګنهګار وي چه د جنازې د قدرت درلودلو ترڅنګ جنازه ادا نه کړي۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و من صفتها انها فرض كفاية اذا قام بها البعض و فى شرح المتفق واحد كان او جماعة ذكراً كان او اُنثٰى سقط عن الباقين و اذا ترك كلهم اثموا. (التاتارخانية ج٢، ص١٥٤، باب صلوٰة الجنازة، نوع آخر من هٰذا الفصل فى الصلوٰة على الجنازة)

و فى الهندية: الصلوٰة على الجنازة فرض كفاية اذا قام به البعض واحداً كان او جماعة ذكرا كان او انثٰى سقط



عن الباقين و اذا ترك الكل اثموا. (الهندية ج١، ص١٦٢، الفصل الخامس فى الصلوٰة على الميت) و مثله فى البحر الرائق ج٢، ص١٧٩، فصل فى الصلوٰة على الميت.

## د جنازې د ورکولو زيات حقدار څوك دی؟

**سوال:** د جنازې د ورکولو زيات حقدار څوك دی؟ آيا د فرض لمانځه غوندې د جنازې د ورکولو لپاره هم اهليت ته اعتبار ورکول کيږي او که د دې حکم جلا دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د جنازې د لمانځه د ورکولو زيات حقدار د وخت حاکم دی په دې شرط چه د جنازې د لمانځه د ورکولو صلاحيت پکښې موجود وي او که چېرته د وخت حاکم نه وي نو د علاقې قاضي ته دې د جنازې د ورکولو موقع ورکړل شي او که هغه هم نه وي نو د کلي امام دې جنازه ادا کړي، او که نه نو په خپلوانو کښې کوم نژدې خپلوان د جنازې د ورکولو حقدار دی۔

و فى الهندية: اولى الناس با لصلوٰة عليه السلطان ان حضر فان لم يحضر فا لقاضى ثم امام الحیّ ثم الولى. (الهندية ج١، ص١٦٣، الفصل الخامس فى الصلوٰة على الميت)

و قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و روى الحسن عن ابى حنيفةؒ ان الامام الاعظم احق با لصلوٰة ان حضر فان لم يحضر فامير المصر و ان لم يحضر فامام الحیّ فان لم يحضر فا لاقرب من ذوى قرباته و هٰذا هو حاصل المذهب عندنا. (بدائع الصنائع ج١، ص٣١٧) و مثله فى كبيرى ص٥٨٤، باب الجنائز.

## که چېرته نارينه نه وي نو ښځه د جنازې لمونځ ورکولی شي

**سوال:** که چېرته د جنازې د لمانځه د امامت لپاره کوم نارينه موجود نه وي نو آيا ښځه ئې ورکولی شي او که نه؟ همدارنګه د جنازې په لمانځه کښې به د ښځې د امامت کيفيت څرنګه وي؟

**الجواب:** په جنازه کښې ښځې تبعاً حاضريدلی شي، تر دې پورې چه په جنازه کښې محاذات هم د جنازې فاسدوونکی نه دی۔ البته که چېرته نارينه نه وي نو ښځې دا حق ادا کولی شي۔ په دې حالت کښې بهتره طريقه دا ده چه ښځې د جماعت نه بغير يواځې يواځې په يوه وخت سره جنازه ادا کړي، البته که چېرته ئې له جماعت سره د ادا کولو اراده وي نو امامت کوونکې ښځه به د صف په منځ کښې دريږي۔

قال علاؤ الدين الكاسانیؒ: و اذا صلين النساء جماعة على جنازه قامت الامامة وسطهن كما فى الصلوٰة المفروضة المعهودة. (بدائع الصنائع ج١، ص٣١٤، فصل بيان كيفية الصلوٰة على الميت)

و قال العلامه ابن نجيم المصریؒ: و لو امت امرأة فيها تأدت الصلوٰة...... الخ. (البحر الرائق ج٢، ص١٨٠، فصل فى الصلوٰة على الميت) و مثله فى الصغيرى ص٣٠٠، كتاب الجنائز.

## د مړي جنازه تر څو ورځو پورې جائزه ده

**سوال:** که چېرته يو مسلمان له کومې وجهې بغير له جنازې خښ کړی شي نو د هغه په قبر باندې تر څو ورځو پورې د جنازې لمونځ جائز دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه ئې اندامونه سالم وي تر هغه وخته پورې په قبر باندې د جنازې لمونځ کیږي، په دې کښې کومه ټاکلې موده نشته بلکه د زمکې د حرارت او برودت له مخې د بدن د رژیدو او خاورې کیدو کښې فرق یقیني دی۔ د دې لپاره په غلبۀ ظن باندې د اعتبار په کولو سره تر څو پورې چه یقین وي چه جسم او بند محفوظ دی تر هغو پورې جنازه پرې ادا کیدلی شي۔

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و ان دفن المیت و لم یصلّ علیه صلی علی قبره..... الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۸۰، فصل فی الصلٰوة علی المیت)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لو دفن بعد الغسل قبل الصلٰوة علیه صلّی علیه فی القبر ما لم یعلم انهٗ تفرق...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۵، فصل فی بیان ما تصح به و ما تفسد) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۵، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت.

## د مُـــــرتد جنازه نه کیـــــږي

**سوال:** که چېرته یو څوک علماء کرامو ته یو اځې له دې وجهې بښکنځا وکړي چه دا خلك د دین ساتونکي دي، له دې برسیره علماء کرام له بدترینو حیواناتو سره مشابه کړي، د حدیثو منکر وي او هغه ته د عجمي سازش په ویلو سره د قرآني آیتونو له ځانه د تاویلونو په کولو سره خلك ګمراه کوي۔ نو د داسې سړي له مرګ څخه وروسته د جنازې حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د داسې عقائدو لرونکی سړی کافر، مرتد او له اسلام څخه وتلی دی او د نه مسلمان والي په وجه د جنازې اهل نه دی۔ د جنازې لپاره د مړي مسلمان والی شرط دی لکه څرنګه په کتابونو کښې راغلي دي چه و من شرائطه اسلام المیت.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و شرطها ستة اسلام المیت قال ابن عابدینؒ ای و لو بطریق التبعیة لاحد ابویه او للدار او للسابی کما سیأتی. (رد المحتار ج۲، ص۲۰۷، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

قال ابن نجیمؒ: و شرطها اسلام المیت فلا تصح علی الکافر للآیة: و لا تُصَلِّ عَلٰی اَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ اَبَدًا. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹، کتاب الجنائز) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۲، الفصل الخامس فی صلٰوة الجنازة.

## د شیعه د جنازې حکم

**سوال:** کوم سړی چه د دین له ضروریاتو منکر وي لکه د حضرت علي کرم الله وجهه په الوهیت یا نبوت باندې قائل وي، د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه له صحابي والي نه منکر وي، په ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها باندې تهمت ویونکی وي نو د داسې شیعه د جنازې د ادا کولو حکم څه دی؟ آیا جنازه ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د داسې عقائدو لرونکي شیعه کافر، مرتد او له اسلام څخه وتلی دی، د داسې شیعه جنازه نه کیږي۔



قال علامة ابن عابدینؒ: نعم لا شك فی تکفیر من قذف السیدة عائشه رضی الله تعالیٰ عنها او انکر صحبة الصدیقؓ او اعتقد اُلوهیة فی علیؓ...... الخ. (شامی ج۳، ص۳۲۱، باب المرتد)

و فی الهندیة: و لو قذف عائشه رضی الله تعالی عنها با لزنا کفر با لله.... الخ. (الهندیة ج۲، ص۳۶۴، و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۱۲۱، باب المرتد.

## د ګناهونو په دوران کښې د هلاك شویو خلکو د جنازې حکم

**سوال:** ځینې خلك د تاوان د ډیرو پیسو د لاس ته راوړلو لپاره انسانان اغوا کوي یعنې تښتوي ئې او که چېرته موقع په لاس ورشي نو له قتل او غارت څخه هم مخ نه اړوي، د اسې خلك که چېرته د همدغو جرائمو په دوران کښې په یو ډول هلاك کړی شي نو آیا جنازې ئې کیږي او که نه؟

**الجواب:** که چېرته د اغواء یعنې سړي تښتونې په دوران کښې دا خلك مړه شي نو جنازه ئې د تعزیر په توګه نه ادا کیږي۔ البته که چېرته په دغو جرائمو کښې ککړ کسان پخپل طبعي مرګ مړه شي نو بیا د مسلمان والي په حیثیت سره ئې د جنازې په ادا کولو کښې کوم حرج نشته۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و هی فرض علی کل مسلم مات خلا اربعة بغاة و قطاع طریق فلا یغسلوا و لا یصلّی علیهم اذا قتلوا فی الحرب و لو بعده صلّی علیهم...... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۲، باب الجنائز، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: الا البغاة و قطاع الطریق و من بمثل حالهم..... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۱، فصل الکلام فی صلٰوة الجنازة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۳، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت.

## د فـــــاسق د جنازې حکم

**سوال:** کوم سړی چه لمونځ نه کوي او په ټول عمر چا په لمانځه نه وي لیدلی نو آیا د داسې سړي د جنازې لمونځ کیږي او که نه؟ همدا رنګه د زاني، غل او د فسق په نورو کارونو کښې د ککړو کسانو د جنازې د ادا کولو حکم څه دی؟

**الجواب:** د کوم مړي د جنازې د ادا کولو لپاره یو اځې د هغه مسلمان والی شرط دی۔ چه تر څو پورې د هغه د صریح کفر ثبوت نه وي تر هغو پورې ئې د جنازې لمونځ کیږي، د لمانځه په نه کولو یا نورو ګناهونو په کولو سره یو څوك د اسلام له دائرې څخه نه ووځي۔ د دې لپاره په مسلمانانو باندې د داسې سړي د جنازې لمونځ ضروري دی۔ البته جید علماء کرام او د مروت خاوندان دې د هغه په جنازه کښې تادیباً نه شریکیږي۔

لما ورد فی الحدیث: و قال النبیﷺ صلوا خلف کل برّ و فاجر و صلوا علی کل بر و فاجر. (کنز العمال ج۶، ص۵۴، حدیث ۱۴۸۱۵)

و قال ابن العابدینؒ: و هی فرض علی کل مسلم مات الخ. (ردالمحتار ج۲، ص۲۱۰، باب الجنائز) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۲، الفصل فی الصلٰوة علی المیت.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه ئې اندامونه سالم وي تر هغه وخته پورې په قبر باندې د جنازې لمونځ کيږي، په دې کښې کومه ټاکلې موده نشته بلکه د زمکې د حرارت او برودت له مخې د بدن د رژيدو او خاورې کيدو کښې فرق يقيني دی۔ د دې لپاره په غلبۀ ظن باندې د اعتبار په کولو سره ترڅو پورې چه يقين وي چه جسم او بند محفوظ دی تر هغو پورې جنازه پرې ادا کيدلی شي۔

قال برهان الدين المرغيناني: و ان دفن الميت و لم يصلّ عليه صلى على قبره..... الخ. (الهداية ج۱، ص۱۸۰، فصل فی الصلٰوة علی الميت)

و قال علاؤ الدين الكاسانی: و لو دفن بعد الغسل قبل الصلٰوة عليه صلّی عليه فی القبر ما لم يعلم انهٗ تفرق...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۵، فصل فی بيان ما تصح به و ما تفسد) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۶۵، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی الميت.

## د مُــــــرتد جنازه نه کيــــــږي

**سوال:** که چېرته يو څوك علماء کرامو ته يو اځې له دې وجهې بښکنځا وکړي چه دا خلك د دين ساتونکي دي، له دې برسيره علماء کرام له بدترينو حيواناتو سره مشابه کړي، د حديثو منکر وي او هغه ته د عجمي سازش په ويلو سره د قرآني آيتونو له ځانه د تاويلونو په کولو سره خلك گمراه کوي۔ نو د داسې سړي له مرگ څخه وروسته د جنازې حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د داسې عقائدو لرونکی سړی کافر، مرتد او له اسلام څخه وتلی دی او د نه مسلمان والي په وجه د جنازې اهل نه دی۔ د جنازې لپاره د مړي مسلمان والی شرط دی لکه څرنگه په کتابونو کښې راغلي دي چه و من شرائطه اسلام الميت.

قال علاؤ الدين الحصکفی: و شرطها ستة اسلام الميت قال ابن عابدين ای و لو بطريق التبعية لاحد ابويه او للدار او للسابی کما سيأتی. (رد المحتار ج۲، ص۲۰۷، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

قال ابن نجيم: و شرطها اسلام الميت فلا تصح علی الکافر للاية: و لا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ اَبَداً. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹، کتاب الجنائز) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۶۲، الفصل الخامس فی صلٰوة الجنازة.

## د شيعه د جنازې حکم

**سوال:** کوم سړی چه د دين له ضرورياتو منکر وي لکه د حضرت علي کرم الله وجهه په الوهيت يا نبوت باندې قائل وي، د حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه له صحابي والي نه منکر وي، په ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله عنها باندې تهمت ويونکی وي نو د داسې شيعه د جنازې د اداکولو حکم څه دی؟ آيا جنازه ئې کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د داسې عقائدو لرونکي شيعه کافر، مرتد او له اسلام څخه وتلی دی، د داسې شيعه جنازه نه کيږي۔



قال علامة ابن عابدين: نعم لا شك فی تکفير من قذف السيدة عائشه رضی الله تعالىٰ عنها او انكر صحبة الصديق او اعتقد اُلوهية فی علیّ...... الخ. (شامی ج۳، ص۳۲۱، باب المرتد)

و فی الهندية: و لو قذف عائشه رضی الله تعالیٰ عنها با لزنا کفر با لله.... الخ. (الهندية ج۲، ص۲۶۴، و مثله فی البحر الرائق ج۵، ص۱۲۱، باب المرتد.

## د گناهونو په دوران کښې د هلاك شويو خلکو د جنازې حکم

**سوال:** ځينې خلك د تاوان د ډيرو پيسو د لاس ته راوړلو لپاره انسانان اغوا کوي يعنې تښتوي ئې او که چېرته موقع په لاس ورشي نو له قتل او غارت څخه هم مخ نه اړوي، داسې خلك که چېرته د همدغو جرائمو په دوران کښې په يو ډول هلاك کړی شي نو آيا جنازې ئې کيږي او که نه؟

**الجواب:** که چېرته د اغواء يعنې سړي تښتونې په دوران کښې دا خلك مړه شي نو جنازه ئې د تعزير په توگه نه ادا کيږي۔ البته که چېرته په دغو جرائمو کښې ککړ کسان پخپل طبعي مرگ مړه شي نو بيا د مسلمان والي په حيثيت سره ئې د جنازې په اداکولو کښې کوم حرج نشته۔

قال علاؤ الدين الحصکفی: و هی فرض علی کل مسلم مات خلا اربعة بغاة و قطاع طريق فلا يغسلوا و لا يصلّی عليهم اذا قتلوا فی الحرب و لو بعده صلّی عليهم...... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۲، باب الجنائز، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

و قال علاؤ الدين الکاسانی: الا البغاة و قطاع الطريق و من بمثل حالهم..... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۱، فصل الکلام فی صلٰوة الجنازة) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۶۳، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی الميت.

## د فــــــاسق د جنازې حکم

**سوال:** کوم سړی چه لمونځ نه کوي او په ټول عمر چا په لمانځه نه وي ليدلی نو آيا د داسې سړي د جنازې لمونځ کيږي او که نه؟ همدارنگه د زاني، غل او د فسق په نورو کارونو کښې د ککړو کسانو د جنازې د اداکولو حکم څه دی؟

**الجواب:** د کوم مړي د جنازې د اداکولو لپاره يو اځې د هغه مسلمان والی شرط دی۔ چه تر څو پورې د هغه د صريح کفر ثبوت نه وي تر هغو پورې ئې د جنازې لمونځ کيږي، د لمانځه په نه کولو يا نورو گناهونو په کولو سره يو څوك د اسلام له دائرې څخه نه ووځي۔ د دې لپاره په مسلمانانو باندې د داسې سړي د جنازې لمونځ ضروري دی۔ البته جيد علماء کرام او د مروت خاوندان دې د هغه په جنازه کښې تاديباً نه شريکيږي۔

لما ورد فی الحديث: و قال النبیﷺ صلوا خلف کل برّ و فاجر و صلوا علی کل بر و فاجر. (کنز العمال ج۶، ص۵۴، حديث ۱۴۸۱۵)

و قال ابن العابدين: و هی فرض علی کل مسلم مات الخ. (ردالمحتار ج۲، ص۲۱۰، باب الجنائز) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۶۲، الفصل فی الصلٰوة علی الميت.

## د ځان وژونکي سړي د جنازې حکم

**سوال:** ځان وژنه د قرآن او حدیثو له مخې عظیمه ګناه ده. د دې عمل د ارتکاب کوونکي سړي د جنازې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ځان وژنه یقیناً یوه عظیمه ګناه ده لیکن د اهل سُنت و الجماعت په نزد د کومې ګناه ارتکاب د کفر موجب نه دی. له دې وجهې د ځان وژونکي سړي هم لکه د نورو ګنهګارو مسلمانانو غوندې یو ګنهګار دی چه د جنازې په ادا کولو کښې هیڅ حرج نشته. البته په کومو روایتونو کښې ئې چه د جنازې نفی راغلې ده هغه په تعزیر باندې حمل دی تر څو په معاشرې کښې له دې ویرې څخه څوك په د اسې بد عمل اخته نه شي.

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و قاتل النفس یغسل و یصلّی علیه عند ابی حنیفةؒ و محمدؒ و به کان یفتی شمس الائمة الحلوائی. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۱۷، الفصل الخامس و العشرون فی الجنائز، الجنس الاول فی الشهید)

و فی الهندیة: و من قتل نفسه خطأً بان ناول رجلاً من العدوّ و لیضربه با لسیف فاخطأ و اصاب نفسه و مات غسل و صلّی علیه و هذا بلا خلاف کذا فی الذخیرة. و من قتل نفسه عمداً یصلّی علیه عند ابی حنیفة و محمد رحمهما الله و هو الاصح کذا فی التبیین. (ج۱، ص۱۶۳، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۲۱۱، باب الجنائز.

## د مجنون (لیوني) د جنازې کیفیت

**سوال:** د کوم سړي په باره کښې چه په قطعي توګه د ا یقین وي چه لیونی دی. نو د د اسې لیوني د مړینې په صورت کښې به د هغه د جنازې کیفیت څه وي؟

**الجواب:** که چېرته د لیوني لیونتوب له کوچنیوالي څخه وي او تر بالغیدو پورې جوړ شوی نه وي نو د اسې سړی د نابالغو په زمرې کښې شمارل کیږي او د جنازې په آخرې تکبیر کښې هغه دُعا ویل کیږي کوم چه د نابالغو کوچنیانو لپاره ویل کیږي. البته که چېرته د ا لیونتوب له بالغ والي وروسته پرې راغلی وي نو بیا لیونتوب اګر که د ګناهونو لپاره دافع دی لیکن لرې کوونکی ئې نه دہ. د دې لپاره د بلوغ د مودې د روغ والي د ورځو په رعایتولو سره د اسړی بالغ ګڼل کیږي.

قال العلامة ابن العابدینؒ: تحت قوله کصبیّ سبی مع احد ابویه و المجنون البالغ کا لصبیّ الخ. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۵، باب الجنائز)

و قال ابراهیم بن محمدؒ: و المجنون کا لطفل و ینبغی ان یقید با لمجنون الا صلّی دون العارضی الخ. (صغیری ص۲۹٤، کتاب الجنائز) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص٤۸٤، باب الجنائز، فصل فی الصلٰوة علی المیت.



## د جسم په ځینو اندامونو باندې د جنازې حکم

**سوال:** که چېرته د طیارې یا کومې بلې حادثې کښې انساني بدن دومره متاثر شي چه ځینې برخې ئې لاس ته راشي او ځینې را نه شي. نو د انسان د پوره جسم د نه لاس ته راتلو په صورت کښې په ځینې برخې باندې ئې د جنازې د ادا کولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې که چېرته د جسم یا بدن اکثره برخه پیدا شي یا نیمه برخه له سر سره لاس ته راشي نو بیا د جنازې لمونځ پرې ادا کیږي او که نه وي نو له دې څخه په کمې برخې باندې د جنازې ضرورت نشته.

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و ذکر القاضی فی شرحه مختصر الطحاوی انهٗ اذا وجد النصف و معه الرأس یغسل و ان لم یکن معه الرأس لا یغسل فکانه جعله معه الرأس فی حکم الاکثر لکونه معظم البدن. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۰۲، فصل شرائط الوجوب، کتاب الجنائز)

و فی الهندیة: و لو وجد اکثر البدن او نصفه مع الرأس یغسل و یکفن و یصلّی علیه کذا فی المضمرات. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۹، الفصل الثانی فی الغسل) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۱۹۹، کتاب الجنائز، مطلب فی حدیث کل سبب و نسب منقطع.

## د ګڼ شمیر مړو یوه جنازه کافي ده

**سوال:** که چېرته په یوه وخت کښې ګڼ شمیر جنازې حاضرې شي نو په هر یوه باندې جلا جلا جنازه ضروري ده او که د ټولو لپاره یوه جنازه هم کافي کیږي؟

**الجواب:** په هر مړي باندې جلا جلا د جنازې ادا کول افضل دي. که چېرته په ټولو باندې په یو ځل باندې یوه جنازه ادا شي نو بیا هم صحیح ده.

قال العلامة الحصکفیؒ: اجتمعت الجنائز فافراد الصلٰوة علی کل واحدة اولٰی من الجمع و ان جمع جاز الخ. (الدر المختار علی رد المحتار ج۲، ص۲۱۸، باب الجنائز)

و فی الهندیة: و لو اجتمعت الجنائز یخیر الامام ان شاء صلّی علی کل واحد. و ان شاء صلّی علی الکلّ دفعة با لنیة علی الجمیع کذا فی معراج الدرایة. (ج۱، ص۱۶۵، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت) و مثله فی الخلاصة الفتاوٰی ج۱، ۲۲٤، الفصل الخامس العشرون فی الجنائز.

## په جنازې کښې د لاسونو د پورته کولو حکم

**سوال:** د جنازې د لمانځه د تکبیر ویلو په وخت کښې د لاسونو د پورته کولو څه حکم دی؟

**الجواب:** د احنافوؒ په نزد د اختر د تکبیرات زوائدو څخه پرته له تکبیر اولٰی څخه بغیر په نورو تکبیرونو کښې د لاسونو پورته کول سُنت نه دي. د دې لپاره د جنازې په لمانځه کښې یوائې په تکبیر اولٰی کښې د لاسونو پورته کول سُنت دي نه په نورو تکبیرونو کښې.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و هی اربع تکبیرات کل تکبیرة قائمة مقام رکعة یرفع یدیه فی الاولٰی فقط. (الدر

المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۱۲، باب الجنائز)

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لا یرفع یدیه الا فی التکبیرة الاولی...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱٤، فصل بیان کیفیة الصلٰوة علی الجنازة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۲٤، کتاب الجنائز.

## د تکبیر پاتې کیدل جنازه فاسدوي

**سوال:** د جنازې له ځلورو تکبیرونو څخه د یوه تکبیر د پاتې کیدو په صورت کښې د جنازې د لمانځه څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنازې په لمانځه کښې ځلور تکبیرونه د ځلورو رکنونو حیثیت لري، د یوه تکبیر د پاتې کیدو په صورت کښې به جنازه فاسده وي او دوباره ادا کول ئې لازم دي۔

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لان کل تکبیرة من هٰذه الصلٰوة قائمة مقام رکعة بدلیل انه لو ترك تکبیرة منها تفسد صلٰوته کما لو ترك رکعة من ذوات الاربع. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱٤، فصل بیان کیفیة صلٰوة الجنازة)

و قال العلامة ابن الهمامؒ: و لذا لو ترك تکبیرة واحدة منها فسدت صلٰوته کما لو ترك رکعة من الظهر. (فتح القدیر ج۲، ص۸۸، باب الجنائز) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۲٤۱، کتاب الجنائز.

## د جنازې په پنځم تکبیر کښې د امام متابعت ضروري نه دی

**سوال:** که چیرته امام په غلطۍ سره پنځم تکبیر شروع کړي نو مقتدیان ئې باید څه وکړي؟ آیا د امام متابعت پرې ضروري دی او که نه؟ همدارنګه که چیرته امام پنځم تکبیر ووایه نو بیا د مقتدیانو لپاره څه کول په کار دي؟

**الجواب:** جنازه تولهٔ له ځلورو تکبیرونو څخه عبارت ده۔ د پنځم تکبیر د ویلو په صورت کښې به مقتدیان د امام متابعت نه کوي بلکه د امام تر سلام ګرځولو پورې به په خاموشۍ سره د امام انتظار کوي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لو کبر امامه خمساً لم یتبع لانه منسوخ فیمکث الموتم حتٰی یسلم معه اذا سلم به یفتی. (در مختار ج۲، ص۲۱٤، باب الجنائز)

و قال برهان الدین المرغینانیؒ: و لو کبر الامام خمساً لم یتابعه الموتم..... الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۸۰)

## په جومات کښې د جنازې د اداکولو حکم

**سوال:** که چیرته له جومات څخه د باندې د جنازې د اداکولو لپاره مناسب ځای نه وي نو آیا په جومات کښې جنازه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د حنفي فقهې له مخې پرته له کوم شرعي عذر څخه جومات باید د جنازې لپاره و نه کارول شي۔ البته که چیرته باران یا د اسې نور عذرونه وي چه له جومات څخه د باندې د جنازې په اداکولو کښې تکلیف وي نو بیا په جومات کښې ئې اداکول جائز دي۔



قال العلامة ابن نجیمؒ: و لم یصلوا رکباناً الخ. بعد اسطر و لا فی مسجد لحدیث ابی داؤد مرفوعاً. من صلّٰی علی میت فی المسجد فلا اجر له و فی روایة فلا شیء لهٗ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۸٦، کتاب الجنائز)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و تکره الصلٰوة علی الجنازة فی مسجد جماعة عندنا.... الخ. (کبیری شرح المنیة ص۵۸۸)

## د جنازې د سر چپه کینبودلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چیرته کله واري د جنازې لپاره د مړي کټ سرچپه کینبودل شي یعني د مړي پښې د شمال خوا ته وي او سر ئې د جنوب خوا ته وي او په همدې کیفیت کښې د جنازې لمونځ پرې وشي نو آیا د دې جنازې دوباره اداکول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جنازې لپاره د مړي د چارپایي یا کټ کینبودلو طریقه دا ده چه په کومو ځایونو کښې چه قبله د مغرب خوا ته وي نو د مړي سر به د شمال په خوا او پښې به ئې د جنوب په خوا وي۔ که چیرته د ناپوهۍ او ناخبرۍ له وجهې کټ سرچپه کینبودل شي او جنازه پرې وشي نو لمونځ کیږي او د دوباره ګرځولو ضرورت ئې نشته۔ البته قصداً داسې کول مکروه دي۔

لما قال العلامة احمد الطحطاویؒ: و صحت لو وضعوا الرأس موضع الرجلین و اساؤا ان تعمدوا. (حاشیة الطحطاوی علی الدر المختار ج۱، ص۵۹۳، کتاب الجنائز)

لما قال العلامة المفتی عبد الرحیم: (الجواب) په قصد سره د جنازې سرچپه کینبودل مکروه دي۔ که په ناخبرۍ سره وي نو بیا پروا نه کوي۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۱،ص۳٦۰)

## د جنازې په لمانځـــــه کښې د سورت فاتحه د لوستلو حکم

**سوال:** د جنازې په لمانځه کښې د سورت فاتحه د لوستلو حکم څه دی؟ که چیرته یو څوك په جنازه کښې سورت فاتحه ولولي نو جنازه به بیرته را ګرځول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د احنافو په نزد د جنازې لمونځ په حقیقت کښې دُعا ده او د سورت فاتحې یا کوم بل سورت ویل پکښې ضروري نه دي۔ په دې کښې یوائې دُعاګانې لوستل کیږي۔ سورت فاتحه هم که چیرته د دُعا په نیت وویل شي نو پروا نه لري۔ البته د قرائت په نیت سره ئې ویل جائز نه دي۔ لکه څرنګه چه جنازه له ځلورو تکبیرونو څخه عبارت ده نو د ځلورو تکبیرونو په اداکولو سره جنازه ادا کیږي۔ لهٰذا د سورت فاتحه د قرائت په صورت کښې د جنازې بیرته راګرځول ضروري نه دي۔

لما فی الهندیة: و لا یقرأ فیها القرآن و لو قرأ الفاتحة بنیة الدعاء فلا بأس به و ان قرأها بنیة القرأة لا یجوز لانها محل الدعاء دون القرأة کذا فی المحیط السرخسی. (ج۱، ص۱٦٤، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت)

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لا یقرأ فی الصلٰوة علی الجنازة بشیء من القرآن الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۳، فصل بیان کیفیة الصلٰوة علی الجنازة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۸۳، باب الجنائز فصل فی الصلٰوة علی المیت.

## د جنازې د دوباره اداکولو حکم

**سوال:** د جنازې د لمانځه د بیا بیا اداکولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** یو ځل په یوه مړي باندې د جنازې اداکول فرض کفایه دی، له دې وجهې که چېرته د مړي ولي یا قاضي یو ځل اصالتاً یا نیابتاً د جنازې لمونځ اداکړي نو دوباره یا بیا بیا اداکول ئې ناروا دي۔ البته که چېرته د ولي له اجازې پرته نورو خلکو د جنازې لمونځ اداکړی وي نو ولي او قاضي ئې بیرته د کرځولو حق لري۔

قال فی الهندیة: و لا یصلی علی میت الا مرة واحدة و التنفل بصلٰوة الجنازة غیر مشروع کذا فی الایضاح و لا یعید الولی ان صلی الامام الاعظم او السلطان او الولی او القاضی او امام الحی لان هٰؤلاء اولٰی منه و ان کان غیر هٰؤلاء لهٗ ان یعید. (الهندیة ج۱، ص۱۶۳، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لا یصلّی علی میت الا مرة واحدة لا جماعة و لا وحداناً عندنا الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۱، فصل الکلام فی صلٰوة الجنازة)

## په غائبانه جنازې کښې د شریکېدلو حکم

**سوال:** آیا د جنازې د لمانځه لپاره مخ ته د مړي ته ایښودل ضروري دي او که نه؟ که چېرته ضروري وي نو زمونږ په ملك کښې په عمومي توګه د لویو خلکو په مړینې باندې د غائبانه جنازې په صورت کښې حنفي مسلکه خلك هم په جنازو کښې شرکت کوي۔ شرعا د دې مسئلې حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د احنافوؒ په نزد د جنازې د لمانځه له شرائطو څخه یو شرط دا هم دی چه د مړ شوي مسلمان لاش مخته ایښې وي۔ همدا وجه ده چه احنافؒ د غائبانه جنازې قائل نه دي۔ البته د لویو خلکو په مرګ باندې د ملك په کونج کونج کښې د هغو جنازې کول او د حنفي مسلکو په هغو کښې شریکېدل یوه سیاسي حربه ده چه له مسلك او مذهب سره هیڅ تعلق نه لري۔ دا محض د عوامو د خوشحالولو لپاره کیږي چه په داسې جنازو کښې له شرکت څخه پرهیز ضروري دی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و شرطها ایضاً حضوره و وضعه و کونه هو او اکثره امام المصلّی الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۰۸، باب الجنائز، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

و فی الهندیة: و من الشروط حضور المیت و وضعه و کونه امام المصلی فلا تصح علی غائب و لا علی محمول علی دابة و لا علی موضع. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۴، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹، فصل السلطان احق بصلاته.



## د جنازې په لمانځه کښې د درود شریف تعین

**سوال:** په عمومي ډول د جنازې په لمانځه کښې د درود شریف د ویلو په خت کښې د کما صلّیت و سلمت و بارکت و رحمت و ترحّمت الفاظ زیات ویل کیږي۔ د دې درود شریف د ثبوت لپاره کوم دلیل شته او که نه؟ همدا رنګه که چېرته د یوه سړي دا درود شریف په یادو نه وي نو هغه د لمانځه مشهور درود شریف پکښې ویلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جنازې د لمانځه لپاره د کوم ځانګړي درود شریف تعین نشته یوازې د درود شریف لوستل سُنت دي۔ لیکن په اکثرو کتابونو کښې مشهور ابراهیمي درود لیکل شوي دي نو ځکه د هغه ویل بهتر دي۔

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و اذا کبر الثانیة یأتی با لصلٰوة علی النبیﷺ و هی الصلٰوة المعروفة...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۳، فصل فی بیان کیفیة الصلٰوة علی الجنازة)

و قال العلامة ابن العابدینؒ: (تحت قوله کما فی التشهد) ای المراد الصلٰوة الابراهیمیة التی یأتی بها المصلّی فی قعدة التشهد. (شامی ج۲، ص۲۱۲، باب الجنائز) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۸۳، کتاب الجنائز.

**یادونه:** هو! مذکوره درود شریف یعنې کما صلیت و سلمت و بارکت و رحمت و ترحّمت له ځینو روایاتو څخه ثابت دی۔ د دې لپاره له دې درود څخه انکار کول یا هغه ته بدعت ویل مناسب نه دي۔

## په مکروه وختونو کښې د جنازې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** آیا په مکروه وختونو کښې د نورو لمونځونو غوندې د جنازې لمونځ هم مکروه دی او که د دې حکم جلا دی؟ د حضرت علي رضی الله عنه له دې روایت څخه چه یا علی ثلاث لا تؤخرها الصلٰوة اذا اتت و الجنازة اذا حضرت و الایم اذا وجدت لها کفواً. (مشکوٰة ص۶۱) معلومیږي چه جنازه هر کله حاضره شي نو په هغه وخت دې اداکړی شي او د مکروه وختونو استثناء پکښې نشته۔ په داسې حال کښې چه عامو فقهاوو په مکروه وختونو کښې د جنازې لمونځ هم مکروه بللی دی؟

**الجواب:** د تعجیل په باره کښې لکه څرنګه چه د حضرت علي رضی الله عنه له روایت څخه ثابت دی نو همدا رنګه د منع په باره کښې د حضرت عقبه بن عامرؓ روایت هم موجود دی۔ کوم چه د مشکوٰة مصنف په دې الفاظو سره را نقل کړی دی چه: عن عقبة بن عامرؓ قال ثلث ساعات کان رسول الله ینهانا ان نصلی فیهن او نقبر فیهن موتانا حین تطلع الشمس بازغة حتٰی ترتفع و حین یقوم قائم الظهیرة حتٰی تمیل الشمس و حین تضیف الشمس للغروب حتٰی تغرب. (مشکٰوة ج۱، ص۹۴) دواړه روایتونه په درجه کښې سره برابر دي، له دې وجهې د یوه روایت په را نیولو سره د بل روایت پرېښودل مناسب نه دي۔ احنافوؒ په داسې وخت کښې د دواړو روایتونو تر منځ د تطبیق صورت را ایستلی دی تر څو چه په دواړو روایتونو باندې عمل وشي۔ د فقهي اعتبار له مخې د دغو روایتونو د تطبیق صورت دا دی چه د جنازې اداکول هغه وخت فرضیږي کله چه جنازه حاضره شي۔ بیا فقهاوو

د اتصریح هم کړې ده چه د وخت د صحیح والي او نقصان له وجهې د وجوب حیثیت هم بغیر له متاثر کیدو څخه نه پاتې کیږي۔ چېرته چه کله وخت صحیح وي نو وجوب کامل پاتې کیږي او چېرته چه وخت ناقص وي نو وجوب هم ناقص پاتې کیږي۔ کما بین با لتفصیل الا فی عصر یومه. لهذا که چېرته جنازه له مخکښې نه حاضره شوې وي نو کامل وجوب له وجهې د مکروه تر وخته پورې ئې ځنډول ناجائز دي۔ او په دې صورت کښې په مکروه وختونو کښې د حضرت علي د روایت له مخې جنازه مکروه ده۔ لیکن که چېرته جنازه په مکروه وخت کښې حاضره شي نو بیا د حضرت عقبه بن عامرؓ د روایت له مخې تر غیر مکروه وخت پورې د جنازې ځنډول مکروه دي او د ناقص وجوب له وجهې په دې مکروه وخت کښې د دې جنازې ادا کول سره له کراهیته جائز دي۔

لما قال العلامة بدر الدین العینیؒ: لا تجوز الصلٰوة الجنازة فی الاوقات الثلاثة المذکورة هٰذا محمول علی جنازه حَضَرَتْ قبل التغیر لان الصلٰوة وجبت بحضورها کاملة و لا تؤدی با لناقص حتٰی لو حَضَرَتْ جنازة فی هٰذا الوقت جازت الصلٰوة مع الکراهة لانها ادیت ناقصة کما وجبت. (البنایة ج۱، ص۶٤، کتاب الصلٰوة، باب المواقیت)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: (و کره) تحریماً و کل ما لا یجوز مکروه (صلٰوة) مطلقاً (و لو) قضاءً او واجبة او نفلاً و (علی جنازة و سجدة تلاوة و سهو) لا شکر تنیه مع شروق و استواء...... و غروب الا عصر یومه....... لا ینعقد الفرض و ما هو ملحق به کواجب لعینه کوتر و سجدة تلاوة و صلٰوة جنازة تلیت الآیة فی کامل و حَضَرت الجنازة قبل لوجوبه کاملاً فلا یتأدی ناقصاً فلو وجبتا فیها لم یکره فعلهما ای تحریماً. قال ابن عابدینؒ: قوله ای تحریماً افاد ثبوت الکراهة التنزیهیة. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۲/۳۷۵، الاوقات المکروهة) و مثله فی مراقی الفلاح و طحطاوی ص۱٤۹، کتاب الصلٰوة، فصل فی الاوقات المکروهة.

## د جنازې د لمانځه په دُعاګانو کښې اخفاء سُنت ده

**سوال:** د جنازې په لمانځه کښې چه کومې دُعاګانې لوستل کیږي د هغو د ویلو مسنون کیفیت څه دی؟ که چېرته ئې یو څوک په جهر سره ووایي نو آیا د جنازې بیرته ګرځول به ئې ضروري وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنازې د لمانځه په باره کښې دا پیژندل ضروري دي چه د هغې یوائې تکبیرونه ارکان دي او له تکبیرونو پرته ثناء، درود شریف یا کومې دُعاګانې چه لوستل کیږي تول سُنت دي، د دې لپاره دا دُعاګانې په پټه سره لوستل مسنون دي، که چېرته ئې څوک په جهر سره ولولي نو هغه د سُنتو مخالفت وکړ۔ البته بیرته ګرځول ئې ضروري نه دي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یسلم بلا دُعاء بعد الرابعة تسلیمتین ناویاً المیت مع القوم و یسر الکل الاّ التکبیر الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۱۳، باب الجنائز)

و فی الهندیة: و یخافت فی الکل الا فی التکبیر کذا فی التبیین. (الهندیة ج۱، ص۱٦٤، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۸۳، باب صلٰوة الجنازة.



## په جنازه کښې د طاق صفونو د جوړولو شرعي حیثیت

**سوال:** د جنازې په لمانځه کښې د طاقو صفونو د جوړولو شرعي حیثیت څه دی؟ په داسې حال کښې چه په ځینو علاقو کښې دومره زور پرې اچول کیږي چه د طاقو صفونو تر جوړولو پورې تکبیر موقوف پاتې وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بې له شکه د جنازې په لمانځه کښې د طاقو صفونو فضیلت له روایتونو څخه ثابت دی۔ لیکن د فقهي کتابونو عام عبارتونه تر دریو صفونو پورې صفونه په ګوته کړي دي ځکه ئې رعایت بهتر دی۔ البته جنازه پرې موقوف کول ښه نه دي۔

لما ورد فی الحدیث ما من مسلم یموت فیصلّی علیه ثلٰثة صفوف من المسلمین الا اوجب. (مشکٰوة شریف ص۱٤۷، الفصل الثالث فی المشی الی الجنازة)

و قال علامة ابن العابدینؒ: و یستحب ان یصف ثلٰثة صفوف الخ. (رد المحتار ج۲. ص۲۱٤، کتاب الجنائز)

و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱٦٤، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت.

## په جنازه کښې د قدمونو د ګڼلو شرعي حیثیت

**سوال:** په ځینو علاقو کښې دا رواج دی چه د جنازې د پورته کولو په وخت کښې د جومات امام د کټ له ښۍ پښې څخه شروع کوي او له هرې پښې سره لس لس قدمونه اوچتوي تر څو چه څلویښت پوره شي۔ او د امام د هرو لسو ګامونو په تبدیلولو باندې د کټ د بلې پښې خاوند هم بدلیږي۔ تر دې پورې چه په ځینو کلیو کښې د جومات د امام لپاره دا عمل لازمي ګڼل کیږي او په نه کولو سره ئې ملامتوي۔ د شریعت له مخې د قدمونو دا شمیر څه حکم لري؟

**الجواب:** د قدمون د ګڼلو حقیقت دا دی چه له رسول اللهﷺ څخه په یوه حدیث کښې راغلي دي چه چا چه د مسلمان جنازه تر څلویښتو قدمونو پورې اوچته کړه نو د هغه څلویښت لوی لوی ګناهونه معاف کیږي۔ فقهاوو په دې حدیث باندې د عمل کولو دا صورت بیان کړی دی چه د کټ له څلورو پښو څخه له هرې پښې سره تر لسو لسو قدمونو پورې ټګ کول څلویښت قدمه پوره کیږي او د مړي حق ادا کیږي۔ لیکن په پورتنۍ مروجې طریقې سره د قدمونو په شمارولو کښې څو قباحتونه (بدۍ) مخې ته راځي۔ د مثال په ډول دا یوائې د جومات د امام ذمه واري ګڼل کیږي په داسې حال کښې چه دا حدیث د هر اوچتوونکي په حق کښې راغلی دی۔ برسیره پر دې دا د امام له فرائضو څخه ګڼل کیږي، همدارنګه په دې کښې په خصوصي توګه د نیکۍ او ثواب عقیده ساتل کیږي کوم چه په شریعت کښې له زیادت سره برابر دی۔ د دې لپاره له دې لزوم څخه پرهیز وکړی۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و اذا حمل الجنازة وضع مقدمها یمینه عشر خطوات لحدیث من حمل جنازة اربعین خطوة کفوت عنه اربعین کبیرة. (الدر المختار ج۱، ص۹۳۰، الجنائز)

او د کنز العمال په ج۱۵، حدیث نمبر ۴۲۳۶۵ کښې راغلي دي. لیکن هغه د خطوه لفظ نه دی ذکر کړی.

و قال ابراهیم بن محمدؒ: و یستحب من کل جانب عشر خطوات لقوله علیه السلام من حمل اربعین خطوة الخ. (صغیری ص ۳۹۵، کتاب الجنائز) و مثله فی غایة الاوطار ج۱، ص۴۱۸، کتاب الجنائز.

## د تعزیت (فاتحه خواني) لپاره د څو دقیقو لپاره د سکوت (چُپ والي) حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا په حکومتي سطح باندې چه کله څوک د چا په وفات باندې وارثانو ته تعزیت کوي نو د هغه لپاره یو څو دقیقې خاموشي غوره کوي. آیا په اسلام کښې د دې څه ګنجائش شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** اسلام د چا په وفات باندې د مړي د وارثانو په غم کښې د شرکت او تعزیت یوه طریقه مسلمانانو ته ښوولې ده. او مسلمانان په همدې طریقې باندې د چا په غم کښې د شریکیدو او تعزیت اظهار کولی شي. په سوال کښې د تعزیت د ښکارولو درج شوې طریقه د یهودو او هنودو ده. د دې لپاره د مسلمانانو لپاره د دې طریقې اختیارول ناجائز خو پرېږده بلکه له یهودو او هنودو سره د مشابهت له وجهې ئې پرېښودل واجب دي.

عن عبادة بن الصامت ان النبیﷺ کان لا یجلس حتٰی یوضع المیت فی اللحد فکان قائماً مع اصحابه علی رأس قبر. فقال یهودی هٰکذا نصنع بموتانا فجلس رسول الله و قال خالفوهم. (بحوالهٔ فتاوٰی رحیمیه ج۱، ص۳۸۵، کتاب الجنائز)

## د ولي لپاره تیمم جائز نه دی

**سوال:** آیا د جنازې د لمانځه لپاره د اوبو په لاس ته راوړو باندې د قدرت درلودلو تر څنګ تیمم جائز دی؟ که چېرته جائز وي نو آیا له دې رخصت څخه د مړي ولي هم فائده اوچتولی شي او که دا یوائې د غیر اولیاوو لپاره خاص دی او د مړي د ولي لپاره اودس ضروري دی؟

**الجواب:** د جنازې د لمانځه لپاره د تیمم د اجازې او رخصت بنیادي فلسفه دا ده چه د جنازې لمونځ یو داسې عبادت دی چه د فوت کیدو په صورت کښې ئې قضاء نشته. ځکه چه تنفل با لجنازه ناروا ده. لهذا چه کله له چا څخه د جنازې د فوت کیدو اندیښنه وي نو د معقول عذر له وجهې دا سړی د اودسه په ځای تیمم کولی شي. لیکن د ولي نژدې مقام او حیثیت ته په کتو سره دا ویل کیدلی شي چه جنازه د هغه تر اجازې پورې اړه لري. تر څو پورې چه ولي اجازه نه وي کړې نو بل سړی ئې جنازه نه شي ادا کولی. لهذا د هغه په حق کښې د جنازې فوت کیدل متحقق نه دی. د دې لپاره ولي دې باقاعده اودس وکړي او په تیمم باندې اکتفاء نه شي کولی.

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و تیمّم الصحیح فی المصر اذا حَضَرَت جنازة و الولی غیره فخاف ان اشتغل با لطهارة ان تفوته الصلٰوة لانها لا تقضی...... الخ. (الهدایة ج۱، ص۵۵/۵۶، باب التیمم)



و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: حتٰی لو حضرته الجنازة و خاف فوت الصلٰوة لو اشتغل با لوضوء تیمّم و صلّی الٰی قوله حتٰی لو کان ولی المیت لا یباح له التّیمّم...... الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۵۱، باب التیمّم فصل کیفیة التّیمّم) و مثله فی الشامی ج۱، ص۱۷۷، باب التیمم.

## د مړي د جنازې لپــــاره د کټ د استعمالولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم مسلمان مړی په کټ باندې واچول شي نو آیا په هغه باندې د جنازې لمونځ جائز دی؟

**الجواب:** په کټ باندې د مړي کیښودل کوم مقصود بالذات شی نه دی، د آسانتیا لپاره که چېرته مړی په کټ باندې واچول شي نو پروا نه لري او د جنازې لمونځ هم پرې جائز دی. د جنازې د ادا کولو لپاره هغه له کټ څخه جلا کول ضروري خبره نه ده. د رسول اللهﷺ د جنازې لمونځ هم په کټ باندې د پاسه ادا شوې وه.

لما ذکر فی مسند امام احمدؒ: عن عبد الله بن عمر بن علی بن ابی طالب عن ابیه عن جده عن علیؓ قال: لما وضع رسول اللهﷺ علی السریر قال لا یقوم علیه احد هو امامکم حیّا و میتاً فکان یدخل الناس رسلاً رسلاً فیصلون علیه صفاً صفاً لیس لهم امام و یکبرون. (ج۳، ص۱۲۳)

و فی المشکٰوة المصابیح: و عن نافع ابی غالب قال صلّیت مع انس بن مالك علی جنازة رجل فقام حیال رأسه ثم جاؤا بجنازة امرأة من قریش فقالوا یا ابا حمزه صل علیها فقام حیال وسط السریر فقال له العلاء بن زیاد هٰکذا رأیت رسول اللهﷺ قام علی الجنازة مقامك منها و من الرجل مقامك منه قال نعم. (ص۱۴۷) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۱۵۶، کتاب الجنائز.

## په جنازه کښې د چارپایي د ځای پاکوالی ضروري نه دی

**سوال:** د جنازې په لمانځه کښې چه په کوم ځای باندې د مړي کټ کیښودل کیږي آیا د هغه ځای پاکوالی ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مړي د کټ د ځای پاکوالی د جنازې د صحت له شرائطو څخه نه دی د دې لپاره که چېرته د کټ ځای پاك نه وي نو په جنازې باندې کوم اثر نه لویږي.

قال العلامة ابن العابدینؒ: و فی التاتارخانیة: سئل قاضی خان عن طهارة مکان المیت هل تشترط لجواز الصلٰوة علیه قال ان کان المیت علی الجنازة لا شك انهٗ یجوز و الا فلا روایة لهٰذا و ینبغی الجواز. (رد المحتار ج۲، ص۶۴۰، مطلب فی صلٰوة الجنازة)

و قال العلامة ابن نجیمؒ: قید المصنف بطهارة المیت احترازاً عن طهارة مکانه قال فی الفوائد التاجیة ان کان علی جنازة لا شك انهٗ یجوز و ان کان بغیر جنازة لا روایة لهذا و ینبغی ان یجوز لان طهارة مکان المیت لیس بشرط لانه بمؤد. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۳، الفصل الخامس فی الصلٰوة علی المیت.

## تر جنازې وروسته د دُعا شرعي حيثيت

**سوال:** په ځينو ځايونو کښې د جنازې تر ادا کولو فوراً وروسته امام د قوم خوا ته مخ اړوي او لاسونه پورته کوي له قوم سره په اجتماعي شکل سره دُعا غواړي- د خلکو په ذهنونو کښې د اجتماعي دُعا دومره اهميت ټينګ شوی دی چه که څوک دُعا و نه کړي نو هغه ملامتوي بلکه په ځينو علاقو کښې پخپله علماء کرام د دخل اندازۍ له مخې يوه بل ته تر بد رد ويلو پورې خبره رسيږي- د شريعت له مخې په دې کيفيت سره د دُعا د کولو څه حکم دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** تر جنازې وروسته د اجتماعي دُعا د حکم تر بيانولو مخکښې څو مقدماتو ته توجه ورکول ضروري دي-

﴿۱﴾ اوله مقدمه دا ده چه د جنازې لمونځ پخپله دُعا ده، امام د قوم په ملګرتيا کښې د مړ شوي سړي لپاره د الله تعالی په دربار کښې د مغفرت او رفع درجات لپاره سفارش کوي-

﴿۲﴾ دويمه مقدمه دا ده چه په شريعت کښې د عمل هغه طريقه معتبره وي چه شريعت اجازه ورکړې وي، که چېرته د شريعت د کوم متوارث عمل شرعي حيثيت له کوم د اسې حرکت څخه مجروح کيده نو له د اسې حرکت څخه پرهيز ضروري دی-

﴿۳﴾ دريمه مقدمه دا ده چه د مړي لپاره د هغه پسماندګان چه کله په صدق نيت سره دُعا وکړي نو فائده ئې په يقيني توګه مړي ته رسيږي-

د دغو دريو مقدماتو په پام کښې نيولو سره مونږ دا ويلی شو چه د مړي لپاره چه کله هم څوك دُعا غواړي نو د هغې څه ناڅه ګټه خامخا مړي ته رسيږي ليکن د دوهمې مقدمې له مخې د دانشمندۍ تقاضا دا ده چه انسان خپل عمل له کوم د اسې حرکت څخه محفوظ وساتي چه له وجهې ئې د هغه شرعي حيثيت متاثر کيږي- د اولې مقدمې له مخې چه کله جنازه پخپله دعا ده نو د سلام له ګرځولو سره دا دُعا ختميږي، د سلام تر ګرځولو وروسته د بيا لپاره په لازمي توګه له دُعا غوښتنې څخه متوارثه عمل يعنې په جنازې باندې د زياتوالي شبه پيدا کيږي- ځکه چه خلك په صفونو کښې په د اسې توجه سره دريدلي وي لکه څرنګه چه د جنازې تکبيرونه ويل کيږي- لهذا له دې اشتباه څخه د ځان ساتنې لپاره په د اسې کيفيت باندې له دُعا کولو څخه پرهيز ضروري دی، په خاصه توګه چه د اهتمام حالت ئې دا وي چه په د اسې رسمي دُعا کښې شرکت نه کول د شرم سبب ګڼل کيږي- البته که چېرته پرته له لزوم او التزام څخه په د اسې وخت کښې دُعا وشي چه صفونه مات شي نو د صفونو تر ماتولو وروسته د اشتباه د نه پاتې کيدو او د نه اهتمام له وجهې د دُعا په کولو کښې کوم حرج نشته- هو! که چېرته دا هم د جنازې يوه برخه وګڼل شي نو له دې څخه اجتناب يعنې پرهيز ضروري دی-

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاریؒ: لا يقوم با لدُعاء بعد صلٰوة الجنازة...... الخ. (خلاصة الفتاوٰی



ص ۲۲۵، الفصل الخامس و العشرون فی الجنائز، نوع منه)

قال ملا علی قاریؒ: و لا يدعوا للميت بعد صلٰوة الجنازة لانهٗ يشبه الزيادة فی صلٰوة الجنازة. (مرقات المفاتيح شرح مشكٰوة المصابيح ج۲، ص۳۶۹، کتاب الجنائز) و مثله فی تجهيز الجنازة ص ۶۱، کتاب الجنائز.

## د مړي تر څنګ د قرآن کـــــريم د تلاوت حکم

**سوال:** د مړي شاوخوا ته ناست خلك که چېرته موقع غنيمت وګڼي او د قرآنکريم تلاوت وکړي نو شرعاً د دې حکم څه دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** که چېرته مړي ته غسل ورکړ شوی وي او تر غسل وروسته د هغه تر څنګ قرآنکريم تلاوت شي نو دا په اتفاق سره جائز دي، البته د غسل تر ورکولو مخکښې تلاوت اکثرو کتابونو مکروه بللی دی- ليکن علامه علاؤ الدينؒ فرمايي چه مړی له غسل مخکښې محدث خو خامخا دی ليکن نجاست ئې يقيني نه دی نو ځکه له غسل مخکښې هم د قرآنکريم تلاوت پروا نه لري-

قال علاؤ الدين الحصكفیؒ: و يقرأ عنده القرآن الی ان يرفع الی الغسل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۹۳، باب الجنائز)

و قال العلامة ابن عابدينؒ فی منحة الخالق: و تكره قرأة القرآن عنده الٰی ان يغسل..... الخ. (منحة الخالق حاشية البحر الرائق ج۱، ص۱۹۱)

## په جنازه کښې د شريکو خلکو لپاره ذکر بالجهر مکروه دی

**سوال:** په ځينو ځايونو کښې د جنازې د پورته کولو په وخت کښې شريك خلك په زوره زوره کلمه طيبه او کلمه شهادت وايي- آيا په لار کښې دا ذکر شرعاً جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** په زړه کښې ذکر کول څه پروا نه لري ليکن په نوموړي صورت کښې په لوړ آواز سره ذکر کول له کراهيت څخه خالي نه دی-

لما فی الهندية: و يكره رفع الصوت با لذكر و قرأة القرآن و فيه ايضاً فان اراد ان يذكر الله يذكره فی نفسه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۲، الفصل الرابع فی حمل الجنازه)

و قال ابن نجيمؒ: و يكره رفع الصوت با لذكر و قرأة القرآن و غيرهما فی الجنازة الخ (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۲، باب صلٰوة الجنازة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۰، فصل الكلام فی حمله علی الجنازة.

## په تجهيز او تدفين کښې د ځنډ حکم

**سوال:** په تجهيز او تدفين (ښخولو) کښې په لرې پرتو سيمو کښې د خپلوانو د راتلو په انتظار کښې ځنډ کول څنګه دي؟ په د اسې حال کښې چه کله له نورو ښارونو څخه د خپلوانو او دوستانو رسيدل ډير وخت انتظار غواړي؟

**الجواب:** په عامه توګه د مړو د جنازې په لمانځه، تجهيز، تکفين او تدفين کښې پرته له کوم معقول عذر څخه زيات تاخير کول جائز نه دي، البته که چېرته د کوم معقول شرعي عذر له

12

وجهې تاخیر وشي نو پروا نه لري۔

لما روی عن النبی ﷺ قال یا علی ثلث لا تؤخرها الصلٰوة اذا اتت و الجنازة اذا حضرت و الایم اذا وجدت لها کفواً. (مشکٰوة شریف ص ٦١)

و قال عبد الله التمرتاشیؒ: و کره تاخیر صلٰوته و دفنه لیصلی علیه جمع عظیم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۳۲، کتاب الجنائز) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۱، باب الجنائز.

## د ښځې په خښولو کښې د نا محرمو خلکو شرکت

**سوال:** آیا کوم نامحرمه سړی د کومې پردۍ ښځې جنازې ته اوږه ورکولی او پورته کولی شي او که نه؟ همدارنګه د تدفین په وخت کښې قبر ته د ور کښته کولو په وخت کښې د نامحرمه سړي د شرکت او امداد شرعاً څه حکم دی؟

**الجواب:** تر کومه ځایه پورې چه د فوت شوې ښځې د کټ د پورته کولو مسئله ده نو په هغه کښې د محرمو خلکو موجودوالی ضروري نه دی بلکه د پردې له اهتمام څخه وروسته ئې پردي سړي هم پورته کولی شي۔ د امهات المؤمنینو ډولۍ په باقاعده توګه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم پورته کولې۔ او قبر ته د ور کښته کولو په وخت کښې چه تر څو پورې محارم موجود وي نو دا ذمه واري به پخپله محرمان سنبالوي۔ البته چه کله محارم نه وي نو بیا نامحرمه خلک هم د ضرورت په وخت کښې دا ذمه واري اداکولی شي۔

قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: ذو الرحم المحرم بادخال المرأة القبر من غیره لانه یجوز له مسها حالة الحیاة فکذا بعد الموت و کذا ذو الرحم المحرم منها اولٰی من الاجنبی و لو لم یکن فیهم ذو رحم فلا بأس للاجانب و ضعها فی قبرها الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۲۰)

و فی الهندیة: ذو الرحم المحرم اولٰی بادخال المرأة من غیرهم و کذا ذو الرحم غیر المحرم اولٰی من الاجنبی فان لم یکن فلا بأس للاجانب وضعها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱٦٦، الفصل السادس فی الدفن) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۳، باب الجنائز.

## په قبرستان یا هدیره کښې د جنازې د اداکولو حکم

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې د یوه سړي د جنازې لمونځ په یوه داسې ځای کښې ادا شو چه قبر له جنازې څخه تقریبا یو ګز لرې وو، آیا داسې کول جائز دي؟

**الجواب:** د مقدس شریعت حکم دی چه په یوه داسې ځای کښې چه هلته قبرونه وي د جنازې اداکول مکروه دي۔ فقهاء کرامو له داسې کولو څخه منع کړې ده۔ هو! که چېرته قبرونه دومره لرې وي چه لمونځ کوونکو ته په نظر نه ورتلل یا په منځ کښې کوم شی حائل وو نو په دې صورت کښې د جنازې لمونځ له کراهیت پرته جائز دی۔ البته حضرت تهانویؒ د قبر تر څنګ هم جنازه جائزه بللې ده۔



قال ابو حنیفةؒ و لا ینبغی ان یصلی علی میت بین القبور و کان علیؓ و ابن عباسؓ یکرهان ذٰلک فان صلوا اجزأهم. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۵، باب الجنائز)

قال العلامة الکاسانیؒ: قال ابو حنیفة و لا ینبغی ان یصلّی علی المیت بین القبور. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۱۵، کتاب الجنائز)

## د نبي کریم ﷺ د جنازې په لمانځه کښې د څلورو خلیفه ګانو رضی الله عنهم شرکت

**سوال:** آیا د نبي کریم ﷺ د جنازې په لمانځه کښې خلفاء اربعه شریک وو؟

**الجواب:** د نبي کریم ﷺ د جنازې په لمانځه کښې د څلورو خلیفه ګانو شرکت له عامو روایتونو څخه ثابت دی۔

ابن سعد رحمة الله علیه فرمایي: لما کفن رسول الله ﷺ و وضع علی سریره دخل ابو بکر و عمر فقال السلام علیک ایها النبی ورحمة الله و برکاته و معهما نفر من المهاجرین و الانصار قدر ما یسع البیت فسلّموا کما سلّم ابو بکرٍ و عمر الخ. (طبقات الکبرٰی ج۵، ص۲۹۰)

قال العلامة ابن کثیر رحمه الله: قال الواقدی حدثنی موسٰی بن محمد بن ابراهیم قال وجدت کتاباً بخط ابی فیه انهٗ لما کفن رسول الله ﷺ و وضع علی سریره دخل ابو بکر و عمر الخ. (البدایة و النهایة ج٦، ص۲۳۲)

## د رسول الله ﷺ د جنازې تحقیق

**سوال:** د رسول الله ﷺ د جنازې لمونځ څنګه ادا شو؟ دی مبارک ﷺ لکه څرنګه چه له ګناهونو څخه پاك وو نو په آخري تکبیر کښې د ده لپاره څنګه دُعا وغوښتل شوه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول الله ﷺ د جنازې په لمانځه کښې د باقاعده امامت ثبوت نشته او نه چا د امام د جوړېدو جرأت پیدا کړ۔ بلکه صحابه کرامؓ به ډلې ډلې د حضرت عائشه رضی الله عنها حجرې ته داخلیدل د ده مبارک ﷺ جنازه به ئې وکړه چه په دې ډول سره د ده مبارک ﷺ څو څو ځلې جنازه ادا شوه۔ او د عامې دُعا په ځای لاندیني کلمات پکښې ویل کیدل۔

قال العلامة سید زرقانیؒ: و منها انه ﷺ صلی علیه الناس افواجاً افواجاً روی الترمذی قالوا لابی بکرؓ نصلی علی رسول الله ﷺ قال نعم، قال و کیف نصلّی قال یدخل قوم و یصلون و یدعون ثم یدخل القوم فیصلون فیکبرون و یدعون فرداً الخ. (زرقانی ج۵، ص۳۷۹)

و فیه ایضاً و بغیر دُعاء الجنازة المعروف عن علٰی انهم کانوا یکبرون و یقولون السلام علیک ایها النبی و رحمة الله اللّٰهم انا نشهد ان محمد قد بلغ ما انزل علیه و نصح لاُمته و جاهد فی سبیلک حتٰی اعز الله کلمة. (زرقانی ج۵، ص۳۷۹)

## مسائل شتّٰی باب الجنائز

## (د جنازې د لمانځه مختلف احکام او مسئلې)

### د مړي سر رمنځول او سترګې تورول ئې جائز نه دي

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې لیدل شوي دي چه د کوم سړي تر مړینې وروسته د هغه سر رمنځوي او سترګې ور توروي، آیا د اسې کول شرعا جائز دي؟

**الجواب:** له مړ کیدو وروسته د بنائست لپاره د هغه سترګې تورول او سر ئې رمنځول او د اسې نور جائز نه دي۔

لما قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: التزين بعد موتها و الامتشاط و قطع الشعر لا يجوز. (رد المحتار ج۲، ص۱۹۸، کتاب الجنائز، قبل مطلب فی حدیث کل سبب و نسب منقطع)

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: قوله و لا يسرح شعره و لحيته و لا يقص ظفره و شعره) لانها للزينة و قد استغنى عنها و الظاهر ان هٰذا الصنيع لا يجوز. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۳، کتاب الجنائز) و مثله فی امداد الفتاوی ج۱، ص۴۸۵، باب الجنائز.

### مړي ته د غسل ورکولو لپاره د هغه په تخته باندې د څملولو طریقه

**سوال:** مړي ته د غسل ورکولو په وخت کښې د هغه مخ کومې خوا ته ګرځول مسنون دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په فقهي ذخائرو کښې مړی د غسل په تخته باندې د څملولو دوه طریقې بنوول شوي دي۔

﴿۱﴾ د مړي پښې دې په تخته باندې قبلې ته وغزول شي۔

﴿۲﴾ یو اړخې مخ ئې د قبلې خوا ته وګرځول شي لکه څرنګه چه په قبر کښې کیښودل کیږي۔

د دواړه طریقې جائزې دي البته دویمه طریقه مستحسنه ده۔

لما فی الهندية: و كيفية الوضع عند بعض اصحابنا الوضع طولا كما فی حالة المرض اذا اراد الصلوٰة بايماء و منهم من اختار الوضع كما يوضع فی القبر و الاصح انه يوضع كما تيسر. (الفتاوی الهندی ج۱، ص۱۵۸)

قال الشيخ العلامة اشرف علی التهانویؒ: د غسل په وخت کښې په تخته باندې د مړي د څملولو دوه طریقې دي۔ یوه دا چه پښې ئې د قبلې خوا ته وغزول شي او بله دا چه پښې ئې د جنوب په خوا وغزول شي یو اړخې مخ ئې د قبلې خوا ته شي لکه څرنګه چه په قبر کښې کیښودل کیږي۔ او په دواړو صورتونو کښې چه کوم صورت کیدلی شي هغه جائز دی۔ لیکن دوهم صورت زیات مستحسن دی۔ څکه چه په حدیث کښې راغلي دي چه کعبه مبارکه د مړو او ژوندو دواړو قبله ده۔ (امداد الفتاوی ج۱، ص۴۹۳، باب الجنائز)



### د جنازې د لمانځه لپاره د وصیت حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك د ا وصیت وکړي چه زما د جنازې لمونځ به فلاني سړی ورکوي۔ آیا په د اسې وصیت باندې عمل کول ضروري دي او که نه؟

**الجواب:** د مړي د ا ډول وصیت نافذ العمل نه وي، د دې لپاره له مړ کیدو وروسته ئې د ا وصیت باطلیږي۔ د جنازې لمونځ چه څوك ورکړي ادا کیږي۔

و فی الهندية: فی الكبرىٰ الميت اذا وصى بان يصلى عليه فلان فا لوصية باطلة و عليه الفتوى. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۳، کتاب الجنائز، الفصل الخامس فی الصلوٰة علی الميت)

قال العلامة الحصكفیؒ: و الفتوىٰ على بطلان الوصية بغسله و الصلوٰة عليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۲۱، کتاب الجنائز) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۲۲۱، کتاب الجنائز، مطلب تعظيم اولی الامر واجب.

### د جنازې په لمانځه کښې د درود شریف، د ویلو حکم

**سوال:** د جنازې په لمانځه کښې کوم درود شریف لوستل زیات مناسب دي؟

**الجواب:** د جنازې په لمانځه کښې هغه درود شریف باید ولوستل شي کوم چه په پنځه وخته لمانځه کښې لوستل کیږي۔ یعنې له دې څخه مراد درود ابراهیمي دی۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و يصلى على النبیﷺ كما فی التشهد. (رد المحتار ج۲، ص۲۱۲، کتاب الجنازة، مطلب هل تسقط فرض الكفاية بفعل الصبیؒ)

لما قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: و المراد با لصلوٰة الصلوٰة عليه فی التشهد و هو الاولیٰ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۸۳، کتاب الجنائز) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۴۸۶، رابعاً ارکان صلوٰة الجنازة الخ.

### په قبر کښې د مړي مخ باید قبلې ته وګرځول شي

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې خلك چه کله مړی قبر ته ور کښته کوي نو یو اړخې ئې مخ قبلې ته ګرځوي۔ نو آیا د اسې کول مسنون دي او که ستوني ستاق څملول او مخ ئې قبلې خوا ته ګرځول مسنون دي؟

**الجواب:** په مبارکو احادیثو کښې خو د مړي مخ د قبلې خوا ته د ګرځولو حکم دی او د ا کار په دواړو صورتونو کښې پوره کیږي۔ البته په ښي اړخ څملول او مخ ئې قبلې خوا ته کول بهتر دي اګر که ستوني ستاق څملول او مخ ئې قبلې ته اړول هم جائز دي۔

و فی الهندية: و يوضع فی القبر على جنبه الايمن مستقبل القبلة. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۶، الباب الحادی و العشرون)

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يوجه اليها وجوباً و ينبغي كونه على شقه الايمن و لا ينبش ليوجه اليها. (الدر المختار على هامش الطحطاوی ج۱، ص۳۸۱، باب صلوٰة الجنائز) و مثله فی امداد الفتاوی ج۲، ص۴۸۵، کتاب الجنائز.

## د جنازې په لمانځه کښې د سلام د هېرېدلو حکم

**سوال:** که چېرته د جنازې په لمانځه کښې له چا څخه سلام ګرځول هېر شي نو آيا د جنازې لمونځ ئې کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د جنازې په لمانځه کښې سلام ګرځول نه فرض دي او نه واجب۔ د دې لپاره په هېره سره د سلام نه ګرځولو په صورت کښې د جنازې لمونځ نه متاثر کيږي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: صلٰوة الجنازة و ركنها شيئان التكبيرات الاربع و القيام و سننها ثلٰثة التحميد و الثناء و الدعا فيها. (الدر المختار علی هامش الطحطاوی ج۱، ص۳۷۲، باب الجنائز)

قال العلامة اشرف علی التهانویؒ: و فی الدر المختار صلٰوة الجنازة و ركنها شيئان التكبيرات الاربع و القيام و سننها ثلٰثة التحميد و الثناء و الدعاء فيها. (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۵۰۳، باب الجنائز)

## مېړه د ښځې قبر ته نه شي کښته کېدلی

**سوال:** آيا مېړه د خپلې ښځې قبر ته ور کښته کېدلی شي او که نه په داسې حال کښې چه د ښځې نور وارثان موجود وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مېړه لپاره خپلې ښځې ته تر مړه کېدو وروسته لاس لګول شرعاً منع دي۔ لهذا د نورو وارثانو په موجود والي کښې مېړه خپله ښځه قبر ته نه شي کښته کولی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يمنع زوجها عن غسلها و مسها لا من النظر اليها علی الاصح منية. و قالت الائمة الثلاثة یجوز لان عليا غسل فاطمةؓ قلنا هٰذا محمول علی بقاء الزوجية الخ. (الدر المختار علی هامش الطحطاوی ج۱، ص۳۶۷، باب الجنائز)

لما قال الشيخ وهبة الزحيلی: قال الحنفية لا يجوز للرجل غسل زوجته و مسها لانقطاع النكاح و يجوز له النظر اليها فی الاصح. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۴۵۸، باب صلٰوة الجنازة ثانياً صفة الغاسل) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۲، ص۵۰۷، باب الجنائز.

## مېړه خپلې ښځې ته تر وفات کېدو وروسته غسل نه شي ورکولی

**سوال:** آيا د ښځې تر مرګ وروسته مېړه هغې ته غسل ورکولی شي او که نه؟

**الجواب:** د مېړه خپلې ښځې ته د غسل ورکولو په باره کښې مختلف روايتونه موجود دي۔ د دې لپاره د حنفيه ووؒ د تحقيق مطابق د ښځې تر وفات وروسته لکه څرنګه چه د دواړو نکاح له منځه ځي او دواړه د يوه او بل لپاره پردي کيږي له دې وجهې مېړه خپلې ښځې ته غسل نه شي ورکولی۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و يمنع زوجها من غسلها و مسها لا من النظر اليها علی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۹۸، كتاب الجنائز، مطلب فی حديث كل سبب الخ)

لما قال الشيخ وهبة الزحيلی: قال الحنفية لا يجوز للرجل غسل زوجتها و مسّها لانقطاع النكاح و يجوز له النظر اليها فی الاصح لان النظر اخف من المس. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۴۵۸، كتاب الجنائز، ثانياً صفة الغاسل)



## ښځه خپل خاوند ته غسل ورکولی شي

**سوال:** آيا ښځه خپل خاوند ته تر مړ کېدو وروسته غسل ورکولی شي او که نه؟

**الجواب:** د مېړه له مړ کېدو وروسته د دواړو نکاح من كل الوجوه نه ختميږي۔ ښځه د عدت په ورځو کښې له يوې وجهې څخه د مېړه په نکاح کښې وي۔ د دې لپاره د مېړه تر مړ کېدو وروسته ښځه هغه ته غسل ورکولی شي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و هی لا تمنع من ذٰلك. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و هی لا تمنع من ذٰلك) ای من تغسيل زوجها دخل بها او لا. (رد المحتار ج۲، ص۱۹۸، كتاب الجنائز، مطلب فی حديث كل سبب الخ)

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و الزوجة تغسل زوجها دخل بها او لا بشرط بقاء الزوجية عند الغسل. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۴، باب الجنائز)

## خاوند خپلې ښځې ته کفن نه شي ور اغوستلی

**سوال:** آيا کوم مېړه خپلې ښځې ته تر مرګ وروسته کفن ور اغوستلی شي او که نه؟

**الجواب:** د ښځې تر مرګ وروسته د مېړه او ښځې د ازدواج رشته شکيږي او دواړه د يوه او بل لپاره پردي جوړيږي۔ د دې لپاره د نارينه لپاره دا جائز نه دي چه خپلې ښځې ته کفن ور واغوندي۔ البته په ورته کتلو کښې کوم حرج نشته۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يمنع زوجها من غسلها و مسّها لا من النظر اليها علی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۹۸، كتاب الجنائز، مطلب فی حديث كل سبب)

لما قال الشيخ وهبة الزحيلی: قال الحنفيية لا يجوز للرجل غسل زوجتها و مسها لانقطاع النكاح و يجوز له النظر اليها في الاصح لان النظر اخف من المس. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۴۵۸، كتاب الجنائز، ثانيا صفة الغاسل) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۱، ص۴۸۵، باب الجنائز.

## د کوچني بچي د جنازې پورته کول د يوه سړي لپاره جائز دي

**سوال:** مونږ اکثره ليدلي دي چه کله کوم کوچنی بچی مړ کيږي نو جنازه ئې يو سړی پورته کوي او وړي ئې۔ آيا د اسې کول شرعا جائز دي او که څنګه؟

**الجواب:** د کوم لوی (سړی وي او که ښځه) د جنازې د پورته کولو لپاره د څلورو کسانو موجود والی مناسب دی۔ البته د کوچني بچي جنازه که چېرته يو سړی هم پورته کړي نو شرعاً څه پروا نه لري۔

و فی الهندية: و ذكر الاشتيجابی ان الصّبی الرضيع او الفطيم او فوق ذٰلك قليلاً اذا مات فلا بأس بان يحمله رجلٌ واحد علی يديه و يتداوله الناس با لحمل علی ايديهم الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۲)

قال العلامة الحصكفیؒ: و الصبی الرضيع او الفطيم او فوق ذٰلك قليلاً يحمله واحد علی يديه و لو راكباً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۳۱، كتاب الجنائز، مطلب فی حمل الميت)

## د جنازې د لمانځه په امامت کښې د ولي د اجازې حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو سړی دی چه دا وايي چه د مړي ولي چه چا ته اجازه ورکړي هغه به د جنازې لمونځ ورکوي اګر که د کلي امام موجود هم وي۔ نو آیا د نوموړي سړي دا وینا صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د مړي ولي ته اګر که د جنازې د ورکولو اختیار شته یا چا ته چه اجازه ورکړي هغه ئې ورکولی شي لیکن د کلي د جومات د امام، قاضي یا بادشاه په نه موجودوالي کښې ولي مقدم دی۔ لهذا د امام په موجودوالي کښې امام د جنازې د ورکولو ډیر حقدار دی۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و يقدم فی الصلٰوة علیه السلطان ان حضر او نائبه و هو امیر المصر ثم القاضی ثم صاحب الشرط...... ثم امام الحی فیه ابهام، و ذلك ان تقدیم الولاة واجب و تقدیم امام الحی مندوب فقط بشرط ان یکون افضل من الولی...... ثم الولی الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۱۹/۲۲۰، کتاب الجنائز، مطلب فی بیان من هو احق با لصلٰوة علی المیت)

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: الرأی الاوّل للحنفیة: السلطان ان حضر او نائبه احق با لصلٰوة علی المیّت بسبب السلطنة و لان فی التقدیم علیه ازدراء به فان لم یحضر فا لقاضی لانه صاحب ولایة فان لم یحضر فیقدم امام الحی لانه رضیه فی حیاته. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۴۸۳، کتاب الجنائز، ثانیا من هو الاولٰی با لصلٰوة)

## د جنازې تر پورته کولو مخکښې د اجتماعي دُعا حکم

**سوال:** په ځینو علاقو کښې دا رواج دی چه تر جنازې پورته کولو مخکښې د نژدې جومات امام صاحب په لوړ آواز سره د مړي او د هغه د کورنۍ لپاره دُعا کوي او حاضرین په لوړ آواز سره آمین وايي۔ د دُعا تر ختمیدو وروسته جنازه پورته کیږي۔ اوس د پوښتنې ځای پکښې دا دی چه شرعاً د دې عمل حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مړي او د هغه د کورنۍ لپاره د دُعا په کولو کښې کوم حرج نشته، د جنازې تر پورته کولو مخکښې او وروسته په انفرادي توګه دُعا هر څوك کولی شي۔ البته په اجتماعي توګه او په لوړ آواز سره د اسې دُعا کول چه امام په لوړ آواز سره دُعا کوي او خلك آمین پرې وايي د سلف صالحینو او مجتهدینو امامانو څخه ثابت نه دي۔ د دې لپاره په صورت مسئوله کښې په د اسې ډول سره دُعا کول له کراهیت څخه خالي نه دی۔

لما فی الهندیة: کره ان یقوم اجل بعد ما اجتمع القوم للصلٰوة و یدعوا للمیت و یرفع صوته. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۱۹، کتاب الکراهیة)

لما قال العلامة المفتی عبد الرحیم: (الجواب) هر یوه ته په ذاتي توګه د دُعا د کولو اجازه شته او د ټولو د جمع کیدو په صورت کښې د دُعا غوښتلو رواج د نبي کریم ﷺ او د هغه د صحابه وو همدارنګه د سلف صالحینو د عمل او طریقې خلاف دی۔ له دې وجهې کومه طریقه چه په



سوال کښې ذکر شوې ده هغه مکروه ده۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۱، ص۳۶۳، کتاب الجنازه)

## په قبرستان یا هدیره کښې د لاسونو په پورته کولو سره دُعا غوښتل جائز دي

**سوال:** قبرستان ته د تلو په صورت کښې هلته د لاسونو د پورته کولو سره دُعا غوښتل جائز دي او که نه په د اسې حال کښې چه ځینې خلك ورته بدعت او شرك وايي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په قبرستان کښې دریدل او د قبرونو خاوندانو ته دُعا کول شرعاً ثابت دي۔ او بیا په دُعا کښې د لاسونو پورته کول د دُعا له آدابو څخه دی۔ لهذا په قبرستان کښې د دُعا په وخت کښې د لاسونو پورته کول جائز دي او بدعت ویل ورته صحیح نه دي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و من ادابها ان یسلم بلفظ السلام علیکم علی الصحیح لا علیکم السلام فانه ورد...... ثم یدعوا قائما طویلا و ان جلس یجلس بعیداً او قریبا بحسب مرتبته فی حال حیاته. (رد المحتار ج۲، ص۲۴۲، کتاب الجنائز، مطلب فی زیارة القبور)

لما قال الشیخ العلامة اشرف علی التهانویؒ: و فی رد المحتار آداب زیارة القبور ثم یدعوا قائماً طویلاً له دې څخه د دُعا جواز ثابت شو او د لاسونو پورته کول په مطلقه توګه د دُعا له آدابو څخه دي پس دا هم صحیح شوه۔ (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۵۰۰، باب الجنائز)

## د سوال او ځواب سلسله د مړي تر خښیدو وروسته شروع کیږي

**سوال:** ځینې خلك په نورو ملکونو کښې مړه کیږي او لاشونه ئې خپل وطن ته په راوړو باندې څو څو ورځې لګیږي۔ نو عرض دا دی چه له د اسې مړو څخه سوال او ځواب کله شروع کیږي؟ آیا تر فوت کیدو وروسته په لومړۍ شپه کومه چه بغیر له خښیدو پرې تیریږي او او که تر خښیدو وروسته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** علماء کرامو لیکلي دي چه له مړي څخه سوال او ځواب تر خښیدو وروسته شروع کیږي تر څو پورې چه مړی خښ شوی نه وي تر هغه وخته پورې سوال او ځواب نه وي۔

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و السوال فی القبر بان مات و لم یدفن ایاماً بان جعل فی التابوت لیحمل من مصر الی مصر آخر ما لم یدفن لا یسأل. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۲۶، کتاب الجنائز)

قال العلامة عبد الرحیم لاجپوریؒ: له دې عبارت څخه څرګنده شوه چه سوال او ځواب له خښیدو څخه وروسته وي۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۵، ص۹۷، باب احکام الجنائز)

## د مړي تر قبرستانه پورې د وړلو مسنونه طریقه

**سوال:** مړی تر قبرستانه پورې د وړلو مسنونه طریقه کومه یوه ده؟ آیا د پښو له خوا به ئې وړي او که د سر له خوا؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** تر قبرستانه پورې د جنازې د وړلو په وخت کښې به مړی د سر له خوا باید یووړل شي۔

کما فی الهندیة: و فی حالة المشی با لجنازة یقدم الرأس. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۲، باب الجنائز)

لما قال العلامة اشرف علی التهانویؒ: د جنازې د وړلو په وخت کښې به د مړي سر باید مخته وي۔ (امداد الفتاویٰ ج۱، ص۴۹۵، باب الجنائز)

## مړي ته له رنګ لرونکو جامو څخه د کفن ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه مړي ته تر سپینې جامې پرته په بل رنګ جامه کښې کفن ورکول جائز دي او که نه؟

**الجواب:** د مړي لپاره له رنګینو جامو څخه هم کفن جوړیدلی شي۔ د کومو رنګونو استعمال چه په ژوند کښې ورته جائز وو له مرګ وروسته هم له هغو رنګونو څخه کفن ورکول جائز دي۔ البته افضله او بهتره دا ده چه مړي ته سپین کفن ور واغوستل شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا بأس فی الکفن ببرود و کتان فی النساء بحریر و معصفر لجواز بما یجوز لبسه حال الحیٰوة و احبه البیاض او ما یصلی فیه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۳۷۰، باب صلوٰة الجنازة)

و فی الهندیة: و لا بأس با لبرود و الکتان و القصب و فی حق النساء با لحریر و الابریشم و المعصفر و المزعفر و یکره للرجال ذٰلك و احب الاکفان الثیاب البیض..... و کل ما یباح للرجال لبسه فی حال الحیاة یباح تکفینه بعد الوفاة و ما لا یباح له لبسه حال الحیاة لا یباح تکفینه بعد الوفاة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۱، باب الجنائز، الفصل الثالث فی التکفین) و مثله فی فتاویٰ دار العلوم دیوبند ج۵، ص۲۶۳، کتاب الجنائز.

## په دریاب کښې د ډوبیدو په صورت کښې مړ شوي سړي ته د غسل ورکولو حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك په دریاب کښې ډوب شي او مړ شي نو آیا له اوبو څخه تر ایستلو وروسته هم هغه ته غسل ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر مسلمان ته تر مړ کیدو وروسته غسل ورکول ضروري دي که په وچه کښې مړ شوی وي او که په اوبو کښې، هو! که چیرته له اوبو څخه د را ایستلو په وخت کښې د غسل په نیت سره درې غوټې ورکړي نو همدومره ورته کافي ده د دوباره غسل ورکولو ضرورت نشته۔

لما قال العلامة فخر الدین الشهیر بقاضی خانؒ: الغریق یغسل ثلثاً فی قول ابی یوسفؒ و عن محمدؒ فی روایة ان نوی الغسل عند الاخراج من الماء یغسل مرتین و ان لم ینو یغسل ثلثاً و عنه فی روایة یغسل واحدة. (فتاویٰ قاضی خان ج۱، ص۹۰، کتاب الجنائز)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و الغریق یغسل ثلاثاً عند ابی یوسفؒ و عن محمدؒ اذا نوی الغسل عند الاخراج من الماء یغسل مرتین و ان لم ینو یغسل ثلاثاً و فی روایة یغسل مرّة واحدة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۴، کتاب الجنائز)



## د زم زم په اوبو سره د مینځل شوي کفن د استعمالولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له یو چا څخه مو اوریدلي دي چه د زم زم په اوبو سره د مینځل شوي کفن استعمال صحیح نه دی۔ ځکه چه په دې کښې بې ادبي ده لکه څرنګه چه په دې اوبو سره استنجاء او د اسې نور مکروه دي همدارنګه د کفن لپاره جامه پرې مینځل هم له کراهیت څخه خالي نه دی۔ آیا په رښتیا هم مسئله همداسې ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د برکت د لاس ته راوړو او له عذاب څخه د نجات لپاره کوم متبرك شی له ځان سره کیښودل یا استعمالول مرخص دي۔ همدارنګه د زمزم په اوبو سره د لامده شوي کفن استعمالول هم جائز دي۔

قال العلامة اسماعیل حقی البروسویؒ: قال فی الاسرار المحمدیة لو وضع شعر رسول اللهﷺ او عصاه او سوطه علی قبر عاصٍ لنجا ذٰلك العاصی ببرکات تلك الذخیرة من العذاب و من هٰذا القبیل ماء زمزم و الکفن المبلول به و بطانة استار الکعبة و التکفن بها. (تفسیر روح البیان بحوالۂ فتاویٰ رحیمیة ج۱، ص۳۶۲، کتاب الجنائز)

قال العلامة المفتی عبد الرحیم لاجپوریؒ: هو د برکت د حصول په غرض سره د زمزم په اوبو سره د لامده شوي او بیرته وچ شوي جامه په کفن کښې استعمالولی شي او په دې کښې د بې ادبي کوم شی نشته۔ (فتاویٰ رحیمیه ج۱، ص۳۶۳، کتاب الجنائز)

## له بوټونو سره د جنازې د اداکولو حکم

**سوال:** په نننۍ زمانه کښې ځینې خلك له بوټونو سره د جنازې لمونځ اداکوي۔ نو آیا له بوټونو سره د جنازې اداکول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب:** که چیرته بوټونه پاك او صفا وي نو د جنازې لمونځ ورسره صحیح دی او که چیرته ناپاکه وي نو له ناپاکو بوټونو سره د جنازې یا نور لمونځونه جائز نه دي۔

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و لو افترش نعلیه و قام علیهما جازت و بهٰذا یعلم ما یفعل فی زماننا من القیام علی النعلین فی صلوٰة الجنازة لکن لا بد من طهارة النعلین. (البحر الرائق ج۲، ص۱۷۹، کتاب الجنائز)

قال العلامة المفتی عبد الرحیم لاجپوریؒ: له بوټونو سره یا د بوټونو له پاسه په درید لو باندې د جنازې د لمانځه د اداکولو په صورت کښې د بوټونو پاکوالی ضروري دی۔ که بوټونه پاك وي نو لمونځ کیږي او که نه وي نو لمونځ نه کیږي۔ (فتاویٰ رحیمیه ج۱، ص۳۶۰، کتاب الجنائز)

## د نفل لمانځه د اداکولو په دوران کښې د جنازې د حاضریدو په صورت کښې د نفلو د ماتولو حکم

**سوال:** که چیرته کوم سړي د نفلو نیت کړی وي چه په دې وخت کښې جنازه حاضره شي نو آیا دا سړی به اوس نفل ماتوي په جنازه کښې به شریکیږي او که به خپل نفل پوره کوي؟

**الجواب:** د جنازې لمونځ یو داسې لمونځ دی چه قضایي ئې نشته۔ لهذا که چیرته نفل کوونکي

ته د جنازې د فوت کېدو یقین وي نو باید چه خپل نفل لمونځ مات کړي او په جنازه کښې شریك شي او که چېرته ئې دا یقین وي چه د نفل لمانځه له پوره کولو سره په جنازه کښې شریکېدلی شو ای نو خپل نفل دې پوره کړي او بیا دې په جنازه کښې شریك شي.

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: او کان فی النفل فجیء بجنازة و خاف فوتها قطعه لامکان قضائه. (رد المحتار ج۱، ص۶۶۶، باب النوافل)

قال المفتی عبد الرحیم لاجپوریؒ: د جنازې د لمانځه د تېرېدو وېره وي نو په لمانځه کښې د شاملېدو په غرض سره نفل لمونځ ماتولی شي. (فتاوی رحیمیه ج۱، ص۳۶۱، باب احکام الجنائز)

## د غلطۍ له مخې په کېښودل شوي سرچپه جنازې باندې د لمانځه حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چېرته په غلطۍ سره جنازه سرچپه اېښې وي یعنې د مړي سر د جنوب خواته وي او پښې ئې د شمال خواته او په همدې حالت کښې ئې جنازه هم شوې وي. نو آیا د غلطۍ له احساس څخه وروسته دوباره جنازه پړې کېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** صحیح طریقه خو دا ده چه د مړي سر شمال خواته وي او پښې ئې جنوب خواته، په قصد سره د جنازې سرچپه کېښودل له کراهیت څخه خالي نه دی لیکن که چېرته په سهو سره داسې وشي نو پروانه لري او نه د لمانځه د بیرته راګرځولو ضرورت شته.

قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: و صحت لو وضعوا الرأس موضع الرجلین و اساؤا ان تعمدوا. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۵۹۳، کتاب الجنائز)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا اخطئو با لرأس وقت الصلٰوة فجعلوه فی موضع الرجلین فصلوا علیها جازت الصلٰوة فان فعلوا ذٰلك عمداً جازت صلاتهم و قد اساؤا و لا تعاد. (فتاوٰي تاتارخانیة ج۲، ص۱۷۷، باب الجنائز المتفرقات)

## له هدیرې څخه د شنو وښو د له منځه وړلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځینې خلك د محرم الحرام په میاشت کښې د خپلو خپلوانو له قبرونو څخه شنه وابښه له بېخه راباسي او په هغو باندې نوې خاورې اچوي. شرعاً د شنو وښو د ختمولو حکم څه دی؟

**الجواب:** شنه وابښه د الله تعالی تعریف او حمد بیانوي د دې لپاره شنه وابښه له قبرونو څخه شکول مکروه تحریمي دی او بیا د دې عمل لپاره د محرم الحرام د میاشتې تعین نور پسې بد دی. البته د وچو وښو شکول جواز لري.

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: کره قطع الحشیش الرطب و کذا الشجرة من المقبرة لانهٗ ما دام رطبا یسبح الله تعالی فیونس المیت و تنزل بذکر الله تعالی الرحمة و لا باس بقلع الیابس منهما الحشیش و الشجر لزوال المقصود. (مراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۱۲۱، کتاب الجنائز)



قال العلامة ابن نجیمؒ: و یکره قطع الحطب و الحشیش من المقبرة الا اذا کان یابساً و لا یستحب قطع الحشیش الرطب. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۶، باب الجنائز) و مثله فی فتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۱۷۳، باب الجنائز المتفرقات.

## د قبرستان د وچو وښو د سوځولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ د کلي د قبرستان وابښه چه کله وچېږي نو خلك ئې سوځوي. آیا د قبرستان د وچو وښو سوځول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام قبرستان ته د اور له وړلو څخه منع کړې ده د دې لپاره د قبرستان له وچو وښو څخه د خلاصولو په خاطر هغوته اور مه ورکوئ بلکه کومه بله طریقه ورته غوره کړئ.

قال الشیخ المفتی عبد الرحیم لاجپوریؒ: چه کله قبرستان ته د اور د وړلو ممانعت راغلی دی نو د قبرونو په سر باندې د وښو د سوځولو اجازه به څرنګه وي؟ د قبرونو د صفایۍ لپاره کوم بل تدبیر باید په کار واچول شي. (فتاوی رحیمیه ج۵، ص۱۰۳، باب احکام الجنائز)

## د مـــــړي د ښخولو په وخت کښې که چېرته له چا څخه ئې مخ د قبلې په ځای د مشرق خواته اړولی پاتې شي نو حکم به ئې څه وي؟

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په کلي کښې یوه واقعه منځ ته راغله چه د یوه مړي له خښوونکو څخه په سهوې سره د مړي مخ د قبلې په ځای د مشرق خواته پاتې شو. اوس د خاورو له اچولو او د قبر له برابرولو وروسته ور په زړه شو چه د مړي مخ خو د قبلې خواته باید وای. د پوښتنې ځای دا دی چه آیا اوس د بیا لپاره د قبر خلاصول او د مړي مخ قبلې خواته کول ضروري دي او که نه؟

**الجواب:** د مسلمان مړي د خښولو مسنونه طریقه دا ده چه مخ ئې د قبلې خواته وګرځول شي لیکن که چېرته په غلطۍ سره د مړي مخ د قبلې خواته نه ګرځول شي او د خاورو او د اسې نورو له اچولو وروسته د خلکو ور په زړه شي نو د قبر د بیا خلاصولو ضرورت نشته. البته که چېرته د خاورې له اچولو څخه مخکښې ور په زړه شي نو بیا مناسبه دا ده چه د مړي مخ قبلې خواته وګرځول شي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لو دفن مستدبراً لها و اهالوا التراب لا ینبش لان التوجه الی القبلة سُنة و النبش حرام بخلاف ما اذا کان بعد اقامة اللبن قبل اهالة التراب. (رد المحتار ج۱، ص۸۳۷، کتاب الجنائز، مطلب فی دفن المیت)

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: افاد کلام المصنف انهٗ لو وضع لغیر القبلة او علی شقه الایسر او جعل رأسه فی موضع رجلیه او دفن بلا غسل و اهیل علیه التراب فانهٗ لا ینبش قال فی البدائع لان النبش حرامٌ. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۵، باب الجنائز) و مثله فی فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۱۷۵، باب الجنائز المتفرقات.

## له خښولو مخکښې د مړي مخ ته د کتلو حکم

**سوال:** د مړي تر کفن ورکولو مخکښې یا وروسته د مخ کتل جائز دي او که نه؟

**الجواب:** له خښولو مخکښې د مړي د مخ کتل جائز دي که له کفن ورکولو څخه مخکښې وي او که وروسته۔

لما فی الهندیة: و لا بأس بان یرفع ستر المیت لیرٰی وجهه و انما یکره ذٰلك بعد الدفن کذا فی القنیة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص ۳۵۱، کتاب الکراهیة، الباب السادس عشر فی زیارة القبور و قرأة القرآن فی المقابر)

## په دوه قبرونو کښې به مړی په کوم قبر کښې ښخول کیږي؟

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یوه ښځه مړه شوه، د میړه وارثانو ئې په یوه ځای کښې قبر ورته تیار کړ او ورونو ئې په بل ځای کښې قبر ورته تیار کړ۔ اوس پوښتنه دا ده چه دا ښځه په کوم قبر کښې باید خښه شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** له فتنې او فساد څخه د لرې پاتې کیدو په صورت کښې چه چېرته غواړی هلته دې خښه کړی شرعاً په دې کښې کوم حرج نشته۔

## د خپلوانو د قبرونو د یو ځای والي حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما پلار د سختې بیمارۍ په حالت کښې وصیت وکړ چه زما تر مرګ وروسته ما د خپل ورور په څنګ کښې خښ کړی۔ نو آیا د هغه د وصیت پوره کول ضروري دي او که په قبرستان کښې چه چېرته ځای پیدا شي هلته دې خښ کړی شي، شرعا دې حکم څه دی؟

**الجواب:** په مقدس شریعت کښې د خپلوانو او رشته دارو په یوه ځای کښې د نژدې نژدې خښول مستحب دي۔ په دې سره د خپلوانو قبرونه په آسانۍ سره پیژندل کیږي۔ رسول اللهﷺ پخپله د دې غوښتنه کړې وه او د اسې کول ئې ښوولي هم دي۔

لما ورد فی الحدیث: عن المطلب بن ابی رواحة قال لما مات عثمان بن مظعون اخرج بجنازته فدفن فامرنا النبیﷺ رجلا ان یأتیه بحجر فلم یستطع حملها فقام الیها رسول اللهﷺ...... فوضعها عند رأسه و قال اعلم بها قبر اخی و ادفن الیه من مات من اهلی. مشکٰوة ص ۱۴۹، کتاب الجنائز، باب دفن المیت)

## د حدیثو د منکر د جنازې حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د کوم پرویزي یعنې د حدیثو د منکر د جنازې امامت یا په هغې کښې شرکت د شریعت له مخې څنګه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** مبارك حدیثونه د حجت په توګه منل د دین له ضروریاتو څخه دی او له دې حجیت څخه انکار کفر دی۔ د دې لپاره د امت علماوو د پرویزي فرقې معتقدین له اسلام څخه وتلي بللي دي۔ چونکه د جنازې د لمانځه لپاره د مړي مسلمان والی ضروري شرط دی کوم چه په صورت مسئوله کښې نشته۔ له دې وجهې د پرویزي (د حدیثو د منکر) د جنازې د لمانځه ادا



کول، امامت یا په هغې کښې شرکت کول ناجائز او حرام دي۔

لقوله تعالی: وَلَا تُصَلِّ عَلٰى اَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ اَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ (سورة التوبة، آیت)

قال الله تعالی: مَا كَانَ لِلنَّبِیِّ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اَنْ یَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِیْنَ وَ لَوْ كَانُوْا اُولِیْ قُرْبٰی. (سورة التوبة، آیت ۱۱۳)

## د جنازې د لمانځه د دوباره ادا کولو حکم

**سوال:** زید له ملك څخه د باندې مړ شو او هلته ئې د جنازې لمونځ ادا شو چه زامنو ئې هم شرکت پکښې کړی وو۔ چه کله مړی د هغه خپل پلرني کلي ته را ورسیده نو نورو وارثانو ئې اصرار وکړ چه مونږ دلته بیا د جنازې لمونځ ادا کوو۔ د پوښتنې ځای پکښې دا دی چه آیا شرعاً هغوی د دوهم ځل لپاره د جنازې د ادا کولو حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله په مسلمان مړي باندې د ولي په موجود والي کښې یو ځل جنازه ادا شي نو د دوهم ځل لپاره (که ولي موجود وي او که نه وي) باید ادا نه شي ځکه چه په یو ځل جنازې ادا کولو سره فرض ساقطیږي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و ان صلّٰی غیر الولی او السلطان اعاد الولی یعنی ان شاء لما ذکرنا ان الحق للاولیاء و ان صلی الولی لم یجز لاحد ان یّصلّی بعد لان الفرض یتادی با لاول و النفل بها غیر مشروع. (الهدایة ج۱، ص ۱۶۲، کتاب الجنائز)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: قلنا لیس لمن صلی علیها ن یعید مع الولی لان تکرارها غیر مشروع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۲۳، کتاب الجنائز)

## د مړي په قبر کښې قبلې خوا ته مـــــــخ ګرځول ضروري دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په علاقه کښې قبرونه شمال او جنوب کیندل کیږي، آیا په هر ځای کښې همدغه حکم دی او که څنګه؟ په دې باره کښې مو له شرعي مسئلې څخه خبر کړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مړي په قبر کښې د کیښودلو په وخت کښې دا خبره په یاد لری چه مخ ئې د قبلې خوا ته شي۔ قبله که شمالاً جنوباً وي او که شرقاً غرباً۔ د مړي قبلې خوا ته مخ ګرځول واجب دي۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و یوجه الیها وجوباً و ینبغی کونه علی شقه الایمن و لا ینبش لیوجه الیها.

قال ابن عابدینؒ: قلتُ و وجهه ان ظاهره التسویة بین الحیاة و الموت فی وجوب استقباله. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۳، کتاب الجنائز، مطلب دفن المیت)

لما فی الهندیة: و یدخل المیت مما یلی القبلة و ذٰلك ان یوضع فی جانب القبلة من القبر و یحمل المیت منه و یوضع فی اللحد فیکون الآخذ له مستقبل القبلة حالة الاخذ، کذا فی فتح القدیر و یقول واضعه بسم الله و علی ملّة رسول الله کذا فی المتون و یوضع فی القبر علی جنبه الایمن مستقبل القبلة، کذا فی الخلاصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۶، کتاب الجنائز، الفصل السادس فی القبر و الدفن..... الخ) و مثله فی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ۱۹۴، باب غسل المیت..... الخ.

# باب في حکم الشهید

## (د شهید احکام او مسئلې)

### د شهید حقیقت

**سوال:** د محمدي شریعت له مخې مونږ چا ته شهید ویلی او له غسل ورکولو پرته ئې دفن کولی شو؟

**الجواب:** د شهید اطلاق په دوه معناوو سره وي یو اخروي شهید او بل دنیوي شیهد۔

د لومړي ډول شهید دائره ډیره پراخه ده لیکن د شهید داحکامو د اجراء لپاره دُنیوي شهادت ضروري دی۔ د فقهاء کرامو د عباراتو له مخې دُنیاوي شهید هغه مسلمان شهید ته ویل کیږي چه کافران ئې قتل کړي یا د جنګ په میدان کښې مړ پیدا شي او د زخمونو نښې نښانې پکښې موجودې وي یا په ظلم سره قتل شي او د قتل په عوض کښې ئې دیت یا قصاص واجب نه وي۔ غسل نه ورکول د شهید له خصوصیاتو څخه دی۔

قال برهان الدین المرغینانیؒ: الشهید من قتله المشرکون او وجد فی المعرکة و به اثر او قتله المسلمون ظلماً و لم یجب بقتله دیة فیکفن و یصلی علیه الخ. و من قتله اهل الحرب او اهل البغی او قطاع الطریق فبایّ شیء قتلوه لم یغسل الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۸۳، باب الشهید)

و قال عبد الله التمرتاشیؒ: الشهید هو کل مکلف مسلم طاهر قتل ظُلماً بجارحة و لم یجب بنفس القتل مال و لم یرتث و کذا لو قتله باغ او حربی او قاطع طریق او وجد جریحاً میتاً فی معرکتهم الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۴۷/ ۲۴۹، باب الشهید) و مثله ی الهندیة ج۱، ص۱۶۷، باب الشهید۔

### په اخروي او دُنیوي شهید کښې فرق

**سوال:** که چېرته کوم سړی په اور وسوځي یا دریاب کښې ډوب شي او مړ شي یا ئې کوم موټر او داسې نور لاندې کړي او مړ ئې کړي نو آیا هغه ته شهید ویل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** داسې سړي ته اُخروي شهید ویل صحیح دي لیکن دُنیوي شهید ورته نه ویل کیږي۔ لهذا هغه ته غسل او داسې نور ورکول کیږي ځکه چه اُخروي شهید هغه دی چه د هغه په باره کښې د فقهي کتابونو لاندیني تعریف کړی دی۔

قال الحصکفیؒ: هو کل مکلف مسلم طاهر قتل ظلماً بجارحة و لم یجب بنفس القتل مال و لم یرتث. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۴۷، باب الشهید)

و فی الهندیة: و هو فی الشرع من قتله اهل الحرب و البغی و قطعا الطریق الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۷، باب الشهید) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۶، باب الشهید۔



### تـر زخمي کیدو وروسته د خوراك او څښاك د موقـع په لاس ته ورتلو سره مړ شوی سړی دُنیوي شهید نه پاتې کیږي

**سوال:** که چېرته یو مسلمان د شهید د تعریف له مخې د جنګ په میدان کښې زخمي شي یا د کوم مسلمان له لاسه په ظلم زخمي شي او بیا ئې علاج هم وشي چه په نتیجه کښې ئې څو ورځې ژوندی وي، خوراك او څښاك هم وکړي نو آیا د هغه دُنیوي شهادت متاثر کیږي او که نه؟

**الجواب:** داسې سړی له اُخروي شهادت څخه نه محرومیږي۔ البته تر زخمي کیدو وروسته د خوراك څښاك او علاج معالجې لپاره د موقع په لاس ته ورتلو سره دُنیوي شهید نه پاتې کیږي نو د دې لپاره هغه ته به غسل ورکول کیږي۔

لما فی الهندیة: او قتله مسلم ظلماً و لم تجب به دیة کذا فی الکافی و بعد اسطر قال و یغسل من ارتث و هو من صار خلقاً فی حکم الشهادة لنیل مرافق الحیاة و هو ان یؤکل او یشرب او ینام او یداوی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۸، باب الشهید)

و قال محمد بن عبد الله التمرتاشیؒ: هو کل مکلف مسلم طاهر قتل ظلماً و لم یجب بنفس القتل مال و لم یرتُث. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۴۷، باب الشهید) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۱۰۸، باب الشهید.

### د شپې په تیاره کښې د نامعلومو کسانو په لاس مړ شوی سړی شهید دی

**سوال:** یوه سړي لره پخپل کور کښې د شپې په تیاره کښې نامعلومو کسانو قتل کړ نو آیا دا مقتول په شهیدانو کښې شمارل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** نوموړی مقتول په شهیدانو کښې شمارل صحیح دي او له غسل پرته جنازه ورکول کیدلی شي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله او قاطع طریق) و المکابرون فی المصر لیلاً بمنزلة قطاع الطریق کما فی البحر عن شرح المجمع ممن قتلوه و لو بغیر محدد فهو شهید کما لو قتله القطاع و کذا من قتله اللصوص لیلاً. (رد المحتار ج۲، ص۲۴۹، باب الشهید)

و قال علاؤ الدین الکاسانیؒ: و لو نزل علیه اللصوص لیلاً فی المصر فقتل بسلاح او غیره او قتله قطاع الطریق خارج المصر بسلاح او غیره فهو شهید الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۲۱، فصل فی الشهید) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۹، باب الشهید.

### د جنګ په محاذ کښې د بم له چاودیدو څخه د مړه شویو خلکو حکم

**سوال:** که چېرته مجاهد د جنګ په محاذ کښې د بم له چاودنې څخه مړ شي نو آیا شهید ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د جنګ په میدان کښې د شهادت لپاره په توره یا کومه بله آله باندې قتل کیدل ضروري نه دي بلکه د دښمن له لاسه چه په کوم کیفیت سره هم وي چه مسلمان مړ شي نو هغه

شهيد گڼل کيږي- په صورت مسئوله کښې بم د نوې اسلحې يو ډول دی- د دې لپاره د بم په ذريعه قتل شوی مسلمان شهيد گڼل کيږي-

لما فی الهندية: و الاصل ان کل من مقتولاً فی قتال ثلاث اهل الحرب، او البغاة او قطاع الطريق بمعنی مضاف الی العدو سواء کان با لمباشره او السبب کان شهيداً. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۹، الفصل السابع فی الشهيد)

و قال العلامة ابن نجيم المصری: و هو من قتله اهل الحرب او البغی او قطاع الطريق او وجد فی المعرکة و به اثر الخ. و بعد اسطر قال و قيدنا بکونه فی المعرکة و هی موضع الحرب لانه لو وجد فی عسکر المسلمين قتيل قبل لقاء العدو فليس بشهيد. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۶، باب الشهيد) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۱۶، الفصل الخامس و العشرون فی الجنائز.

## له قاتل نه علاوه د يوه بل سړي د قتل اراده د شهادت باطلوونکی نه دی

**سوال:** يو مسلمان د بل مسلمان د قتل په اراده روان وو ليکن د هغه له قتل کولو څخه مخکښې نوموړی بغير له کوم سبب نه بل چا په لاره کښې قتل کړ- نو آيا د مقتول په شهادت کښې د قتل د ارادې په کولو سره کوم خلل واقع کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** دا سړی د شريعت له مخې شهيد دی ځکه چه د قاتل په لاس په ظلم سره په قتل رسيدلی دی- البته د بل سړي د قتل په ارادې سره اگر که گنهگاريږي ليکن د قاتل په حق کښې خو دی مباح الدم نه شي کيدلی- د دې لپاره د محض ارادې له وجهې ئې شهادت نه متاثر کيږي-

قال برهان الدين المرغينانی: او قتله المسلمون ظلماً و لم يجب بقتله دية الخ. (الهداية ج۱، ص۱۸۳، باب الشهيد)

و قال علاؤ الدين الکاسانی: و منها ان يکون مظلوماً الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۲۰، فصل اما الشهيد)

## په تخـــريب کاري کښې مړه کيدونکي مسلمانان شهيــــد ان وي

**سوال:** نن صبا په لويو لويو ښارونو او اجتماعاتو کښې د انتظاميې د بد نامولو لپاره بمونه چوول کيږي چه په هغو کښې بيشماره بيگناه مسلمانان مړه کيږي- د داسې مړه کيدونکو خلکو په شريعت کښې څه حکم دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** داسې مقتولين د شهيدانو په حکم کښې دي- دوی ته غسل نه ورکول کيږي ځکه چه بم چوونکي افراد په دې نيت سره بمونه ږدي تر څو چه مظلومو مسلمانانو ته ځاني تلفات ورسيږي او عوام په جذباتو کښې راشي او د انتظاميې په خلاف قدم پورته کړي-

قال علامة ابن نجيم: لان ما قصد به القتل فهو تسبيب و ما لا فلا. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۶، باب الشهيد)

و قال برهان الدين المرغينانی: او قتله المسلمون ظلماً و لم يجب بقتله دية فيکفن و يصلّی عليه و لا يغسل لانه فی معنی شهداء احد و قال عليه السلام فيهم زمّلوهم بکلومهم و دمائهم و لا تغسلوهم فکل من قتل با لحديدة ظلماً و هو طاهر بالغ و لم يجب به عوض مالی فهو فی معناهم فيلحق بهم. (فتح القدير ج۲، ص۱۰۳، باب الشهيد) و مثله فی تبيين الحقائق ج۱، ص۲۴۷، باب الشهيد.



## د ظلم له تعين پرته د دُنيوي شهيد حکم لگول صحيح نه دي

**سوال:** يو سړی په يو ځای کښې مړ پيدا شو او د قتل وجوهات ئې معلوم نه دي- آيا په داسې صورت کښې شهيد ورته ويل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** د داسې مړي معامله الله تعالی ته سپارل کيږي- البته د دُنيوي شهيد د حکم لگولو لپاره تر څو چه د هغه مظلوم والی ثابت نه وي شهيد نه ورته ويل کيږي-

قال برهان الدين المرغينانی: او قتله المسلمون ظلماً و لم يجب بقتله دية الخ. (الهداية ج۱، ص۱۸۳، باب الشهيد)

و قال علاؤ الدين الکاسانی: و منها ان يکون مظلوماً الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۲۰، فصل اما الشهيد)

و مثله فی رد المحتار ج۲، ص کتاب الجنائز، باب الشهيد.

## په خپل منځي شخړو کښې د مړه کيدونکو خلکو حکم

**سوال:** په کورني او قومي شخړو کښې مړه کيدونکي خلك د شهيدانو له جملې څخه شميرل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** په داسې کورنيو شخړو کښې که چېرته مقتول د جانب مقابل (قاتل) د قتل لپاره ابتداء نه وي کړې او قاتل په غير مسئولانه ډول د بل مسلمان حق په ظلم سره د لاندې کولو اراده کړې وي نو دا مقتول د شهيد په حکم کښې راځي- لهذا د داسې مقتول جنازه به له غسل نه بغير ادا کيږي-

قال علاؤ الدين الکاسانی: و اذا عرف شرائط الشهادة فنقول اذا قتل الرجل فی المعرکة او غيرها و هو يقاتل اهل الحرب او قتل مدافعاً عن نفسه او ماله او اهله و واحد من المسلمين او اهل الذمة فهو شهيد سواء قتل بسلاح او غيره لاستجماع شرائط الشهادة فی حقه. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۲۳، فصل اما الشهيد)

و فی الهندية: و من قتل مدافعاً عن نفسه او ماله او عن المسلمين او اهل الذمة بای آلة قتل بحديد او حجر او حشب فهو شهيد الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۶۸، الفصل السابع فی الشهيد) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۷، باب الشهيد.

## په دفاعي جنگ کښې د مړه کيدونکو خلکو حکم

**سوال:** په کال ۱۹۶۵ء کښې هندوستان د پاکستان په سرحد اتو باندې ظالمانه حمله وکړه او د پاکستان ئې پخپل گومان سره د ختمولو اراده وکړه- نو د پاکستان له خوا څخه دفاع په جهاد کښې شمارل کيږي او که نه او په هغه کښې مړه شوي خلکو ته شهيدان ويل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب:** لکه څرنگه چه پاکستان دا جنگ د خپلې دفاع په خاطر وکړ له دې وجهې دا په دفاعي جهاد کښې راځي او په دې کښې برخه اخيستونکي مقتولين په شهيد انو کښې شمارل کيږي-

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و دخل فیه المقتول مدافعاً عن نفسه او ماله او المسلمین او اهل الذمة فانهٗ شهید لکن لا یشترط بمحدد کما فی البحر عن المحیط. (رد المحتار ج۱، ص۶۷۰، باب الشهید)

و فی الهندیة: و من قتل مدافعاً عن نفسه او ماله او المسلمین او اهل الذمة بای آلة قتل بحدید او حجر او خشب فهو شهید کذا فی محیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۸، باب الشهید) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹۷، باب الشهید.

## د افغانستان په جهاد کښې د مړه کیدونکو خلکو حکم

**سوال:** د افغانستان د موجوده جهاد په دوران کښې که چېرته څوك قتل شي نو آیا د شهادت مقام ورته حاصلیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د افغانستان جهاد لکه څرنګه چه د دین د احیاء او د مسلمانانو د حفاظت لپاره شروع شوی دی۔ له دې وجهې په دې جهاد کښې برخه اخیستل ضروري دي او په دې کښې د الله تعالی د رضا لپاره برخه اخیستونکی که چېرته قتل شي نو هغه به شهید وي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: الشهید هو من قتله اهل الحرب او البغی او قطاع الطریق او وجد فی المعرکة و به اثر او قتله مسلم ظلماً و لم یجب بقتله دیة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۹۴، باب الشهید)

و قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا یکون شهیداً لو قتل باغ او حربی و قاطع طریق. (در المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۶۷۰، باب الشهید) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۷، باب الشهید.

## د شهید له دفن کولو مخکښې یا وروسته خپل وطن ته د وړلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په نن دور کښې د اسلام مجاهدین چه په کومو کومو ځایونو کښې شهید انیږي نو د هغو لاشونه له دفن کولو مخکښې او یا له دفن کولو وروسته له قبر څخه د را ایستلو په صورت کښې خپل وطن ته راوړل د شریعت مطهره له مخې څرنګه دی؟ کومه فائده، تاوان، ثواب او عذاب که پکښې وي نو تول ولیکی۔ همدا رنګه په عوامو کښې دا مشهوره ده چه مونږ فلانی مړی د دومره وخت لپاره د امانت په توګه خاورو ته سپارلی دی نو څکه په را ایستلو کښې ئې څه ګناه نشته۔ د دې مسئلې کوم شرعي ثبوت شته او که نه؟

**الجواب:** مَا اٰتٰـکُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَ مَا نَهٰـکُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا (الآیة) اسلام یو مکمل دین او مکمل قانون دی۔ د هرې مسئلې لپاره په اسلام کښې د جواز او نه جواز اصل او دلیل موجود دی، کوم شیان چه د مسلمانانو د دُنیوي او اُخروي ژوند سره تعلق لري په قرآن، حدیثو او د مذهب په نورو کتابونو کښې پرې پوره رڼا اچول شوې ده، د مسلمانانو له ژوند او مرګ سره تړلي چه څومره احکام دي د هغو په تفصیلاتو کښې د کموالي او زیاتوالي هیڅ ګنجائش پاتې شوی نه دی او همدا رنګه هیڅ یوه سړي ته په دې کښې د خپلې ذاتي رأیې او غوښتنې د ورګډولو اجازه نه ده ورکړ شوې، مسلمانانو ته په هر حالت کښې د رضا بالقضاء د شیوې د غوره کولو حکم ورکړ



شوی دی او د الله تعالی او نبي کریمﷺ د هر حکم په مخکښې د تسلیم د سر کښته کولو او مطیع او فرمانبردار اوسیدو کښې د هغه د کامیابۍ راز پټ دی۔ له مسلمان څخه د هغه مال او ځان الله تعالی د جنت په بدل کښې اخیستي دي چه هغه د الله تعالی په لار کښې جهاد وکړي او د الله تعالی له دښمنانو سره د جنګیدو په صورت کښې به د زمکې له مخ څخه د هغوی د ورکولو کوشش کوي او په دې کښې که چېرته د هغه ځان له منځه تللو نو هغه به ممانعت او دریغ نه کوي۔ د الله تعالی فرمان دی چه: اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰی مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ اَنْفُسَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ فَیَقْتُلُوْنَ وَ یُقْتَلُوْنَ قف (سورة التوبة، آیت ۱۱۱)

مسلمان چه په هر ځای کښې مړ شي هغه ځای د هغه لپاره مبارك دی، که په تخت باندې وي یا په سپیرو خاورو باندې لیکن له دې څخه په زرګونو ځله هغه مرګ مبارك او بهتر دی چه د الله د دین د سر لوړي په خاطر د تورو تر سیورو لاندې واقع شي۔ همدا وجه ده چه په قرآن او حدیثو کښې د شهیدانو د امتیازي شان او اعلی درجو باندې د فائز کیدو ځای په ځای یادونې شوي دي۔ د شهید في سبیل الله دا څومره خوش قسمتي ده چه د قیامت په ورځ په وینو کښې لت پت له قبر څخه را پورته کیږي کوم چه د جنګ او جګړې په میدان کښې د دښمن د وحشیانه او جارحانه حملو په مخکښې د ډال په جوړیدو سره د الله په لار کښې وتلی وو۔ په داسې مواقعو کښې د دغو لوړو درجو په بناء باندې شریعت د شهید وارثانو ته د استقلال او صبر او استقامت درس ورکړی دی۔ د اُحد په غزا کښې چه کله د جناب نبي کریمﷺ تره حضرت حمزه رضی الله تعالی عنه شهید شو او کافرانو د هغه غوږونه او پزه پرې کړه او مُثله ئې کړ نو نبي کریمﷺ وفرمایل چه که چېرته زما د ترور حضرت صفیه رضی الله تعالی عنها د خفګان ویره له ما سره نه وای چه د! به ووایي چه زما ورور ئې خښ هم نه کړ نو ما به خپل تره همداسې په زمکې باندې پریښی وای تر څو درندګانو او مرغانو د هغه غوښه او څرمن خوړلی او د قیامت په ورځ د الله تعالی په حضور کښې ما ته دا سرخرویي حاصله وای چه زما د تره غوښې او څرمن ئې د درندګانو او مرغانو له خیټې څخه را جمع کولی او ما ویلی چه یا الله! د محمد رسول اللهﷺ خاندان ستا په لار کښې دا قرباني ورکړې ده۔ دا څومره لوی مقام دی او نبي کریمﷺ د څومره صبر او استقلال مظاهره کړې ده او په داسې مواقعو باندې د صبر او استقلال څخه د کار اخیستلو خپل اُمت ته لارښوونه کړې ده۔

حضرت عمرو بن جموح رضی الله تعالی عنه د نبي کریمﷺ یو جانبازه او عاشق صحابي وو چه په پښې باندې ګډ هم وو۔ د اُحد په غزا کښې شریك شو او د شهادت جام ئې نوش کړ او زوی ئې هم ورسره شهید شو نو بي بي ئې خپل خاوند او زوی په اوښې باندې واچول او مدینې منورې ته ئې د راوړلو اراده وکړه نو اوښې د اُحد له میدان څخه یو څو قدمه مخکښې لاړه او کښیناستله او مخ ئې د اُحد د میدان خوا ته واړاوه او له ډیر کوشش سره سره

هم د مدینې منورې خوا ته نه تله. آخر له نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وشوه چه د راتګ په وخت کښې هغه خو به څه ویلي نه وو؟ نو بي بي ئې وفرمایل چه هو! د قبلې خوا ته ئې مخ وګرځاوه او دا دُعائې کړې وه چه اللّٰهمّ لا تردني الی اهلي. ای الله ما د جنګ له میدان څخه بیرته کور ته مه راولې. په دې باندې نبي کریم ﷺ وفرمایل چه هغه په همدې ځای کښې خښ کړی. او بیا هم هلته دفن کړی شو.

د دغو فضائلو، برکاتو او لوړو درجاتو له وجهې شریعت عامو نارینه وو ته دا حکم ورکړی دی چه چېرته هغوی ته مرګ راشي هم هلته ئې په خښولو کښې بهتري ده. د مذهب په کتابونو کښې تر دې پورې لیکلي دي چه سړي چه په هر ځای کښې مرګ راشي هم هلته ئې دفن کول بهتر دي. او که چېرته له دفن کولو مخکښې ئې بل ځای ته د وړلو څوك اراده وکړي نو جائز دی لیکن که یو ځل دفن شي او خاورې پرې واړول شي نو بیا ئې قبر خلاصول او مړی را ایستل او بل ځای ته وړل ئې حرام او ګناه دي. هو! که د شرعي ضرورت کومه داعیه موجوده وي نو بیا د اسې کول پروا نه لري. لکه په مغصوبه زمکه کښې خښ شوی وي یا په شفعه باندې اخیستل شوې وي او د اسې نور. لاندې عبارات ملاحظه کړی:

د فتاوٰی عالمګیري په ج۱، ص۱۷۷ کښې دي چه: و یستحب فی القتیل و المیت دفنه فی المکان الذی مات فی مقابر اولٓئك القوم، و ان نقل قبل الدفن الی قدر میل او میلین فلا بأس به کذا فی الخلاصة. و کذا لو مات فی غیر بلده یستحب ترکهٗ فان نقل الی مصر آخر لا بأس به و لا ینبغی اخراج المیت من القبر بعد ما دفن الا اذا کانت الارض مغصوبة او اخذت بشفعه کذا فی فتاوٰی قاضی خان.

په دُر مختار کښې دي چه: و لا یخرج منه بعد اهالة التراب الا لحق آدمی کان تکون الارض مغصوبة او اخذت بشفعة. له دې څخه څو لیکې مخکښې ئې لیکلي دي چه: لا بأس بنقله قبل دفنه. د دې په شرح کښې علامه شامي لیکي چه: و اما نقله بعد دفنه فلا مطلقاً قال فی الفتح و اتفقت کلمة المشائخ فی امرأة دفن ابنها و هی غائبة فی غیر بلدها فلم تصبر و ارادت نقله علی انهٗ لا یسعها ذٰلك فتجویز شواذ بعض المتاخرین لا یلتفت الیه و اما نقل یعقوب و یوسف علیهما السلام من مصر الی الشام لیکونا مع آبائهما الکرام فهو شرع من قبلنا و لم یتوفر فیه شروط کونه شرعاً لنا. آه.

د فقهاء کرامو له دې عباراتو څخه ثابته شوه چه مړی که شهید وي او که نه وي مخکښې له دفن څخه ئې له یوه ځای څخه بل ځای ته وړل اګر که جائز دي لیکن بهتر نه دي. او وروسته له دفن څخه خو بالکل جائز نه دي. د قبر لوڅول او د مړي ایستل حرام دي. هو! که چېرته شرعي ضرورت مخکښې راشي نو بیا جائز دي. او د شرعي ضرورت صورتونه پورته ذکر شول. همدارنګه مړی د څه مودې لپاره د امانت په توګه خښول او بیا ایستل دا ټولې بې ځایه خبرې دي چه په شریعت کښې ئې هیڅ اصل نشته.

فقط و الله اعلم



## په اور کښې د سوځول شوي په باره کښې د یوه تعارض حل

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د عالمګیري د فتاوٰی یو عبارت دی چه: و لو کان المسلمون فی سفینة فرماها العدو با لنار فاحترقوا من ذٰلك و تعدّٰی الی سفینة اخری فیها المسلمون فاحترقوا فهم کلهم شهداء کذا فی الخلاصة و حکمه (ای الشهید) ان لا یغسل و یصلی علیه کذا فی محیط السرخسیؒ و یدفن بدمه و ثیابه کذا فی الکافی څخه دا اشتباه پیدا کیږي چه په اور کښې سوځول شوی د حقیقي شهید په حکم کښې داخل کړی شوی دی. په داسې حال کښې چه عامو فقهاوو حریق با لنار یوازې په اُخروي شهیدانو کښې شمار کړی دی. د مهربانۍ له مخې دا تعارض مو دفع کړی ډیره شکریه به مو وي.

**الجواب:** د حریق با لنار (په اور کښې دسوځول شوي) په اړه په فتاوٰی هندیه یعنې عالمګیري او د فقهې د نورو کتابونو په عبارتونو کښې کوم تعارض نشته. ټول د خپلو خپلو ځایونو د مناسبت له مخې بالکل صحیح دي. د دې لپاره که چېرته تاسو د عالمګیري د فتاوٰی په پورتني عبارت باندې غور وکړی نو په هغه کښې د فرماها العدو قید په څرګنده توګه پکښې لیدل کیږي کوم چه یو احترازي قید دی. د دې لپاره دښمن چه په کوم شي باندې کوم مسلمان مړ کړي هغه شهید وي. او د فتاوٰی هندیه په عبارت کښې د دښمن د اور لګولو څخه د مړه شوي مسلمان حکم بیان شوی دی کوم چه حریق با لنار العدوّ سره خاص دی. په عام اور باندې د سوځیدلو حکم ځانته دی کوم چه فقهاء کرامو یوازې د اُخروي شهید په ضمن کښې بیان کړی دی.

هٰکذا قال المفتي عبد الکریم: (الجواب) دا حکم بالکل صحیح دی ځکه چه رماها العدوّ با لنار قید پکښې دی. او دښمن چه په هر شي باندې څوك مړ کړي هغه شهید وي او هغه حریق (سوځول شوی) کوم چه د شهید حکم پرې نه جاري کیږي له هغه څخه هغه مراد دی چه کوم چه د دښمنانو له حملې پرته د ناڅاپي اور لګیدنې څخه وسوځي او مړ شي. (امداد الاحکام ج۱، ص۸٤۱، کتاب الجنائز، فصل فی الشهید)

# کتــــاب الزکٰوة

## باب وجــوب الزکٰوة

## (د زکات د واجبید و احکام او مسئلې)

### په دوه زره روپو کښې زکات فرض دی او که نه؟

**سوال:** له یوه سړي سره دوه زره روپۍ دي، آیا د کال تر تیرید و وروسته زکات پرې شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات نصاب دوه پنځوس نیمي تولې سپین زر یا اوه نیمي تولې سره زر یا د د دغو دواړو د قیمت په برابر نقدې روپۍ دي۔ لهذا که چېرته دوه زره روپۍ د پورتنۍ اندازې سپینو یا سرو زرو له قیمت سره برابریدلې نو زکات پرې واجب دی او که نه برابریدلې نو واجب نه دی۔

لما فی الهندیة: و منها کون المال نصاباً فلا تجب فی اقل منه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة، الباب الاول فی تفسیرها و صفتها)

قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصابٍ حول نسبته للحول لحولانه علیه تام با لرفع صفة ملك خرج مال المکاتب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

### د زکات په ادا کولو کښې د نیت اهمیت

**سوال:** که چېرته په یوه سړي باندې زکات فرض وي او هغه خپلوانو او غریبانو ته څه روپۍ په صدقه کښې ورکړي۔ آیا دا صدقه ئې په زکات کښې شمارل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د زکات په ادا کولو کښې نیت ډیر ضروري دی۔ په صورت مسئوله کښې د روپو د ورکولو په وخت کښې د خیرات او صدقې نیت وو نو تر ادا کولو وروسته د زکات د نیت په کولو سره ئې دا زکات نه کیږي۔ البته که چېرته د ورکولو په وخت کښې ئې هیڅ نیت نه وو لیکن وروسته د زکات نیت پکښې وکړي او روپۍ د فقیر په لاس یا مِلك کښې وي نو په دا سې صورت کښې دا روپۍ په زکات کښې شمیرل کیږي۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: و شرط صحة ادائها نیة مقارنة له ای للاداء و لو کانت المقارنة حکماً کما لو دفع بلا نیةٍ ثم نوی و المال قائم فی ید الفقیر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، کتاب الزکٰوة)

قال الشیخ نظام: و اذا دفع الی الفقیر بلا نیة ثم نواه عن الزکٰوة فان کان المال قائماً فی ید الفقیر اجزاه و الا فلا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۱، کتاب الزکٰوة، الباب الاول فی تفسیرها و صفتها) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۵۸۸، کتاب الزکٰوة.



### د زکات د فرضیت لپاره حولان حول (د کال تیریدل) شرط دی

**سوال:** یو سړی له حکومتي نوکري څخه تقاعد شوی دی۔ تر څو پورې چه هغه ته له حکومتي فنډ او د اسې نورو څخه روپۍ د حکومت له خوا څخه په لاس ور نه شي نو حج او زکات پرې فرض نه دی لیکن چه کله هغه ته دا روپۍ په لاس ورشي نو آیا په هغه باندې په فوري توګه زکات او حج فرضیږي او که د کال تر تیرید و وروسته پرې فرضیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې سړي باندې زکات د کال تر تیرید و وروسته فرضیږي۔ یعنې چه کله ده ته د تولو واجباتو روپۍ په لاس ورشي او پخپلو روپو باندې تر قبضې وروسته کال پرې تیر شي نو بیا په نوموړي باندې زکات فرضیږي او په فوري توګه زکات نه فرضیږي لیکن د حج لپاره د کال تیریدل شرط نه دي، په حج کښې یوائې استطاعت شرط دی۔

لما قال ابن نجیمؒ: و المراد بکونه حولیاً ان یتم الحول علیه و هو فی ملکه لقوله علیه السلام لا زکٰوة فی مالٍ حتی یحول علیه الحول. قال فی الغایة سمّی حولاً لان الاحوال تحول فیه و فی القنیة العبرة فی الزکٰوة للحول القمری. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۳، کتاب الزکٰوة)

قال شیخ الاسلام التمرتاشیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نسبة للحول لحولانه علیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکٰوة، الباب الاول فی تفسیرها الخ.

### د زکــــات په ادا کولو کښې قمري کال ته اعتبــــار وي

**سوال:** د زکات د فرضیت لپاره د کال چه کوم تیریدل ضروري ګڼل شوی دی نو له دې کال څخه کوم کال مراد دی، قمري او که شمسي؟ ځکه چه قمري کال له شمسي کال څخه څه نا څه کم وي؟

**الجواب:** فقهاء کرامو په دې مسئله کښې قمري کال ته اعتبار ورکړی دی نو ځکه د زکات په فرضیت کښې باید قمري کال په نظر کښې ونیول شي۔ او د فقهاء کرامو د تصریحاتو مطابق قمري کال درې سوه څلور پنځوس ورځې، اته ساعته او اته څلویښت دقیقې دی۔

کما فی شرح الوقایة: و السنة القمریة اثنا عشر شهراً قمریاً و مدتها ثلاث مائة و اربعة و خمسون یوماً و ثُلثُ یوم و ثُلثُ عشر یومٍ. (شرح الوقایة ج۲، ص۱۴۴، باب العنین)

لما قال فی الهندیة: و منها حولان الحول علی المال العبره فی الزکٰوة للحول القمری. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله نسبة للحول) ای الحول القمری لا الشمسي. (رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: قمریة با لاهلة علی المذهب و هی ثلٰثمائة و اربعة و خمسون یوماً و بعض یوم. (در المختار ج۳، ص۴۹۷، باب العنین) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۳، کتاب الزکٰوة.

## د څـــو کلونو د زکات حکـــم

**سوال:** له یوه سړي سره تقریبا پنځلس تولې سره زر دي او له ډیرو کلونو راهیسې ئې مالك پاتې شوی دی لیکن یو کال ئې هم د هغو زکات نه دی ورکړی. اوس غواړي چه زکات ئې ادا کړي نو د زکات د ورکولو صورت به ئې څه وي؟

**الجواب:** د مسئوله صورت مطابق د زکات په ادا کولو کښې په بنیادي توګه د قیمت د ادا کولو اعتبار د فقراوو د ضرورت له مخې دی. د دې لپاره په نوموړي صورت کښې په نوموړي سړي باندې د تیر شوي کلونو زکات د سرو زرو له مقدار څخه فرض دی. د تیر شویو تولو کلونو حساب دې وکړي او له پنځلس تولې سرو زرو څخه دې د فرض کړی شوې اندازې قیمت دې په مروّجه قیمت سره ولګوي او ادا دې کړي. البته د لاحق کال څخه دې د مخکښیني کال فرض کړی شوې اندازه منفي کړي او زکات دې ادا کړي.

لما قال التمرتاشیؒ: و اللازم فی مضروب کل منها (ای الذهب و الفضة) و معموله و لو تبراً او حلیًا مطلقاً مباح الاستعمال اولا و لو للتجمل و النفقة لانهما خلقاً اثماناً فیزکیهما کیف کانا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۹۷، باب زکوٰة المال)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و فی تبر الذهب و الفضة و حلیهما و اوانیهما الزکوٰة. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۱۶۳، باب زکوٰة فی الاموال، فصل فی الذهب) و مثله فی البدائع الصنائع ج۲، ص۱۶/۱۷، کتاب الزکوٰة، فصل صفة هٰذا النصاب.

## آیا زکات په فوري توګه واجبیږي او که علی التراخي

**سوال:** د نصاب تر پوره کیدو وروسته چه کله په سړي باندې زکات فرض کیږي نو د اسړی به د زکات روپۍ په یو ځل ورکوي او که په وقفې وقفې سره ئې هم ادا کولی شي تر دې پورې چه پوره کال پرې تیر شي؟

**الجواب:** په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دی چه آیا زکات په فوري توګه واجب دی او که علی التراخي؟ کوم ائمه کرام چه د تراخي قائل دي د هغو په نزد په وقفې وقفې سره زکات ورکول جائز دي او کوم ائمه کرام چه علی الفور (په فوري توګه د زکات د واجبیدلو قائل دي د هغو په نزد په تراخي سره سړی ګنهګاریږي. او د هندیه مصنف زکات علی الفور ته اصح ویلي دي په داسې حال کښې چه ابن الهمامؒ د امام ابو حنیفةؒ قول را نقل کړی دی چه پرته له عذر څخه په زکات کښې تاخیر مکروه تحریمي دی.

لما قال الشیخ النظامؒ: و تجب علی الفور عند تمام الحول حتیٰ یأثم بتاخیره من غیر عذر و فی روایة الرازی علی [illegible] حتیٰ یأثم عند الموت و الاول اصح کذا فی التهذیب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۰، کتاب الزکوٰة، الباب الاول)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و افتراضها عمری ای علی الترخی و صححه الباقانی و غیره و قیل فوری ای [illegible] علی الفو[illegible] کما فی شرح الوهبانیة. (الدر المختار ج۲، ص۲۷۱، کتاب الزکوٰة، قبیل من الباب



السائمة) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۱۱۴، کتاب الزکوٰة.

## د زکات په ادا کولو کښې د وقت تعین

**سوال:** ځینې خلك د رجب المرجب یا رمضان المبارك په میاشت کښې زکات ادا کوي. آیا د شریعت له مخې د زکات لپاره کوم ټاکلی وخت شته او که نه؟

**الجواب:** په شریعت کښې د زکات ادا کول د کال د پوره کیدو په صورت کښې واجبیږي. د دې لپاره په دې کښې د کومې خاصې میاشتې تعین نشته. البته په رمضان المبارك کښې د عبادت د عظمت لوړوالي ته په پام کښې نیولو سره د زکات ادا کول ډیر مناسب دي. لیکن ښکاره دې وي چه له واجبیدو وروسته تر رمضان پورې د زکات د ځنډولو په ځای تر مالك کیدو وروسته باید په لومړي رمضان کښې ادا شي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نسبة للحول لحولانه علیه. (الدر المختار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکوٰة)

قال الحسن بن عمار بن علیؒ: و شرط وجوب ادائها حولان الحول علی النصاب الاصلی. (مراقی الفلاح ص۳۸۹، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۳۸/۱۳۹، کتاب الزکوٰة.

## د نصـــاب خاوند ته د کال په منځ کښې چه نور مـــــال راشي په هغو کښې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړي سره په رمضان المبارك کښې لس زره روپۍ موجودې وې په دوهم کال د رمضان المبارك په میاشت کښې له هغه سره پنځوس زره روپۍ پیدا شوې. ښکاره خبره ده چه په لسو زرو روپو باندې خو کال تیر شوی دی لیکن په پاتې څلویښتو زرو روپو باندې کال نه دی تیر شوی نو آیا داسړی به د لسو زرو روپو زکات ورکوي او که پنځوسو زرو روپو؟

**الجواب:** د زکات په نصاب باندې د کال تیریدل ضروري دي او دا بیا ضروري نه دي چه په ټول مال دې پوره کال تیر شي. په نوموړي صورت کښې د کال په منځ کښې چه کومه آمدني راغلې ده د هغې زکات به هم په رمضان المبارك کښې ادا کوي. ګواکه په مالِ مستفاد کښې اګر که د شعبان په میاشت کښې هم راغلی وي زکات واجب دی.

لما قال العلامة حسن بن عمار بن علیؒ: و شرط وجوب ادائها حولان الحول علی النصاب الاصلی و اما المستفاد فی اثناء الحول فیضمّ الی مجانسه و یزکی بتمام الحول الاصلی سواء استفید بتجارة او میراث او غیره. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۵۸۸، کتاب الزکوٰة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و المستفاد و ولو بهبةٍ او ارث وسط الحول یضم الی نصابٍ من جنسه فیزکیه بحول الاصل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، باب زکوٰة الغنم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکوٰة، الباب الاوّل فی تفسیرها الخ.

## د زکـــات د قضاء کیدو په صورت کښې به سړی څه کوي؟

**سوال:** که چېرته یو څوك په قصد سره یا د غفلت له وجهې د خپل مال زکات ور نه کړي نو آیا له هغه څخه زکات ساقطیږي او که به ئې بیا هم ادا کوي، د شریعت له مخې د دې حکم څه دی؟

**الجواب:** زکات د وجوب په وخت کښې ادا کول ډیر مناسب دي۔ البته زکات کوم تاکلی وخت نه لري چه د هغه په تیریدو سره زکات قضاء کیږي بلکه د ډیرې مودې د تیریدو تر څنګ هم له زکات څخه غاړې نه خلاصیږي تر څو چه ادا کړی ئې نه وي۔

لما قال فی الهندیة: و تجب علی الفور عند تمام الحول حتیٰ یأثم بتاخیره من غیر عذر و فی روایة الرازی علی التراخی حتیٰ یاثم عند الموت و الاوّل تصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۰، کتاب الزکوٰة، الباب الاوّل فی تفسیرها الخ)

قال الشیخ الاسلام ابی بکر بن علی بن محمدؒ: قال فی الوجیز علی الفور عند محمدؒ حتیٰ لا یجوز التراخی من غیر عذر فان لم یؤد لا تقبل شهادته لانها حق للفقراء و فی تاخیر الاداء عنهم اضرارٌ لهم. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۳۸، کتاب الزکوٰة) و مثله فی المراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۵۸۸، کتاب الزکوٰة.

## د کور نه درلودل د زکات مانع نه دی

**سوال:** که چېرته له یوه سړي سره د نصاب له اندازې څخه زیاتې روپۍ موجودې وي لیکن د هغه خپل ذاتي کور نه وي نو آیا دا سړی له نورو څخه زکات اخیستلی شي او که نه او آیا په هغه باندې د خپلو روپو د زکات ورکول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یو سړی چه کله د نصاب مالك وي او دا روپۍ ئې له اصلي حاجت څخه زیاتې وي نو دا سړی د زکات مستحق نه دی بلکه پخپله به د خپلو روپو زکات ورکوي۔ که چېرته خپل کور و نه لري نو دا د اسې عذر نه دی چه د هغه له وجهې دی غریب وګڼل شي۔ چه تر څو پورې دا روپۍ لګیدلې نه وي هغه به تر ضرورت زیاتې بلل کیږي۔

لما قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا الی غنیّ یملك قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصلیة من ایّ مال کان. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۷، باب المصرف)

قال الشیخ النظام: و لا یجوز دفع الزکوٰة الی من یملك نصاباً ای مال کان دنانیر او دراهم او سوائم او عروضاً للتجارة او لغیر التجارة فاضلاً عن حاجته فی جمیع السنة هٰکذا فی الزاهدی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، کتاب الزکوٰة، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۴۲، الفصل الثامن فی اداء الزکوٰة.

## د مدرسې د مهتمم له خپل مال څخه په طالبانو باندې د لګولو لپاره هره ورځ نیت ضروري دی او که یو ځل نیت کافي دی

**سوال:** د یوه سړي خپله مدرسه ده او د استاذانو تنخواه، د بجلي بیل او د اسې نور له خپل جیب څخه پرې کوي مهتمم صاحب له شروع څخه دا نیت کړی دی چه د مدرسې په کومې شعبې باندې زکات جائز وي نو هغه به زما زکات وي او په کومې شعبې باندې چه زکات جائز نه وي



هغه به زما له طرفه خیرات وي۔ نو آیا د مهتمم لپاره هره ورځ نیت ضروري دی او که په میاشت یا کال یا په ټول وخت کښې یو ځل نیت ورته کافي دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** که چېرته مهتمم صاحب د زکات د مال د جلا کولو په وخت کښې نیت وکړي او بیا جلا شوې روپۍ کمې کمې ولګوي نو د دوباره نیت ضرورت نشته بلکه د زکات د جدا کولو په وخت کښې نیت کافي دی۔ او که چېرته لږې لږې روپۍ ئې لګولې او له مخکښې څخه ئې نیت نه وي کړی نو د لګولو په وخت کښې نیت ضروري دی او که نه وي نو زکات ئې نه ادا کیږي۔

لما فی البزازیة: قال کلما تصدّقت فی هٰذه السنة فهو عن الزکوٰة ثم جعل یتصدّق و لا یحضره النیة ان کان افرز جملة من المال فی حرة و قال وقت الا وقت الافراز ذٰلك وقع الکل عن الصدقة و الا لا. (البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۸۷، فصل الثانی فی المصرف نوع آخر)

قال ابن نجیمؒ: و شرط ادائها نیّةٌ مقارنة للاداء او لعزلِ ما وجب او تصدّق بکله. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۰، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۱۲۵، کتاب الزکوٰة.

## کـــــه چېرته چا ته دا معلومه نه وي چه زه کله د نصاب خـــــاوند جوړ شوی یم نو څـــــه به کوي؟

**سوال:** که چېرته یوه چا ته د خپلې غناء (د نصاب د خاوند والي) معلومات نه وي چه له کله راهیسې د نصاب خاوند جوړ شوی دی نو د داسې سړي لپاره د زکات د ادا کولو څه طریقه ده؟

**الجواب:** د اسې سړي ته چه له کوم وخت څخه د نصاب د خاوند کیدلو غالب ګومان وي نو له هغه وخت څخه دې حساب وکړي او زکات دې ادا کړي۔ البته د احتیاط په خوا باندې عمل کول ډیر ښه او احوط دي۔

لما قال ابن نجیم المصریؒ: و الظنّ الطرف الراجح و هو ترجیح جهة الصواب و الوهم رجحان جهة الخطاء و اما اکبر الرائی و غالب الظن فهو الطرف الراجح اذا اخذ به القلب و هو المعتبر عند الفقهاء...... و بعد اسطر و غالب الظن عندهم ملحق با لیقین و هو الذی یبتنی علیه الاحکام. (الاشباه و النظائر ج۱، ص۲۴۰/۲۴۱، القاعدة الثالثة الیقین لا یزول با لشك)

قال ابن نجیمؒ: (تحت قوله و لو دفع بتحرٍ الخ) و الظّن ترجح احدهما من غیر دلیلٍ و التحری ترجح احدهماِ بغالب الرأی و هو دلیل یتوصل به الی طرف العلم و ان کان لا یتوصل به الی ما یوجب حقیقة العلم. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۹، باب المصرف)

## د اصلي حوائجو لپاره په یو ځای شویو روپو کښې د زکات مسئله

**سوال:** یو سړی کوم چه په کوم حکومتي کور یا د کرایې په کور کښې اوسیږي او د ذاتي کور جوړولو لپاره ئې له خپلې تنخواه څخه له څو کلونو راهیسې څه روپۍ بچت کړي او یو ځای کړې ئې دي۔ دا روپۍ اګر که لکونو ته رسیږي لیکن د ذاتي کور لپاره د زمکې په اخیستلو او په هغې باندې د آبادۍ د کولو لپاره دا روپۍ نه پوره کیږي۔ یو ائې د ذاتي ضرورت د پوره

کیدو لپاره دا روپۍ ایښي دي۔ نو آیا د کال په تیریدو سره په هغه باندې زکات واجبیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه په دې روپو باندې ئې هیڅ ډول تجارت نه دی کړی۔ ممکنه ده چه د زکات په ادا کولو سره دا روپۍ تولې ختمې شي او د کور د جوړیدو هیله ئې پوره نه شي؟ په دې باره کښې د مقدس شریعت څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د وجوب لپاره فقهاوو د فارغ عن الدّین و عن حوائج الاصلیة قید یادونه کړې ده۔ په داسې صورت کښې په اصلي حوائجو کښې مصروفیت او مشغولیت په وخت کښې یقیناً زکات واجب نه دی لیکن کومې روپۍ چه د ضرورت د پوره کیدو لپاره لکه کور، اسلحه، کتابونه او داسې نورو لپاره کیښودل شوې وي او کال پرې تیر شي نو په داسې روپو کښې د زکات د واجب والي په باره کښې د فقهاء کرامو رایې مختلفې دي۔ د شیخ ابن الملك په نزد داسې روپۍ حکماً په ضرویاتو کښې مصروفې دي کوم چه د معدوم په منزله کښې دي او د کال په تیریدو سره هم زکات پرې نه واجبیږي۔ فاذا کان عنده دراهم اعدها لهذه الاشیاء و حال علیها الحول لا تجب فیه الزکٰوة. د علامه ابن عابدین میلان هم د دغې خبرې خوا ته څرګندیږي هغه فرمایي: فاذا کان لهٗ دراهم مستحقة یصرفها الی تلك الحوائج صارت کا لمعدوم کما ان الماء المستحق یصرفه الی العطش کان کا لمعدوم و جاز عنده التیمم الخ. لیکن ابن نجیمؒ له عبارت څخه په داسې روپو باندې د زکات واجب والی څرګندیږي۔ ویخالف ما فی المعراج فی فصل زکٰوة العروض ان الزکٰوة تجب فی النقد کیف ما امسکه للنماء او للنفقة (ج۲، ص۲۰۶) په موجوده زمانه کښې د انسانانو د نه پوره کیدونکو ضروریاتو د تقاضاوو په صورت کښې په هیڅ باندې زکات واجب نه پاتې کیږي۔ هر سړی د یوې ښې مانۍ، موټر، ارکنډیشن او د ژوند د داسې نورو ضروریاتو د اخیستلو په ارادې سره ډیرې ډیرې روپۍ ردي کومې چه د هغه په ضروریاتو کښې د مصروفیدو په صورت کښې د زکات موقع په لاس نه ورځي۔ د دې لپاره د احتیاط له مخې په هر صورت کښې باید زکات ادا شي اګر که دا روپۍ د کور د اخیستلو په اراده ایښودل شوې هم وي۔ که چېرته د فقهاوو عبارتونو ته وکتل شي نو په هغو کښې فارغ عن الدین و عن الحوائج الاصلیة لیکل شوي دي او هیچا هم داسې نه دي لیکلي چه فارغ عن قیمة حوائج الاصلیة. دا عبارت هم د زکات وجوب په ګوته کوي۔

قال ابن عابدینؒ: و یخالف ما فی المعراج فی فصل زکٰوة العروض ان الزکٰوة تجب فی النقد کیف ما امسکه للنماء او للنفقة. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۲، کتاب الزکٰوة)

و فی حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح: و هو مخالف لما فی المعراج و البدائع ان الزکٰوة تجب فی النقد کیف امسکه للنفقة او للنماء. (ص۳۸۹، کتاب الزکٰوة) و مثله فی حاشیة علی الدرر ص۱۰۴، کتاب الزکٰوة.

## له اصلي حوائجو څخه په زیاتو روپو باندې د زکات حکم

**سوال:** د زکات نصاب د روپو د شمیر له لحاظه څومره دی او د کور له ضروري حاجتونو څخه چه کومې روپۍ زیاتې وي په هغو باندې زکات شته او که نه؟



**الجواب:** که چېرته له چا سره داسې نقدې روپۍ موجودې وي چه له ټولو اصلي حاجاتو، قرض او داسې نورو څخه زیاتې وي، اصلي حوائج د زمانې د عرف او حالاتو له وجهې بدلیږي را بدلیږي۔ چه کله له ټولو ضروري اخراجاتو څخه وروسته چه کومې روپۍ پاتې کیږي او نصاب ته ورسیږي نو د کال په تیریدو سره زکات پرې واجبیږي۔ او له روپو څخه د زکات په ایستلو کښې به د سرو یا سپینو زرو د قیمت اعتبار وي۔ له دې وجهې د نقدو روپو د نصاب یو مقدار نه شي ټاکل کیدلی ځکه چه د سرو او سپینو زرو قیمت کمیږي او زیاتیږي۔ د دې لپاره د روپو د نصاب په مقدار کښې زیاتوالی او کموالی راځي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نامٍ فارغ من دین لهٗ مطالب من جهة العباد و فارغ عن حاجته الاصلیة لان المشغول بها کا لمعدوم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: و ملك نصاب حولی فارغ عن الدَّین و حوائجه الاصلیة نامٍ و لو تقدیراً. (البحر الرائق ج۳، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندی ج۱، ص۱۷۳، کتاب الزکٰوة.

## په ساتل شویو روپو باندې هر کال د زکات د واجبیدلو حکم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له یوه سړي سره دومره نقدې روپۍ موجودې دي چه د نصاب اندازې ته رسیږي او تر ډیرو کلونو پورې ئې استعمالولو ته ضرورت نه دی پیدا شوی۔ نو آیا دا سړی به یواځې د یوه کال زکات ادا کوي او که د تیرو شویو ټولو کلونو جلا جلا زکات به ور کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له چا سره دومره نقدې روپۍ موجودې وي چه د نصاب اندازې ته رسیږي یا تر نصاب څخه زیاتې وي نو د کال په تیریدو سره پرې زکات واجبیږي۔ همدارنګه چه څومره کلونه دا روپۍ ساتل شوي دي او د نصاب په اندازه کښې ئې هم کوم فرق نه وي راغلی نو د هر کال به ځان ځانته زکات ورکوي۔

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: الزکٰوة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملك نصاباً ملكاً تاماً و حال علیه الحول. (الهدایة ج۱،ص۱۸۵، کتاب الزکٰوة)

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و سببهٗ ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی تام. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲،ص۲۹۵، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

## د زکات په یو ځل یوه چا ته ورکول ضروري نه دي

**سوال:** که چېرته له چا سره د زکات روپۍ موجودې وي او هغه ئې کوم مستحق ته هره میاشت کمې کمې روپۍ د زکات په توګه ورکوي نو آیا په داسې ډول سره زکات ادا کیږي او که نه؟

**الجواب:** د زکات په یو ځل ورکول ضروري نه دي، د قسطونو په ډول ئې کوم مستحق ته په ورکولو سره هم زکات ادا کیږي۔ البته په مجموعي توګه د ادا کولو په وخت کښې نیت

ضروري دی او که نه وي نو د هر قسط د ورکولو په وخت کښې به بیا خامخا نیت کوي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: او مقارنة بعزل ما وجب کله او بعضه و لا یخرج عن العهدة با لعزل ب با لاداء للفقراء. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۹، کتاب الزکوٰة)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: و شرط ادائها نیة مقارنة للاداء او لعزل ما وجب او تصدق بکله. (البحر الرائق ج۲،ص ۲۱۰، کتاب الزکوٰة، و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱۷۰، کتاب الزکوٰة.

## مؤجل مهر د زکات د وجوب مانع دی

**سوال:** که چېرته له چا سره د زکات نصاب موجود وي لیکن د منکوحې د مهر ادا کول ئې تر اوسه په غاړه پاتې وي۔ په دې صورت کښې د اسې که چېرته د مهر حق ادا کړي نو پاتې مال ئې د نصاب له اندازې څخه کمېږي، آیا په د اسې سړي باندې زکات واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منکوحې (بي بي) د مهر حق یو مستقل حق دی چه ادا کول ئې په میړه باندې واجب دی۔ که چېرته میړه وفات شي نو د منکوحې د مهر حق د نورو پورونو غوندې له متروکه جائداد څخه د وارثانو تر منځ تر ویش مخکښې منفي کېږي۔ د میړه د غاړې د خلاصوالي لپاره د مهر له ادا کولو یا د منکوحې له خوا څخه په رضا او رغبت له معافی پرته بل صورت نشته۔ له دې وجهې د خاوند په ذمه باندې واجب الاداء قرضه د زکات د وجوب مانع دی، که چېرته له نصاب څخه د مهر د منفي کولو څخه وروسته پاتې روپۍ نصاب ته نه رسیدلې نو زکات پرې واجب نه دی او که چېرته پاتې مال د نصاب اندازې ته رسیده نو بیا به مهر مؤجل ترې منفي کوي او د پاتې مال زکات به ورکوي۔ قال ابن عابدینؒ: فارغ لا مطلب من جهة العباد سواء کان لله کزکوٰة و خراج او للعبد و لو کفالة او مؤجلا و لو صداق زوجة المؤجل و فی رد المحتار و الصحیح انه غیر مانع. (کتاب الزکوٰة ج۲، ص۵) البته د منکوحې په حق کښې د پور د نه قوي والي له وجهې چه تر څو پورې هغې ته خپل مهر ور رسیدلې نه وي تر هغو پورې زکات پرې واجب نه دی۔ په منکوحې باندې په مهر مؤجل کښې د زکات د وجوب اعتبار تر وصولیدو وروسته وي۔ البته که چېرته له منکوحې سره له دې پرته نور نصاب موجود وي او د کال تر تیریدو مخکښې مهر مؤجل هم په لاس ورشي نو بیا د مالِ مستفاد په حکم کښې راځي او د ټول مال زکات به ورکوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و عند قبض مائتین مع حولان الحول بعده ای بعد قبض من دَین ضعیف و هو بدل غیر مال کمهر و دیة الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۶، باب زکوٰة المال)

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و علی هذا یخرج مهر المرأة فانه یمنع وجوب الزکوٰة عندنا معجلا کان او مؤجلا لانها اذا طالبته یؤاخذ به. و قال بعض مشائخنا ان المؤجل لا یمنع لانه غیر مطالب به عادة الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱۷۳، کتاب الزکوٰة، الباب الاول.



## د حج لپاره په جمع شویو روپو کښې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته یو چا د حج لپاره له څو کلونو راهیسې څه روپۍ په بانک کښې جمع کړې وي او له نصاب څخه زیاتې وي نو آیا د کال تر تیریدو وروسته زکات پرې واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د حج لپاره د روپو د ساتلو په صورت کښې زکات نه ساقطیږي۔ تر څو پورې چه دا روپۍ په حج کښې و نه لګیږي او د ده له ذاتي ضروریاتو څخه زیاتې وي نو د کال تر تیریدو وروسته زکات پرې واجبېږي۔

قال ابن عابدینؒ: فی المعراج فی فصل زکوٰة العروض ان الزکوٰة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۲، کتاب الزکوٰة)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: و یخالفهٗ ما فی المعراج الدرایة فی فصل زکوٰة العروض ان الزکوٰة تجب فی النقد کیفما امسکه للنماء او للنفقة آه. (البحر الرائق ج۲،ص۲۰۶، کتاب الزکوٰة) و مثله فی حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۳۸۹، کتاب الزکوٰة.

## د کوزدې یا واده په سامان کښې د زکات حکم

**سوال:** د کوزدې یا واده لپاره په اخیستل شوي سامان باندې زکات واجب دی او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د سامان قیمت د نصاب له اندازې څخه زیات وي؟

**الجواب:** د کوزدې یا واده لپاره جمع شوی سامان لکه څرنګه چه په اثاث البیت کښې داخل دی او په اثاث البیت باندې زکات واجب نه وي نو د دې لپاره په صورت مسئوله کښې هم د کوزدې یا واده په سامان باندې زکات واجب نه دی۔

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لیس فی دور السکنٰی و ثیاب البدن و اثاث المنازل و دواب الرکوب و عبید الخدمة و سلاح الاستعمال زکوٰة. (الهدایة ج۱، ص۱۶۹، کتاب الزکوٰة)

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا فی ثیاب البدن المحتاج الیها لرفع الحرّ و البرد ابن ملک و اثاث المنزل و دور السکنٰی و نحوها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۴، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکوٰة.

## د واده لپاره په یو ځای شویو روپو کښې د زکات حکم

**سوال:** یو سړي د واده لپاره څه روپۍ جمع کړي دي کوم چه د نصاب له اندازې څخه زیاتې دي او دا روپۍ له څو کلونو څخه له نوموړي سړي سره موجودې دي لیکن د پوره وسائلو نه میسر کیدو له وجهې ئې تر اوسه واده نه دی کړی په د اسې حال کښې چه دا روپۍ د واده د ضرورت لپاره ځانګړې شوې دي۔ آیا په دغو روپو باندې به زکات واجب وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** تر څو پورې چه دا روپۍ لګیدلې نه وي د واده د ضروریاتو له وجهې څخه د زکات

واجب والی نه متاثر کیږي او په نوموړي سړي باندې به باقاعده زکات واجب وي۔ همدارنګه که چېرته پلار د زوی د واده لپاره روپۍ جمع کړي او د زکات نصاب ته رسیدلې نو د کال په تیریدو سره په دغو روپو باندې زکات واجب دی۔

و سبب لزوم ادائها توجه الخطاب یعنی قوله تعالیٰ: وَ اٰتُوا الزَّکٰوةَ. وشرطه ای شرط افتراض ادائها حولان الحول و هو فی ملکه و ثَمَنِیَّةُ المال کا لدراهم و الدنانیر لتعینهما للتجارة باصل الخلقة فتلزم الزکٰوة کیفما امسکهما و لو لنفقة عیاله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۷، کتاب الزکٰوة)

و شرط وجوب ادائها ای افتراضها حولان الحول و هو فی ملکه ای فی ثمنیة المال کا لدراهم و الدنانیر. (حاشیة الطحطاوی ص۳۸۹، کتاب الزکٰوة، حاشیة الطحطاوی الخ) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکٰوة.

## په کور کښې په استعمالیدونکو شیانو کښې زکات نشته

**سوال:** د کورني ضروریاتو لپاره په کېښودل شوي سامان باندې زکات واجب دی او که نه؟ همدارنګه د ضرورت معیار څه دی؟ ډیر واري په کور کښې ګڼې بسترې او د خوراك او څښاك لپاره ګڼ شمیر لوښي پراته وي چه قیمت ئې زرګونو روپو ته رسیږي؟

**الجواب:** د ضرورت په وخت کښې چه د کوم سامان د استعمالولو حاجت پیدا شي نو هغه شیان په کورني ضروریاتو کښې شمیرل کیږي۔ په معاشره کښې د وخت، حالاتو او تعلقاتو کښې د اختلاف له وجهې په ضروریاتو کښې هم تفاوت راځي۔ که چېرته د کوم مسلمان کره میلمانه زیات راځي نو د هغه لپاره د زیات سامان کېښودل ضروري دی۔ په هر حال د ضرورت کوم ټاکلی معیار نشته۔ قال محمد بن عبد الباقی الزرقانی فی شرح الزرقانی علی المواهب اللدُنیة فکان یقتصر منه قدر او صفة علی قدر الحاجة الخ. و قال جنس الفراش فیصدق بتعدّوه عند الاحتیاج الیه لکثرة ضیفاته عادة. (ج۵، ص۶۰)
البته کوم شی چه د کور د استعمال په نامه سره واخیستل شي که د ضرورت لپاره وي او که له ضرورت څخه زیات وي لیکن د تجارت په نیت سره نه وي نو په هغه کښې زکات واجب نه دی۔ البته د قرباني او صدقهٔ فطر لپاره له ضرورت څخه د زیاتو شیانو قیمت هم شمارل کیږي نو که چېرته نصاب ته ورسیږي بیا قرباني او صدقهٔ فطر به دواړه واجب وي۔

قال الامام علی ابن ابی بکر الفرغانیؒ: و لیس فی دور السکنیٰ و ثیاب البدن و اثاث المنازل و دواب الرکوب و عبید الخدمة و سلاح الاستعمال زکٰوة. (الهدایة ج۱، ص۱۶۹، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا فی ثیاب البدن المحتاج الیها لرفع الحرّ و البرد ابن ملك و اثاث المنزل و دور السکنیٰ و نحوها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶٤، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة

## د نابالغ او لیوني په مال کښې زکات نشته

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د نابالغ کوچني او لیوني په مال کښې به زکـــات وي او که نه؟

**الجواب:** د زکات په وجوب کښې د ادا کوونکي عاقل والی او بالغ والی شرط دی۔ له دې وجهې د نابالغ او لیوني په مال کښې زکات واجب نه دی۔



قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لیس علی الصبی و المجنون زکٰوة. (الهدایة ج۱، ص۱۸۶، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و شرط افتراضها عقل و بلوغ..... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۸، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

## د پلار له مال څخه زوی د پلار له اجازې پرته زکات ورکولی شي او که نه

**سوال:** که چېرته د پلار په ذمه زکات فرض شوی وي نو دا زکات بغیر د پلار له اجازې څخه زوی ئې کوم مستحق ته ورکوی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د پلار له اجازې پرته زوی د هغه له مال څخه زکات نه شي ورکولی۔ البته که چېرته د پلار له اجازې پرته زوی د هغه له مال څخه زکات ورکړ او بیا ئې پلار دا حالت ولیده او اجازه ئې ورکړه او په دې وخت کښې د زکات روپۍ د فقیر په لاس کښې موجودې وي نو زکات ادا کیږي او که نه نو نه ادا کیږي۔

لما قال فی الهندیة: رجل ادی زکٰوة غیره عن مال ذٰلك الغیر فاجازه المالك فان کان المال قائماً فی ید الفقیر جاز و الا فلا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۱، کتاب الزکٰوة، الباب الاول)

قال الحسن بن عمار بن علیؒ: و لو مقارنة حکمیة کما لو دفع بلا نیةٍ ثم نویٰ و المال قائم بید الفقیر و لا یشترط علم الفقیر انها زکٰوة. (مراقی الفلاح ص۳۹۰، کتاب الزکٰوة) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، کتاب الزکٰوة.

## د مړي له خوا څخه د زکات ورکولو حکم

**سوال:** یوه سړي پخپل ټول ژوند کښې زکات نه دی ورکړی نو که د هغه له مرګ څخه وروسته ئې وارثان د هغه له خوا څخه د زکات ادا کول وغواړي نو دا زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته مړی د مرګ په وخت کښې وصیت کړی وي چه زما په ذمه باندې د زکات دومره روپۍ پاتې دي نو د جائداد له دریمې برخې څخه په دې وصیت باندې عمل کول واجب دي او په وارثانو لازم دي چه د هغه د غاړې د خلاصیدو لپاره د هغه په وصیت عمل وکړي۔ او که چېرته مړي وصیت نه وي کړی نو اګر که په وارثانو لازم نه دي لیکن د ادا کولو په صورت کښې ئې د غاړې د خلاصوالي هیله شته۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لو مات فاداها وارثه جاز) فی الجوهرة النیرة اذا مات من علیه الزکٰوة او فطرة او کفارة او نذر لم توخز من ترکته عندنا الا ان یتبرع وَرَثَته و هم من اهل التبرع و لم یجبروا علیه و ان اوصٰی تنفذ من الثلث. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۹، باب صدقة الفطر)

قال الشیخ النظامؒ: اذا مات من علیه زکٰوة او فطرة او کفارة او نذر لم یوخذ من ترکته عندنا الا ان یتبرع وَرَثَتهٗ بذٰلك و هم من اهل التبرع فان امتنوا لم یجبروا علیه و ان اوصٰی بذٰلك یجوز و ینفذ من ثلث ماله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۳، کتاب الزکٰوة، الباب الثامن فی صدقة الفطر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۳، کتاب الزکٰوة، فصل بیان ما یسقطها.

## په کاغـــــذي نوټ باندې د زکات د ادا کیدو حکم

**سوال:** آیا په زکات کښې د پنځو یا لسو روپو د نوټ په ورکولو سره زکات ادا کیږي او که نه؟ ځکه چه دا خو مال نه دی بلکه په هغه باندې لیکل شوي وي چه "حامل هذا کو مطالبه پر ادا کریگا" (یعني د دې حامل ته د مطالبې په وخت کښې ورکول کیږي).

**الجواب:** د کرنسي نوټ د حقیقت په باره کښې د علماء کرامو رأیې مختلفې دي. د ځینو علماوو په نزد مروجه کرنسي نوټ د یو رسید مثال لري یعنې په کوم نوټ چه دا الیکلي وي چه "اتنا حامل هذا کو مطالبه پر ادا کیا جائیگا" نو له دې ځخه په جنس کښې تر لګیدو مخکښې زکات نه شي ادا کیدلی. البته د یوې روپۍ په نوټ باندې دا نه وي لیکل شوي د دې لپاره د یوې روپۍ په نوټ باندې زکات ادا کیږي. لیکن د ځینو علماوو په نزد مروجه کرنسي نوټ د عرفي ثمن په حکم کښې دی لکه ځرنګه چه دا احتمال راجح هم دی نو په دې صورت کښې د نوټ په ورکولو سره زکات ادا کیږي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و جاز دفع القیمة فی زکٰوة و عشر و خراج و فطرة و نذر و کفارة غیر الاعتاق و تعتبر القیمة یوم الوجوب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۵)

قال فی الهندیة: و یجوز دفع القیم فی الزکٰوة عندنا و کذا فی الکفارات و صدقة الفطر و العشر و النذر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۱، الباب الثالث فی زکٰوة الذهب، مسائل شتیٰ) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۲۱، کتاب الزکٰوة.

## پـــه قرض باندې په ورکړ شویو روپو کښې د زکات حکـــم

**سوال:** له یوه سړي سره څه روپۍ موجودې دي چه زکات ئې پخپله ورکوي لیکن څه روپۍ له ده څخه خپلوانو په قرض اخیستي دي چه د تحریري سند تر ځنګ د بیرته ورکولو کوم صورت په نظر نه ورځي نو آیا په دا سې قرض باندې په ورکړ شویو روپو کښې د زکات حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته خپل خپلوان د دې قرض اقرار کوي یعني د قرض له بیرته ورکولو ځخه منکر نه وي نو د وصولي په وخت کښې د تیر شویو کلونو د زکات ادا کول به واجب وي. البته که چیرته دا روپۍ په یو ځل په لاس ورشي نو د روپۍ په لاس ورتلو سره د هغه له مقدار ځخه به حساب وکړي او څلویښتمه روپۍ به پکښې ادا کوي.

لما قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و اعلم ان الدیون عند الامام ثلٰثة قوی و متوسط و ضعیف فتجب زکٰوتها اذا تم نصاباً و حال الحول لکن لا فوراً بل عند قبض اربعین درهماً من الدَّین (اقول و هو خمس النصاب) من الدین القوی و بدل مال تجارة فکلما قبض اربعین درهماً یلزمه الدرهم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۵، باب زکٰوة المال)

قال العلامة حسن بن عمارؒ: الدَّین علی اقسام قوی و وسط و ضعیف فا لقوی و هو بدل القرض و مال التجارة اذا قبضه و کان علی مقرٍ و لو مفلساً او علی جاحدٍ علیه بینة زکّاه لما مضٰی و یتراخی وجوب الاداء الٰی ان یقبض اربعین درهماً ففیها درهم لان ما دون الخمس من النصاب عفو لا زکٰوة فیه صح و کذا فیما زاد بحسابه. (مراقی الفلاح ص۳۹۰، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۳۹۰، کتاب الزکٰوة.



## د کمیټۍ په روپو کښې د زکات حکم

**سوال:** مونږ دوه ویشت کسان سره یو ځای شوي یو او یوه کمیټه مو جوړه کړې ده چه په هغې کښې هر یو غړی د میاشتې پنځه سوه روپۍ جمع کوي او د هرې میاشتې په آخر کښې د پرچې په اچولو سره نوم باسي. چه د چا نوم هم ووځي نو جمع شوې روپۍ (یولس زره روپۍ) هغه ته ورکول کیږي. همدارنګه له یو ویشتو میاشتو وروسته زما نوم را وخوت نو زه دا پوښتنه کول غواړم چه یو ویشت میاشتې وروسته چه ما څومره روپۍ تر لاسه کړې دي په هغو کښې به د زکات ورکولو څه طریقه وي؟ د روپو په لاس ته راتلو سره سمدلاسه زکات ورکول کیږي او که د کال تر تیریدو وروسته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته تاسو له مخکښې څخه د نصاب مالك یی نو له خپل نصاب سره په کمیټۍ کښې د جمع شویو روپو زکات به ضرور ورکوی. او که چیرته تاسو له مخکښې څخه د نصاب خاوند نه یی نو چه کله په کمیټۍ کښې ستاسو د نصاب په اندازه روپۍ جمع شي نو له هغه وخت څخه تاسو د نصاب خاوند ګڼل کیږی او له همدې حساب څخه د کال په تیریدو سره به زکات ورکوی که په قسطونو باندې کال تیر شوی وي او که نه.

لما قال التمرتاشی و العلامة الحصکفیؒ: و سببهٗ ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نسبة للحول لحولانه علیه........ و المستفاد و لو بهبةٍ او اِرثٍ وسط الحول یضم الی نصاب من جنسه فیزکیه بحول الاصل..... قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لو بهبة او اِرثٍ) ادخل فیه المفاد. بشراء او میراث او هبة و ما کان حاصلاً من الاصل کا لاولاد و الربح. (رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، کتاب الزکٰوة، مطلب محمد امام فی اللغة واجب الخ)

قال فی الهندیة: و من کان لهٗ نصاب فاستفاد فی اثناء الحول مالاً من جنسه ضمه الی ماله و زکاه سواء کان المستفاد من نمائه اولا و بای وجه استفاد ضمه سواء کان بمیراث او هبة او غیر ذٰلك و لو کان من غیر جنسه من کل وجه کالغنم مع الابل فانهٗ لا یضم. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، الباب الاول)

و فیه ایضاً: تجب فی کل مائتی درهم خمسة دراهم و فی کل عشرین مثقال ذهب نصف مثقال الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۸، کتاب الزکٰوة، الباب الثالث فی زکٰوة الذهب و الفضة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۱، فصل حولان الحول فلیس من شرائط الاداء.

## د پور تر منفي کولو وروسته به زکات ورکول کیږي

**سوال:** له یوه سړي سره شل زره نقدې روپۍ دي لیکـــــن واجب الاداء پور هم پرې باندې دی. اګر که فی الحال د پور ادا کول پرې ضروري نه وي لیکن د پور د خاوند له خوا څخه کلــــــه نا کله غوښتنه کیدلی شي. د پوښتنې خبره دا ده چه په دا سې حالت کښې به موجودو ټولو روپو باندې به زکات ورکول کیږي او که لومړی به پور ترې منفي کوي او بیا به د پاتې شویو روپو زکات ورکوي؟

**الجواب:** کوم قرض چه واجب الاداء وي او له پوروړي څخه ئې غوښتنه کیږي یا د پور له خاوند سره ګواهان موجود وي نو اګر که دا پور په هر وخت کښې هم ادا کوي له ټول مال څخه به پور کم کړي او د پاتې شویو روپو زکات به ورکوي لیکن که چېرته پوردومره زیات وي چه ټولې نقدې روپۍ پکښې تللې نو بیا په د اسې سړي باندې زکات نشته۔

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و من كان عليه دَينٌ يحيط بماله فلا زكٰوة عليه و ان كان ماله اكثر من دَينه زكى الفاضل اذا بلغ نصاباً. (الهداية ج۱، ص۱٦٦، كتاب الزكٰوة)

قال ابن عابدين: (تحت قوله فارغ عن دَيْن له مطالب من جهة العباد) و هٰذا اذا كان الدَّين فى ذمته قبل وجوب الزكٰوة فلو لحقه بعده لم تسقط الزكٰوة لانها تثبت فى ذمته فلا يسقطها ما لحق من الدَّين بعد ثبوتها. (رد المحتار ج۲، ص۲٦۰، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج، ص۱۷۲/۱۷۳، كتاب الزكٰوة، الباب الاول.

## که چېرته پلار د خپلې لور مهر پخپله واخلي نو زکات به ئې په چا واجب وي؟

**سوال:** یوه سړي د خپلې لور د مهر تقریباً لس زره روپۍ له ځان سره ایښې دي۔ د کال په تیریدو سره به د دغو لسو زرو روپو زکات په چا باندې وي په لور او که په پلار ئې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** که چېرته لور د شرم او حیاء له وجهې دا روپۍ خپل پلار ته ورکړې وي نو دا هبه هیڅ اعتبار نه لري ځکه چه په هبه کښې د واهب رضاء ضروري ده۔ پس په دې صورت کښې به زکات په لور باندې وي او د پلار لپاره د دې روپو استعمالول جائز نه دي۔ البته که چېرته لور دا روپۍ په خوښه او رضا سره پلار ته ورکړي نو بیا ئې د پلار لپاره استعمالول جائز دي او زکات به ئې هم په پلار باندې واجب وي۔

لما فى الهندية: و من كان لهٗ نصاب فاستفاد فى اثناء الحول مالاً من جنسه ضمه الٰى ماله و زكّاه سواء كان المستفاد من نمائه اولا. و باى وجهٍ استفاد ضمه سواء كان بميراثٍ او هبةٍ او غير ذٰلك و لو كان من غير جنسه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۵، كتاب الزكٰوة، الباب الاول فى تفسيرها)

قال ابن نجيم: و اطلق المستفاد فشمل المستفاد بميراث او هبةٍ او شراءٍ او وصيّةٍ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۲۲، فصل فى الغنم) و مثله فى الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۱۲، كتاب الزكٰوة.

## د زکـــــات د وجوب لپاره له سرمایې څخه د پور د ایستلو حکـــــم

**سوال:** له یوه سړي سره د دولسو زرو روپو ګینړې دي او لس زره روپۍ پوروړی هم دی، نو آیا په دې صورت کښې به هغه د دولسو زرو روپو زکات ورکوي او که به قرض ترې منفي کوي او د دوه زرو روپو زکات به ورکوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له نوموړي سره له ګینړې پرته نورې روپۍ نه وي چه په هغو باندې خپل پور ادا کړي نو په دې صورت کښې به یوازې د دوه زره روپو زکات ورکوي خو په دې شرط چه دا دوه زره روپۍ نصاب ته رسیدلې۔ او که چېرته د پور د اداکولو لپاره ئې نورې



روپۍ درلودلې نو بیا به د دولسو زرو روپو زکات پرې لازم وي۔

لما قال العلامة الحصكفى: سببُه اى سبب افتراضها ملك نصاب...... تام...... فارغ الدَّين لهٗ مطالب من جهة العباد سواءٌ كان لله كزكٰوة و خراج..... و سبب لزوم ادائها توجه الخطاب (قوله تعالٰى و اٰتو الزّكٰوةَ) و شرطه اى شرط افتراض ادائها حولان الحول و هو فى ملكه و ثمنية المال كا لدراهم و الدنانير لتعينهما للتجارة باصل الخلقة فتلزم الزكٰوة كيف امسكهما و لو للنفقة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲٦۰/۲٦۷، كتاب الزكٰوة)

قال فى الهندية: منها الفراغ عن الدَّين قال اصحابنا كل دَين لهٗ مطالب من جهة العباد يمنع وجوب الزكٰوة..... (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۲، الباب الاول)

و فيه ايضاً تجب فى كل مائتى درهم خمسة دراهم و فى كل عشرين مثقال ذهبٍ نصف مثقال مضروباً كان او لم يكن مصوغاً كان او غير مصوغٍ حلياً كان للرجال او للنساء تبراً كان او سبكية كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۸، كتاب الزكٰوة، الباب الثالث فى زكٰوة الذهب و الفضة) و مثله فى بدائع الصنائع ج۲، ص۱٦/۱۷، كتاب الزكٰوة، فصل فى صفة هٰذا النصاب.

## په امـــــانت کښې د زکات حکم

**سوال:** یوه سړي له بل چا سره څه روپۍ د امانت په توګه ایښې دي نو آیا زکات به ئې په اصل مالك باندې وي او که په امین (چا ته چه امانت کیښودل شوی دی) باندې؟

**الجواب:** له یوه چا سره د امانت په توګه د کوم شي په کیښودلو سره ملکیت نه زائلیږي۔ د دې لپاره تر څو پورې چه ملکیت مبرهن او مسلم وي نو په اصل مالك باندې به د کال په تیریدو سره زکات واجب وي۔

لما قال ابن عابدين: (تحت قوله فلو له بينة تجب) و الظاهر على القول با لوجوب ان حكمه حكم الدَّين القوى. (رد المحتار ج۲، ص۲٦٦، كتاب الزكٰوة)

قال الامام ابن الهمّام: (تحت قوله و لو كان الدَّين على مقر) ففى القوى تجب الزكٰوة اذا حال الحول و يتراخى الاداء الى ان يقبض اربعين درهماً. (فتح القدير ج۲، ص۱۲۳، كتاب الزكٰوة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۷۵، كتاب الزكٰوة، الباب الاول فى تفسيره.

## له حلالو او حرامو څخه په ګډ مال باندې د زکات حکم

**سوال:** یوه سړي د بانك د سود په خاته کښې څه روپۍ جمع کړې دي او له څو کلونو وروسته د سود د ور جمع کولو له وجهې روپۍ څو چنده زیاتې شوي دي۔ نو په د اسې صورت کښې که چېرته هغه سړی وغواړي چه زکات ادا کړي نو آیا د اصل روپو زکات به ورکوي او که د سود د روپو له ور جمع کولو سره د ټولو روپو زکات به ورکوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** که چېرته د حلالو او حرامو اندازه معلومه وي نو د حلال مال زکات به ورکوي او د حرام مال په باره کښې اصل حکم دا دی چه که چېرته هغه د کوم بل سړي مال وي نو هغه ته به

ئې بیرته ورکوي او که چېرته ئې مالك معلوم نه وي نو د ثواب له نیت څخه پرته به ئې خیراتوي- تر څو چه له حرامو څخه ئې غاړې خلاصې شي- او که چېرته مالك ته دا معلومه نه وي چه کومې حلالې دي او کومې حرامې دي او غواړي چه په مجموعي توګه (له حلالو او حرامو دواړو) څخه زکات ورکړي نو دا هم د ده په حق کښې د تخفیف سبب دی چه له مخې ئې د حلال مال زکات ادا کیږي او له حرام مال څخه د زکات په نامه سره چه کومې روپۍ وتلي دي له هغو روپو څخه د ده غاړې خلاصیږي- په همدې حالت کښې که چېرته په حلالو او حرامو کښې تمیز و نه شي او دواړه سره ګډ وي نو بیا هم همدغه حکم دی-

لما قال ابن نجیمؒ: و لذا قالوا لو ان سلطاناً غصب مالاً و خلطه صار ملکاً له حتٰی وجبت علیه الزکٰوة و ورث عنه علی قول ابو حنیفةؒ لان خلط دراهمه بدارهم غیره عنده استهلاك اما علی قولهما فلا. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۵، کتاب الزکٰوة)

قال ابن عابدینؒ: لو اخرج زکٰوة المال الحلال من مال حرام ذکر فی الوهبانیة انه یجزی عند البعض و نقل القولین فی القنیة. و قال فی البزازیة لو نوٰی فی المال الخبیث الذی وجبت صدقته ان یقع عن الزکٰوة و قع عنها ای نوی فی الذی وجب التصدق به لجهل اربابه. (رد المحتار ج۲، ص۲۹۱، مطلب فی التصدق من المال الحرام الثانی فی المصرف نوع آخر) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص۸٦، کتاب الزکٰوة.

## په پراویډنټ فنډ باندې د زکات حکم

**سوال:** نن صبا په ډېرو حکومتي او غیر حکومتي ادارو کښې د نوکرانو له تنخواه څخه څه روپۍ ګرځول کیږي او څه روپۍ اداره د ځان له خوا څخه ور سره ګډوي او د نوکر په نامه ئې جمع کوي- او دا روپۍ نوکر د نوکرۍ تر ختمیدو مخکښې نه ورکوي بلکه د نوکرۍ تر ختمیدو (تقاعد کیدو) وروسته ئې ورکوي او په عُرف کښې دغو روپیو ته پراویډنټ فنډ (د تقاعد روپۍ) ویل کیږي- په داسې روپو باندې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** هره حکومتي یا غیر حکومتي اداره چه د نوکر له تنخواه څخه په جبر سره څه روپۍ ګرځوي او له دې سره سره چه دا روپۍ د نوکر مِلکیت وي نوکر ته پرې قبضه او تصرف حاصل نه وي نو د فقهاوو د تصریح مطابق په دې باندې زکات نشته- علامه ابن الهمامؒ په فتح القدیر نومي کتاب کښې وایي: روٰی ابن ابی شیبة فی مصنفه عن عمر ابن میمون قال قال اخذ الولید بن عبد الملك مال رجل من اهل الرقة یقال له ابو عائشه عشرین الفا فالقاها فی بیت المال فلما ولی عمر بن عبد العزیز اتاه ولده فرفعوا مظلمتهم الیه فکتب الی میمون اون دفعوا الیهم اموالهم و خذوا زکٰوة عامهم هٰذا..... الخ. ځکه چه دا په ضعیف دین (قرض) کښې راځي کوم چه تر لاس ته راتلو وروسته د کال په تیریدو سره زکات پرې واجبیږي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و عند قبض مائتین مع حولان حول بعده ای بعد القبض من دَین ضعیف و هو بدل غیر مال کمهر و دیة و بدل کتابة و خلع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰٦، باب زکٰوة الاموال)



قال زین الدین ابن نجیمؒ: و فی الضعیف لا تجب ما لم یقبض نصاباً و یحول الحول بعد القبض علیه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۷، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکٰوة.

## په شیئرز باندې د زکات حکم

**سوال:** په دې نوي دور کښې د شیئرز کاروبار اوج ته رسیدلی دی چه په هغه کښې ګډه سرمایه د زکات له نصاب څخه څو چنده زیاته وي لیکن که چېرته وویشـــــل شي نو د ځینو برخه لرونکو برخه نصاب ته نه رسیږي او د ځینو رسیږي- نو په دې کښې به د زکات حکم څه وي؟

**الجواب:** د زکات په معامله کښې لکه څرنګه چه د مال تر نصابه پورې رسیدل ضروري دي بالکل همدارنګه د مزکّي (زکات ورکوونکي) د نصاب خاوندوالی ضروري دی- دلته اګر که ګډ مال د زکات له نصاب څخه زیات دی لیکن تر ویش وروسته د ځینو برخه لرونکو برخه د زکات نصاب ته رسیږي او د ځینو نه رسیږي- د دې لپاره د شیئرز په کاروبار کښې په مشترك مال باندې زکات نشته بلکه د هر برخه لرونکي پخپلې برخې باندې زکات واجب دی په دې شرط چه برخه ئې د زکات نصاب ته ورسیږي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا تجب الزکٰوة عندنا فی نصاب مشترك من سائمة و مال تجارة و ان صحت الخلطة فیه...... و ان تعدد النصاب تجب اجماعاً و یتراجعان با لحصص و بیانه فی الحاوی فان بلغ نصیب احدهما نصاباً زکٰوة دون الآخر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰٤، باب زکٰوة السائمة)

لما قال العلامة الکاسانیؒ: فاما اذا کانت مشترکة بین اثنین فقد اختلف فیه قال اصحابنا انه یعتبر فی حال المشترکة ما یعتبر حال الانفراد هو کمال النصاب فی حق کل واحد منهما فان کان نصیب کل واحد منهما یبلغ نصاباً تجب الزکٰوة و الا فلا. (بدائع الصنائع ج۲، ص٦، کتاب الزکٰوة) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۲۹۷، کتاب الزکٰوة.

## په لمیټډو شرکتونو باندې د زکات حکم

**سوال:** یو څو کسان ګډ کاروبار کوي چه ټوله سرمایه د زکات له نصاب څخه هم زیاته ده لیکن که چېرته تقسیم کړی شي نو د هر یوه برخه دزکات له نصاب څخه کمیږي- نو آیا په داسې روپو باندې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات لپاره لکه څرنګه چه د مال تر نصابه پورې رسیدل ضروري دي همدارنګه د مزکّي (زکات ورکوونکی) د نصاب خاوندوالی هم ضروري دی- په صورت مسئوله کښې اګر که مشترك مالیت د زکات له نصاب څخه زیات دی لیکن له تقسیم څخه وروسته که چېرته د هر یوه برخه نصاب ته نه رسیده نو په داسې مشترك مال باندې زکات نشته- البته که چېرته مالیت دومره وي چه که چېرته تقسیم کړی شي او د ټولو برخې یا د هر یوه برخه چه نصاب ته رسیده نو په هغه باندې زکات واجب دی-

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: فاما اذا کانت مشترکة بین اثنین فقد اختلف فیه قال اصحابنا انه یعتبر فی

حال المشترکة ما یعتبر حال الانفراد و هو کمال النصاب فی حق کل واحدٍ منهما فان کان نصیب کل واحد منهما یبلغ نصاباً تجب الزکٰوة و الا فلا. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا تجب الزکٰوة عندنا فی نصاب مشترك من سائمة و مال تجارة و ان صحت....... و ان تعدد النصاب تجب اجماعاً...... فان بلغ نصیب احدهما نصاباً زکٰوة دون الآخر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۴، باب زکٰوة الاموال) و مثله فی فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۹۷، کتاب الزکٰوة.

## په فکسډ ډپازټ باندې د زکات حکم

**سوال:** د بانك په نوي نظام کښې يوه خاته د فکسډ ډپازټ ده چه په هغې کښې روپۍ د يوې تاکلې مودې لپاره د مثال په ډول د دريو يا څلورو کلونو لپاره جمع کيږي او د دې مودې تر پای ته رسيدو مخکښې د خاتې خاوند خپلې روپۍ له بانك څخه بيرته نه شي اخيستلی، نو آيا په دغو روپو باندې زکات واجب دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د حنفيه وؒ په نزد د زکات د وجوب لپاره اګر که تام (پوره) مِلکيت ضروري دی ليکن که چېرته يو څوك پخپل اختيار سره خپل مال بل ته ور وسپاري او بل سړی د دې اقرار کوي چه په لاس ورغلي مال باندې قبضه نه شم کولی نو دا په دين (پور) کښې راځي۔ د دې لپاره په دې مال باندې به زکات واجب وي ليکن ادا کول ئې هغه وخت ضروري دی چه کله مال په لاس ورشي۔ لهذا د بانك په فکسډ ډپازټ کښې زکات فرض دی ليکن ادا کول به ئې د لاس ته راتلو په وخت کښې لازمي وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: لو کان الدّين علی مقر ملی او علی معسر او مفلس ای محکوم بافلاسه او علی جاحد عليه بينة و عن محمدؒ لا زکٰوة و هو الصحيح ذکره ابن ملك وغيره لان البينة قد لا تقبل او علم به قاض سيجيء ان المفتی به عدم القضاء بعلم القاضی فوصل الٰی ملکه لزم زکٰوة ما مضی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۷، کتاب الزکٰوة)

قال الامام المرغينانیؒ: و لو کان الدّين علی مقر مليء او معسر تجب الزکٰوة لامکان الوصول اليه ابتداء الخ.

—— قال ابن همامؒ: تحته ففی القوی تجب الزکٰوة اذا حال الحول و يتراخی الاداء الی ان يقبض اربعين درهماً ففيها درهم. (فتح القدير ج۲، ص۱۲۳، کتاب الزکٰوة)

## په انعامي بانډ باندې زکات واجب دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له ماسره د پنځوسو زرو روپو انعامي بانډ موجود دی، آيا زکات پرې واجب دی او که نه؟ که چېرته واجب وي نو کله به ئې ادا کوم؟

**الجواب:** فقهاء کرامو د دين (پور) درې ډولونه ليکلي دي چه له هغو څخه د دين وسط تعريف په بانډ باندې صادقيږي۔ د دې لپاره چه بانډ پخپله مال نه دی بلکه د استا د هغه مال رسيد دی کوم چه له حکومت يا کومې شخصي ادارې سره د قرض په شکل کښې موجود دی۔ د دې لپاره



د بانډ په ماليت باندې زکات واجب دی ليکن چه کله دا بانډ د ماليت شکل غوره کړي او ستا لاس ته درشي نو د تيرو شويو او موجوده کال زکات ورکول به درباندې لازم وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو کان الدّين علی مقر ملی او علی معسر او مفلس ای محکوم بافلاسه او علی جاحد عليه بينة........ فوصل الی ملکه لزم زکٰوة ما مضی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۷، کتاب الزکٰوة)

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: لو کان الدّين علی مقر ملی او معسر تجب الزکٰوة لامکان الوصول اليه. قال ابن الهمامؒ: تحت قوله ....... ففی القوی تجب الزکٰوة اذا حال الحول و يتراخی الاداء الی ان يقبض اربعين درهما ففيها درهم. (فتح القدير ج۲، ص۱۲۳، کتاب الزکٰوة)

## پرائز بانډ په زکات کښې د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته له چاسره پرائز بانډ موجود وي او غواړي چه په زکات کښې ئې چا ته ورکړي نو آيا په دې سره به زکات ادا شي او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بانډ پخپله مال نه دی بلکه د ا د هغه مال رسيد دی کوم چه له حکومت (د بانك له مالکانو) سره ستا د ماليت په صورت کښې موجود دی۔ په د اسې حال کښې چه په زکات کښې د مال تمليك ضروري دی او د ا د زکات يو اهم شـرط دی کوم چه په دې صورت کښې وجود نه لري۔ نو له دې وجهې پرائز بانډ په زکات کښې له ورکولو څخه زکات نه ادا کيږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: هی تمليك خرج الاباحة فلو اطعم ناوياً الزکٰوة لا يجزيه الا اذا دفع اليه المطعوم........ جزء مال خرج النفعة فلو اسکن فقير اداره سنة ناوياً لا يجزيه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۶، کتاب الزکٰوة)

لما قال الامام ابو البرکات النسفیؒ: هی تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمی و لا مولاه. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۲۰۱، کتاب الزکٰوة)

## له بانك او انشورنس څخه په لاس ته راغليو منافعو باندې د زکات حکم

**سوال:** د بانك له مختلفو خاتو يا انشورنسونو څخه چه کومې ګټې لاس ته راځي آيا په هغو کښې زکات واجب دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** له بانك يا نورو سودي ادارو له خوا څخه چه کومې ګټې په لاس راځي هغه ربٰو (سود) دی کوم چه د شريعت له مخې د حرام والي په بناء سره واجب التصدق دی۔ د دې لپاره په دغو لاس ته راغليو ګټو باندې هيڅ زکات نشته۔ البته که چېرته د ا د سود روپۍ له اصل روپو سره يو ځاي شوي وي او ډيره برخه د حلال مال وي نو په دې صورت کښې به زکات واجب وي۔ په فقهي ذخائرو کښې د دې مثال دا دی چه:

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لو خلط السلطان المال المغصوب بماله ملکه فتجب الزکٰوة فيه و يورث عنه لان الخلط استهلاك اذا لم يمکن تمييزه عند ابی حنيفة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۹۰، باب زکٰوة الغنم)

## د پیشگي کــــرایه (پګړۍ) په روپو کښې زکات په مــــالك باندې دی نه په کــــرایه دار باندې

**سوال:** نن صبا په بازارونو کښې یو عجیب رواج را روان دی چه په لویو لویو مارکیټونو کښې مالك له دوکاندار (کرایه دار) څخه مخکښې کرایه اخلي۔ له دې ډیرو روپو څخه د مارکیټ مالك هره میاشت خپله کرایه مجرا کوي۔ اوس پوښتنه دا ده چه د دغو روپو زکات په چا باندې واجب دی یعنې څوك به ئې زکات ورکوي؟ د مارکیټ مالك او که دوکاندار؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له فقهي عباراتو څخه خو ځرګندیږي چه د پیشګي کرایه په اخیستلو سره د مارکیټ مالك د هغې کرایې مالك جوړیږي۔ دوکاندار ئې بیرته ترې نه شي غوښتلی۔ د دې لپاره د دې مالیت زکات به د دوکان په مالك وي او هغه به ئې زکات ادا کوي او په دوکاندار (کرایه دار) باندې ئې زکات واجب نه دی۔

لما قال الشیخ ابن الهمامؒ: و اما زکٰوة الاجرة المعجلة عن سنین فی الاجارة الطویلة التی یفعلها بعض الناس عقوداً و یشترطون الخیار الثلاثة ایام فی رأس کل شهر فتجب علی الآجر لانه ملکها با لقبض. (فتح القدیر ج۲، ص ۱۲۱، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: ذکر الشیخ الامام ابو بکر محمد بن الفضل فی الاجارة الطویلة تعارفها اهل البخاری ان الزکٰوة فی الأجرة المعجلة تجب علی الآجر انه ملکه قبل الفسخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶، کتاب الزکٰوة)

## د ضمانت په روپو کښې د زکات حکم

**سوال:** نن صبا د انګریز د قانون مطابق په هر یوه عدالت کښې چه کله کوم مجرم آزادوي نو له هغه څخه یو څه نقدې روپۍ د زرِ ضمانت په توګه وصولوي کوم چه د حکومت په خزانه کښې جمع کیږي۔ نو د داسې روپو د زکات د ورکولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د زکات د وجوب لپاره اهم شرط پوره ملکیت دی یعنې مالك به د مال د رقبې هم مالك وي او په هغه باندې هر وخت تصرف هم کولی شي، یعنې د هغه په تصرف کښې وي، دلته د ضمانت روپۍ اګر که په اصل کښې د ضمانت ورکوونکي ملکیت دی لیکن د ضمانت په توګه تر جمع کولو وروسته د هغه له تصرف او قضې څخه وتلی او د حکومت په لاس کښې لویدلی دی کوم چه تام ملکیت پکښې پاتې نه شو، د دې لپاره د مرهونه مال غوندې په دې کښې هم زکات واجب نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا فی مرهون بعد قبضة قال ابن عابدینؒ: ای لا علی المرتهن لعدم ملك الرقبة و لا علی الراهن لعدم الید و اذا استورّه الراهن لا یزکی عن السنین الماضیة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۳، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و اطلق المِلك فا نصرف الی الکامل و هو المملوك رقبة و یدا.......



و من موانع الوجوب الرهن اذا کان فی ید المرتهن لعدم ملك الید. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۳، کتاب الزکٰوة)

## په رهن (ګروي) باندې د زکات حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك له چا سره کوم شی په ګروي کښیږدي نو آیا په همدغه شي باندې به زکات واجب وي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زکات کښې د مالیت تام مِلکیت والی ضروري دی چه سړی به د هغه مال پوره او کُلي مالك وي، لکه ځرنګه چه په رهن کښې د راهن تام مِلکیت نشته د دې لپاره رهن د هغه له لاسونو څخه وتلی دی او نه مُرتهن ته پرې تام مِلکیت حاصل دی د دې لپاره هغه ته د رقبې مِلکیت حاصل نه دی۔ له دې وجهې په د رهن (ګروي) د مالیت زکات په هیچا واجب نه دی، نه په راهن او نه په مُرتهن، البته چه کله د رهن دا مالیت د هر یوه وګرځي نو بیا به ئې، په هغه باندې زکات واجب وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا فی مرهون بعد قبضه. قال ابن عابدینؒ: تحت قوله ای لا علی المرتهن لعدم ملك الرقبة و لا علی الراهن لعدم الید و اذا استرده الراهن لا یزکی عن السنین الماضیة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۳، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و اطلق المِلك فانصرف الی الکامل و هو المملوك رقبة و یدا.......... و من موانع الوجوب الرهن اذا کان فی ید المرتهن لعدم ملك الید. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۳، کتاب الزکٰوة)

## د کمیټې له روپو څخه د زکات ورکولو حکم

**سوال:** نن صبا په کاروباري او عامو خلکو کښې دا رواج دی چه څو کسان سره یو ځای کیږي او پخپل منځ کښې د میاشتې څه څه روپۍ سره اچوي او په ټاکلي مودې کښې ئې د قرعه اندازۍ (پرچې) په ذریعې سره ټولې روپۍ یوه سړي ته ورکول کیږي۔ له دې وروسته بیا روپۍ سره جمع کوي بیا همدارنګه د پرچې په ذریعه ټولې روپۍ بل غړي ته ورکوي تر دې پورې چه ټولو غړو ته همدومره روپۍ په لاس ورشي۔ د مثال په ډول د شلو زرو روپو کمیټه ده او غړي ئې لس کسان دي چه په دې کښې خو دوه زره روپۍ پخپله د همدغه سړي دي او پاتې روپۍ ئې د نورو غړو دي۔ نو کوم یوه ته چه دا روپۍ په لومړي ځل په لاس ورغلي وي او په هغه باندې کال تیر شي نو آیا داسړی به د ټولو روپو زکات ورکوي او که د نورو قرض به ترې جدا کوي او په پاتې شویو روپو کښې به زکات ورکوي؟

**الجواب:** د مقدس شریعت په رڼا کښې لومړی قرض له مال څخه منفي کیږي او د قرض تر ایستلو وروسته چه څومره مال پاتې شي په هغو باندې به زکات واجب وي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې چه په لومړي ځل کوم سړي ته شل زره روپۍ په لاس ورغلي دي په دغو کښې به یوازې د دوه زرو روپو زکات به دی ورکوي د پاتې اتلسو زرو روپو زکات پرې واجب نه دی۔

لما فى الهندية: قال اصحابنا رحمهم الله تعالى كل دين لهٗ مطالب من جهة العباد يمنع وجوب الزكٰوة من جهة العباد يمنع وجوب الزكٰوة سواء كان الدَّين للعباد كا لقرض و ثمن البيع و ضمان المتلفات و ارش الجرحة الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۳، كتاب الزكٰوة،الباب الاول فى تفسيرها الخ)

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: و من كان عليه دين يحيط بماله فلا زكٰوة عليه. و قال الشافعى تجب لتحقق السبب و هو ملك نصاب نام و لنا ان مشغول بحاجته الاصلية فا عتبر معروفاً...... و ان كان ماله اكثر من دَينه زكى الفاضل اذا بلغ نصاباً لفراغه عن الحاجة الاصلية. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۱۸، كتاب الزكٰوة) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۱۱۸، كتاب الزكٰوة.

## د افيونو په كاروبار باندې د زكات حكم

**سوال:** يو سړى د افيونو كاروبار كوي نو آيا د هغه په مال باندې زكات واجب دى او كه نه؟

**الجواب:** د هر هغه شي چه په خارج كښې ئې استعمال وي نو د هغه په كاروبار كښې شرعي بدي نشته. د دې لپاره د افيونو كاروبار صحيح دى او په ماليت باندې ئې زكات هم واجب دى. البته بهتره دا ده چه كه كوم بل كاروبار په لاس ورشي نو دا دې پرېږدي.

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و صح بيع غير الخمر مما مرو مفاده صحة بيعه الحشيشه و الافيون. قال العلامة ابن عابدينؒ: تحت قوله (و صح بيع الخمر) اى عنده خلافاً لهما فى البيع و الضمان لكن الفتوىٰ على قوله فى البيع و على قولهما فى الضمان. (رد المحتار ج۶، ص۴۶۵، كتاب الاشربة)

لما قال الشيخ المفتى كفايت الله الدهلوىؒ: افيون، چرس، بنگ، كوكين دا ټول شيان پاك دي او په دوايي ګانو كښې ئې خارجي استعمالول جائز دي. (البته) د نشې په نيت سره ئې استعمال ناجائز او حرام دي ليكن د دغو ټولو تجارت د دې له وجهې چه فى الجُملہ مباح الاستعمال دى مباح دى. (كفايت المفتي ج۹، ص۱۱۵، شپږم باب ماكولات او مشروبات)

## د اوردې مودې په قرضونو باندې د زكات حكم

**سوال:** ځينو خلكو له بانكونو څخه د ډېرې مودې لپاره پورونه اخلي. آيا د اسې پورونه د زكات د اسې مانع دي لكه د نورو پورونو غوندې او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب:** په دې مسئله كښې فقهاء كرام دوه رأيې لري ليكن له ظاهره او قاعدې له لحاظه كوم چه متاخرينو فقهاوو هم راجحه بللې ده هغه دا ده چه د اسې قرضې د زكات مانع نه دي.

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله او مؤجلا) عزاه فى المعراج الى شرح الطحاوى و قال عند ابى حنيفةؒ لا يمنع و قال الصدر الشهيد لا رواية فيه و لكل من المنع و عدمه وجه زاد القهستانى عن الجوهر و الصحيح غير مانع. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۱، كتاب الزكٰوة)

لما قال الشيخ المفتى عزيز الرحمنؒ: مهرِ مؤجل لكه څرنګه چه په اوس په عمومي توګه وي د صحيح مذهب له مخې د زكات مانع نه دى. يعنې دا دين (پور) د مهرِ مؤجل له موجودو



روپيو څخه مه منفي كوى بلكه له ټولو روپيو څخه زكات وركول ضروري دي. (فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۶، ص۴۶، لومړى باب، د زكات صفت او شرائط)

## د مـــړي له تركې څخه د زكات حكم

**سوال:** كه چېرته كوم سړى چه زكات پرې فرض وو پرته د زكات له ادا كولو څخه مړ شي نو آيا پس له مرګه ئې له خپلې تركې څخه زكات وركول كيږي او كه نه؟

**الجواب:** د زكات د ادا كولو لپاره نيت شرط دى چه كله نيت وشي نو هلته زكات ادا كيږي. لكه څرنګه چه له مرګ څخه وروسته انسان د نيت د كولو قابل نه وي نو له دې وجهې د هغه له تركې څخه زكات نه وركول كيږي. البته كه چېرته ئې د مرګ په وخت كښې وصيت كړى وي چه زما له مال څخه زكات وركړى نو بيا د زكات وركول به صحيح وي.

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: لو مات من عليه الزكٰوة لا تؤخذ من تركته لفقد شرط صحتها و هو النية. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۱، كتاب الزكٰوة)

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و لو مات فاداها وارثه جاز. قال ابن عابدينؒ فى الجوهرة: اذا مات من عليه زكٰوة او فطرة او كفارة او نذر لم تؤخذ من تركته عندنا...... و ان اوصى تنفذ من الثلث. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۹، باب صدقة الفطر) و مثله فى فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۶، ص۳۳۰، باب صدقة الفطر.

## د حكومت له خوا څخه له خلكو په زوره د زكات اخيستلو حكم

**سوال:** كه چېرته يو سړى پخپله زكات نه وركوي نو آيا حكومت ته د دې اجازه شته چه په جبر او زور سره ئې ترې يوسي؟ بينوا توجروا.

**الجواب:** كه چېرته يو څوك له زكات وركولو څخه انكار وكړي يا د اقرار كولو تر څنګ زكات نه ادا كوي نو د وخت حاكم ته شرعاً دا اجازه شته چه په زور او جبر سره زكات ترې يوسي او په فقيرانو ئې تقسيم كړي.

لما قال الامام ابو جعفر الطحاوىؒ: لو امتنع عن زكٰوة ماله فاخذها الامام كرها فوضعها فى اهلها اجزأت عنه. (مختصر الطحاوى ص۴۵، باب صدقة الغنم)

لما قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: تحت قوله و شرط ادائها نية مقارنة...... و من امتنع عن اداء زكٰوة ماله و اخذها الامام كرهاً منه فوضعها فى اهلها اجزاه لان للامام ولاية اخذ الصدقات فقام اخذه مقام دفع المالك. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۱، كتاب الزكٰوة) و مثله فى رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، كتاب الزكٰوة.

## د نـــابـــالغ او ليوني په مال كښې د زكات حكـــم

**سوال:** د نابالغ كوچني او ليوني په مال كښې زكات واجب دى او كه نه؟

**الجواب:** د زكات له شرائطو څخه يو دا شرط هم دى چه زكات وركوونكى به مكلف وي يعنې عاقل او بالغ وي. د دې لپاره د حنفي فقهې مطابق نابالغ او ليوني په مال كښې زكات واجب نه

دی۔ البته په مجنون کښې دا شرط دی چه لیونتوب ئې تول کال وي که چېرته په دې دوران کښې کوم وخت جوړ شي او بالکل صحیح سلامت شي نو د نصاب د خاوند والي له وجهې زکات پرې واجبېږي۔

لما قال العلامة ابو بکر بن علی بن محمد الحدار الیمنیؒ: فلیس الزکوٰة علی صبیّ و مجنون اذا وجد منه الجنون فی السنة کلها. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۵۰، کتاب الزکوٰة)

لما قال العلامة اکمل الدین البابرتیؒ: و لیس علی الصّبیّ و المجنون زکوٰة خلافاً للشافعی..... و لو افاق (المجنون) فی بعض السنة فهو بمنزلة افاقته فی بعض الشّهر فی الصّوم یعنی اذا کان مفیقاً جزء من السنة اوّلها و آخرها قل او کثر بعد ملك النصاب فلزمه الزکوٰة کما لو افاق فی جزء من شهر رمضان. (العنایة علی هامش فتح القدیر ج۲، ص۱۱۵/۱۱۷، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶۶، کتاب الزکوٰة.

## په زمرود، جواهراتو او داسې نورو قیمتي ډبرو کښې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته له یوه سړي سره ملغلرې، زمرود او داسې نورې قیمتي ډبرې موجودې وي لیکن د تجارت لپاره نه وي نو آیا په داسې سړي باندې د داسې جواهراتو زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** تولې هغه قیمتي ډبرې چه د تجارت په غرض سره ئې له ځان سره چا نه وي ایښي نو په هغو کښې زکات واجب نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: لا زکوٰة فی اللآلی و الجواهر الا ان تکون للتجارة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۷۳، کتاب الزکوٰة، قبل باب السائمة)

و فی الهندیة: و اما الیواقیت و اللآلی و الجواهر فلا زکوٰة فیها و ان کانت حلیاً الا ان تکون للتجارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، الباب الثالث فی زکوٰة الذهب و الفضة و العروض) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۵۱، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة الذهب.

## د مطالـــــعې لاندې کتابونو کښې د زکات حکم

**سوال:** زه په یوه هایي سکول (لیسه) کښې د اسلامیاتو استاذ یم۔ له ما سره له یو لك روپو څخه د زیات قیمت کتابونه دي کوم چه یواځې مې د مطالعې لپاره جمع کړي دي او د تجارت لپاره نه دي۔ پوښتنه خبره دا ده چه آیا په دغو کتابونو کښې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې زکات په هغه مال باندې واجب وي چه له اصلي حاجاتو څخه زیات وي او د تجارت په نیت سره ایښی وي۔ په صورت مسئوله کښې لکه څرنګه چه ستاسو کتب خانه د مطالعې لپاره ده نه د تجارت لپاره۔ نو ځکه دا په اصلي حوائجو کښې راځي او زکات پرې نشته۔

قال فی الهندیة: منها فراغ المال عن حاجته الاصلیة...... و کذا کتب العلم ان کان من اهله و آلات



المحترقین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکوٰة، الباب الاوّل فی تفسیره)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: رجُلٌ له کتب العلم ما یساوی مائتی درهم ان کانت مما یحتاج الیها فی الحفظ و الدراسة و التصحیح لا یکون نصاباً و حل لهٗ اخذ الصدقة فقهیا کان او حدیثاً او ادباً الخ. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۴۰، الفصل السابع فی الکتب و العروض) 15

## د زکـــــات له نیت څخه پرته په فقراوو او مساکینو بــــــاندې د روپۍ تقسیمول زکات نه دی

**سوال:** که چېرته یو سړی د زکات له نیت څخه پرته بښې ډېرې روپۍ په فقیرانو او مسکینانو باندې وویشي نو آیا داسې زکات ادا کېږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه دا سړی له څو کلونو راهیسې داسې کوي؟

**الجواب:** د زکات د ادا کولو یا د زکات د مال د جلا کولو په وخت کښې د زکات نیت لازمي دی۔ لهذا که چېرته چا له نیت څخه پرته فقیرانو ته هر څومره ډېرې روپۍ ورکړي نو زکات ئې نه ادا کېږي بلکه دا سړی به د تیرو شویو کلونو زکات هم دوباره ادا کوي۔

لما قال العلامه الحصکفیؒ: و شرط صحه ادائها نیة مقارنة له ای للاداء و لو کانت المقارنة حکماً..... و لا یخرج عن العُهدة با لعزل بل با لاداء للفقراء. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۴، کتاب الزکوٰة)

لما قال العلامة بُرهان الدین المرغینانیؒ: و لا یجوز اداء الزکوٰة الاّ بنیة مقارنة للاداء او مقارنة لعزل مقدار الواجب لان الزکوٰة عبادة فکان من شرطها النیّة. (الهدایة ج۱؛ ص۱۶۸، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۴۱، کتاب الزکوٰة.

## د حکومت لپاره له اموال باطنه څخه د زکات ګرځولو حکم

**سوال:** په بانکونو کښې د عوامو په جمع کړل شویو روپو باندې د زکات په ګرځولو کښې د حکومت پالیسي دا ده چه په سیونګ اکاونټ (حفاظتي خاته) کښېودل شویو روپو څخه زکات ګرځوي او له کرنټ اکاونټ څخه ئې نه ګرځوي۔ او بیا دا روپۍ په غریبو عوامو باندې ویشي۔ په داسې حال کښې چه په عوامو کښې دا خبره مشهوره ده چه حکومتي زکات سُود دی او اخیستل ئې جائز نه دي۔ نو آیا په رښتیا هم په پورتنۍ طریقې سره د زکات ګرځول شوې روپۍ د سود په جملې کښې راځي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د وخت حکومت شرعا د دې خبرې شرعا اجازه لري چه د خلکو له مالونو څخه زکات وصول کړي که په سیونګ اکاونټ کښې جمع وي او که په کرنټ اکاونټ کښې۔ چه کله حکومت ته شرعاً دا حق حاصل دی نو معلومه شوه چه دا په رښتیا هم زکات دی چه د غریبو عوامو لپاره ئې اخیستل جائز دي۔ البته د حکومت دا رویه غلطه ده چه له سیونګ اکاونټ څخه زکات اخلي او له کرنټ اکاونټ څخه ئې نه اخلي۔

و ذکر الامام محمد بن حسن الشیبانیؒ: کان ابو بکر اذا اعطی الناس اعطیاتهم یسئل الرجل هل عندك من مال قد وجبت فیه الزکٰوة فان قال نعم اخذ من عطائه زکٰوة ذٰلك المال و ان قال لا سلّم الیه عطائه قال محمدؒ و بهذا نأخذ و هو قول ابی حنیفة. (مؤطا امام محمدؒ ص ۱۷۰، باب الرجل یکون له الدین هل علیه فیه زکٰوة)

عن عائشه بنت قدامة عن ابیها انه قال کنت اذا جئتُ عثمان بن عفان رضی الله عنه اقبض عطائی سئالنی هل عندك من مال وجبت فیه الزکٰوة قال فان قلتُ نعم اخذ من عطائی زکٰوة ذٰلك المال و ان قلتُ لا دفع الی عطائی. (مؤطا امام مالك ص ۲۷۲، الزکٰوة فی العین من الذهب و الورق)

## د مــــــدرسې د سفیرانو لپاره زکاتونو او صدقاتو له روپو څخـــــه برخه اخیستل جـــــائز دي

**سوال:** ځینې سفیران د دیني مدرسو لپاره چندې راټولوي او له دې چندې څخه د کمیشن په توګه یوه ټاکلې برخه پخپله اخلي او د سفر په دوران کښې له همدې چندې څخه خوراك او څښاك هم کوي. آیا د سفیرانو لپاره د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سفیر د چندې ورکوونکي وکیل وي. له تملیك څخه مخکښې هغه ته د زکاتونو او نور صدقاتو له روپو څخه خوراك، څښاك او د خپلې ټاکلې حصې اخیستل جائز نه دي. او نه دوی د زکات په عاملینو باندې قیاسول صحیح دي.

لما قال العلامة اکمل الدین البابرتی رحمه الله: العامل هو الذی یبعثه الامام لجبایة الصدقات. (العنایة علی هامش فتح القدیر ج۲، ص ۲۰۴، باب من یجوز دفع الزکٰوة الخ)

لما قال الشیخ عزیز الرحمٰنؒ: د زکات له آمد څخه سفیر ته تنخواه ورکول جائز نه دي او دوی په عاملین علیها کښې داخل نه دي. (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۳۶۰، (امداد المفتي) باب مصارف الزکٰوه)

## د کال تر تیریدو وروسته قرض د زکات مانع نه دی

**سوال:** یوه سړي د کور د جوړولو لپاره زمکه واخیسته چه بیع ئې مکمله شوې ده لیکن خریدار تر اوسه خرڅوونکي ته روپۍ نه دي ورکړي چه په نوموړي روپو باندې کال تیر شو نو آیا په نوموړي سړي باندې د همدغو روپو زکات لازم دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** که چېرته په همدغو روپو باندې د کال تر تیریدو وروسته ئې زمکه اخیستې وي نو دا قرضه د تیر کال د زکات لپاره مانع نه دی بلکه نوموړی به خامخا زکات ادا کوي او که چېرته ئې زمکه د کال تر پوره کیدو مخکښې اخیستې وي او روپۍ ئې لا تر اوسه د زمکې خاوند ته نه وي رسولې نو د زمکې قیمت په اخیستونکي باندې قرض دی نو دا قرض بیا د زکات مانع دی. البته که چېرته له نوموړي سره له دې قرضې پرته نوره سرمایه وه او نصاب ته رسیدله نو د هغې سرمایې زکات به خامخا ورکوي.



قال العلامة الکاسانیؒ: و منها ان لا یکون علیه دین مطالب به من جهة العباد عندنا فان کان فانهٗ یمنع وجوب الزکٰوة بقدره حالاً کان او مؤجلاً...... فاما اذا استحق بعد الحول لا یسقط الزکٰوة لانه دین حادث الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶، کتاب الزکٰوة، فصل شرائط الفرضیة)

قال العلامة الحصکفیؒ: فارغ عن دین لهٗ مطالب من جهة العباد سواء کان لله کزکٰوة. قال العلامة ابن عابدینؒ: تحته. فلو کان له نصاب حال علیه حولان و لم یزکه فیهما لا زکٰوة علیه فی الحول الثانی و کذا لو استهلك النصاب بعد الحول ثم استفاد نصاباً آخر و حال علیه الحول لا زکٰوة فی المستفاد لاشتغال خمسة منه بدین المستهلك. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۲۶۰، کتاب الزکٰوة، مطلب الفرق بین السبب و الشرط و العلة)

## د فوځي ځوکیو په حکومتي خزانې باندې د زکات مسئله

**سوال:** د فوځ په مختلفو ادارو کښې د ځوانانو د خیر ښیګنې لپاره فنډونه ځانګړي کیږي چه اړوند افسر صاحبان ئې د ادارو د ننه په خیریه کارونو کښې مصرفوي. نو آیا په دغو فنډونو باندې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** چونکه په ظاهر خو دا فنډونه د هیڅ یوې ادارې ملکیت نه دي بلکه یوازې د استعمال لپاره ورکول کیږي. د دې لپاره د فوځي ادارو په ذمې باندې د دغو روپو زکات لازم نه دی.

لما فی الهندیة: و منها الملك التّام و هو ما اجتمع فیه الملك و الید و امّا اذا وجد الملك دون الید کا لصدق قبل القبض او وجد الید دون الملك کملك الکاتب و المدیون لا تجب فیه الزکٰوة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة، الباب الاوّل فی تفسیرها و صفتها و شرائطها)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی. قال ابن عابدینؒ: فقد ذکر فی البدائع من الشروط المِلك المطلق قال و هو الملك یداً و رقبة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ٤، مطلب الفرق بین السبب و الشرط و العلّة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

## له نصاب څخه له کمو سرو زرو سره په یو ځای شویو نقدو روپو باندې د زکات حکم

**سوال:** له یوې ښځې سره څلور تولې د سرو زرو ګینړې او یو زر روپۍ نقدې دي. له دې پرته څه شی نه لري. آیا د کال تر تیریدو وروسته په دې ښځې باندې زکات لازم دی او که نه؟

**الجواب:** چه کله له چا سره څلور تولې سره زر او زر روپۍ نقدې وي نو دواړه به سره ګډوي که چېرته ئې قیمت له دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو سره برابریده نو د کال تر تیریدو وروسته زکات پرې واجب دی.

لما فی الهندیة: و لو ضم احد النصابین الی الآخر حتیٰ یؤدی کله من الذهب او من الفضة لا بأس بهٖ لکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء قدراً او رواجاً و الاّ فلیؤدی من کل واحد ربع عشرة کذا فی محیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶۹، الباب الثالث فی زکٰوة الذهب و الفضة و العروض، فصل اول)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و قیمة العرض للتجارة تضم الی الثمانین لان لکل التجارة وضعاً و جعلاً. (الدر المختار

على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۷، باب زكوٰة المال) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص ۲۳۰، باب زكوٰة المال.

## د اختر په ورځ چا ته د عيدي په توګه د زکات ورکولو حکم

**سوال:** آيا د عيد په ورځ زكات د اختر مبارکي په توګه ورکول جائز دي او که نه؟ مونږ له يوه چا څخه اوريدلي دي چه په دې سره زكات نه ادا کيږي؟

**الجواب:** د زكات ورکولو په وخت د زكات نيت ضروري دی۔ د دې لپاره که چېرته د عيدي ورکولو په وخت کښې د زكات نيت نه وي بلکه يوازې د عيدي ورکولو نيت وي نو زكات ئې نه ادا کيږي۔ البته که چېرته د مال ورکولو يا د هغه د جلا کولو په وخت کښې د زكات نيت وکړي نو زكات ئې ادا کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: دفع الزكوٰة الى صبيان اقاربه برسم عيد او الى مبشر او مهدى الباكورة جاز. و قال ابن عابدينؒ: قوله الى صبيان اقاربه اى العقلاء و الا فلا يصح الا بالدفع الى ولى الصغير. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص ۷۰، باب المصرف، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة ابن البزاز الكردرى رحمه الله: و لو نوى الزكوٰة فيما يدفعه الى صبيان اقاربه عيديا او لمن يهدى اليه الباكورة او يبشره بقدوم صديقه........ يجوز. (الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج۴، ص۸۶، الباب الثانى فى المصرف) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۱۹۰، الباب السابع فى المصارف.

## د ميره د پوروړي توب له وجې له ښځې څخه زكات نه ساقطيږي

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د زيد له ښځې سره څوارلس تولې د سرو زرو ګينړې دي چه د هغې خپل ذاتي مِلکيت دی په د اسې حال کښې چه زيد د خپلې ښځې د ګينړو له قيمت څخه زيات پوروړی دی۔ نو په دې صورت کښې د زيد په ښځې باندې زكات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** د سرو زرو ګينړې چونکه د زيد د ښځې مِلکيت دی له دې وجهې په ښځې باندې ئې زكات واجب دی په دې مسئله کښې د ميره قرضې ته هيڅ اعتبار نشته۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و سببه اى سبب افتراضها ملك نصاب حولى...... تام الخ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص ۴، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة المرغينانىؒ: الزكوٰة واجبة على الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملك نصابا ملكا تاما و حال عليه الحول الخ. (الهداية ج۱، ص۱۶۷، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۷۲، كتاب الزكوٰة، الباب الاول فى بيان تفسيرها الخ.

## په اسلحـــــه باندې د زكات حكم

**سوال:** له زيد سره يوه تفنګچه د ديارلسو زرو روپو او يو کلاشنکوف د پنځه ويشتو زرو روپو موجود دي او له دې بغير نور څه ور سره نشته۔ نو آيا په زيد باندې زكات او قرباني دواړه واجب دي او که نه؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** تفنګچه يا کلاشنکوف که چېرته د ځان د حفاظت او ساتنې لپاره وي او له دې پرته له زيد سره نور د زكات او قرباني موجِب مال نه وي نو په زيد باندې زكات او قرباني واجب نه دي۔ البته که چېرته د تجارت لپاره وي نو بيا دواړه پرې واجب دي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و فارغ عن حاجته الاصلية. قال ابن عابدينؒ: و هى ما يدفع الهلاك عن الانسان تحقيقاً كا لنفقة و دور السكنى و آلات الحرب و الثياب....... ان المراد به نفس الحوائج فانه قال و ليس فى دور السكنى و ثياب البدن و اثاث المنزل...... و سلاح الاستعمال الخ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۶، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة المرغينانىؒ: و ليس فى دور السكنى و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوٰة لانها مشغولة با لحاجة الاصلية و ليست بنامية ايضاً. (الهداية ج۱، ص۱۶۹، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۱۷۲، كتاب الزكوٰة، الباب الاول فى تفسيرها الخ.

## د زكات اخيستونکي له خبرولو پرته هغه ته د زكات ورکولو حكم

**سوال:** آيا د زكات د ادا کولو په وخت کښې فقير ته دا ويل ضروري دي چه دا د زكات روپۍ دي او که ويلو پرته هم زكات ادا کيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د زكات د ادا کولو په وخت کښې يوازې د زكات نيت ضروري دی، فقير ته د دې ويلو ضرورت نشته چه دا د زكات مال دی۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و شرط صحة ادائها نية مقارنة له اى اشار الى انه لا اعتبار للتسمية فلو سماها هبة او قرضا تجزيه فى الاصح و الى انه لو نوى الزكوٰة و التطوع وقع عنها عند الثانى لان نية الفرض اقوىٰ. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص ۱۱، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة المرغينانىؒ: و لا يجوز اداء الزكوٰة الا بنية مقارنة للاداء او مقارنة لعزل مقدار الواجب لان الزكوٰة عبادة فكان من شرطها النية و الاصل فيها الاقتران الا ان الدفع يتفرق فا كتفى بوجودها حالة العزل تيسيراً كتقديم النية فى الصوم. (الهداية ج۱، ص ۱۷۰، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۱۷۰، كتاب الزكوٰة، الباب الاول.

## افغان مهاجرينو ته په ورکول شوي امداد کښې د زكات حكم

**سوال:** افغان مهاجرين په ځينو اسلامي او اروپايي ملکونو کښې سياسي پناوې اخلي او هلته هغو ته هر ه مياشت په ځانګړې توګه څه روپۍ ورکول کيږي۔ نو آيا په هغو باندې له دغو امدادي روپو څخه زكات ورکول ضروري دي او که نه؟

**الجواب:** که چېرته دا امداد افغان مهاجرينو ته د تمليك په صورت کښې ورکول کيږي نو او د شرعي نصاب سره برابر وي نو د کال په تيريدو سره زكات ورکول پرې ضروري دي او که نه وو نو نه دي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و سببه اى سبب افتراضها ملك نصاب حولى تام فارغ عن دين له مطالب من جهة العباد......... و فارغ عن حاجته الاصلية نام و لو تقديراً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۷، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة المرغينانىؒ: الزكوٰة واجبة على الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملك نصاباً ملكاً تاماً و حال عليه الحول. (الهداية ج۱، ص۱۶۷، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۱۷۰، كتاب الزكوٰة، الباب الاول فى تفسيرها و صفتها و شرائطها.

## په فارمي چرګانو او د هغو په پيد اوار کښې د زکات حکم

**سوال:** نن صبا په فارمونو کښې چرګې د چرګوړو د پيدا کولو لپاره پالل کيږي کوم چه تقريبا له شپږو مياشتو وروسته هګۍ اچوي چه له هغو څخه د خصوصي مشينونو په ذريعه چرګوړي پيدا کيږي. د هګيو دا اسلسله تر اتو مياشتو پورې جاري وي، له دې وروسته چه کله دا چرګې هګۍ کمې کړي نو هغوی هم خرڅول کيږي. اوس د پوښتنې خبره دا ده چه زکات به د چرګانو او پيد اوار د دواړو به ورکوي او که يوائې د پيد اوار زکات به ورکوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب:** چه کله چرګې او هګۍ دواړه خرڅې شي نو له ټولې سرمايې څخه به د قاعدې له مخې شرعي زکات ورکول کيږي.

قال العلامة الحصكفیؒ: و شرطه حولان الحول...... و ثمنية المال كا الدراهم و الدنانير لتعينهما للتجارة باصل الخلقة...... او نية التجارة فی العروض. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۱۰، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة المرغينانیؒ: الزکٰوة واجبة فی عروض التجارة كائنة ما كانت (ای من ای جنس كانت) اذا بلغت قيمتها نصاباً من الورق او الذهب. (الهداية ج۱، ص۱۷۷، باب زکٰوة المال) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۷۹، الباب الثانی فی زکٰوة الذهب و الفضة و العروض.

## د وړو په ميلونو او موټرو باندې د زکات حکم

**سوال:** زيد د څو موټرو مالك دی او د ټيکسي په توګه ئې چلوي همدارنګه د وړو يو ميل هم لري. نو آيا په دغو دواړو باندې زکات شته او که نه؟

**الجواب:** له نقدينو (دراهم او دنانير) پرته کوم شی چه د تجارت په نيت سره واخيستل شي چه بيرته به ئې په ګټه خرڅوم نو په هغه کښې زکات واجب دی. لکه څرنګه چه د وړو ميل او موټرې په کرايې باندې د چلولو لپاره اخيستل شوي دي لهذا د هغو په ذات باندې زکات نشته بلکه د هغو په هغو منافعو کښې زکات واجب دی کوم چه نصاب ته ورسيږي او کال پرې تير شي.

لما قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: قيد بكون العروض للتجارة لانها لو كانت للغلة فلا زکٰوة فيها لانها ليست للمبائعة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۲۸، باب زکٰوة المال)

و فی الهندية: و يشترط ان يمكن من الاستمناء بكون المال فی يده او بد نائبه فان لم يتمكن من الاستمناء فلا زکٰوة عليه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۷٤، و منها كون النصاب نامياً) ومثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷، کتاب الزکٰوة.

## په خالي سلنډرو (د ګيس ډبه يا لوښی) او مائع ګيس کښې د زکات مسئله

**سوال:** ما د ګيس له ايجنسي څخه په پنځلس سوه روپۍ في سلنډر له حساب څخه لس سلنډره واخيستل. اوس دا سلنډر زما ملکيت جوړ شوی دی، لکه څرنګه چه زه د مائع ګيس کاروبار کوم، د دې لپاره چه کله دا سلنډر خالي کيږي نو د ايجنسي خاوندانو ته خپل خالي سلنډر ورکوم او له هغو څخه ډك سلنډر راوړم او د في سلنډر مائع ګيس سل روپۍ ورکوم. اوس د پوښتنې خبره دا ده چه زه به د ګيس او د سلنډرو دواړو له حساب څخه ورکوم او که يوائې د ګيس زکات به ورکوم؟

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې په خالي سلنډرو کښې زکات نشته ځکه چه هغه يوائې بدليږي او دا په تجارتي مال کښې شامل نه ګڼل کيږي د دې لپاره هغوی د حرفت او کسب په نورو آلاتو باندې محموليږي او زکات يوائې د ګيس ورکول کيږي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: و كذٰلك آلات المحترفين ای سواءٌ كان مما تستهلك عينه فی الانتفاع كا لقدوم و المبرد او تستهلك...... قال و قوارير العطارين و لحم الخيل و الحمير المشتراة...... ان كان من غرى المشتری بيعها بها ففيها الزکٰوة و الا فلا. (رد المحتار حاشية الدر المختار ج۲، ص۹، کتاب الزکٰوة)

و فی الهندية: و آلات المحترفين كذا فی السراج الوهاج هٰذا فی الآلات التی ينتفع بنفسها و لا يبقی اثرها فی المعمول...... و ان لم يبق لذٰلك العين اثر فی المعمول كا لصابون و الحرض لا زکٰوة فيه كذا فی الكفاية. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۷۳، کتاب الزکٰوة و منها فراغ المال) و مثله فی البزازية ج٤، ص۸٤، کتاب الزکٰوة.

## په زکات کښې د خرڅولو قيمت ته اعتبار ورکول کيږي

**سوال:** نن صبا په بازار کښې په عمومي توګه دوه ډوله نرخونه وي يو توك او بل پرچون. په توك باندې د مال نرخ کم وي او په پرچون باندې په عمومي توګه نرخ زيات وي. د پوښتنې خبره دا ده چه زکات به د کوم نرخ له حسابه ادا کيږي؟

**الجواب:** دوکاندار چه په کوم نرخ باندې هم سامان خرڅوي د هم هغه نرخ له حسابه به زکات ورکوي.

قال العلامة الحصكفی رحمه الله: و تعتبر القيمة يوم الوجوب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۲٤، باب زکٰوة الغنم)

و فی الهندية: و ان ادی القيمة تعتبر قيمتها يوم الوجوب لان الواجب احدهما. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۱۸۰، الفصل الثانی فی العروض) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص ۲۲۰، فصل فی الغنم.

## د ګينړو د ملغلرو وزن په نصاب کښې شامل نه دی

**سوال:** د سرو زرو په ګينړو کښې ملغلرې لګيدلي وي. نو د زکات ورکولو په وخت کښې به د هغو وزن په نصاب کښې راځي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب:** د سرو زرو د ګينړو زکات د ملغلرو له وزن څخه پرته ادا کيږي يعنې د هغو وزن د سرو زرو په وزن کښې نه شمارل کيږي. البته که چيرته د تجارت لپاره وي نو د هغو د ماليت يا قيمت زکات به ورکوي.

و اما اليواقيت و اللآلی و الجواهر فلا زکٰوة فيها و ان كانت حليا الآ ان تكون للتجارة. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۱۸۰، الفصل الثانی فی العروض)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا زکوٰة فی اللآلی و الجواهر و ان ساوت الفا اتفاقاً الاّ ان تکون للتجارة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۵، کتاب الزکوٰة)

## د کور لپاره د زمکې اخیستلو او بیائې د خرڅولو په صورت کښې د زکات حکم

**سوال:** زید درې کاله مخکښې د کور د جوړولو لپاره څه زمکه واخیسته چه قیمت ئې دولس لکه روپۍ دی- آیا په دې زمکې باندې زکات شته او که نه؟ او که چېرته زید دا زمکه بیرته خرڅه کړي نو په دې صورت کښې د زکات حکم څه دی؟

**الجواب:** هغه تکړه زمکه چه یواځې د کور د جوړولو لپار اخیستل شوې وي په هغې باندې زکات نه واجبیږي- البته د خرڅولو په صورت کښې ئې چه کله قیمت نصاب ته ورسیږي نو د کال په تیرید و سره زکات پرې واجبیږي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و اثاث المنزل و دور السکنٰی و نحوها و کذا الکتب و ان لم تکن لاهلها اذا لم تنو للتجارة. و قال ابن عابدینؒ: و اثاث المنزل الخ محترز قوله نامٍ و لو تقدیراً و قوله و نحوها ای کثیاب البدن لغیر المحتاج الیها و کا لحوانیت و العقارات. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۸، کتاب الزکوٰة)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لیس فی دور السکنٰی و ثیاب البدن و اثاث المنازل و دواب الرکوب و عبید الخدمة الخ لانها مشغولة با لحاجة الاصلیة و لیست بنامیة. (الهدایة ج۱، ص۱۶۹، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، الباب الاول فی تفسیرها و صفتها و شرائطها.

## په خالص حرام مال کښې د زکات حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې که چېرته له چاسره خالص حرام مال وي نو آیا زکات به پرې واجب وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** که چېرته له چاسره یو ځای شوې روپۍ ټولې حرامې وي نو په هغو کښې زکات واجب نه دی- ځکه چه د مالك د معلوم والي له وجهې د مال بیرته ورکول مالك ته واجب دي- او که چېرته ئې مالك معلوم نه وي نو مال خبیث دی چه ټول واجب التصدق دی یعنې د ټول مال صدقه کول واجب دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: (قوله لو کان الکل خبیثاً) فی القنیة لو کان الخبیث نصاباً لا یلزمه الزکوٰة لان الکل واجب التصدق علیه فلا یفید ایجاب التصدق ببعضه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۵، باب زکوٰة الغنم)

قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: و لو بلغ المال الخبیث نصاباً لا یجب فیه الزکوٰة لان الکل واجب التصدق. (فتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۸۶، الباب الثانی فی المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳۶، باب الرکاز.

## د مختلفو ملکونو په نوټونو باندې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته له کوم سړي سره څه پاکستانې او څه افغانۍ روپۍ وي نو آیا له دواړو څخه به زکات ورکوي او که له یو ډول نوټونو څخه به ئې ادا کوي؟



**الجواب:** روپۍ او سکه که افغانۍ وي یا پاکستانۍ په دواړو کښې د زکات نصاب د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو یا د اوه نیمو تولو سرو زرو قیمت دی- همدارنګه د دواړو ملکونو د نوټونو قیمت چه دې نصاب ته ورسیږي نو چه څومره روپۍ وي څلویښتمه برخه ئې په زکات کښې ورکول واجب دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و فی عرض تجارة قیمة نصاب...... من ذهب او ورق..... مقوما باحدهما..... و لو بلغ باحدهما نصاباً و خمساً و با لآخر اقل قومه با لانفع للفقیر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۱، باب زکوٰة المال)

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: الزکوٰة واجبة فی عروض التجارة کائنة ما کانت اذا بلغت قیمتها نصاباً من الورق او الذهب..... یقومها بما هو انفع للمساکین...... قال و تضم قیمة العروض الی الذهب و الفضة حتٰی یتم النصاب...... و یضم الذهب الی الفضة. (الهدایة ج۱، ص۱۷۸/۱۷۷، باب زکوٰة المال) و مثله فی نور الایضاح للشرنبلالیؒ: ص۱۵۶، کتاب الزکوٰة.

## په ګینړو کښې هر کال زکات واجب دی

**سوال:** آیا په ګینړو کښې هر کال زکات ورکول کیږي او که په ټول عمر کښې یو ځل ادا کول کافي دي- زمونږ په دې خبرې باندې اختلاف دی چه که چېرته هر کال د ګینړو زکات ورکړل شي نو ټولې به ختمې شي او هیڅ به پاتې نه شي- د مقدس شریعت له مخې د دې مسئلې وضاحت وکړی؟

**الجواب:** د زکات د وجوب سبب په نصاب باندې د کال تیریدل دي- چه کله د سرو یا سپینو زرو په نصاب (که د ګینړو ه شکل کښې وي یا پخپل اصلي شکل کښې) باندې کال تیر شي نو زکات واجبیږي- البته بل کال د زکات له نصاب (له اوه نیمې تولې سره او دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر) څخه کم پاتې شي نو بیا هیڅ زکات پرې نشته- لیکن که چېرته هر کال ئې نصاب پوره وي نو هر کال به زکات ورکول پرې واجب وي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و شرطه ای شرط افتراض ادائها حولان الحول و هو فی ملك. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۰، کتاب الزکوٰة)

قال العلامة الکاسانیؒ: اما الاوّل فنقول لا خلاف فی ان اصل النصاب و هو النصاب الموجود فی اوّل الحول یشترط له الحول لقول النبیﷺ لا زکوٰة فی مال حتٰی یحول علیه الحول. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۳، فصل و اما الشرائط التی ترجع) و مثلی فی الهدایة ج۱، ص۱۶۸، کتاب الزکوٰة.

## په ګټې باندې د موقوف تجارت نیت د زکات لپاره د عملي تجارت محتاج دی

**سوال:** یوه سړي یو فلائنګ کوچ موټر په څلور لکه پنځوس زره په دې نیت باندې واخیست چه که چېرته ګټه پرې راغله نو خرڅوم ئې- بیا ئې فلائنګ کوچ د دوه کلونو لپاره وچلاوه- نو آیا اوس د فلائنګ کوچ په ذات باندې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم شي د اخیستلو په وخت کښې که چېرته دا نیت وشي چه که ګټه پرې راغله نو خرڅوم ئې. وروسته ئې دا شی د ذاتي ګټې یعنې مزدورۍ لپاره استعمال کړ نو هغه شی تر هغه وخته پورې په تجارت کښې نه ګڼل کیږي تر څو چه عملاً په هغه کښې تجارت جاري نه شي. لهذا په صورت مسئوله کښې د فلاټنګ کوچ په ذات باندې زکات واجب نه دی.

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: عن محمد فی رجل اشترٰی عبداً للخدمة و هو ینوی ان اصاب ربحاً یبیعه لا زکٰوة فیه. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۴۰، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا یبقی للتجارة ما ای عبد مثلاً. قال ابن عابدینؒ: و اشار بقوله مثلاً الٰی ان العبد غیر قید لکن الاولٰی ان یقول بعدهٗ فنوی استعماله لیعم مثل الثوب و الدابة. قال العلامة الحصکفیؒ اشتراه لها فنوی بعد ذٰلك خدمته ثم ما نواه للخدمة لا یصیر للتجارة و ان نواه لها ما لم یبعه الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۳، قبیل باب السائمة) و مثله فی البدائع الصنائع ج۲، ص۱۲، کتاب الزکٰوة، فصل و اما الشرائط.

## د زکـــات اندازه له نبي کریم ﷺ څخه ثابتـــه ده

**سوال:** دلته زمونږ په علاقه کښې یو سړی وایي چه د زکات مقدار له نبي کریم ﷺ څخه ثابت نه دی. آیا د ده دا خبره صحیح ده او که څنګه؟

**الجواب:** د زکات مقادیر (اندازې) منصوصي دي او له صحیحو احادیثو څخه ثابت دي. لکه په سلو روپو کښې دوه نیمې روپۍ او په دوه سوه روپو کښې پنځه روپۍ له صحیح حدیث څخه ثابتې دي.

عن عليؓ قال قال رسول اللهﷺ قد عفوت عن مائة شيء فاذا بلغت مائتین ففیها خمسة دراهم. (جامع الترمذی ج۱، ص۷۹، باب ما جاء فی زکٰوة الذهب و الورق)

عن ابی سعید الخدریؓ: قال قال رسول اللهﷺ لیس فی ما دون خمس دود صدقة من الابل و لیس فیما دون خمس اواق صدقة و لیس فی مادون خمسة او سق صدقة. (الصحیح البخاری ج۱، ص۱۹۴، باب زکٰوة الورق)

و عن انس ان ابا بکر کتبه لهٗ هٰذا الکتاب...... و فی الرقة ربع العشر فان لم تکن الا تسعین و مائة فلیس فیها شیء الآ ان یشاء ربها. (صحیح البخاری ج۱، ص۱۹۶، باب زکٰوة الغنم) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۷۶، باب زکٰوة الاموال.

## صدقه په زکات کښې نه شمېرل کیږي

**سوال:** له یوه سړي سره نقدې روپۍ دي چه له هغو څخه ئې څلور سوه روپۍ صدقه کړې. آیا د شریعت له مخې صدقه شوې څلور سوه روپۍ په زکات کښې شمارل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** چه کومې روپۍ په صدقه کښې ورکړل شوي دي په هغو باندې فرض زکات نه ادا کیږي بلکه دوباره به ئې ورکوي.

و فی الهندیة: فاذا نوی ان یؤدی الزکٰوة و لم یعزل شیئاً فجعل یتصدق شیئاً فشیئاً الی آخر السنة و لم تحضره النیة لم یجز عن الزکٰوة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۷۰، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و انّما تشترط النیة لدفع المزاحم فلما...... کما اذا دفع بلا نیة



ثم حضرته النیة و المال قائم فی ید الفقیر فانه یجزئه و هو بخلاف ما اذا نوٰی بعد هلاکه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۰، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۲، کتاب الزکٰوة.

## د نقدو روپو په ځای نور شیان په زکات کښې د ورکولو حکم

**سوال:** د یوه سړي زکات سل روپۍ کیږي لیکن هغه په زکات کښې د نقدو روپو په ځای له هغو سره برابر بل کوم شی ورکول غواړي نو آیا د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** په زکات کښې د غریبانو حالت ته په پام کښې نیولو سره چه کوم شی هغو ته مناسب وي د هغه شي ورکول ډېر مناسب دي. البته که چېرته د روپو په ځای کوم غیر ضروری شی ورکول شي نو زکات بیا هم ادا کیږي.

قال العلامة ابن عابدینؒ: اما اذا ادّی من خلاف جنسه فا لقیمة معتبرة اتفاقاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۲، باب زکٰوة الغنم)

قال العلامة الکاسانی رحمه الله: و اما الذی یرجع الی المؤدی فمنها ان یکون مالاً متقوماً علی الاطلاق سواء کان منصوصاً علیه اولا من جنس المال الذی وجبت فیه الزکٰوة او من غیر جنسه. (بدائع الصنائع ج۲، ص۴۱، فصل و اما الذی یرجع الی المؤدی) و مثله فی نور الایضاح للشرنبلالیؒ ص۱۵۷، کتاب الزکٰوة.

## د چښلو اوبو په زکات کښې د ورکولو حکـــم

**سوال:** په ځینو علاقو کښې د اوبو د کموالي له وجهې یا په سفر او د اسې نورو مواقعو کښې د اوبو لاس ته راتلل مشکل وي، د دې لپاره که چېرته کوم تږي مسافر ته د اوبو ډېر ضرورت وي نو آیا په زکات کښې د اوبو په ورکولو سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** که چېرته په دغو علاقو کښې د اوبو په قیمت باندې خرڅول رواج وو او په عمومي توګه هلته اوبه اخیستل کیدلې او خرڅیدلې نو که چېرته تږي مسافر فقیر او د زکات مصرف وي نو په زکات کښې اوبه ورکول کیدلی شي.

قال العلامة ابن عابدینؒ: اما اذا ادّی من خلاف جنسه فا لقیمة معتبرة اتفاقاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۲، باب زکٰوة الغنم)

قال العلامة علاؤ الدین الکاسانی رحمه الله: و اما الذی یرجع الی المؤدی فمنها ان یکون مالاً متقوماً علی الاطلاق سواء کان منصوصاً علیه او لا من جنس المال الذی وجبت فیه الزکٰوة او من غیر جنسه و الاصل ان کل مال یجوز التصدق به تطوعاً یجوز اداء الزکٰوة منه و ما لا فلا. (بدائع الصنائع ج۲، ص۴۱، فصل و اما الذی یرجع الی المؤدی) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۹، الباب الثالث في زکٰوة الذهب و الفضة و العروض، الفصل الاول.

## د زکات روپۍ په قسطونو باندې د ورکولو حکم

**سوال:** یوه سړي د زکات له زرو روپو څخه ۸۲۰ روپۍ په مستحقینو باندې ویشي او پاتې ۱۸۰ روپۍ یوه طالب علم ته د میاشتې پنځلس روپۍ ورکوي. نو آیا د میاشتې په قسطونو سره

روپۍ ورکول په زکات کښې شمیرل کیږي او که نه؟

**الجواب:** کوم غریب او مستحق طالب علم ته د میاشتې په قسطونو باندې زکات ورکول اګر که جائز دي او زکات ادا کیږي لیکن بهتره دا ده چه ټولې په یو ځل ورکول شي۔

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه الله: و افتراضها عمرى اى على التراخى و صححه الماقانى وغيره و قيل فورى اى واجب على الفور و عليه الفتوىٰ كما فى شرح الوهبانية فيأثم بتاخيرها بلا عذر. و قال ابن عابدينؒ: و قد يقال المراد ان لا يؤخر الى العام المقابل لما فى البدائع...... اذا لم يؤد حتىٰ مضى حولان فقد اساء وا و أثم. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۱۳، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة برهان الدين المرغينانى رحمه الله: ثم قيل هى واجبة على الفور لانه مقتضى مطلق الامر و قيل على التراخى لان جميع العمر وقت الاداء و لهذا لا يضمن بهلاك النصاب بعد التفريط. (الهداية ج۱، ص۱۶۸، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۷۰، كتاب الزكوٰة، الباب الاول فى تفسيرها و صفتها و شرائطها.

## د قـــــرضې د قسطونو له شروع کیدو څخــــه د مخکښې کلونو د زکات حکـــــم

**سوال:** یوه سړي خپل موټر د میاشتې په ۹٤ زره روپو قسط باندې خرڅ کړ په داسې حال کښې چه د معاهدې مطابق قسطونه له څلورو کلونو وروسته شروع کیږي۔ نو آیا د دغو څلورو کلونو زکات به هم ادا کوي او که چه کله د قسطونو وصولول شروع شي له هغه وخت څخه به ئې ادا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** زکات لکه څرنګه چه په نقدو روپو باندې واجب وي همدارنګه په دینِ قوي (قوي پور) باندې هم لازم دی۔ لهذا په صورت مسئوله کښې د موټر تر خرڅولو وروسته چه کله کال تیر شي نو په ټولو روپو باندې زکات ورکول واجب دي که قسطونه شروع وي او که نه وي۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: اذا عجل زكوٰة سنين يجوز عند علمائنا الثلاثة خلافا لزفر. و فى شرح الطحاوى انما يجوز التعجيل بشرائط ثلاثة احدها ان يكون الحول منعقدا وقت التعجل، و الثانى ان يكون النصاب كاملا فى التى عجل عنه فى آخر الحول، و الثالث ان لا يفوت اصله فيما بين ذٰلك. (تاتارخانية ج۲، ص۲۵۳، باب فى تعجيل الزكوٰة)

قال العلامة ابن عابدينؒ: بان كان لهٗ ثلثمائة درهم دفع منها مائة درهم عن المائتين عشرين سنةٍ. (رد المحتار ج۲، ص۹۷، كتاب الزكوٰة) و مثله فى فتاوىٰ قاضيخان ج۱، ص۱۲۷، فصل فى تعجيل الزكوٰة.

## موټر په اصلي حوائجو کښې داخل دی

**سوال:** له یوه سړي سره د لسو لکو روپو موټر دی نو آیا دا سړی به د زکات ورکولو په وخت کښې به د دې موټر د قیمت کولو په صورت کښې زکات به ئې ورکوي او که موټر ترې مستثنیٰ دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** هر هغه مال کوم چه د انسان په اصلي حوائجو کښې داخل وي که هر څومره قیمتي



شی وي له زکات څخه مستثنیٰ دی۔ د دې لپاره نوموړی به یوازې د هغه مال زکات ورکوي چه له اصلي حوائجو څخه ئې زیات وي۔ د موټر په قیمت باندې زکات پرې واجب نه دی۔

لما قلا لعلامة ابن عابدينؒ: و ليس فى دور السكنىٰ و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوٰة لانها مشغولة بحاجته الاصلية و ليست بنامية. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۲، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: و ليس فى دور السكنىٰ و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوٰة لانها مشغولة با لحاجة الاصلية. (الهداية ج۱، ص۱۶۶، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۲، ص۷۵۰، كتاب الزكوٰة، قبل شروط صحة اداء الزكوٰة.

## د تجارت په سامان کښې د اندازې له مخې د زکات ورکولو حکم

**سوال:** زما ډیر لوی دوکان دی چه په زرګونو شیان پکښې موجود دي۔ که چېرته زه د اندازې لګولو له مخې زکات ادا کړم نو آیا زکات مې ادا کیږي او که نه؟

**الجواب:** د تجارت په ټول سامان باندې چه کله کال تیر شي نو د هغو د قیمت په لګولو سره زکات ورکول لازمي دي۔ بهتره دا ده چه ټول شیان وګڼل شي، قیمت ئې ولګول شي او بیا ئې زکات ادا شي لیکن که چېرته له شمارلو پرته د اندازې له مخې څوک زکات ورکولو وغواړي نو اندازه دې زیاته لګوي تر څو چه زکات د تجارت د مال له قیمت څخه کم ادا نه شي۔

لما فى الهندية: الزكوٰة واجبة فى عروض التجارة كائنة ما كانت اذا بلغت قيمتها نصابا من الورق و الذهب. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۹، كتاب الزكوٰة، الباب الثانى)

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: الزكوٰة واجبة فى عروض التجارة كائنة ما كانت اذا بلغت قيمتها نصاباً من الورق و الذهب لقوله عليه السلام فيها يقومها فيؤدى من كل مائتى درهم خمسة دراهم. (الهداية ج۱، ص۱۷۷، باب زكوٰة المال، فصل فى العروض) و مثله فى فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۶، ص۱٤۰، پنځم باب، د تجارت د سامان زکات.

## د قرض د روپو زکات په چا باندې واجب دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما په یوه سړي باندې شل زره روپۍ قرض دي لیکن هغه ترې منکر دی او له ما سره کوم لیکلی ثبوت هم نشته او نه ګواهان لرم۔ د پوښتنې خبره دا ده چه آیا په ما باندې د دغو شلو زرو روپو زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب (۱):** چه کله د دین (پور) د لاس ته راتلو هیڅ ظاهري امکان نه وي نو بیا د ضمار په مال کښې داخلیږي۔ چونکه د ضمار په مال کښې زکات واجب نه دی نو ځکه د صورت مسئوله مطابق په تا باندې هم د دغو شلو زرو روپو زکات واجب نه دی۔

**الجواب (۲):** په مقدس شریعت کښې په هر هغه پور باندې زکات واجب دی چه قوي او متوسط وي۔ یعنې له دائن سره لیکلی ثبوت یا ګواهان وي یا مدیون (پوروړی) د پور اقرار کوي، لیکن د دې تر څنګ دائن (قرض ورکوونکی) د خپل پور په اخیستلو باندې قادر وي بیا زکات

او که نه وي نو په بل صورت کښې د اپور د ضمار د مال په حکم کښې راځي کوم چه واجبیږي۔ زکات پرې واجب نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و دَین کان جحده المدیون سنین و لا بینة علیه. قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و لا بینة علیه) بل و لو کان علیه بینة علی الصحیح. (الطحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۳۹۳، کتاب الزکٰوة)

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و عن محمدؒ لا تجب الزکٰوة و ان کان لهٗ بینة لان البینة قد لا تقبل و القاضی قد لا یعدل و قد لا یظهر با لخصومة بین یدیه لمانع فیکون الهالك و صححه فی التحفة. کذا فی غایة البیان و صححه فی الخانیة ایضاً. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۷، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۷، کتاب الزکٰوة.

## د زکـــــات د خاوند زکات نه ورکول او بیا وروسته د خپـــل نصاب په آبادي باندې د لګولو حکم

**سوال:** که چېرته له چاسره له نصاب څخه هم زیات مال وي او د کال د تیرېدو تر څنګ ئي زکات نه وي ورکړی او بیا خپل ټول مال د کور په آبادي باندې ولګوي نو آیا د دې سړي په ذمې باندې زکات پاتې کیږي او که ترې ساقطیږي؟

**الجواب:** چه کله په نصاب باندې کال تیر شي نو زکات پرې واجبیږي لیکن که چېرته چا زکات ادا نه کړ او خپل ټول مال ئې د کور په آبادي کښې یا په کوم بل ضرورت کښې ولګولې نو د هغه په ذمې باندې زکات پاتې دی او د مال په دې ډول لګولو سره زکات ترې نه ساقطیږي۔ البته که چېرته مال هلاك یا تباه شي چه د مزکي خپل اختیار نه وي نو په دې صورت کښې بیا زکات ترې ساقطیږي۔

لما قال الشیخ عبد الحی الکهنویؒ: زکات ئې په ذمه باندې شته په خزانة الروایات کښې له عتابیه څخه منقول دي چه: اذا هلك النصاب بعد الحول تسقط الزکٰوة عنه و ان استهلکه ضمن الزکٰوة فی ذمته و الاستهلاك اخراج النصاب عن ملکه. (مجموعة الفتاویٰ فارسی ج۲، ص۳۰۴، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و لا الهالك بعد الوجوب. قال العلامة ابن نجیمؒ: تحته....... و قید الهلاك لانه لو استهلکه بعد الحول لا تسقط عنه لوجود التعدی. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۸/۲۱۹، کتاب الزکٰوة، فصل فی الغنم) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۴، کتاب الزکٰوة، فصل فی الغنم.

## د پور په لاس ته راوړو باندې د نه قدرت په صورت کښې د زکات حکم

**سوال:** په یوه بد معاش باندې زما څه قرضه ده او د لیکلي ثبوت تر څنګ زما پور نه راکوي او نه زه د هغه اخیستو باندې قادر یم۔ نو آیا په ما باندې د دې پور زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** که چېرته کوم سړی د کمزوری له وجهې له کوم زبر ځواك سړي څخه خپل پور نه شي



اخیستلی نو راجحه خبره دا ده چه په نوموړي سړي باندې د دې پور زکات واجب نه دی۔ البته چه څومره پور په لاس ورشي په هغه باندې د کال تر تیرېدو وروسته زکات واجبیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: قلتُ و قد قدمنا اوّل اثر الزکٰوة اختلاف التصحیح فیه و مال الرحمتی الی هذا و قال بل فی زماننا یقر المدیون با لدین و بملائة و لا یقدر الدائن علی تخلیصه فهو منه بمنزلة المعدوم. (رد المحتار ج۲، ص۹۹، کتاب الزکٰوة)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و دین کان جحده المدیون سنین و لا بینة علیه. قال العلامة السید الطحطاویؒ تحت قوله (و لا بینة علیه) بل و لو کان علیه بینة عل الصحیح. (الطحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۳۹۳، کتاب الزکٰوة) و مثله فی امداد الفتاویٰ ج۲، ص۳۳، کتاب الزکٰوة.

## د کال تر تیرېدو وروسته د زکات په ادا کولو کښې د شك حکم

**سوال:** یوه سړي ته د کال تر تیرېدو وروسته شك ور ولوید چه آیا ما زکات ادا کړی دی او که نه نو اوس به دی باید څه وکړي؟

**الجواب:** د زکات په ورکړه او نه ورکړې کښې که چا ته شرك ور ولویږي نو لکه څرنګه چه د زکات لپار کوم ټاکلی وخت نشته لکه د لمانځه غوندې چه قضاء شي۔ نو د دې لپاره زکات دې دوباره ادا کړي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی الواقعات و لو شك رجل فی زکٰوة فلم یدر ا زکّی ام لا فانه یعید فرق بین هٰذا و بین ما اذا شك فی الصلٰوة بعد ذهاب الوقت ا صلاها ام لا و الفرق ان العمر کلهٗ وقت لاداء الزکٰوة فصار هٰذا بمنزلة شك وقع فی اداء الصلٰوة انه ادی ام لا و هو فی وقتها و لو کان کذٰلك یعید. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۲، کتاب الزکٰوة)

و فی الهندیة: و لو شك رجل فی الزکٰوة فلم یدر ا زکی او لم یزك فانه یعیدها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، مسائل شتّٰی) و مثله فی الفتاوی السراجیة ص۲۶، باب نیة الزکٰوة و کیفیة الاداء.

## آیا ټیکس (مالیه) د زکات ځای نیولی شي؟

**سوال:** حکومت چه کوم انکم ټیکس (مالیه) له خلکو څخه اخلي آیا د دې مالیې په ورکولو سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** په اسلامي شریعت کښې زکات یو عبادت دی چه شرعائې حدود، مقادیر (اندازې) او د اسې نور ټاکـــــل شوي دي۔ په خلاف د دې حکومتي ټیکس چه نه پکښې د مـــــال مقدار ټاکلی دی او نه عبادت ګڼل کیږي او نه په هغه کښې اسلام، بلوغ او عقل شرط دی بلکه دا حکومت د هغې فائدې عوض او بدل اخلي کوم چه عوامو ته لــــه ریاست څخه ور رسیږي او نه د ټیکس مصارف هغه مصارف دي کوم چه د زکات دي۔ لهٰذا د دغو شرطونو د نشت والي له وجهې موجوده ټیکس په زکات کښې نه شي ګڼل کیدلی بلکه له مالیې برسیره نور مستقل زکات به هم ورکوي۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني: الزكوٰة واجبة على الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملك نصاباً ملكاً تاماً و حال عليه الحول اما الوجوب فلقوله تعالٰى و آتوا الزكوٰة و لقوله عليه السلام ادوا زكوٰة اموالكم و عليه اجماع الامة. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۱۲، كتاب الزكوٰة)

لما قال العلامة ابن نجيم المصري: قوله و شرط وجوبها العقل و البلوغ و الاسلام و الحرية اى شرط افتراضها لانها فريضة محكمة قطعية اجمع العلماء على تكفير جاحدها الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۲، ص۷۳۸، كتاب الزكوٰة، شروط وجوب الزكوٰة.

## په جامو باندې د سرو یا سپینو زرو په پولیو کښې د زکات حکم

**سوال:** د کوزدې او واده په مواقعو کښې ځینې خلك د ښځو په جامو باندې د سپینو یا سرو زرو تارونه اوبي نو آیا د کال په تیریدو سره په دغو اوبل شویو سرو اوسپینو زرو کښې هم زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوبدلو لپاره که چېرته د خالصو سرو او سپینو زرو تار استعمال شوی وي نو په دې صورت کښې د کال په تیریدو سره حساب کول او زکات ورکول لازم دي۔ البته که چېرته تار د خالصو سرو او سپینو زرو نه وي یا یوائې د سپینو یا سرو زرو اوبو ورکول شوي وي نو یوائې د سرو او سپینو زرو په رنګ لرونکي شي باندې زکات واجب نه دی۔

لما قال العلامة ابو بكر الكاساني رحمه الله: لا يعتبر فى هٰذا النصاب صفة زائدة على كونه فضة فتجب الزكوٰة فيها سواء كانت دراهم مضروبة او نقرة او تبرا او حلياً مصوغا او حلية سيف او منطقة او الجام او سرج او الكواكب فى المصاحف و الاوانى وغيرها اذا كانت تخلص عند الاذابة اذا بلغت مائتى درهم و سواء كان يمسكها للتجارة او للنفقة او للتجمل او لم ينو شيئا. (البدائع الصنائع ج۱، ص۱٦، كتاب الزكوٰة، فصل و اما صفة هٰذا النصاب)

قال العلامة ابن نجيم المصري: تجب الزكوٰة فى الذهب و الفضة مضروباً او تبراً او حلياً مصوغا او حلية سيف او منطقة او لجام او سرج او الكواكب فى المصاحف و الاوانى و غيرها اذا كانت تخلص عن الاذابة سواء كان يمسكها للتجارة او للنفقة او للتجمل او لم ينو شيئاً. (البحر الرائق ج۱، ص۲۲٦، كتاب الزكوٰة، باب زكوٰة المال) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۷۸، الباب الثالث فى زكوٰة الذهب و الفضة.

## د انساني بدن ځینو اندامونو ته د سرو یا سپینو زرو د پوښ په ورکولو سره د زکات د وجوب مسئله

**سوال:** ځینې خلك په شوقي توګه غاښونو ته د سرو او سپینو زرو پوښ ورکوي یا سورى شوي او خالي شوي غاښونه له سرو یا سپینو زرو څخه ډکوي۔ نو آیا په د اسې خلکو باندې د دغو سرو او سپینو زرو زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** له مخکښې زماني راهیسې د ځینو مصالحو او حالاتو په بناء سره او سپین زر د انساني بدن په ځینو اندامونو باندې د استعمالولو رواج را روان دی۔ د سرو او سپینو دا



اندامونه په دوه قسمه دي۔ یو هغه اندامونه کوم چه له انساني بدن سره یو مخ لګیږي او له خپل ځای څخه ئې جلا کول مشکل وي او د جدا کولو په صورت کښې سړي ته سخت تکلیف وي۔ ګوا که همدا مصنوعي اندام د انساني جسم د حقیقي اندام غوندې ګرځیدلی وي۔ او 16
ځینې د اسې وي چه جلا کول ئې آسان وي او په جلا کولو ئې هیڅ ډول تکلیف نه وي۔ نو په لومړي ډول کښې ئې زکات واجب نه دی ځکه چه مقدس شریعت چه د نامي مال لپاره د زکات د وجوب کوم علّت بیان کړی دی هغه دلته نشته۔ او په دوهم ډول کښې ئې زکات واجب دی ځکه چه په دې کښې حکمي نمو لیدل کیږي۔

## که چېرته د زکات مال غلا شي نو بیا به څه کیږي؟

**سوال:** یوه سړي له خپل ټول مال څخه د زکات مال جلا کړ او له ځان سره ئې کینښود۔ اوس هغه لا په غـــــریبانو او مسکینانو باندې تقسیم کړی نه وو چه غله پرې برابر شول او ټول ئې یوړل۔ نو آیا د اسړی به دوباره زکات ادا کوي او که نه؟

**الجواب:** زکات له خپل ټول مال څخه یوائې جلا کول کافي نه دي بلکه د ادا کیدو لپاره کوم فقیر او مسکین ته تملیکاً ورکول لازمي دي۔ او بغیر له دې څخه زکات نه ادا کیږي۔ لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې د زکات مال غلا شوی دی چه د تملیك شرط پکښې نشته نو د دې لپاره د نومړي لپاره د زکات دوباره ادا کول لازمي دي۔

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاري رحمه الله: رجل عزل زكوٰة ماله وضعها فى ناحية بيته فسرقها سارق لا يقطع يده للشبهه و عليه ان يزكيها. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، س۲۳۸، كتاب الزكوٰة، قبل الفصل السادس)

قال العلامة الحصكفي: (هى تمليك) خرج الاباحة (جزء مال) خرج المنفعة (عينه الشارع) و هو ربع عشر نصاب حولى خرج النافلة و الفطرة (من مسلم فقير) و لو معتوها (غير هاشمى و لا مولاه) اى معتقة (مع قطع المنفعة عن المملك من كل وجه) فلا يدفع لاصله و فرعه (لله تعالىٰ) بيان لاشتراط النية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۷/۵۸، كتاب الزكوٰة.

# باب الزکٰوة فی الاموال

## (په سرو او سپینو زرو او تجارتي سامان کښې د زکات احکام او مسئلې)

## په زکات کښې د سرو زرو کوم قیمت معتبر دی

**سوال:** که چېرته له یوه سړي سره زر وي نو په هغه کښې به کوم قیمت معتبر وي؟ په د اسې حال کښې چه مروّجه قیمت د خرید له قیمت څخه څو چنده زیات دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** سره زر د اسې مال دی چه په هغه کښې په قدرتي توگه نمو پیدا کیږي۔ د دې لپاره د زکـــــات د وجوب په وخت کښې له هغه څخه به تاکلي برخه ایستل کیږي لیکن که قیمت ئې ادا شي نو بیا ئې هم غاړې پرې خلاصیږي۔ د دې لپاره په دې کښې به اخیستلو د قیمت اعتبار نه وي بلکه د زکات ورکولو په وخت کښې چه کوم قیمت وي د هغه په اعتبار سره به زکات ورکول کیږي۔

لما قا العلامة الحصکفی رحمه الله: و تعتبر القیمة یوم الوجوب و قالا یوم الاداء...... و یقوم فی البلد الذی المال فیه و لو فی مفازة ففی اقرب الامصار الیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۶، باب زکٰوة الغنم)

قال العلامة ابن الهمامؒ: یقومها ای المالك فی البلد الذی فیه المال حتی لو کان بعث عبد التجارة الی بلد اخرٰی لحاجة فحال الحول یعتبر قیمته فی ذلك البلد و لو کان فی مفازة تعتبر قیمته فی اقرب الامصار الی ذلك الموضع کذا فی الفتاوٰی ثم قول ابی حنیفةؒ فیه انه تعتبر القیمة یوم الوجوب و عندهما یوم الاداء. (فتح القدیر ج۲، ص۱۶۷، باب زکٰوة المال فصل فی العروض) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۲۹، باب زکٰوة المال.

## د سرو زرو له تاکلي اندازې څخه په کم مقدار کښې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړي سره شپږ نیمې تولې سره زر دي کوم چه اگر که د نصاب له اندازې څخه کم دي لیکن د قیمت له حسابه له دوه پنځوس نیمې تولې سپینو زرو له قیمت څخه ئې قیمت زیات دی۔ آیا په د اسې حالت کښې زکات پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

د دې سوال ځواب په اصل مسوده کښې نشته

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: افاد ان وجوب الضم اذا لم یکن کل واحد منهما نصاباً بان کان فاما اذا کان کل واحد منهما نصاباً تاماً و لم یکن زائداً علیه لا یجب الضم بل ینبغی ان یؤدّی من کل واحد زکٰوته و لو ضم احدهما الی الآخر حتی یؤدی کله من الذهب او الفضة فلا باس به عندنا و لکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء رواجا و الا فیؤدی من کل واحد منهما ربع عشره. (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۲۳۰، باب زکٰوة المال)

قال فی الهندیة: و لو ضم احد النصابین الی الآخر حتی یؤدّی کله من الذهب او من الفضة لا باس به لکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء قدراً او رواجاً و الاً یؤدی من کل واحد ربع عشرة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۹، کتاب الزکٰوة، الباب الثالث فی زکٰوة الذهب الخ) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۳، باب زکٰوة المال.



## د مېره او ښځې په مشترکه گینړه کښې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته ښځې ته خپل مور او پلار په جهیز کښې څه گینړې جوړې کړې وي او ورکړې ئې وي او له دې پرته مېړه هم څه گینړې خپلې ښځې ته د استعمالولو لپاره ورکړې وي لیکن د مېړه او ښځې تر منځ دا معاهده شوې وي چه خاوند څومره گینړې جوړې کړې وي هغه به د هغه خپل ملکیت وي ښځه به ئې یوائې استعمالوي۔ آیا په دې صورت کښې په ښځې باندې به د ټولو گینړو زکات واجب وي او که څنگه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د خاوند له خوا ورکړ شوې گینړې د ښځې مِلکیت وي نو ټولې گینړې به حساب کړې چه کله نصاب ته ورسیږي نو بیا به ښځې د هغو زکات ادا کوي لیکن که چېرته مېړه خپلې ښځې ته دا گینړې د عاریت په توگه ورکړې وي نو په د اسې حالت کښې به ښځه له مشترکو گینړو څخه د خپلې برخې که چېرته نصاب ته رسیده زکات ورکول ضروري دي۔ او که چېرته ټولې مشترکې گینړې نصاب ته رسیدلې او په جلا جلا توگه د مېړه او ښځې گینړې له نصاب څخه کمې وې نو بیا په یوه باندې هم زکات نشته۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نسبة للحول لحولانه علیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة)

قال فی الهندیة: و منها کون المال نصاباً فلا زکٰوة فی اقل منه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة، الباب الاول) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

## د سرو او سپینو زرو په مقدار کښې د علامـــــه عبد الحیؒ او حضرت تهـــــانويؒ په عبارتونو کښې تطبیق

**سوال:** د سرو او سپینو زرو په نصاب کښې د اکابرینو عبارتونه مختلف دي۔ د حضرت تهانوي له عبارت څخه معلومیږي چه د سرو زرو نصاب اوه نیمې تولې او د سپینو زرو نصاب دوه پنځوس نیمې تولې دی۔ لکه څرنگه چه د "د امداد الفتاوٰی" له عباراتو څخه څرگندیږي۔ لیکن مولانا عبد الحیؒ قول مولانا مفتي محمد شفیع صاحبؒ په "اوزان شرعیه" کښې نقل کړی دی چه د علامه عبد الحیؒ په نزد د سرو زرو نصاب پنځه نیمې تولې او د سپینو زرو نصاب شپږ دیرش تولې او پنځه نیمې ماشې دی۔ د دغو دواړو اکابرینوؒ له رأیو څخه به کومې رأیې ته اعتبار ورکول کیږي۔

**الجواب:** د حضرت تهانويؒ رأیه اوفق بالروایات دی (له روایتونو سره سر خوري) ده چه د کومې تولې حساب کړی زمونږ په ځای کښې همدا نصاب مروج دی۔ ممکنه چه مولانا عبد الحیؒ د تولې په مقدار کښې اختلاف کړی وي او د هم هغې تولې حساب ئې کړی وي کوم چه له مروجې تولې څخه زیاته ده۔ د دې لپاره ده کم حساب کړی دی، حضرت مولانا مفتي محمد

شفيع صاحبؒ هم د حضرت تهانويؒ رأيه راجحه بللې ده۔

حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحبؒ په "اوزان شرعيه" کښې فرمايلي دي چه علامه عبد الحی رحمه الله او د ځينو نورو علماء کرامو تحقيقات په دې باره کښې فرق لري او فرق هم معمولي فرق نه دی ځکه چه د مولانا عبد الحیؒ په نزد د سپينو زرو نصاب شپږ ديرش تولې او پنځه نيمې ماشې دی او د سرو زرو نصاب پنځه نيمې تولې او دوه نيمې ماشې دی۔ له دې تفاوت څخه په تولو شرعي احکامو باندې اثر لوېږي۔ او دا خبره تسليم شوې ده چه د سرو زرو شرعي نصاب شل مثقاله دی او د يوه مثقال وزن څلور نيمې ماشې دی نو له دې حساب څخه د سرو زرو نصاب اوه نيمې تولې راځي او د سپينو زرو شرعي نصاب دوه سوه درهمه دی۔ له دې تحقيق څخه ثابته شوه چه د يوه درهم وزن درې ماشې، يوه رتي او د رتي پنځمه برخه دی نو د دې حساب له مخې د سپينو زرو نصاب دوه پنځوس نيمې تولې راځي۔

لما قال مفتی محمد شفیع صاحبؒ و التفصيل فی الاوزان الشرعية للمفتی محمد شفيع صاحب رحمه الله.

## په ګينړو کښې زکـــــات څه وخت واجبېږي؟

**سوال:** که چېرته ګينړې د استعمال لپاره وي نو آيا زکات پرې واجب دی او که نه؟

**الجواب:** سره او سپين زر که د ګينړو په شکل کښې وي او که همداسې په هر حال کښې زکات پرې واجب وي۔ د استعمال تر څنګ په دغو کښې زکات ادا کول ضروري دي په دې شرط چه نصاب ته رسيږي۔

قال علی ابن ابی بکر المرغينانیؒ: و فی تبر الذهب و الفضّة و حليهما و اوانيهما الزکٰوة. (الهداية ج۱، ص۱۹۵، باب زکٰوة المال)

قال علاؤ الدين ابی بکر بن مسعود الکاسانی الحنفیؒ: فتجب الزکٰوة فيها سواء کانت دراهم مضروبة او نقرة او تبرا او حلياً مصنوعا او حلية سيف او منطقة او لجام او سرج او الکواکب فی المصاحب و الاوانی و غيرها. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۷، فصل و اما صفة هٰذا النصاب) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۷۸، باب الثالث فی زکٰوة الذهب و الفضة و العروض.

## د ســــــرو زرو د قيمت اعتبار

**سوال:** له يوې ښځې سره پنځه تولې سره زر دي چه خپل مېړه په مهر کښې ورکړي دي۔ له دې پرته نقدې روپۍ، سپين زر او داسې نور څه ورسره نشته۔ اګر که دا سره زر د مقدار له مخې نصاب ته نه رسيږي چه زکات ترې ادا شي ليکن د سرو زرو د مروجه قيمت په اعتبار سره ئې دومره قيمت جوړيږي چه دوه پنځوس نيمې تولې سپين زر پرې اخيستل کيږي۔ که چېرته په دې طريقې سره حساب ولګول شي نو ښځه د نصاب خاونده جوړيدلی شي۔ اوس د پوښتنې ځای دا دی چه آيا په دې صورت سره نوموړې ښځه د نصاب په خاوندانو کښې شماريږي او که نه؟



**الجواب:** چه کله له نوموړې ښځې سره يو اځې سره زر وي نو قيمت ته ئې هيڅ اعتبار نشته بلکه د نصاب رعايت به ساتي۔ د سرو زرو نصاب لکه څرنګه چه اوه نيمې تولې دی او د ښځې پنځه تولې له نصاب څخه کمې دي نو ځکه نوموړې ښځه د نصاب خاونده نه ده۔

لما فی الهندية: و منها کون المال نصاباً فلا تجب فی اقل منه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة، الباب الاول)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی نسبة للحول لحولانه عليه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، کتاب الزکٰوة.

## له سرو او سپينو زرو څخه هر کال زکات ورکول ضروري دي

**سوال:** مونږ د سرو زرو زکات داسې باسو چه د سرو زرو حساب کوو د لومړي کال زکات ئې ورکوو او له دې وروسته د يوه کال زکات هم نه باسو۔ آيا دا طريقه جائزه ده او که نه؟

**الجواب:** په داسې ګينړو کښې هر کال د زکات ورکول ضروري دي، د يوه کال زکات ورکول کافي نه دي ځکه چه دا ثمنِ خلقي دي چه په کوم شکل کښې له سړي سره موجود وي نو د هر کال زکات به ئې ورکوي۔ ځکه چه سره او سپين زر داسې شيان دي چه په هغو کښې زياتوالی او نمو پخپله راځي۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: و اللازم فی مضروب کل منهما و معموله و لو تبراً او حلياً مطلقاً مباح الاستعمال اولا و لو للتجمل و النفقة لانهما خلقاً اثماناً فيزکيها کيف کانا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۹۸، باب زکٰوة المال)

قال الامام برهان الدين المرغينانی رحمه الله: و فی تبر الذهب و الفضّة و حليهما و اوانيهما الزکٰوة. (الهداية علی صدر فتح القدير ج۲، ص۱۶۳، باب زکٰوة المال، فصل فی الذهب) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۱۶/۱۷، فصل صفة النصاب.

## د حکومت لـــــه خوا څخه د لګول شوې جـــــرمانې په ادا کولو کښې د زکـــــات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته په يوه سړي باندې د حکومت له خوا څخه واجب الاداء جرمانه راغلې وي ليکن له هغه سره د جرمانې د ادا کولو لپاره هيڅ شی موجود نه وي نو آيا د هغه له خوا څخه د زکات روپۍ په جرمانه کښې ورکول کيدلی شي او که نه؟

**الجواب:** له کوم مجبور او محتاجه سړي سره مالي امداد کول پخپل ذات کښې لويه نيکي ده۔ د صورت مسئوله مطابق که چېرته دا سړی غريب وي نو پرته له کومې حيلې څخه هغه ته د زکات په ورکولو سره د جرمانې په ادا کولو کښې امداد پروا نه لري۔ هو! که چېرته دا سړی د نصاب خاوند وي ليکن جُرمانه دومره زياته وي چه د هغه له برداشت او توان څخه وتلې وي نو له کومې شرعي حيلې پرته هغه ته د زکات په ورکولو سره زکات نه ادا کيږي۔

لما قال الشيخ النظام رحمه الله: و لو قضٰی دَين الفقير بزکٰوة ماله ان کان بامره يجوز و ان کان بغير امره لا يجوز و سقط الدَّين. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۹۰، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: و محمل هذا ان یکون بغیر اذن الحی اما اذا کان باذنه و هو فقیر فیجوز عن الزکوٰة علی انهٗ تملیك منه و العائن یقبضه بحکم النیابة عنه ثم یصیر قابضاً لنفسه و فی الغایة نقلاً عن المحیط و المفید لو قضی بها دَین حیٍّ او میّت بامره جاز و معلوم ارادة قید فقیر المدیون...... او قضی دین حی او میّتٍ بغیر اذن الحی لا یجوز. (فتح القدیر ج۲، ص۲۰۸، باب من یجوز دفع الصدقة الیه الخ) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۵، باب زکوٰة المال.

## د تجارت په مالونو کښې د زکات حکم

**سوال:** په تجارت کښې د نقدو او قرض دواړه معاملې کیدونکې وي د دې لپاره د کال تر تیریدو وروسته که چېرته له کوم تاجر سره نقدې روپۍ. کمې او پور ئې په خلکو باندې زیات وي نو د زکات په ادا کولو کښې به کوم مال معتبر وي؟

**الجواب:** د تجارت په کاروبار کښې به ټول مالیت ته اعتبار ورکول کیږي که هغه له مالك یا تاجر سره د نقدو په شکل کښې موجود وي او که د تجارت د مالونو (جنس) په شکل کښې موجود وي. تر دې پورې چه قرض هم په دې کښې شمیرل کیږي او د ټول مال زکات ورکول کیږي. البته که چېرته د قرض زکات تر وصولیدو پورې موقوف پاتې شي نو دا هم جائز دي.

قال زین الدین ابن نجیمؒ: قوی و هو بدل القرض و مال التجارة..... ففی القوی تجب الزکوٰة اذا حال الحول و یتراخی القضاء الی ان یقبض اربعین درهماً ففیها درهم و کذا فیما زاد بحسابه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۷، کتاب الزکوٰة)

و فی الهندیة: و (قوی و هو ما یجب بدلا عن سلع التجارة اذا قبض اربعین زکی لما مضی کذا فی الزاهدی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۵، باب زکوٰة المال.

## د تجـــارت په مالونو کښې د زکات د وجوب لپاره د مـــروجه قیمت د اعتبار حکـــم

**سوال:** د تجارت له مالونو څخه د زکات د ادا کولو لپاره چه د کوم مالیت اندازه ورکول کیږي نو په هغو کښې به کوم قیمت معتبر وي؟ ځکه چه د شیانو د خرید قیمت یو وي په داسې حال کښې چه ګاهك ته په بل قیمت ورکول کیږي؟

**الجواب:** د تجارت د مالونو د قیمت په لګولو کښې به ځایي قیمت ته اعتبار ورکول کیږي. بیا د دې قیمت د تفاوت په پام کښې نیولو سره دا اندازه لګول کیږي چه په دې کښې به د مارکیټ موجوده قیمت ته اعتبار ورکول کیږي ځکه چه همدا قیمت د دغو مالونو د مالیت معیار دی.

لما قال فی الهندیة: و یقومها المالك فی البلد الذی فیه المال حتی لو بعث عبداً للتّجارة الی بلدٍ آخر فحال الحول تعتبر قیمته فی ذٰلك البلد و لو کان فی مفازة تعتبر قیمته فی اقرب الامصار الی ذٰلك الموضع. (الفتاوی الهندیة



ج۱، ص۱۸۰، کتاب الزکوٰة، الباب الثالث فی زکوٰة الذهب و العروض، الفصل الثانی فی العروض)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (تحت قوله و یقوم فی البلد الذی المال فیه) فلو بعث عبداً للتجارة فی بلدٍ آخر یقوم فی البلد الذی فیه العبد. (رد المحتار ج۲، ص۲۸۶، باب زکوٰة الغنم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۲۹، باب زکوٰة فی الاموال.

## د کاروبار د ځای فقیران د زکات زیات مستحق دي

**سوال:** که چېرته د یوه سړي کاروبار په یو ځای کښې وي او کور ئې په بل ځای کښې نو د کوم ځای فقیران د هغه د زکات زیات مستحقین دي؟ آیا په دې کښې به د اوسیدلو د ځای اعتبار وي او که د کاروبار د ځای؟

**الجواب:** د فقهاء کرام له عبارتونو څخه دا څرګندیږي چه د کاروبار د ځای فقیران د ترجیحي سلوك مستحقین دي. یعنې ډیر حق د کاروبار د ځای د فقیرانو دی.

لما فی الهندیة: و یکره نقل الزکوٰة من بلدٍ الی بلدٍ الا ان ینقلها الانسان الی قرابته او الی قوم هم احوج الیها من اهل بلده...... ثم المعتبر فی الزکوٰة مکان المال حتی لو کان هو فی بلدٍ و ماله فی بلد آخر یفرق فی موضع المال. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، کتاب الزکوٰة، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (تحت قول و کره نقلها) ای من بلدٍ الی بلدٍ آخر لان فیه رعایة حق الجوار فکان اولٰی و المتبادر منه ان الکراهة تنزیهیة تامل فلو نقلها جاز لان المصرف مطلق الفقراء و یعتبر فی الزکوٰة مکان المال. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۳، باب المصرف) و مثله فی المراقی الفلاح ص۳۹۴، باب المصرف.

## د مضاربت په مال کښې د زکات حکم

**سوال:** یوه سړي بل کاروباري سړي ته په مضاربت باندې څه روپۍ ورکړي دي، د روپو خاوند له نورو روپو څخه زکات ادا کوي. اوس د پوښتنې خبره دا ده چه کوم مال چه ده په مضاربت باندې ورکړی دی آیا د هغه زکات په رب المال باندې دی او که مضارب باندې او که په دواړو باندې؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** د مضاربت په صورت کښې چه تر څو پورې ګټه نه وي نو له مضارب سره دا روپۍ د امانت په توګه وي او مال د رب المال ګڼل کیږي. د دې لپاره زکات هم په رب المال باندې واجب دی لیکن که چېرته په هغه کښې ګټه وشي او د مضارب برخه هم همدومره شي نو بیا په هر یوه باندې د خپلې خپلې برخې زکات واجب دی.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و ان تعدد النصاب تجب اجماعاً و یتراجعان با لحصص و بیانه فی الحاوی فان بلغ نصیب احدهما نصاباً زکاه دون الآخر...... و اعلم ان الدیون عند الامام ثلاثة قوی و متوسط و ضعیف فتجب زکوٰتها اذا تم نصاباً و حال الحول لکن لا فوراً بل عند قبض اربعین درهماً من الدَّین القوی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۴/۳۰۵، باب زکوٰة المال)

قال فی الهندیة: الخلیطان فی المواشی کغیر الخلیطین فان کان نصیب احدهما یبلغ نصاباً وجبت الزکوٰة علی

الذی یبلغ نصیبه نصاباً دون الآخر و ان کان احدهما ممن تجب علیه الزکٰوة دون الآخر فانها تجب علی من تجب علیه اذا بلغ نصیبه نصاباً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۱، کتاب الزکٰوة، الباب الثالث فی زکٰوة، مسائل شتی) و مثله فی المراقی الفلاح ص۳۹۰، کتاب الزکٰوة.

## په جومات باندې د زکات د روپو د لګولو حکم

**سوال:** یو سړی د یوه جومات متولّي دی او پخپلو ذاتي روپو باندې ئې جومات جوړ کړی دی، اوس د متولّي دا اراده ده چه دا قرضه له خلکو څخه را یو ځای کړم. نو آیا نوموړی متولّي له خلکو څخه د زکات روپۍ اخیستلی شي تر څو هغه پور ئې ادا شي کوم چه ده له جومات سره کړی دی؟

**الجواب:** په جومات کښې د زکات روپۍ نه شي لګول کیدلی. له کومې شرعي حیلې پرته په جومات باندې د زکات روپۍ لګول بې ځایه دي او زکات نه پرې ادا کیږي.

لما قال فی الهندیة: و لا یجوز ان یبنی با لزکٰوة المسجد و کذا القناطر و السقایات و اصلاح الطرقات و کری الانهار و الحج و الجهاد و کل ما لا تملیک فیه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحة کما مر لا یصرف الی بناءِ نحو مسجدٍ و لا الی کفن میّت و قضاء دینه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴٤، باب المصرف) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۲۰۷، باب من یجوز دفع الصدقة الیه الخ.

## د جومات په روپو باندې تجارت کول او له ګټې څخه ئې د زکات ورکولو حکم

**سوال:** د جومات لپاره په یو ځای شوي روپو باندې یو سړی په دې نیت تجارت کوي چه د جومات آمدني زیاته شي. نو د شریعت له مخې دا تجارت جائز دی او که نه؟ او آیا د زکات ورکول ئې پرې لازم دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** د چنده ورکوونکو او د هغو له خوا د ټاکل شوي معتمد سړي له اجازې پرته د جومات په روپو باندې تجارت کول جائز نه دي. البته که چېرته دا روپۍ متولّي ته ور نه کړل شي نو د چنده ورکوونکو له مِلکیت څخه نه ووځي. نو په دا سې صورت کښې د چنده ورکوونکو په اجازه تجارت جائز دی او که اجازه ئې نه وي نو نه دی جائز. او د جومات لپاره په جمع شوي مال کښې زکات واجب نه دی ځکه چه د زکات د وجوب لپاره د چا شخصي ملکیت ضروري دی کوم چه دلته وجود نه لري یعنې دا روپۍ د هیچا په شخصي ملکیت کښې نه شي راتلی چه زکات ئې ادا شي.

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: و سببُه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی قوله ملك نصاب فلا زکٰوة فی سوائم الوقف و الخیل المسبلة لعدم الملك. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة الکاسانیؒ: و اما الشرائط التی ترجع الی المال فمنها الملك فلا تجب الزکٰوة فی سوائم الوقف و



الخیل المسبلة لعدم الملك و هٰذا لان فی الزکٰوة تملیکاً و التملیك فی غیر الملك لا یتصور. (بدائع الصنائع ج۲، ص۹) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۲۵۲، کتاب الزکٰوة.

## د کومو شیانو په اخیستلو کښې چه د تجارت اراده نه وي په هغو کښې زکات واجب نه دی

**سوال:** که چېرته چا یو شی د ذاتي استعمال لپاره واخیست او په هغه وخت کښې ئې دا اراده وکړه چه دا شی هر کله قیمته شي نو زه به ئې خرڅوم. نو آیا دا شی د تجارت په مال کښې شمیرل کیږي او د کال تر تیرید و وروسته زکات پرې واجبیږي او که نه؟

**الجواب:** د تجارت په مالونو کښې د اخیستلو په وخت کښې د تجارت نیت ضروري دی. چېرته چه نیت نه وي نو بیا هغه شیان د تجارت په مال کښې نه راځي. په نوموړي صورت کښې چونکه د خریداري په وخت کښې د تجارت قطعي نیت نشته نو ځکه زکات پرې نه واجبیږي.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: او اشترٰی شیئا للقنیة ناویاً انه وجد ربحاً باعه لا زکٰوة علیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷٤، کتاب الزکٰوة)

قال الشیخ ابن الهمامؒ: فلو اشترٰی عبداً مثلا للخدمة ناویاً بیعه ان وجد ربحاً لا زکٰوة فیه. (فتح القدیر ج۲، ص۱۶۶، فصل فی العروض) و مثله فی فتاوٰی قاضیخان ج۱، ص۱۱۷، کتاب الزکٰوة.

## په کتابونو کښې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړي سره د ذاتي مطالعې لپاره ډېر کتابونه موجود دي چه قیمت ئې تر لکونو روپو زیات دی. آیا په دا سې سړي باندې د کتابونو زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** په کتابونو باندې هلته زکات واجبیږي چه د تجارت لپاره وي. ذاتي کتابونه د تجارت د نیت د نشت والي له وجهې د تجارت په مالونو کښې شمارول مشکل دي. د دې لپاره د دا سې کتابونو په قیمت باندې زکات واجب نه دی.

لما فی الهندیة: و منها فراغ المال عن حاجته الاصلیة...... و کذا کتب العلم ان کان من اهله و آلات المحترفین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة، الباب الاول)

قال سید احمد الطحطاویؒ: عن حاجته الاصلیة...... و کتب العلم لاهلها فاذا کان عندهٗ دراهم اعدها لهٰذه الاشیاء و حال علیها الحول لا تجب فیها الزکٰوة و کتب العلم لغیر اهلها لسیت من الحوائج الاصلیة و ان کانت الزکٰوة لا تجب علی صاحبها بدون نیة التجارة. (حاشیة الطحطاوی ص۳۸۹، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الشامی ج۲، ص۸، کتاب الزکٰوة.

## په موټرو کښې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړی سره یو موټر دی چه د مزدوري لپاره ئې استعمالوي. د دې موټر له ګټې څخه په عمومي توګه دا سړی یو بل موټر اخلي. په دې ډول دی د همدې موټر د ټول کال د ګټې په نتیجه کښې د څو نورو موټرو څښتن کیږي لیکن نقدې روپۍ له ځان سره نه ږدي. آیا د

مذکوره سړي په داسې موټرو باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** د کوم موټر یا کومې بلې مزدورۍ په قیمت باندې زکات واجب نه دی بلکه د هغو د په لاس راغلي ګټې څخه چه کال پرې تیر شي زکات ورکول واجب دي۔ په صورت مذکوره کښې چه کله نقدي روپۍ نه وي او موټر د تجارت په نیت نه وي اخیستل شوی نو زکات پرې واجب نه دی۔ هو! که چېرته دا حیله د زکات له وجوب څخه د ځان ساتلو لپاره جوړېږي نو د دې سړي په ګنهګاروالي کښې بیا هیڅ شک نشته۔

لما قال العلامة جلال الدين الخوارزميؒ: و اما الآلات الصناع الذين يعملون بها و ظروف الامتعة للتجارة لا تجب فيه الزكوٰة لانها ليست بمعدة للتجارة. (الكفاية فى ذيل فتح القدير ج۲، ص ۱۷۰، باب زكوٰة الاموال، فصل فى العروض)

لما قال فى الهندية: و لو اشترىٰ قدوراً من صفر يمسكها و يواجرها لا تجب فيها الزكوٰة كما لا تجب فى بيوت الغلة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۱۸۰، كتاب الزكوٰة، الباب الثالث فى زكوٰة الذهب و العروض، الفصل الثانى فى العروض) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۲۸، باب زكوٰة المال.

## د زمکو په اخیستلو او خرڅولو باندې د زکات حکم

**سوال:** په عمومي توګه د زمکو زکات نه ادا کیږي بلکه د هغو له آمدني څخه عشر یا نیم عشر ادا کیږي لیکن یو سړی د پلاټونو یا عمارتونو کاروبار کوي۔ په داسې حالت کښې د دې سړي اکثره سرمایه غیر منقوله جائداد وي نو په دې صورت کښې د کال په تیریدو سره زکات پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د پلاټونو او عمارتونو د کاروبار په صورت کښې غیر منقوله جائداد له خپل اصلي حالت څخه اوړي او د تجارت د مالونو حیثیت غوره کوي۔ د دې لپاره له داسې زمکو سره د تجارت د نورو مالونو غوندې معامله کیږي چه د کال په تیریدو سره ئې د قیمت اندازه لګیږي او زکات پرې واجبیږي۔ البته په دې کښې د کاروباري حیثیت د ارتقاء والي حیثیت ټاکنه د خرید اري په وخت کښې وي چه د هغه لپاره په هم هغه وخت کښې د تجارت نیت ضروري دی او که نه نو وروسته د کاروبار د نیت په کولو سره هیڅ اثر نه پرې لوېږي۔

لما قال ابن نجيمؒ: و اما الدلالة فهى ان يشترى عيناً من الاعيان بعرض التجارة او يواجر داره التى للتجارة بعرض من العروض فيصير للتجارة و ان لم ينو التجارة صريحاً لكن ذكر فى البدائع الاختلاف فى بدل منافع عين معدة للتجارة ففى كتاب الزكوٰة من الاصل انهٗ للتجارة بلا نية و فى الجامع ما يدل على التوقف على النية فكان فى المسئلة روايتان و مشائخ بلخ كانوا يصححون رواية الجامع لان العين و ان كانت للتجارة لكن قد يقصد ببدل منافعها المنفعة فيواجر الدابة لينفق عليها و الدار للعمارة فلا تصير مع التردد الا بالنية. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۱۰، كتاب الزكوٰة)

قال العلامة الحصكفىؒ: او فى عرض تجارة قيمته نصاب الجملة صفة عرض و هو هنا ما ليس بنقد و هو. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۹۸، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۱۷۰، كتاب الزكوٰة.



## په اسلحه باندې د زکات حکم

**سوال:** په قبایلي علاقو کښې اکثره خلک اسلحه ساتي او د اسلحې قیمت د نصاب له اندازې څخه ډیر زیات وي نو آیا په داسې اسلحو باندې زکات واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** کومه اسلحه چه د ځان او مال د ساتنې لپاره په کور کښې ساتل کیږي اګر که د قیمت له لحاظه د نصاب له اندازې څخه زیات هم وي نو په اصلي حوائجو کښې د داخلیدو له وجهې زکات پرې نه واجبیږي۔ البته که چېرته د تجارت په غرض سره ساتل شوې وي نو بیا زکات پرې واجب دی۔

قال على ابن ابى بكر الفرغانىؒ: و ليس فى دور السكنىٰ و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوٰة. (الهداية ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكوٰة)

و فى الهندية: و منها فراغ المال عن حاجته الاصلية فليس فى دور السكنىٰ و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوٰة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۲، كتاب الزكوٰة، الباب الاوّل فى تفسيرها الخ) و مثله فى فتح القدير ج۱، ص۱۱۹، كتاب الزكوٰة.

## خره چه د تجارت د مال په شکل کښې وي نو زکات پرې واجب دی

**سوال:** له مونږ سره یو څو خره دي چه یو ائحې د کاروبار د چلولو په غرض سره مو ساتلي دي۔ آیا د غو خرو باندې زکات واجب دی او که نه؟ ځینې علماء کرام وایي چه دا مُردار شیان دي له دې وجهې په داسې شیانو باندې زکات واجب نه دی۔

**الجواب:** د خرو د زکات په باره کښې مقدس شریعت کوم واضح حکم نه دی کړی د دې لپاره په خرو باندې زکات نشته۔ البته که چېرته د تجارت لپاره وي لکه څرنګه چه له سوال څخه معلومیږي نو په قیمت باندې ئې بیا زکات واجب دی۔

قال على ابن ابى بكر المرغينانىؒ: و لا شىء فى البغال و الحمير لقولهٖ عليه السلام لم ينزل على فيهما شىء و المقادير تثبت سماعاً الا ان يكون للتجارة لان الزكوٰة حينئذٍ تتعلق با لمالية كسائر اموال التجارة. (الهداية ج۱، ص۱۹۱، فصل فى الخيل)

قال علاؤ الدين الحصكفىؒ: (و) لا فى (بغال و حمير) سائمة اجماعاً (ليست للتجارة) فلو لها فلا كلام لانها من العروض. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۲، باب زكوٰة الغنم) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۵۸، فصل الخامس فيما تجب فيه الزكوٰة.

## په اصل روپو او ګټې باندې ئې په دواړو زکات واجبیږي

**سوال:** له یوه سړي سره څه روپۍ دي او هغه د کال له شروع څخه تجارت پرې شروع کړی دی او د کال په آخر کښې هغه څه ګټه هم په دغو روپو باندې لاس ته راوړې ده نو آیا د کال په تیریدو سره زکات په اصل روپو او ګټې باندې په جلا جلا توګه واجبیږي او که دواړه سره یو ځای کیږي او له ټول مال څخه به زکات ورکوي؟

**الجواب:** كه چېرته يو چا د كال له كوم تاريخ څخه تجارتي كاروبار شروع كړى وي او د كال په آخر كښې ئې څه ګټه هم پرې كړې وي نو په دې صورت كښې په اصل روپو او ګټې باندې ئې په دواړو زكات واجب دى. كه چېرته د كال په شروع او آخر كښې نصاب پوره وي نو د كال په منځ كښې له نصاب څخه كميدل په زكات باندې كوم اثر نه لويږي. د كال په آخر كښې به له ټول مال څخه زكات ادا كوي.

قال على ابن ابى بكر المرغينانىؒ: و من كان لهٗ نصاب فاستفاد فى اثناء الحول من جنسه ضمه اليه و زكٰوة. (الهداية ج۱، ص۱۹۳، فصل فى الغنم)

و فى الهندية: و من كان لهٗ نصاب فاستفاد فى اثناء الحول مالاً من جنسه ضمه الى مالهٖ و زكٰوة الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۵، فصل منها حولانِ حول على المال) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۲۲، فصل فى الغنم.

## د ضرورت لپاره په اخيستل شوې زمكې باندې د تجارت د نيت كولو حكم

**سوال:** يوه سړي څه زمكه د كور د جوړولو لپاره واخيسته او د نيمايي آبادي څخه وروسته ئې د تجارت نيت پكښې وكړ. اوس په تعمير باندې زكات له كوم وخت څخه واقع كيږي؟ له ابتداء څخه او كه د نيت له وخت څخه؟

**الجواب:** كومه زمكه چه د كور د جوړولو لپاره واخيستله شي او د آبادي په دوران كښې د تجارت نيت پكښې وكړي نو له نيت څخه مخكښې په خرڅ شوي روپو باندې زكات نشته ځكه چه په تجارت كښې نيت د عقد په وخت كښې معتبر وي او وروسته له نيت څخه چه كومې روپۍ لګيدلې دي هغه له نور مال سره د يو ځاى كولو په صورت كښې زكات په ټولو واجبيږي.

قال علاؤ الدين الحصكفىؒ: لا يبقى للتجارة ما اى عبد مثلا اشتراه لها فنوٰى بعد ذٰلك خدمته ثم ما نواه للخدمة لا يصير للتجارة و ان نواه لها ما لم يبعه بجنس ما فيه الزكٰوة و الفرق ان التجارة عمل فلا تتم بمجرد النية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۲، كتاب الزكٰوة)

قال الامام فخر الدين القاضى خانؒ: اشترٰى خادماً للخدمة و هو ينوى انه لو اصاب ربحاً يبيعه فحال عليه الحول لا زكٰوة فيه. (الفتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۱۱۷، كتاب الزكٰوة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۰۹، كتاب الزكٰوة.

## د ذاتي استعمـــــال لپاره اخيستل شوى ماشين په ګټې باندې د خرڅولو پــــه صورت كښې د زكات حكـــم

**سوال:** كه چېرته يو چا كوم ماشين د ذاتي استعمال لپاره اخيستي وي ليكن وروسته ئې په خرڅولو كښې ګټه وليدله او خرڅ ئې كړ. آيا په قيمت باندې ئې زكات واجب دى او كه نه؟ بينواتوجروا.

**الجواب:** كه چېرته دا سړى له مخكښې ورځو څخه د نصاب خاوند وي نو د كال تر تيريدو



وروسته د ماشين قيمت او ګټه به ټول سره يو ځاى كوي او زكات به ئې ادا كوي.

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و سببه اى سبب افتراضها ملك نصاب حولى نسبة للحول لحولانه عليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، كتاب الزكٰوة)

قال ابن نجيم رحمه الله: و المراد بكونه حولياً ان يُتم الحول عليه و هو فى ملك لقوله عليه السلام لا زكٰوة فى مالٍ حتىٰ يحول عليه الحول قال فى الغاية سمى حولاً لان الاحوال تحول فيه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۳، كتاب الزكٰوة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۷۵، كتاب الزكٰوة، الباب الاول.

## د كراكري په سامان كښې د زكات حكم

**سوال:** كه چېرته د يوه سړي په دوكان كښې د خوراك او څښاك لوښي، ديګي او د اسې نور شيان وي كوم چه په اجتماعي توګه د دعوت او د اسې نورو پروګرامونو لپاره استعماليږي. د اسې لوښي په عمومي توګه په كرايې باندې وركول كيږي. د شريعت له مخې د د اسې سړي په آمدني كښې د زكات حكم څه دى؟ آيا د لوښي، ديګونو او خيمو له قيمت څخه به هم زكات ادا كوي او كه نه؟

**الجواب:** د لوښو، ديګونو، خيمو او د كراكري د نورو سامانونو په قيمت باندې زكات واجب نه دى بلكه له دغو شيانو څخه چه كومه ګټه لاس ته راځي او نصاب ته ورسيږي د كال په تيريدو سره زكات پرې واجبيږي.

و لو اشترٰى قدوراً من صفرٍ يمسكها و يواجرها فلا تجب فيها الزكٰوة كما لا تجب فى بيوت الغلة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۰، كتاب الزكٰوة، الباب الثالث فى زكٰوة الذهب و العروض، الفصل الثانى فى العروض)

قال العلامة جلال الدين الخوارزمى رحمه الله: و امّا آلات الصناع الذين يعملون بها و ظروف للتجارة لا تجب فيه الزكٰوة لانها ليست بمعدة للتجارة كما لا تجب فى بيوت الغلة. (الكفاية فى ذيل فتح القدير ج۲، ص۱۷۰، فصل فى العروض) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۲۸، باب زكٰوة المال.

## د تجارت په مال كښې د زكات حكم

**سوال:** يوه سړي د خپل تجارت په مال كښې تاوان وكړ او په مال ئې كم شو او له كال څخه وروسته ئې مال بيا زيات شو. اوس به دى زكات په كومه طريقه ادا كوي؟

**الجواب:** د كال تر تيريدو وروسته اصل مال او ګټه به ئې سره يو ځاى كوي كه چېرته د نصاب اندازې ته رسيده نو له مجموعي نصاب څخه به زكات ادا كوي كه ګټه ئې كړې وي او كه تاوان. او رأس المال چه كله د نصاب له اندازې څخه زيات وي نو د تاوان د كولو تر څنګ د زكات ادا كول پرې ضروري دي.

قال العلامة الشرنبلالىؒ: و شرط وجوب ادائها حولان الحول على النصاب الاصلى و اما المستفاد فى اثناء الحول فيضم الى مجانسه و يزكى بتمام الحول الاصلى سواءٌ استفيد بتجارة او ميراث. (مراقى الفلاح ص۳۸۹، كتاب الزكٰوة)

قال العلامة الحصكفیؒ: و شرط كمال النصاب و لو سائمة فی طرفی الحول فی الابتداء للانعقاد و فی الانتهاء للوجوب فلا یضر نقصانه بینهما. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۲، فصل فی زكوٰة الغنم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۲۲، فصل فی الغنم.

## د تجارت لپاره په اخیستل شویو كورونو باندې د زكات حكم

**سوال:** ځیني خلك كورونه، دوكانونه او زمكې د تجارت په نیت سره اخلي او كاروبار ئې كوي۔ ممكنه ده چه كله كله د څه وخت لپاره د اوسیدلو فائده هم ترې پورته كوي لیكن په عمومي توګه ئې د تجارت لپاره اخلي او د دې مقصد لپاره باقاعده اد ارې جوړوي، په د اسې حالت كښې په دغو كورونو، دوكانونو او زمكو له قیمت څخه د زكات د ادا كولو حكم څه دى؟

**الجواب:** د منقوله جائد اد غوندې د غیر منقوله جائد اد كاروبار هم د معاشرې له اهمو معاملاتو څخه دى۔ اګر كه غیر منقوله جائد اد پخپل ذات كښې له نمو څخه عاري (خلاص) دى او د زكات د وجوب محل نه دى همدا وجه ده چه د اوسیدلو یا كرایې لپاره په جوړو شویو كورونو او دوكانونو باندې زكات نشته۔ لیكن چه كله همدغه جائد اد كاروباري منډیې ته لاړ شي او د اخیستلو په وخت كښې باقاعده د تجارت نیت پكښې وشي نو بیا د تجارت د مالونو په حكم كښې راځي په قیمت باندې به ئې د كال له پوره كیدو وروسته زكات واجب وي۔

لما قال العلامة الكاسانی رحمه الله: و سواء كان مال التجارة عروضاً او عقاراً او شیئاً مما یكال او یوزن لان الوجوب فی اموال التجارة تعلق بالمعنٰی و هو المالیة و القیمة و هٰذه الاموال كلها فی هٰذا المعنٰی جنس واحد. (البدائع الصنائع ج۲، ص۲۱/۲۰، فصل اموال التجارة)

قال فی الهندیة: الزكوٰة واجبة فی عروض التجارة كائنة ما كانت اذا بلغت قیمتها نصاباً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۹، كتاب الزكوٰة، الباب الثالث فی زكوٰة الذهب و الفضة و العروض، الفصل الثانی فی العروض) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۱۶۶/۱۶۵، فصل فی العروض.

## په اجاره شوي كان باندې د زكات حكم

**سوال:** یو سړى د ډبرو یو كان لري چه په اجاره باندې ئې را نیولی دى لیكن مالیه ئې هم تول حكومت ته وركوي او د كان مالكانو ته هم په من باندې څه روپۍ وركوي۔ نو آیا دا سړى به له تولې ګټې څخه زكات ادا كوي او كه د مالیې او د اسې نورو له ادا كولو څخه وروسته به د پاتې شوي روپو زكات ادا كوي؟

**الجواب:** د دې سړي په نورو مالونو باندې چه كله كال تیر شي نو د دې كان څخه د وتلي شیانو زكات به ادا كوي په دې شرط چه شیان ئې خرڅ شوي وي او كه چیرته خرڅ شوي نه وي نو زكات پرې نشته او د مالیې له ادا كولو څخه پرته به زكات وركوي۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: اخرج ابن ابی شیبة عن عكرمةؒ: لیس فی حجر اللؤلؤ و لا حجر الزمرُد زكوٰة الا ان یكون للتجارة. (فتح القدیر ج۲، ص۱۸۵، باب المعادن و الركاز)



قال ابن نجیم المصریؒ: (تحت قوله لا ركاز دار حرب و فیروزج و لؤلؤ و عنبر) ای لا تخمس هٰذه الاشیاء اما الاوّل فلانه حجر مضیء یوجد فی الجبال و قد ورد فی الحدیث لا خمس فی الحجر و نحوه الیاقوت و الجواهر كما قدمناه من كل جامدٍ لا ینطبع. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۶، باب الركاز) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۵، كتاب الزكوٰة، الباب الخامس فی المعادن و الركاز.

## د كارخانې په زمكه او ماشینونو باندې زكات واجب نه دى

**سوال:** زه یو تجارت پیشه سړى یم، د صنعت لپاره ما د صابون یوه كارخانه ولګوله چه ډیره زمكه مې پرې نیولې ده او مشینونه مې هم پرې لګولي دي نو آیا په ما باندې د كارخانې د زمكې او ماشینونو زكات واجب دى او كه نه؟

**الجواب:** صنعتي آلات او وسائل چه كله د تجارت لپاره نه وي بلكه د كسب لپاره وي نو د هغو په ذات كښې زكات واجب نه دى اګر كه هغه ماشینونه او زمكه د لكونو او میلونونو روپو قیمت هم ولري۔ بلكه د هغه په آمدني یعنې ګټې باندې ئې زكات لازم دى۔ كه چیرته زمكه یا اسباب د تجارت په غرض سره وي نو بیا د هغو په ذات كښې هم زكات فرض دى۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و لا فی ثیاب البدن...... و كذٰلك آلات المحترفین . قال ابن عابدینؒ: ای سواء كانت مما لا تستهلك عینه فی الانتفاع كا لقدوم و المبرد او تستهلك. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۵، كتاب الزكوٰة)

قال الدكتور وهبة الزحیلی: و لا زكوٰة باتفاق المذاهب علی الحوائج الاصلیة.... و آلات المحترفین لانها مشغولة با لحاجة الاصلیة و لیست بنامیة اصلاً. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۷۳۶، المبحث الثانی سبب الزكوٰة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۶۶، كتاب الزكوٰة.

## د وړو د ماشین، لارۍ او د اسې نورو شیانو په قیمت باندې د زكات حكم

**سوال:** كه چیرته چا د وړو ماشین، لارۍ، موټر او د اسې نور د مزدورۍ لپاره اخیستي وي نو آیا د كال له تیریدو وروسته د وړو د ماشین، لارۍ او د اسې نورو د قیمت په لګولو سره زكات پرې واجب دى او كه نه؟

**الجواب:** د فقهاء كرامو د تصریحاتو په رڼا كښې د زكات د وجوب لپاره نقدې روپۍ او په اجناسو كښې د تجارت نیت ضروري دى۔ په د اسې صورت كښې د كال تر تیریدو وروسته زكات واجبیږي۔ له دې پرته چه كوم آلات یا موټر او د اسې نور چه د مزدورۍ او محنت لپاره وي په هغو باندې زكات واجب نه دى۔ لهذا په صورت مسئوله كښې لارۍ او د وړو د میدولو ماشین لكه څرنګه چه د مزدورۍ آلات دي د دې لپاره د هغو په قیمت باندې زكات واجب نه دى۔ البته د كال تر تیریدو وروسته كه چیرته د هغو ګټه نصاب ته رسیدله نو بیا زكات به پرې واجب وي۔

قال علی بن ابی بكر المرغینانیؒ: و لیس فی دور السكنٰی...... زكوٰة..... و آلات المحترفین لما قلنا. (الهدایة ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكوٰة)

و فی الهندیة: و منها فراغ المال عن حاجته الاصلیة فلیس فی دور السكنٰی..... و كذا كتب العلم ان كان من

اهله و آلات المحترفین کذا فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة) و مثلی فی رد المحتار ج۲، ص۲۶۲، کتاب الزکٰوة.

## د زمکې کـــرایه (ټیکه) په پیشګي کښې د ورکولو پـــه صورت کښې د زکـــات حکم

**سوال:** یوه سړي زمکه په کرایه باندې نیولې ده او د دوه دریو کلونو کرایه ئې مخکښې د زمکې مالك ته ورکړې ده. په دې پیشګي کرایه کښې چه کوم زکات دی هغه په مالك د زمکې باندې وي او که مستاجر (کرایه دار) باندې؟

**الجواب:** کرایه دار چه په پیشګي کښې څومره روپۍ ورکړي دي که چېرته ئې د زمکې د کرایه په توګه ورکړي وي نو زکات به ئې د زمکې د مالك په غاړه وي او که ئې د قرض په توګه ورکړې وي نو زکات به ئې په کرایه دار باندې وي.

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: فتجب عند قبض اربعین درهماً من الدَّین القوی کقرض و بدل مال تجارة فکلما قبض اربعین درهماً یلزمه درهم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۵، باب زکٰوة المال)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: قسّم ابو حنیفة الدَّین علی ثلاثة اقسام قوی و هو بدل القرض و مال التجارة الخ. ففی القوی تجب الزکٰوة اذا حال الحول و یتراخی القضاء الی ان یقبض اربعین درهماً ففیها درهم و کذا فیما زاد بحسابه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۷) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۳۸، فصل السادس فی الدیون و مسائلها.

## په قیمتي ډبرو کښې زکات څنګه ادا کیږي؟

**سوال:** نن صبا داسې ډبرې پیدا کیږي چه له سرو زرو څخه ئې هم قیمت زیات وي. نو آیا په داسې ډبرو باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** په قیمتي ډبرو لکه زمرُد لاجور او داسې نورو کښې زکات نشته. البته که د تجارت لپاره وي نو بیا زکات پرې واجب دی.

لما فی الهندیة: و لا شیء فیما یخرج من البحر کالعنبر و اللؤلؤ و السمك و فیها ایضاً و لا شیء الاّ ان یکون للتجارة فان کان للتجارة فحکمها حکم العروض. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۸/۱۷۵، کتاب الزکٰوة، الباب الخامس فی المعادن و الرکاز)

قال العلامة الحصکفیؒ: لا زکٰوة فی اللآلی و الجواهر و ان ساوت الفاً اتفاقاً الاّ ان تکون للتجارة و الاصل ان ما عدا الحجرین و السوائم انما یزکی بنیّة التجارة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۳، کتاب الزکٰوة) و مثله فی مراقی الفلاح ص۳۹۱، کتاب الزکٰوة، قبیل باب المصرف.

## د ګېنړو په غمیو کښې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته ګېنړه توله لس تولې وي لیکن په هغې کښې دوه تولې قیمتي ډبرې او جواهرات هم وي کوم چه د غمیو په توګه په ګېنړو کښې استعمالیږي. نو آیا په دې صوت کښې په مجموعي توګه د لسو تولو زکات ورکول کیږي او که غمي به ترې منفي کیږي او یوائې د ګېنړو زکات به ورکول کیږي؟



**الجواب:** غمي که د ډبرو وي او که د ملغلرو په هغو کښې پخپل ذات کښې زکات نشته. د دې لپاره غمي به له ګېنړو څخه منفي کیږي او له اصلو سرو زرو څخه زکات ورکول کیږي. د سرو زرو په وزن کښې غمي نه شمیرل کیږي.

لما قال شیخ الاسلام ابی بکر بن علی بن محمدؒ: و اما الیواقیت و الجواهر فلا زکٰوة فیها و ان کانت حلیاً الاّ ان تکون للتجارة. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۵۱، باب زکٰوة الذهب)

قال فی الهندیة: و اما الیواقیت و اللآلی و الجواهر فلا زکٰوة فیها و ان کانت حلیاً الا ان تکون للتجارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، کتاب الزکٰوة، الباب الثالث، الفصل الثانی فی العروض) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۳، کتاب الزکٰوة.

## په قدرتي زیرمو یعنې خزانو کښې د زکات حکم

**سوال:** د قدرتي خزانو د پیدا کولو په صورت کښې د زکات حکم څه دی؟

**الجواب:** د بیت المال ضروریاتو ته په پام کښې نیولو سره د خزانې خمس (پنځمه برخه) به د بیت المال وي او پاتې څلور برخې به ئې د هغه سړي وي چه چا پیدا کړې وي. د خزانې د پیدا کولو په وخت کښې زکات پرې واجب نه دی البته که کال پرې تیر شو نو بیا به ئې زکات ورکول کیږي.

لما قال الشیخ النظامؒ: ما یخرج من المعادن ثلاثة منطبع بالنار و مائع و ما لیس بمنطبع و لا مائع الما المنطبع کالذهب و الفضة و الحدید و الرصاص و النحاص الصفر ففیه الخمس. (الفتاوی الهندیة: ج۱، ص۱۸٤، کتاب الزکٰوة، الباب الخامس فی المعادن و الرکاز)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لنا قوله علیه السلام و فی الرکاز الخمس و هو من الرکز فاطلق علی المعدن و لانها کانت فی ایدی الکفرة فحوتها ایدینا غلبةً فکانت غنیمة و فی الغنائم الخمس. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۱۸۰، باب المعادن و الرکاز) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳٤، باب الرکاز.

## په دوه نیمې تولې سرو زرو او څلور زرو نقدو روپو باندې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړي سره دوه نیمې تولې سره زر دي او تقریبا د څلور زرو روپو سامان له ضرورت څخه زیات ورسره ایښې دي او څلور زره روپۍ پوروړی هم دی. نو آیا په داسې سړي باندې قرباني او زکات دواړه واجب دي او که څنګه؟

**الجواب:** له هر هغه سړي چه اوه نیمې تولې سره زر یا دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر وي یا د دغو له قیمت سره برابر تر ضرورت زیات سامان ورسره وي نو په داسې سړي باندې قرباني واجبه ده، او که چېرته دوه درې شیان له مذکوره شیانو څخه ورسره موجود وي نو بیا چه کوم شی له سرو یا سپینو زرو څخه انفع للفقراء وي (فقیرانو ته پکښې ګټه وي) نو د هغه له نصاب

سره دې درې واړه یا دواړه د قیمت له مخې سره یو ځای کړي نصاب دې جوړ کړي۔ اوس که چېرته په نوموړي سړي باندې قرض هم وي نو له ټول قیمت څخه دې پور کم کړي پاتې مال که چېرته نصاب ته رسیده نو قرباني به پرې واجبه وي او که نه رسیده نو نه به وي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه د دوه نیمو تولو سرو زرو او سامان قیمت تقریبا ۱۵،۱٤ زرو روپو ته رسیږي۔ که چېرته له دغو څخه څلور زره د پور روپۍ کمې شي نو بیا هم مال د نصاب له اندازې سره برابر پاتې کیږي۔ د دې لپاره په دې سړي باندې قرباني او زکات دواړه واجب دي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (قوله و اليسار) بان مِلك مائتى درهم او عرضاً يُساويها غير مسكنة و ثياب اللبس او متاع يحتاجه الى ان يذبح الأُضحية و لم لهٗ عقار يستغله فقيل تلزم لو قيمته نصاباً. (رد المحتار ج۵، ص۲۱۹، كتاب الاضحية)

قال الامام ابو حنيفةؒ: يضم احدهما الى الآخر باعتبار القيمة. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۹، كتاب الزكٰوة)

## سایکل، ساعت (ګړۍ) او داسې نور په ضروریاتو کښې داخل دي

**سوال:** که چېرته له چا سره د دوه نیمو یا دریو زرو بایسکـــــل او همدارنګه یوه قیمتي ګـــــړۍ ورسره وي نو آیا د دغو شیانو مجموعي قیمت که چېرته نصاب ته ورسیږي نو مالك ئې غني بلل کیږي او که نه؟

**الجواب:** د موجوده معاشرې او حالاتو له کتنې څخه څرګندیږي چه دا شیان په اصلي حوائجو کښې داخل دي۔ د دې لپاره د دغو شیانو مالك د نصاب خاوند نه بلل کیږي بلکه د ځینو خلکو د ضروریاتو په پام کښې نیولو سره موټر سایکل هم د هغو لپاره په ضروریاتو کښې داخل ګڼل شوی دی۔ د دې لپاره که چېرته دا سړی غریب وي نو زکات ورکول هم ورته جائز دي۔

قال على ابن ابى بكر المرغينانىؒ: و لا يجوز دفع الزكٰوة الى من يملك نصاباً من اىّ مال كان. الى ان قال و يجوز دفعها الى من يّملك اقل من ذٰلك و ان كان صحيحاً مكتسباً لانه فقير الخ. (الهداية ج۱، ص۲۰۷، باب مصارف الزكٰوة)



# باب زكٰوة السوائم

## (په څرېدونکو څناورو د زکات احکام او مسئلې)

## په ووزو او میږو کښې د زکات حکم

**سوال:** که چېرته له کوم سړي سره شل میږې وي او دیرش بچیان هم ولري۔ اوس خو ئې لا په بچو باندې کال نه دی تیر شوی په داسې حال کښې چه په شلو میږو باندې کال تیر شوی دی۔ په دې حالت کښې به زکات څه وخت ادا کیږي؟

**الجواب:** په صورت مذکوره کښې چونکه په څلویښتو میږو یا ووزو باندې کال نه دی تیر شوی بلکه په شلو باندې کال تیر شوی دی او په پاتې دیرشو بچیانو ئې پوره کال نه دی تیر شوی۔ د دې لپاره تر هغه وخته پورې زکات ترې نه ادا کیږي تنر څو چه په څلویښتو میږو باندې کال تیر نه شي۔

لما قال فى الهندية: ليس فى اقل من اربعين من الغنم السائمة صدقة فاذا كانت اربعين سائمة و حال عليه الحول ففيها شاة الى مائة و عشرين. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۸، كتاب الزكٰوة، الباب الثانى، الفصل الرابع فى زكٰوة الغنم)

قال الامام برهان الدين المرغينانى رحمه الله: ليس فى اقل من اربعين من الغنم السائمة صدقة فاذا كانت اربعين سائمة و حال عليها الحول ففيها شاة. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۳۵، فصل فى الغنم) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۱٦، باب زكٰوة المال، فصل فى الغنم.

## د څاروو په شیدو کښې د زکات حکم

**سوال:** یو سړی له خپلو وښو څخه څناور پالي او شیدې ئې خرڅوي۔ د څناورو په شیدو کښې د زکات ورکولو حکم څه دی؟

**الجواب:** پخپل ذات کښې په دغو روپو باندې زکات واجب نه دی۔ البته د کال تر تیریدو وروسته که چېرته نصاب ته ورسیږي نو زکات پرې لازمیږي۔

لما قال الشيخ النظامؒ: و منها كون المال نصاباً فلا تجب فى اقل منه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۲، كتاب الزكٰوة، الباب الاوّل)

و قال ايضاً (و منها حولان الحول على المال) العبرة فى الزكٰوة للحول القمرى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۵، الباب الاول)

قال العلامة الحصكفىؒ: وسببهٗ اى سبب افتراضها ملك نصاب حولى نسبة للحول لحولانه عليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، كتاب الزكٰوة، مطلب فى احكام المعتوه) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۰۲، كتاب الزكٰوة.

## د چراګاه (د مال د څرولو ځای) په کرایه باندې زکات نه متاثر کیږي

**سوال:** یو سړی ګڼ شمیر غوایي او میښې لري او د کال په اکثره برخه کښې د باندې څریږي لیکن په کوم ځای باندې چه دا څاروي څري نو مالك ئې په باقاعده توګه هر کال یوه اندازه روپۍ

اداکوي۔ اوس د پوښتنې خبره دا ده چه آیا د کرایې د اداکولو په وخت کښې دا څاروي له سائمه (څریدونکو) څاروو څخه شمارل کیږي او که له غیر سائمه (نه څریدونکو) څاروو څخه؟

**الجواب:** فقهاء کرامو په څاروو کښې د زکات د وجوب لپاره چه د "سائمه" کوم ذکر کړی دی نو دا په همدغو څاروو باندې صادقیږي۔ د دې لپاره د میاشتنې یا کلنې کرایې په اداکولو سره دا څاروي د "سائمه" وو له حکم څخه نه ووځي۔ لهذا د کال په اکثره برخه کښې د څریدلو له وجهې په هغو کښې به زکات واجب وي۔

لما قال العلامة الحصكفي رحمه الله: و شرعاً المكتفية با لرعي المباح ذكره الشمني في اكثر انعام لقصد الدّر و النسل ذكره الزيلعي. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۵، باب السائمة)

قال ابن نجيم رحمه الله: هي التي تكتفي با لرعي في اكثر السنة بيان للسائمة با لمعنى الفقهي لان اسم السائمة لا يزول با لعلف اليسير و لانه لا يمكن الاحتراز عنه قيد با لاكثر لافادة انه لو علفها نصف الحول فانها لا تكون سائمة فلا زكوة فيها لوقوع الشك في السبب. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۲، باب صدقة السوائم) و مثله في الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۴۷، باب زكوة الخيل.

## د څریدلو د ځای یو والی ضروري نه دی

**سوال:** که چېرته له چا سره شپیته میږې وي او دوه مزدوران ئې ورته نیولي وي چه یو مزدور دیرش میږې په یوه ځای باندې او بل مزدور دیرش میږې په بل ځای کښې څروي۔ نو آیا په داسې سړي باندې به د دغو میږو زکات واجب وي او که نه؟

**الجواب:** زمونږ په نزد په نصاب باندې د کال تر تیریدو وروسته د څریدلو د ځای یو والی ضروري نه دی۔ چه کله شپیته میږې د یوه سړي په مِلکیت کښېوي نو په جلا جلا ځایونو کښې ئې د څرولو تر څنګ په هغه باندې زکات واجب دی۔

لما قال في الهندية: الخليطان في المواشي كغير الخليطين...... اسباب الملك..... و سواء كانت في مرعٰى واحد او في مرعٰى مختلفة فان كان نصيب احدهما يبلغ نصاباً و نصيب الآخر لا يبلغ نصاباً و جبت الزكٰوة على الذى يبلغ نصيبه نصاباً دون الآخر. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۱، كتاب الزكٰوة، الباب الثالث، مسائل شتّٰى)

قال ابن الهمام رحمه الله: ففي الوجوب الجمع بين الاملاك المتفرقة اذ المراد الجمع و التفريق في الاملاك الا الامكنه الا ترىٰ ان النصاب المفرق في امكنة مع وحدة الملك تجب فيه و من ملك ثمانين شاة ليس للساعي ان يجعلها نصابين بان يفرقها في مكانين فمعنىٰ لا يفرق بين مجتمع انه لا يفرق الساعي بين الثمانين مثلاً. (فتح القدير ج۲، ص۱۲۹، باب صدقة السوائم، فصل في الابل) و مثله في الخانية على هامش الهندية ج۱، ص۲۴۸، فصل في صدقة الحملان و الفصلان.



## د غواوو او میښو د زکات په نصیب کښې فرق شته او که نه؟

**سوال:** د غواوو او میښو د زکات د نصاب تعداد څومره دی چه هغه ته ور ورسیږي نو زکات پرې واجبیږي۔ او آیا غواوې او میښې دواړه یو شی دي او که په زکات کښې جلا جلا حکم لري؟

**الجواب:** د غواوو او میښو د زکات نصاب دیرش دي په دې شرط چه د کال په اکثره برخه کښې د باندې مفت څري۔ او په دیرشو غواوو یا میښو کښې یو بچی یا یوه بچۍ چه دوه کلنې ته داخل شوی وي په زکات کښې ورکول واجب دي۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني: ليس في اقل من ثلٰثين من البقر صدقة فاذا كانت ثلٰثين سائمة و حال عليها الحول ففيها تبيع او تبعية و هي التي طعنت في الثانية. الجواميس و البقر سواء. (الهداية ج۱، ص۱۷۱، كتاب الزكٰوة، فصل في البقر)

لما قال العلامة الحصكفي: نصاب البقر و الجاموس و لو متوالداً من وحش و اهلية بخلاف عكسه...... ثلاثون سائمة غير مشتركة و فيها تبيع لانه يتبع اُمه ذو سنة كاملة او تبعية انثاه الخ. (الد رالمختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۰، كتاب الزكٰوة، باب زكٰوة البقر) و مثله في بدائع الصنائع ج۲، ص۲۸، كتاب الزكٰوة، فصل في نصاب البقر.

## په ووزو کښې د زکات نصاب

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام چه د ووزو د زکات نصاب څومره دی چه هغه تعداد ته ورورسیږي نو زکات پرې واجبیږي؟

**الجواب:** د ووزو او میږو تعداد چه څلویښتو ته ورسیږي او سائمه (پخپله څریدونکي) هم وي نو د کال تر تیریدو وروسته یوه میږه د زکات په توګه ورکول واجب دي۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه الله: ليس في اقل من اربعين من الغنم السائمة صدقة فاذا كانت اربعين سائمة و حال عليها الحول ففيها شاة. (الهداية ج۱، ص۱۷۲، كتاب الزكٰوة، فصل في الغنم)

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاري: و لسى في اقل من الاربعين من الغنم صدقة فاذا كانت اربعين و في الكافي سائمة غير مشتركة ففيها شاة الٰى مائة و عشرين. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۲۲۲، كتاب الزكٰوة، الفصل الاول في صدقة السوائم) و مثله في بدائع الصنائع ج۲، ص۲۸، كتاب الزكٰوة، فصل في نصاب الغنم.

## د میښو د زکات نصاب

**سوال:** په مبارکو احادیثو کښې د غواوو، اوښانو، میږو او د اسې نور د زکات نصاب ټاکل شوی دی لیکن د میښو نصاب نه دی ټاکل شوی۔ نو د شریعت له مخې د میښو د زکات نصاب څومره دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د میښو د زکات نصاب د غواوو غوندې دی یعنې څومره نصاب چه د غواوو دی هغومره نصاب د میښو هم دی۔ همدارنګه که دواړه ګډ وي نو بیا به ئې هم همدغه نصاب وي یعنې د دواړو به یو نصاب وي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: (قوله و الجاموس کا لبقر) لان اسم البقر یتناولهما اذ هو نوع منه فیکمل نصاب البقر به و تجب فیه زکاتها و عند الاختلاط تؤخذ الزکوٰة من اغلبها الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۵، کتاب الزکوٰة، باب صدقة البقر)

و فی الهندیة: و الجاموس کا لبقر و عند الاختلاط یجب ضم بعضها الی بعض لتکمیل النصاب ثم تؤخذ الزکوٰة من اغلبها ان کان بعضها اکثر من بعض. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۸، کتاب الزکوٰة، الفصل الثالث فی زکوٰة البقر) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۴۴، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة البقر.

## په کور کښې د پالل شویو څناورو زکات

**سوال:** که چېرته یو څوك د څاروو پالنه په کور کښې کوي لیکن د تجارت په نیت ئې ساتلي وي نو آیا په د اسې څاروو کښې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** کوم څناور چه د تجارت په نیت سره ساتل کیږي او د خوراك او څښاك بندوبست ئې په کور کښې کیږي او که په صحراء کښې نو د اسې څناور د تجارت د سامان په مرتبه کښې راځي او د کال تر تیریدو وروسته زکات پرې او اجبیږي په دې شرط چه قیمت ئې د سرو او سپینو زرو نصاب ته ورسیږي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: الزکوٰة واجبة فی عروض التجارة کائنة ما کانت اذا بلغت قیمتها نصاباً من الورق و الذهب لقوله علیه السلام فیها یقومها فیؤدی من کل مائتی درهم خمسة دراهم الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۷۷، کتاب الزکوٰة، فصل فی العروض)

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: (قوله و لا فی العلوفة و العوامل)....... و المراد بنفی الزکوٰة عن العلوفة زکوٰة السائمة لانها لو کانت للتجارة وجبت فیها زکوٰة التجارة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۸، کتاب الزکوٰة، فصل فی الغنم)

## د تجارت لپاره په ســـاتل شویو څاروو کښې د ســرو او سپینو زرو نصاب معتبر دی

**سوال:** که چېرته یو څوك د تجارت په نیت سره غواوې یا مېښې ساتي او تعداد ئې له دیرشو څخه کم وي نو آیا په د اسې سرې باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** کوم څناور چه د تجارت په نیت سره پالل کیږي نو په هغو کښې د څناورو د زکات نصاب ضروري نه دی بلکه چه کله ئې قیمت د اوه نیمو تولو سرو او دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو ته ورسیږي نو زکات پرې او اجبیږي که د څناورو تعداد نصاب ته ورسیږي او که نه۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: الزکوٰة واجبة فی عروض التجارة کائنة ما کانت اذا بلغت قیمتها نصاباً من الورق و الذهب لقوله علیه السلام فیها یقومها فیؤدی من کل مائتی درهم خمسة دراهم. (الهدایة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکوٰة، فصل فی العروض)

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: قوله و فی عروض تجارة بلغت نصاب ورق او ذهب..... ای یجب ربع العشر فی عروض التجارة اذا بلغت نصاباً من احدهما. (البحر الرائق ج۲، ص۲۲۸، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة المال)



## په زکات کښې د څناور په ځای د هغه د قیمت ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د څناورو په زکات کښې د څناور په ځای د هغه قیمت ورکړي نو آیا زکات ئې ادا کیږي او که نه؟

**الجواب:** د زکات په ادا کولو کښې د حنفي فقهې لـــه مخې بعینهٖ د هم هغه شي ورکـــول ضروري نه دي بلکه د هغه په ځای ئې قیمت هم ورکول کیدلی شي او اکثره وختونه قیمت ورکول ډیر بهتر وي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و یجوز دفع القیمة فی الزکوٰة و الکفارة و صدقة الفطر و العشر و النذر. (البحر الرائق ج۲، ص۲۲۱، کتاب الزکوٰة، باب فی الغنم)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و یجوز دفع القیم فی الزکوٰة عندنا و کذا فی الکفارات و صدقة الفطر و العُشر و النذر. (الهدایة ج۱، ص۱۷۴، کتاب الزکوٰة، فصل فی الخیل) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۴۷، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة الخیل.

## په خـــرو کښې د زکات مسئله

**سوال:** په ځینو علاقو کښې زیاتره خره پالل کیږي نو آیا په خرو باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** خره او کچرې د اسې څناور دي چه د هغو د زکات لپاره شارع علیه السلام کوم حکم نه دی صادر کړی د دې لپاره په هغو کښې زکات نشته۔ البته د تجارت په نیت سره که چېرته وساتل شي نو بیا زکات پرې واجبیږي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا شیء فی البغال و الحمیر لقوله علیه السلام لم ینزل علیَّ فیهما شیء و المقادیر تثبت سماعاً الاّ ان تکون للتجارة لان الزکوٰة حینئذٍ تتعلق با لمالیة کسائر اموال التجارة. (الهدایة ج۱، ص۱۷۳، کتاب الزکوٰة، فصل فی الخیل)

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: (قوله و لا فی الحمیر و البغال) لقوله علیه السلام لم ینزل علیَّ فیهما شیء و المقادیر تثبت سماعاً الاّ ان تکون للتجارة لان الزکوٰة حینئذٍ تتعلق با لمالیة کسائر اموال التجارة. (البحر الرائق ج۱، ص۱۷۸، کتاب الزکوٰة، فصل فی الغنم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۸، کتاب الزکوٰة، الفصل الخامس فیما لا تجب فیه الزکوٰة.

## د ډیرې د فارم په مېښو کښې د زکات حکم

**سوال:** زه یو فارم لرم چه دیرش څلویښت مېښې پکښې موجودې دي چه تول پالنه ئې زه پخپله په فارم کښې له خپلې خرڅې څخه کوم۔ نو آیا په دغو مېښو کښې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** کوم څناور چه په کور کښې پالل کیږي، خوراك او پالنه ئې په پیسو اخیستل کیږي او د کال په کمې برخې کښې د باندې په څرند ځایونو کښې څرې نو په د اسې څناورو کښې زکات واجب نه دی۔ لهذا په تا باندې زکات واجب نه دی۔ البته که چېرته د ا مېښې یو اځې ته د شیدو لپاره پالې او شیدې ئې بیا خرڅوې نو په دې صورت کښې د شیدو په روپو باندې زکات واجبیږي په دې شرط چه نصاب ته رسیدلي وي او کال پرې تیر شوی وي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و لیس فی العوامل و العلوفة صدقة....... ثم السائمة هی التی تکتفی با لرعی فی اکثر الحول حتیٰ لو علفها نصف الحول او اکثر کانت علوفة لان القلیل تابع للاکثر. (الهدایة ج۱، ص۱۷٤، کتاب الزکوٰة، فصل فی الخیل)

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: (قوله هی التی تکتفی با لرعی فی اکثر السنة بیان للسائمة با لمعنی الفقهی....... قید با لاکثر لافادة انه لو علفها نصف الحول فانها لا تکون سائمة فلا زکوٰة فیها لوقوع الشک فی السبب. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۲، کتاب الزکوٰة، باب صدقة السوائم) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱٤۸، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة الخیل.

## په غوا او غویی، سنډا او میښنه کښې د شیدو او ذاتي ضرورت لپاره د ساتنې په صورت کښې د زکات حکم

**سوال:** زه یو بزګر سړی یم له ما سره څه غوایې دي چه د یوې د چلولو لپاره مې ساتلي دي او دوه سنډاګان دي چه د ارهټ چلولو لپاره ساتلي دي او څه غواوې او میښې دي چه د شیدو د ضرورت د پوره کولو لپاره مې ساتلي دي او بچې هم ورسره شته۔ نو آیا په ما باندې د دغو څناورو زکات شته او که نه؟

**الجواب:** کوم څناور چه د کوم عمل (ارهټ، یوې او د اسې نورو) لپاره ساتل کیږي په هغو کښې شرعاً زکات نشته۔ او کوم څناور چه د شیدو او بچې پیدا کولو لپاره ساتل کیږي په هغو کښې زکات واجب دی په دې شرط چه د کال اکثره برخه د باندې څرې او مفتې خوراك پیدا کوي او نصاب ته هم رسیږي او که د اسې نه وي نو بیا واجب نه دی۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لیس فی العوامل و الحوامل و العلوفة صدقة خلافاً لمالك له ظواهر النصوص و لنا قوله علیه السلام لیس فی الحوامل و العوامل و لا فی البقرة المثیرة صدقة. (الهدایة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکوٰة، فصل فی الخیل)

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: (قوله و لا فی العلوفة و العوامل) للحدیث لیس فی الحوامل و العوامل و العلوفة صدقة و لان السبب هو المال النامی الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۸، کتاب الزکوٰة، فصل فی الغنم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۸، کتاب الزکوٰة، الفصل الخامس فیما لا زکوٰة فیه.

## له میږو سره د هغو بچې هم په نصاب کښې ګڼل کیږي

**سوال:** زمونږ په ملك (افغانستان) کښې اکثره خلك میږې ساتي چه اکثره وخت د غتو میږو تعداد کم وي کوم چه نصاب ته نه رسیږي نو آیا له غتو میږو سره د هغو واړه بچې هم په نصاب کښې شمیرل کیږي او که نه؟

**الجواب:** د څناورو د زکات په نصاب کښې له لویو څناورو سره ئې واړه بچې هم په نصاب کښې ورسره ګڼل کیږي او چه کله نصاب ته ورسیږي نو زکات پرې واجبیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا فی حملٍ و فصیل ولد الناقة و عجول ولد البقرة..... الا تبعا لکبیر و لو



واحداً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۳، کتاب الزکوٰة، باب زکوٰة الغنم)

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و لیس فی الفصلان و العجاجیل و الحملان صدقة عند ابی حنیفةؒ الا ان یکون معها کبار و هٰذا آخر اقواله و هو قول محمدؒ. (الهدایة ج۱، ص۱۷۳، کتاب الزکوٰة، فصل فی الخیل) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۱۷، کتاب الزکوٰة، فصل فی الغنم.

## په اسونو کښې د زکات حکم

**سوال:** ما د سورلۍ لپاره یو اس ساتلی دی نو آیا په ما باندې د دې اس زکات شرعاً واجب دی او که نه؟

**الجواب:** په مقدس شریعت کښې چه کوم اس د سورلۍ لپاره ساتل کیږي په هغه باندې زکات نه واجبیږي۔ له دې وجهې په تا باندې د دې اس زکات واجب نه دی۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لیس فی دور السکنٰی و ثیاب البدن و اثاث المنازل و دواب الرکوب و عبید الخدمة و سلاح الاستعمال زکوٰة لانها مشغولة با لحاجة الاصلیة. (الهدایة ج۱، ص۱٦٦، کتاب الزکوٰة)

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لیس فی دور السکنٰی و ثیاب البدن و اثاث المنازل و دواب الرکوب و عبید الخدمة و سلاح الاستعمال زکوٰة لانها مشغولة بحاجة الاصلیة و لیست بنامیة. (رد المحتار ج۲، ص۲٦۲، کتاب الزکوٰة) و مثله فی عزیز الفتاویٰ ج۱، ص۳٤۸، کتاب الزکوٰة.

## په اوښانو کښې د زکات نصاب

**سوال:** زمونږ د علاقې خلك زیاتره اوښان پالي نو د شریعت له مخې په څو اوښانو باندې زکات واجبیږي؟

**الجواب:** د اسلام د زکات د قانون مطابق چه کله اوښان د کال په اکثره برخه کښې د باندې یعنې په صحرا کښې وڅري او پوره کال پرې تیر شي نو په هغو کښې زکات واجبیږي په دې شرط چه پنځو اوښانو ته ورسیږي نو بیا په هغو کښې یوه ووزه واجبیږي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: قال لیس فی اقل من خمس ذود صدقة فاذا بلغت خمساً سائمة و حال علیها الحول ففیها شاة الی تسع الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۷۰، کتاب الزکوٰة، فصل فی الابل)

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: قال محمدؒ و لیس فیما دون الخمس من الابل السائمة زکوٰة و فی الخمس شاة. (الفتاویٰ التاتارخانیة ج۲، ص۲۱۹، کتاب الزکوٰة، الفصل الاوّل فی صدقة السوائم) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۱۹، کتاب الزکوٰة، باب نصاب الابل.

## یو ځې شپږ میاشتې (نیم کال) په څرید ونکو څناورو کښې د زکات حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه تقریبا پنځوس غواوې او میښې لرم چه شپږ میاشتې ئې د خپل کلي په څرند ځای کښې څروم او شپږ میاشتې ئې پخپل کور کښې ساتم۔ آیا په ما باندې د دغو څناورو زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** په څناورو کښې د زکات د وجوب لپاره شرط دا دی چه هغوی به سائمه وي او سائمه هغو څناورو ته ویل کیږي چه د کال اکثره برخه په څرند ځایونو کښې څري۔ د صورت مسئوله مطابق لکه څرنګه چه تاسو خپل څناور پوره نیم کال پخپل کور کښې ساتی او خرڅه مو له کوره کیږي او نیم کال ئې له صحراء څخه خوري نو د دې لپاره ستا په دغو څناور باندې د سائمه تعریف نه صادقیږي۔ لهذا په تا باندې د دغو څناورو زکات واجب نه دی۔

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: باب السائمة (هى) الراعية و شرعا المكتفية با لرعى) المباح ذكره الشمنى (فى اكثر العام لقصد الدر و النسل) ذكره الزيلعىؒ و زاد فى المحيط و الزيادة فى السمن) ليعم الذكور فقط لكن فى البدائع لو اسامها للحم فلا زكٰوة فيها....... (فلو علفها) نصفه لا تكون سائمة) فلا زكٰوة فيها للشك فى الموجب آه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۵/۲۷۶، كتاب الزكٰوة)

لما قال العلامة عبد الرحمٰن بن محمد الكليبولى الشهير بداماد افندىؒ: (السائمة التى تكتفى با لرعى) الرعى با لكسر الكلاء و با لفتح مصدر.... (فى اكثر الحول) فان علفها نصف الحول او اكثر فليست بسائمة لان اربابها لا بد لهم من العلف فى ايام الثلج و الشتاء فاعتبر الاكثر ليكون غالباً. (مجمع الانهر فى شرح ملتقى الابحر ج۱، ص۲۹۲، باب زكٰوة السوائم) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۲، ص۴۳۸، كتاب الزكٰوة، الخطب الخامس زكٰوة الحيوان و الانعام.



# باب العُشر

## (د عشر احکام او مسئلې)

### د چینې په اوبو باندې د خړوبېدو په صورت کښې د عُشر حکم

**سوال:** کومې زمکې چه د چینې په اوبو باندې خړوبیږي په هغو کښې د عُشر حکم څه دی؟

**الجواب:** د چینې په اوبو باندې په خړوبېدونکو زمکو کښې د عُشر ورکول واجب دي ځکه چه په دې کښې محنت او خواري کمه وي او د عُشر دارو مدار په محنت او خواري پورې دی۔

لما قال فى الهندية: ثم ماء العُشر ماء البئر التى حفرت فى ارض العشر و ماء العين التى تظهر فى ارض العُشر و كذٰلك ماء السماء و ماء البحار العظام عشرى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكٰوة، الباب السادس فى زكٰوة الزروع و الثمار)

قال الامام برهان الدين المرغينانىؒ: ثم الماء العُشرى ماء السماء و الآبار و العيون و البحار التى لا تدخل تحت ولاية احد. (الهداية ج۲، ص۱۹۹، باب زكٰوة الزروع والثمار) و مثله فى رد المحتار ج۲، ص۲۳۰، باب العشر.

### عُشر د کوم ځای په حساب سره واجبیږي

**سوال:** که چېرته یوه سړي رومي بانجان کرلي وي لیکن د نرخ د ټیټ والي له وجهې ئې پخپل ښار کښې خرڅ نه کړل نو په دې صورت کښې که چېرته نوموړی خپل رومي بانجان کوم بل ښار ته یوسي او هلته ئې خرڅ کړي نو عُشر به د کوم ځای په حساب ورکوي؟

**الجواب:** که چېرته پخپل ښار کښې له جنس څخه عُشر ادا کړي نو ښه تر ښه او که نه وي نو په بل ښار کښې ئې د خرڅولو په صورت کښې په نوموړي ښار کښې به د جنس د قیمت په اعتبار سره عُشر ادا کوي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و يقوم فى البلد الذى المال فيه و لو فى مفازة ففى اقرب الامصار اليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۶، باب زكٰوة الغنم)

قال فى الهندية: و يقومها المالك فى البلد الذى فيه المال حتٰى لو بعث عبداً للتجارة الٰى بلدٍ آخر فحال الحول تعتبر قيمة فى ذٰلك البلد و لو كان فى مفازة تعتبر قيمة فى اقرب الامصار الٰى ذٰلك الموضع. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۰، كتاب الزكٰوة، الباب الثالث فى زكٰوة الذهب و الفضة و العروض.

### د برمې له اوبو څخه په خړوبېدونکې زمکې باندې د نیم عشر د وجوب حکم

**سوال:** د زمکې د خړوبولو لپاره که چېرته یو څوك برمه استعمالوي چه په هغې کښې بزګر د برق د اخراجاتو برسیره نور اخراجات هم پرې کوي۔ په دې صورت کښې د داسې زمکې په آمدني باندې به عُشر واجب وي او که نیم عشر؟

**الجواب:** د فقهاء کرامو د تصریحاتو مطابق د کومې زمکې په خړوبولو کښې چه محنت او

مشقت وي نو په هغې کښې به نیم عُشر وي- په د اسې حال کښې چه په واتر پمپ (برمې) باندې د زمکې خړوبولو په صورت کښې مالي تاوان له چا څخه پټ نه دی د دې لپاره په د اسې زمکې باندې به نیم عشر واجب وي-

لما فی الهندية: و ما سقٰی با لدولاب و الدالية ففيه نصف العشر و ان سقٰی سيحاً و بدالية يعتبر اكثر السنة فان استويا يجب نصف العُشر. (الهندية ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكٰوة، الباب السادس فی زكٰوة الزروع و الثمار)

قال الشيخ الاسلام ابی بكر بن علی بن محمدؒ: و ما سقٰی بغرب او داليةٍ او سافيةٍ ففيه نصف العُشر الدالية و الدولاب و السانية البعير الذی يستقٰی به الماء. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۴، باب العُشر) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۸، باب العُشر.

## د جومـــــاتونو امامانو ته د ورکړل شوې زمکې په آمـــــدني کښې د عُشر یا نیم عشر وجوب

**سوال:** په ځینو علاقو کښې سید انو یا د جومات امامانو ته څه زمکې ورکول کیږي چه په عرف کښې ورته "سیري" ویل کیږي- ډیر وارې دا زمکې دوی ته د مالکانه حقوقو په توګه ورکول کیږي- نو ښکاره خبره ده چه دا خو د جوماتونو د امامانو مِلکیت ګڼل کیږي لیکن کومه چه زمکه د جومات لپاره وقف وي او د جومات امامان په هغې باندې څه کري نو آیا عشر به پرې واجب وي او که نه؟

**الجواب:** له زمکې څخه د عُشر د ادا کولو لپاره مالك والی شرط نه دی بلکه د زمکې آمدني چه ځوك اخلي په هغه باندې عشر یا نیم عُشر واجب وي- د جوماتونو امامان چه د جومات له وقف شوې زمکې څخه کوم فصل اخلي په هغه کښې به عُشر یا نیم عُشر واجب وي-

لما فی الهندية: و كذا ملك الارض ليس بشرط للوجوب لوجوبه فی الاراضی الموقوفة و يجب فی ارض الماذون و المكاتب. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۸۵، كتاب الزكٰوة، الباب السادس فی زكٰوة الزروع و الثمار)

قال ابن نجيم المصریؒ: و كذا ملك الارض ليس بشرط للوجوب لوجوبه فی الارض الموقوفة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر) و مثله فی الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب زكٰوة الزروع و الثمار.

## د راتلونکي کال د عُشر ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د سږ کال د عُشر ورکولو په وخت کښې د راتلونکي کال عُشر هم ادا کړي نو آیا د اسې کول ورته جائز دي او که نه؟

**الجواب:** عُشر یا نیم عُشر لکه څرنګه چه په پید اوار یعنې د زمکې په فصل اندې واجبیږي- د راتلونکي کال د عشر ورکول د اسې دی لکه له وجوب څخه مخکښې د عُشر ورکول چه په د اسې کولو سره ئې غاړې نه خلاصیږي-

و وقته وقت خروج الزرع و ظهور الثمر عند ابی حنيفة فلو عجل عشر ارضه قبل الزرع لا يجوز و لو عجل



بعد الزراعة بعد النبات فانه يجوز و لو عجل بعد الزراعة قبل النبات فا لاظهر انهٗ لا يجوز و لو عجل عشر الثمار ان كان بعد طلوعها يجوز و ان كان قبل طلوعها لا يجوز فی ظاهر الرواية. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكٰوة، الباب السادس فی زكٰوة الزروع و الثمار)

قال العلامة جلال الدين الخوارزمیؒ: ثم اختلفوا فی وقت الوجوب فوقت الوجوب عند ابی حنيفةؒ يكون عند ظهور الثمرة و عند ابی يوسفؒ الوجوب عند الادراك و عند محمدؒ يكون عند استحكامه. (الكفاية فی ذيل فتح القدير ج۲، ص۱۹۱/۱۹۲، باب زكٰوة الزروع و الثمار) و مثله فی البدائع الصنائع ج۲، ص۵٤، فصل زكٰوة الزروع و الثمار.

## د قومي اخراجاتو تر ایستلو مخکښې عُشر واجب دی

**سوال:** په ځینو علاقو کښې د خلکو دا رواج دی چه د زمکې له آمدني څخه د کلي پښ، نایي او د اسې نورو کسب ګرو ته یوه مخصوصه برخه ورکول کیږي نو آیا د دغو قومي او علاقایي اخراجاتو له ایستلو څخه مخکښې به عُشر ورکوي او که وروسته؟

**الجواب:** عُشر یا نیم عُشر په ټوله آمدني باندې واجب دی- نوموړي اخراجات هم د زمکې له آمدني څخه ورکول کیږي نو ځکه د دغو اخراجاتو عُشر یا نیم عشر هم واجب دی او د دغو اخراجاتو له ایستلو څخه مخکښې به عشر ورکوي-

لما قال الشيخ الاسلام ابی بكر بن علی بن محمدؒ: و قال محمدؒ اذا حصدت و صارت فی الجرين و فائدته فيما اذا اكل منه شيئاً بعد ما صار جهيشاً او اطعم غيره منه با لمعروف فانه يضمن عشر ما اكل و اطعم عند ابی حنيفةؒ و زفر....... و ان اكل منها بعد بلغت الحصاد قبل ان حصد فمن عند ابی حنيفةؒ و ابی يوسفؒ. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵٤، باب زكٰوة الزرع و الثمار)

قال ابن نجيمؒ: و اما ركنه فا لتمليك كا لزكٰوة و شرائط الاداء ما قدمناه فی الزكٰوة....... و ان استهلكه غير المالك اخذ الضمان منه و ادّی عشره و ان استهلكه المالك ضمن عشره و صار دينا فی ذمته. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۸۷، كتاب الزكٰوة.

## د حکومت لخوا له خلکو څخه د زکات او عُشر د اخیستلو حکم

**سوال:** حکومت چه له عوامو څخه کوم عُشر او زکات اخلي او په خلکو ئې تقسیموي نو آیا په دې ډول سره د نصاب د مالك غاړه له زکات څخه فارغیږي او که نه؟

**الجواب:** د حکومت په واسطه د زکات او عشر ادا کول څه پروا نه لري لیکن د زکات د موجوده نظام خامیو ته په پام کښې نیولو سره دا اندازه لګول له هیچا څخه پټ نه دي چه په عمومي توګه زکات پخپل اصل مصرف کښې نه لګیږي بلکه د سیاسي تړون او ګوندي تعلقاتو په بنیاد باندې غیر مستحقینو ته ورکول کیږي- د دې لپاره چه سړی دا وینې هم چه زکات مې ضائع کیږي او بیا هم په هغه باندې اکتفاء کول د عقل او پوهې خبره نه ده بلکه دوباره ادا کول ئې بهتر دي-

لما قال العلامة صدر الشريعةؒ: و ان اخذوا الزكٰوة المذكورة صرفوا الٰی مصارفها و هی مصارف الزكٰوة فلا

اعادة على الاملاك و ان لم يصرفوا الٰى مصارفها فعليهم الاعادة. (شرح الوقاية ج۱، ص ۲۸۰، کتاب زکٰوة الاموال)

لما قال العلامة الحصكفىؒ: اخذ البغاة و السّلاطين الجائرة زكٰوة الاموال الظاهرة كا لسوائم و العشر و الخراج لا اعادة علىٰ اربابها ان صرف الماخوذ فى محله الا فى ذكره و الا يصرف فيه فعليهم فيما بينهم و بين الله. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، باب زكٰوة الغنم) و مثله فى السراجية ص۲۶، کتاب الزکٰوة.

## د پاکستانی زمکې شرعي حیثیت

**سوال:** د پاکستان چه کومه زمکه ده (که د هرې صوبې سره تعلق هم لري) هواره ده او که غر، د شریعت له مخې د پاکستان په زمکو کښې عشر یا نیم عشر واجبیږي او که نه؟ همد ارنګه د پاکستان تر جوړیدو مخکښې یا وروسته چه کومو خلکو ته زمکې په لاس ورغلي دي په هغو کښې د عشر حکم څه دی؟

**الجواب:** زمونږ د ملك زمکې که چا ته د پاکستان تر جوړیدو مخکښې ور په برخه شوي دي او که وروسته په ټولو باندې د حکومت له خوا څخه د مالکانه قبضې په تسلیمولو سره د ټولو مالکانه تصرفاتو اختیار ورکړ شوی دی۔ د دې لپاره د مسلمانانو د مِلکیت د تسلیم والي نه وروسته دا زمکې عُشري دي نه خراجي۔

و للتفصيل فليراجع الى الكتاب المسمّٰى "با لقول الماضى فى الاحكام الاراضى" للعلامة مفتى محمد شفيع صاحب رحمه الله.

## قرض د عشر د وجوب لپاره مانع (خنډ) نه دی

**سوال:** که چېرته په زمیندار (بزګر) باندې څه پور وي نو آیا د پوروړي توب تر څنګ به هم د زمکې له آمدني څخه د عشر ورکول پرې ضروري دي او که پور د عشر د وجوب مانع دی۔

**الجواب:** د عشر وجوب د زمکې په حاصل پورې اړه لري په دې کښې غنا او د نصاب مالك والی ضروري نه دی۔ د دې لپاره د پوروړي توب تر څنګ عشر یا نیم عشر ادا کول ضروري دي۔

لما قال الامام برهان الدين المرغينانىؒ: قال ابو حنيفة رحمه الله فى قليل ما اخرجته الارض و كثيره العشر سواء سقى سيحاً او سقته السماء. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۸۶، باب زكٰوة الزرع و الثمار)

قال ابى بكر بن على بن محمدؒ: قال ابو حنيفةؒ فى قليل ما اخرجته الارض و كثير العشر حد القليل الصاع و ما دونه لا شىء فيه و قيل حده نصف الصاع و المراد با لارض هنا العشر و فيه اشارة الٰى انهٗ لا يلتفت الى المالك سواء كان بالغاً او صبياً او مجنوناً او عبداً او كانت الارض وقفاً على الرباطات او المساجد او المدارس. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب زكٰوة الزرع و الثمار) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۸۶، کتاب الزکٰوة، الباب السادس فى الزروع و الثمار.

## د مالیې یا آبیانې په ورکولو سره عشر نه ساقطیږي

**سوال:** د فقهاء کرامو له عباراتو څخه خو معلومیږي چه عشر او خراج دواړه له یوې زمکې څخه نه اخیستل کیږي لیکن که چېرته حکومت له زمیندار څخه د مالیې یا آبیانې په نامه سره محصول تر لاسه کړي نو آیا په دې سره عُشر ساقطیږي او که نه؟



**الجواب:** په هرې زمانې کښې حکومتي مالیه دوه ډوله وي یوه آبیانه چه د اوبو په بدل کښې اخیستل کیږي او بله زرعي مالیه کوم چه د زمکې په حاصل باندې لګول کیږي۔ لومړی یعنې آبیانه چونکه د هغو اوبو په بدل کښې اخیستل کیږي چه حکومت ئې انتظام کوي۔ د دې لپاره په دې صورت کښې د اخراجاتو، محنت او مشقت له وجهې د عشر (د لسمې برخې) په ځای به نیم عُشر (شلمه برخه) لازمیږي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: لان العلة فى العدول عن العشر الٰى نصفه فى مسقى غرب او دالية هى زيادة الكلفة كما علمت و هوى موجودة فى شراء الماء. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۹، باب العشر)

قال الشيخ المفتى عزيز الرحمٰنؒ: په نهري زمکو کښې کومې چه د اوبو محصول پکښې ورکول کیږي نیم عشر واجب وي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۱۷۲، شپږم باب، عشر)

## په زور او جبر سره د اخیستل شوي عُشر بیرته ګرځول بهتر دي

**سوال:** که چېرته له یوه سړي څخه والي یا کوم ظالم بادشاه په زور او جبر سره عُشر واخلي نو آیا په دې سره د سړي غاړې خلاصیږي او که نه؟

**الجواب:** که چېرته له چا څخه د ظلم او ستم په توګه عشر په زوره واخیستل شي نو په مالك باندې د عشر بیرته راګرځول لازم نه دي۔ لکه څرنګه چه دا عشر په عمومي توګه د حکمرانانو د عیاشیو نذر کیږي او په یوه داسې ځای باندې په یقیني توګه نه مصرفیږي چه شریعت د مصارفو په توګه ټاکلي دي۔ د دې لپاره د احتیاط له مخې د عشر دوباره ایستل بهتر دي تر څو چه مالك ئې پخپله خوښه په غریبانو تقسیم کړي او اطمینان تر لاسه کړي۔

قال على بن ابى بكر المرغينانىؒ: و اذا اخذ الخوارج الخراج و صدقة السوائم لا يثنّٰى عليهم و افتوا بان يعيدوها دون الخراج الخ و قيل اذا نوى با لدفع التصدق عليهم سقط عنه و كذا ما دفع الٰى كل جائز لانهم بما عليهم من التبعات فقرأ و الاوّل احوط. (الهداية ج۱، ص۱۷۵، فصل فى الخيل)

قال علاؤ الدين الحصكفىؒ: اخذ البغاة و السلاطين الجائرة زكٰوة الاموال الظاهرة كسوائم و العشر و الخراج لا اعادة على اربابها ان صرف الماخوذ فى محله الآتى ذكره و ان لا يصرف فيه فعليهم فيما بينهم و بين الله اعادة غير الخراج. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، باب زكٰوة الغنم) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۲۳، باب زكٰوة الغنم.

## حکومتي مالیه یا محصول په عشر باندې کوم اثر نه اچوي

**سوال:** که چېرته په کومې زمکې باندې د حکومت له خوا محصول ټاکل شوی وي کوم چه په ټاکلي وخت باندې د مالك له خوا حکومت ته ورکول کیږي نو آیا په دې سره په عشر باندې کوم اثر لویږي او که نه؟

**الجواب:** لکه څرنګه چه حکومت محصول او داسې نور د عشر په نیت سره نه اخلي او نه په صحیح مصرف باندې ئې لګوي او نه په حکومت کښې د عشر د یو ځای کولو لپاره کومه

صحیح طریقه موجوده ده۔ د دې لپاره په حکومتي سطحه د مالیې په ادا کولو سره عُشر نه ساقطیږي او نه له عشر څخه د سړي غاړې خلاصیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: اخذ البغاة و السلاطین الجائرة زکٰوة الاموال الظاهرة کا لسوائم و العشر و الخراج لا اعادة علی اربابها ان صرف الماخوذ فی محلة الآتی ذکره و ان الا یصرف فیه فعلیهم فیما بینهم و بین الله اعادة غیر الخراج الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، باب زکٰوة الغنم)

قال العلامة الکاسانیؒ: و اما سلاطین زماننا الذین اذا اخذوا الصدقات و العشور و الخراج لا یضعونها مواضعها...... فاما الزکٰوة و الصدقات فانهم لا یضعونها فی اهلها و قال ابو بکر الاسکاف ان جمیع ذٰلك یسقط و یعطی ثانیاً الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۶، فصل و اما بیان من له المطالبة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۹۳، فصل فی الغنم.

## د موقوفه زمکې په حاصلاتو کښې د عشر حکم

**سوال:** د کومې مدرسې یا کوم جومات لپاره د وقف شوې زمکې په حاصلاتو کښې د عُشر یا نیم عُشر څه حکم دی؟ په د اسې حال کښې چه د اسې زمکه د چا شخصي ملکیت نه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عُشر په وجوب کښې د زمکې مالك والی شرط نه دی بلکه د ما خرج من الارض (هغه څه چه له زمکې را ووځي) مالك والی شرط دی۔ کوم شی چه له زمکې څخه لاس ته راځي او څوك ئې چه مالك وي نو په هغه مالك باندې ئې عُشر لازم دی۔ که چېرته موقوفه زمکې اهل وقف کري نو په دوی باندې عشر لازم دی او که چېرته ئې له اهل وقف څخه بغیر بل څوك کري نو په هغه کښې به بیا د اجارې او مزارعت غوندې احکام جاري کیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یجب مع الدین و فی ارض صغیر و مجنون و مکاتب و ماذون و وقف. قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و وقف) افاد ان ملك الارض لیس بشرط لوجوب العشر و انما الشرط ملك الخارج لانه یجب فی الخارج لا فی الارض فکان ملکه و عدمه سواء. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۶، باب العشر)

و فی الهندیة: و کذا ملك الارض لیس بشرط للوجوب لوجوبه فی الاراضی الموقوفة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۵، باب السادس فی زکاة الزرع و الثمار) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر۔

## په کرایه باندې په ورکړ شوې زمکې کښې د عشر حکم

**سوال:** که چېرته د کرنې زمکه چا ته په کرایې باندې ورکړ شي کوم چه له کرنې پرته په نورو ضروریاتو کښې هم استعمالیدلی شي نو آیا د زمکې په مالك باندې عُشر واجبیږي او که زکات ئې پرې لازمیږي؟

**الجواب:** د کرنې زمکه که چېرته په کرایې باندې ورکړ شي نو که چېرته ئې کرایه د نصاب له اندازې سره برابره یا ترې زیاته وي نو د کال په تیریدو سره ئې په مالك زکات واجبیږي نه عشر۔ که چېرته د نصاب له اندازې څخه ئې کرایه کمه وي او مالك ئې د نور نصاب خاوند هم نه وي نو زکات پرې نه واجبیږي۔



قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان غصب عشریة فزرعها ان لم تنقصها الزراعة فلا عشر علی المالك، و ان نقصتها فا لعشر علی المالك کانهٔ آجرها با لنقصان. (رد المحتار ج۲، ص۳۳۳، باب العشر)

قال العلامة زین الدین ابن نجیمؒ: و فی الارض المغصوبة علی الغاصب ان لم تنقصها الزراعة و ان نقصتها فعلی رب الارض. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر) و مثله فی الهندیؒ ج۱، ص۱۸۷، باب السادس فی زکٰوة الزروع و الثمار.

## په غصب باندې د عُشر وجوب

**سوال:** په کومه زمکه باندې د غاصبانه قبضې په نتیجه کښې چه کوم حاصلات تر لاسه کیږي آیا عُشر پرې واجبیږي او که نه او آیا د اعشر به اصل مالك ادا کوي او که غاصب؟

**الجواب:** د عشر د وجوب لپاره د زمکې مملوك والی ضروری نه دی بلکه د آمدنی (حاصلاتو) مالك والی ضروری دی۔ د دې لپاره له مغصوبه زمکې څخه چه څومره حاصلات د غاصب سره جمع کیږي عُشر ئې په غاصب باندې لازمي دی۔ البته د عشر په ادا کولو سره د زمکې حاصلات نه ورته حلالیږي۔ البته که چېرته غاصب ټول حاصلات د زمکې مالك ته ورکړه نو بیا به په مالك باندې عُشر واجب وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان غصب عشریة فزرعها ان لم تنقصها الزراعة فلا عشر علی المالك و ان نقصتها فا لعشر علی المالك کانهٔ آجرها با لنقصان. (رد المحتار ج۲، ص۳۳۳، باب العشر)

قال العلامة زین الدین ابن نجیمؒ: و فی الارض المغصوبة علی الغاصب ان لم تنقصها الزراعة و ان نقصتها فعلی رب الارض. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العُشر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، باب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار.

## د ګډ مال عارضي ویش د زکات ساقطوونکی نه دی

**سوال:** زمونږ د څلورو ورونو ګډه سرمایه ۱۸۰، میږې دي او له تولې زمکې څخه یو اځي شل منه غنم لاس ته راځي۔ آیا په مونږ باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** شریك مال که چېرته په تقسیمولو سره د هر یوه برخه نصاب ته رسیدله نو په هر یوه باندې د خپلې برخې زکات لازم دی۔ لکه څرنګه چه د میږو شرعي نصاب څلویښت میږې دي او له تقسیم څخه وروسته هر یو ورور د نصاب خاوند جوړیږي نو ځکه زکات په هر یوه واجب دی۔

قال شیخ الاسلام محمد بن عبد الله التمرتاشی الحنفیؒ: نصاب الغنم ضأنا او معزاً اربعون و فیها شاة و فی مائة و احدی و عشرین شاتان و فی مائتین و واحدة ثلاث شیاة و فی اربعمائة اربع شیاة. (متن الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۱، باب فی الغنم)

و فی الهندیة: لیس فی اقل من اربعین من الغنم السائمة صدقة فاذا کانت اربعین سائمة و حال علیه الحول ففیها شاة الی مائة و عشرین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۸، فصل الرابع فی زکٰوة الغنم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۱۶، فصل فی الغنم.

## په داسې زمکې کښې د زکات حکم چه د کرنې قابله نه وي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! کومه زمکه چه د کرنې قابله نه وي په هغې باندې نه عشر واجب دی او نه زکات په داسې حال کښې چه کرنې په وړ زمکې باندې عُشر واجب دی۔ لیکن کوم سړی چه په بانك کښې یو لك روپۍ جمع کوي او د بانك له خوا څخه کلنۍ ګټه ورکول کیږي نو لکه څرنګه چه په اصل زمکې باندې زکات نشته بلکه په حاصلاتو باندې ئې شته۔ همدا رنګه باید چه په بانك کښې په جمع شویو یو لك روپو باندې زکات نه وای بلکه د دې یو لك په ګټلو شویو روپو باندې وای۔ د مقدس شریعت په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وفرمایۍ؟

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې په اصل روپو او ګټې باندې ئې یعنې په ټولو باندې زکات واجب دی او د دې روپو په زمکې باندې قیاسول غلط دي ځکه چه دا روپۍ پخپله ثمن دي او زمکه پخپله ثمن نه دي۔ رائج اثمان د تجارت په مال کښې داخل دي او زمکه نه ده داخله او همدا رنګه زمکه نامي هم نه ده۔ له دې وجهې په روپو کښې که اصل وي او که ئې ګټه زکات پرې لازم دی۔

لما قال العلامة الکاسانیؒ: فان کانت اثماناً رائجة او کان یمسکها للتجارة یعتبر قیمتها فان بلغت قیمتها مائتی درهم من ادنی الدراهم التی تجب فیه الزکٰوة و هی التی الغالب علیها الفضة تجب فیه الزکٰوة و الاّ فلا و ان لم تکن اثماناً رائجة ولا معدة للتجارة فلا زکٰوة فیها. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۷، فصل الاثمان المطلقة)

و قال الشیخ النظامؒ: الدراهم اذا کانت مغشوشة فان کان الغالب هو الفضة..... فینظر ان کانت رائجة او نوی التجارة اعتبرت قیمتها فان بلغت نصاباً من ادنی الدراهم التی تجب فیها الزکٰوة و هی التی غلبت فضتها وجبت فیها الزکٰوة و الا فلا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۹، کتاب الزکٰوة، الثالث فی زکٰوة الذهب و الفضة)

## پوره کال په پاتې شویو غنمو کښې د زکات حکم

**سوال:** له یوه سړي سره ډېر غنم دي او په پنځه ویشتو منو باندې ئې پوره کال تیر شوی دی آیا په دغو غنمو باندې زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** چه کله غنم د تجارت لپاره نه وي نو زکات پکښې فرض نه دی ځکه چه په غنمو کښې نمو نه لیدل کیږي او له غنمو څخه چه یو ځل عشر ادا شي نو د بیا لپاره د کال په تیریدو سره زکات نه پرې واجبیږي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و خرج ایضاً ما اذا دخل من ارجة حنطة تبلغ قیمتها قیمة نصاب و نوی ان یمسکها و یبیعها فامسکها حولاً لا تجب فیها الزکٰوة کما فی المیراث. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۹، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لا تصح نیة التجارة) لانها لا تصح الا عند عقد التجارة فلا تصح فیما ملکه بغیر عقد کارث و نحوه کما سیاتی و مثله الخارج من ارضه لان الملك یثبت با لذوات و لا اختیار له فیه و نوی فیه قال فی البحر و خرج ای بقید العقد ما اذا دخل حنطة تبلغ قیمتها نصاباً و نوی ان یمسکها و یبیعها فامسکها حولاً لا تجب فیها الزکٰوة کما فی المیراث. (رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۷۲، کتاب الزکٰوة.



## عُشر په اخیستونکي باندې واجب دی او که په خرڅوونکي باندې؟

**سوال:** که چېرته د زمکې مالك خپل کښت په کوم تیکدار خرڅ کړي او هغه ته ئې ور وسپاري نو د زمکې له حاصلاتو څخه عُشر یا نیم عشر به د چا ذمه واري وي د زمکې د مالك او که د تیکدار؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې که چېرته کښت د فصل له تیاریدو څخه وروسته خرڅ کړی شي نو د عُشر ذمه وار به ئې د زمکې مالك یعنې خرڅوونکی وي لیکن د اومه کښت د خرڅولو په صورت کښې به عُشر په اخیستونکي باندې واجب وي۔

لما قال فی الهندیة: و اذا باع الارض العشریة و فیها زرع قد ادرك مع زرعا او باع الزرع خاصة فعشره علی البائع دون المشتری و لو باعها و الزرع بقل ان قصه المشتری فی الحال یجب علی البائع و لو ترکه حتی ادرك فعشره علی المشتری. (الهندیة ج۱، ص۱۸۷، کتاب الزکٰوة، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار)

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو باع الزرع ان قبل ادرکه فا لعشر علی المشتری و لو بعده فعلی البائع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۳، باب العشر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۶/۵۷، فصل شرائط الفریضة.

## د غره په حاصلاتو کښې د عشر مسئله

**سوال:** د غرونو پخپله په شنو شویو ونو کښې میوه لرونکې ونې هم وي لکه اخروټ، څنغوزي او داسې نور۔ نو آیا په دغو شیانو باندې عشر واجب دی او که نه؟ ځکه چه مالیت ئې په کافي اندازې باندې وي؟

**الجواب:** په غرونو کښې پخپله له شنو شویو ونو څخه چه کوم حاصلات لاس ته راځي نو چه څوك دا حاصلات تر لاسه کوي عُشر به ئې پرې واجب وي۔

لما قال فی الهندیة: و ما یجمع من اثمار الاشجار التی لیست بمملوکة کاشجار الجبال یجب فیها العشر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، کتاب الزکٰوة، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله کذا یجب العشر فی ثمرة جبل او مفازة ان حماه الامام) و یجب العشر و لو کان الشجر غیر مملوك و لم یعالجه احد...... فان ثمر الجبال مباح لا یجوز منع المسلمین عنه و قال ابو یوسف رحمه الله لا شیء فیما یوجد فی الجبال لان الارض لیست مملوکة و لهما ان المقصود من ملکها النماء و قد حصل. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۵، باب العشر) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۹۱، الباب الثالث فی العشر و الخراج و لجزیة.

## په مزارعت کښې د عشر وجوب

**سوال:** یوه سړي خپله زمکه کوم بزګر ته په مزارعت باندې ورکړې ده او د معاهدې مطابق آمدني یعنې حاصلات به د زمکې مالك او بزګر پخپل منځ کښې سره تقسیموي۔ نو په دې صورت کښې عُشر یا نیم عشر به په چا باندې واجب وي؟

**الجواب:** په مروج مزارعت کښې په عمومي توګه حاصلات د زمکې په مالك او بزګر باندې په

تاکل شویو برخو باندې تقسیم شوي وي چه یوه خوا هم د زیاتي کمي قطعي علم نه لري- د دې لپاره په هر یوه باندې د خپلې خپلې برخې عشر یا نیم عشر ادا کول لازم دي- او د دې گنجائش هم پکښې شته چه له مجموعي حاصلاتو څخه عشر په مشترکه توګه ادا کړي او که له تقسیم څخه وروسته هر یو د خپلې خپلې برخې عشر ادا کاوه نو دا هم جائز دي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و بقولهما ناخذ و فی المزارعة ان کان البذر من رب الارض فعلیه و لو من العامل فعلیهما با لحِصَة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۴، باب العشر)

و فی الهندیة: و فی المزارعة علی قولهما العشر علیها با لحصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر.

## د میوې او د اسې نورو حاصـــــلاتو تر پخیدو مخکښې د خرڅولو په صورت کښې د عُشر مسئله

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې د منو او د اسې نورو میوو ډیر د اسې باغونه دي چه د میوې تر ښکاریدو مخکښې خرڅیږي، بیا تر پخیدو پورې دا میوې د مالکانو په باغونو کښې پریښودل کیږي- چه کله پخې شي او تیارې شي نو له دې ځای څخه نورو ځایونو ته د خرڅولو لپاره وړي- آیا د دغو باغونو عشر په مالك باندې وي او که په اخیستونکو باندې؟ بینوا توجروا-

**الجواب:** په میوو باندې هغه وخت عشر واجبیږي چه کله په ونو کښې ښکاره شي او تر پخیدو پورې له خرابیدو او ضائع کیدو څخه محفوظ پاتې شي-

قال ابن عابدینؒ: قال فی الجوهرة النیرة و اختلفوا فی وقت العشر فی الثمار والزرع. فقال ابو حنیفةؒ و زفرؒ یجب عند ظهور الثمرة و الامن علیها من الفساد. (رد المحتار ج۲، ۳۳۱، باب العشر)

لیکن مروجې بیعې فاسدې دي او په بیع فاسد کښې قبل القبض مفید للملك نه وي له دې وجهې به عشر په خرڅوونکي باندې وي او که چېرته بائع مشتري ته ور سپارلی وي نو بیا به عشر په مشتري یعنې اخیستونکي باندې وي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لو باع الزرع ان قبل ادراکهٖ فا لعشر علی المشتری و لو بعده فعلی البائع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۳، باب العشر)

و فی الهندیة: و لو باعها و الزرع بقل ان فصله المشتری فی الحال یجب علی البائع و لو ترکه حتٰی ادرك فعشره علی المشتری. (الفتاوی الهندیُ ج۱، ص۱۸۷، الباب السادس فی زکٰوة الزرع الثمار) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۷، فصل و اما شرائط الفرضیة.

## په بل ځای کښې د حاصلاتو د خرڅولو په صورت کښې د عشر د ادا کولو مسئله

**سوال:** که چېرته یو څوك خپل حاصلات بل ځای ته ولیږي او چېرته ئې چه قیمت زیات وي هلته ئې خرڅ کړي نو عشر به له کوم حساب څخه ادا کوي؟ څکه چه په مقامي توګه ئې قیمت کم وي؟



**الجواب:** بهتره دا ده چه له فصل څخه په سمدستي توګه عشر ادا کړيٌ تر څو چه ذمه زر تر زره فارغه شي لیکن که چېرته یو چا خپل د زمکې حاصلات د اسې ځای ته ولیږل چه هلته په ښه بیه خرڅیدل نو د هغو قیمت په اعتبار سره به عشر یا نیم عشر ادا کوي- کرایه، محصول او د اسې نور د عشر له ورکولو څخه مخکښې له جمله حاصلاتو څخه ایستل جائز نه دي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یقوّم فی البلد الذی المال فیه. و فی رد المحتار فلو بعث عبدا للتجارة فی البلد الذی فیه العبد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۶، باب زکٰوة الغنم)

ایضا قال ابن عابدینؒ: تحت قوله بلا رفع مؤن ای یجب العشر فی الاول و نصفه فی الثانی بلا رفع اجرة العمّال و نفقة البقر و کری الانهار و اجرة الحافظ و نحو ذٰلك. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۸، باب العشر)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و یقوّمها المالك فی البلد الذی فیه المال حتٰی لو بعث عبداً للتجارة الی بلد اخری لحاجة فحال الحول تعتبر قیمته فی ذٰلك البلد الخ. (فتح القدیر ج۲، ص۱۶۷، فصل فی العروض)

و ایضاً قال و لا یحتسب فیه امر العمال و نفقة البقر و کری الانهار و اجرة الحارس و غیره ذٰلك. (فتح القدیر ج۲، ص۱۹۴، باب زکٰوة الزرع و الثمار) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، الفصل الثانی فی العروض، و البحر الرائق ج۲، ص۲۳۸، باب العشر.

## د حاصلاتو د خرڅولو په صورت کښې عشر په چا واجب دی

**سوال:** که چېرته یو څوك خپل کښت له ریبلو څخه مخکښې په بل سړي باندې خرڅ کړي نو د فصل تر ریبلو وروسته به عشر د چا په غاړه وي؟

**الجواب:** که چېرته چا خپل کښت له پخیدو څخه مخکښې خرڅ کړ او د مشتري په ملکیت (تر لاس لاندې) تر کمال پورې ورسیږي نو د عشر ادا کول ئې هم په مشتري باندې لازم دی- البته که چېرته کښت له پخیدو وروسته خرڅ کړی شي نو بیا به ئې عشر په بائع یعنې خرڅوونکي باندې واجب وي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لو باع الزرع ان قبل ادراکه فا لعشر علی المشتری و لو بعده فعلی البائع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۳، باب العشر)

و فی الهندیة: و لو باعها و الزرع بقل ان فصله المشتری فی الحال یجب علی البائع و لوترکه حتٰی ادرك فعشره علی المشتری. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۷، فصل و اما شرائط الفرضیة.

## په اجاره باندې د ورکړل شوې زمکې عشر په چا واجب دی؟

**سوال:** که چېرته زمکه په اجاره باندې ورکړی شي یعنې د زمکې مالك له بزګر سره دا فیصله وکړي چه مثلاً ما ته د کال في جریب پنځه سوه روپۍ یا پنځه منه غنم راکوه نور چه ته څه غواړې له زمکې هم هغسې کار اخیستلی شې- اوس په دې صورت کښې چه کوم حاصلات تر

لاسه کیږي عشر به ئې چا باندې واجب وي؟

**الجواب:** په دې مسئله کښې اختلاف دی، د امام ابو حنیفهؒ په نزد عشر د زمکې په مالك باندې دی په داسې حال کښې چه د صاحبینوؒ په نزد عشر د بزګر په ذمې باندې دی. عامو فقهاوو د صاحبینوؒ قول راجح بولې. علامه ابن عابدینؒ په دې کښې د اسې تفصیل را نقل کړی دی چه که چیرته د زمکې اجاره د اجرِ مثل سره برابره وي نو یعنې لکه څرنګه چه زمکه وي د هغې په مناسبت سره اجرت تاکل شوی وي نو عشر به ئې په مالك د زمکې باندې وي او که چیرته اجاره له اجرِ مثل څخه کمه تاکل شوې وي نو عشر به ئې په کرونکې یعنې بزګر باندې وي لیکن بهتره د اده چه د ا مسئله په عام عُرف باندې پریښودل شي که چیرته د علاقې د رواج مطابق د زمکې په مالك باندې عُشر وي نو بیا دې د زمکې له مالك څخه عشر واخیستل شي او که په کرونکي باندې وي نو له کرونکي څخه دې واخیستل شي. لکه څرنګه چه زمونږ په علاقې کښې د کرونکي حاصلات زیات وي د دې لپاره د صاحبینوؒ د قول له مخې عشر به ئې کرونکی اد اکوي.

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و العشر على المؤجر كخراج موظف و قالا على المستاجر كمستعير مسلم و فى الحاوى و بقولهما ناخذ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۴، باب العشر)

و فى الهندية: و لو آجر ارضا عشرية كان العشر على الآجر عند ابى حنيفةؒ و عندهما على المستاجر. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۷، الباب السادس فى زكوٰة الزرع و الثمار) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر.

## په شوتلو باندې د عشر د وجوب حکم

**سوال:** که چیرته یوه سړي پخپلې زمکې باندې شفتله کرلې وي نو لکه څرنګه چه شفتله څو څو ځلې ریبل کیږي او بیا را پورته کیږي. نو آیا هر ځل به ئې عشر اد اکوي او که یو ځل اد اکول ئې کافي دي؟

**الجواب:** د شفتلې په کرلو باندې لکه څرنګه چه زمکه مشغوله لیدل کیږي له دې وجهې په هغې کښې عُشر یا نیم عشر اد اکول ضروري دي. بیا لکه څرنګه چه بار بار ریبل کیږي له دې وجهې تولو حاصلاتو ته دې حساب وکړي او عشر دې اد اکړي او که نه وي نو هر ځل دې په جلا جلا توګه عشر اد اکړي.

لما قال ابى بكر بن على بن محمدؒ: اما اذا اتخذ ارضه مقصبة او شجرة او منبتاً للحشيش و ساق اليه الماء و منع الناس منه يجب فيه العشر. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب زكوٰة الزرع الثمار)

قال العلامة ابن عابدينؒ (تحت قوله الا فيما لا يقصد و) ....... و ان المدار على القصد حتى لو قصد به ذلك وجب العشر

## په ګنیو (ګنډیریو) کښې د عشر د وجوب حکم

**سوال:** له ګنډیریو څخه که چیرته ګړه جوړه شي نو د هغو به عشر یا نیم عشر ورکول کیږي نو که چیرته ګنډیري د بورې په میل باندې خرڅ کړی شي نو د عشر د اد اکولو طریقه به ئې څرنګه وي؟ بینوا توجروا.



**الجواب:** ګنډیري د زمکې مستقله آمدني ده د دې لپاره په ګنیو کښې عشر یا نیم عشر اد اکول ضروري دي. البته که چیرته ګنډیري په میل باندې خرڅ کړی شي نو عشر به ئې له قیمت څخه اد اکیږي او که نه وي نو د ګړې تر جوړولو وروسته به ئې له جنس یا قیمت څخه عشر اد اکوي. د ا خبره یاده ساتې چه له قیمت څخه د عشرِ د اد اکولو په صورت کښې د خرڅ او مصرف روپۍ ترې جلا کول جائز نه دي بلکه له تول قیمت څخه به عشر اد اکیږي.

لما قال الشيخ الاسلام ابى بكر بن على بن محمدؒ: و اما قصب فهو ثلثة انواع قصب السكر و قصب الذريره و القصب الفارسى قصب السكر و قصب الذريره فيهما العشر. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب زكوٰة الزرع و الثمار)

قال الامام برهان الدين المرغينانيؒ: اما قصب السكر و قصب الذريرة ففيهما العشر لانه يقصد بهما اشتغال الارض بخلاف العسف و التين لان المقصود الحب. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۹۰، باب زكوٰة الزرع و الثمار) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۷، باب العشر.

## له ګړې یا د هغې له قیمت څخه د عشر اد اکولو حکم

**سوال:** له ګنیو څخه د ګړې د جوړولو په صورت کښې آیا بزګر به له ګړې څخه عشر اد اکوي او که قیمت به ئې ورکوي په د اسې حال کښې چه په د واړو کښې فرق وي؟

**الجواب:** کومه زمکه چه په کوهي یا ارهټ باندې اوبه کیږي له هغې څخه به نیم عشر او له باراني زمکې څخه به عشر اد اکوي او له ګړې یا د هغې له قیمت له د واړو څخه عشر اد اکول جائز دي. د مثال په توګه په شل منه ګړې کښې یو من یا د یو من ګړې قیمت د عشر په توګه ورکول ضروري دي.

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانيؒ: و ما سقى بغرب او دالية او سانية ففيه نصف العشر على القولين لان المؤنة تكثر فيه و تقل فيما يسقى بالسماء او سيحاً و ان سقى سيحاً او بدالية فا لمعتبر اكثر السنة كما مر فى السائمة. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۹۰، باب زكوٰة الزرع و الثمار)

قال شيخ الاسلام ابى بكر بن على بن محمدؒ: و ما سقى بغرب او دالية او سانية ففيه نصف العشر الدالية الدولاب و السانية البعير الذى يستقى به الماء. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۴، باب زكوٰة الزرع و الثمار) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۸، باب العشر.

## په (مونګ پلي) ممپلي باندې د عشر د وجوب حکم

**سوال:** ممپلي کوم چه اکثره په باراني زمکو کښې کرل کیږي او فصل ته ئې د اوبو خاص ضرورت هم نه وي نو آیا په ممپلو باندې نیم عشر واجب دی او که پوره عشر؟

**الجواب:** لکه څرنګه چه د ا فصل په عمومي توګه د باراني زمکو له حاصلاتو څخه وي د دې لپاره په ممپلو کښې به عشر واجب وي.

لما قال فى الهندية: و يجب العشر عند ابى حنيفةؒ فى كل ما تخرجه الارض من الحنطة و الشعير و الدخ

و الارز و اصناف الحبوب و البقول و الرياحين و الاوراد و الرطاب و قصب السكر و الذريرة و البطيخ و الخيار و القثاء و البادنجان و العصفر و اشباه ذٰلك مما له ثمرة باقية او غير باقية قل او كثر......... و لا تحسب اجرة العمال و نفقة البقر و كرى الانهار و اجرة الحافظ و غير ذٰلك فيجب اخراج الواجب من جميع ما اخرجته الارض نصفاً او عشراً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۸۶، كتاب الزكوٰة، الباب السادس فى زكوٰة الزرع و الثمار)

قال الامام برهان الدين المرغينانيؒ: و كل شیء اخرجته الارض مما فيه العشر لا يحتسب فيه اجر العمال و نفقة البقر. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۹۴، باب زكوٰة الزرع و الثمار) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۳۸، باب العشر.

## د تمباکو عشر په کوم وخت کښې ادا کيږي

**سوال:** د تمباکو عشر له شنو پاڼو څخه ورکول کيږي او که د هغو له قيمت څخه؟ په د اسې حال کښې چه په بتۍ (هغه ځای چه شيان پکښې د اور په ذريعه پخيږي) کښې د تمباکو په پخولو باندې ډير مصرف راځي نو له دې وجهې د تمباکو له شنو پاڼو څخه عشر ادا کول صحيح دي او که په بتۍ کښې تر پخولو وروسته صحيح دي؟

**الجواب:** په مقدس شريعت کښې عشر په اصل کښې له هغو حاصلاتو څکه ورکول کيږي چه له زمکې څخه لاس ته راغلي وي۔ هو! که چيرته څوك ئې قيمت ورکول غواړي نو لومړی دې عشر جلا کړي او وروسته د علاقې مروجه قيمت ولګوي او مساکينو ته دې ورکړي۔ او که چيرته له پخيدو څخه مخکښې عشر ادا نه کړي نو تر پخيدو وروسته به له ټولې تمباکو څخه عشر يا نيم عشر ورکول واجب وي او خرڅه او مصرف نه ترې منفي کيږي۔

لما قال الامام برهان الدين المرغينانيؒ: قال ابو حنيفةؒ فى قليل ما اخرجته الارض و كثيره العشر سواء سقى سيحاً او سقت السماء. (الهداية على صدر فتح القدير ج۲، ص۱۸۶، باب زكوٰة الزرع و الثمار)

قال الشيخ ابى بكر بن على بن محمدؒ: قال ابو حنيفةؒ فى قليل ما اخرجته الارض و كثيره العشر حد القليل الصاع و ما دونه لا شیء فيه و قيل حده نصف صاع و المراد با لارض هنا العشرية. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب زكوٰة الزرع الثمار) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج، ص۲۷۶، كتاب الزكوٰة، فصل فى العشر.

## د کور په منځ کښې په ميوه لرونکو ونو عشر واجب نه دی

**سوال:** که چيرته يوه سړي د کور په منځ کښې څه ميوه لرونکې ونې لګولې وي نو آيا د دغو ونو په ميوې کښې عشر واجب دی او که نه؟

**الجواب:** د کور په منځ کښې که چيرته ميوه لرونکې ونې، سبزي او د اسې نور شيان کرل شوي وي نو عشر پرې واجب نه دی۔ ځکه چه دا شيان د کور تابع ګڼل کيږي۔

لما قال طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: رجل فى داره شجرة مثمرة لا عشر فيها و ان كانت البلدة عشرية بخلاف ما اذا كانت فى الاراضى. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۴۷، الفصل العاشر فى العشر و الخراج)

قال فى الهندية: و لو كان فى دار رجل شجرة مثمرة لا عشر فيها. (الفتاوى الهندية ج۱، ۱۸۶، كتاب الزكوٰة، الباب السادس فى زكوٰة الزروع و الثمار)



## د مزروعه (کرل شوې) زمکې شاوخوا ته په ميوه لرونکو ونو کښې د عشر د وجوب مسئله

**سوال:** که چيرته په زمکې باندې په باقاعده توګه څه کرل شوي وي او شاوخوا ته ئې ميوه لرونکې ونې لګولې وي چه ډيره ميوه او حاصلات ترې لاس ته ورځي نو آيا په دغو ميوو باندې به عشر وي او که نه؟

**الجواب:** که چيرته زمکه د زراعت (کرنې) قابله وي او مستقل باغ نه وي نو د مزروعه زمکې په حکم کښې په راتلو سره د ونو په حاصلاتو کښې ئې عشر واجب نه دی۔

لما قال الامام حافظ الدين محمد بن محمد بن شهابؒ: و البستان ما يحوطه حائط فيه نخيل متفرقة يمكن الزراعة وسط الاشجار و ان كانت الاشجار ملتفة لا يمكن الزراعة فى وسطها فهى كترم و ليس فى الاشجار التى على المسناة شیء. (البزازية على هامش الهندية ج۴، ص۹۱، الباب الثالث فى العشر و الخراج)

قال فى الخلاصة الفتاوىٰ: و البستان كل محوط فيه اشجار متفرقة يمكن زراعه ما وسط الاشجار و ليس فى اشجار التى على المسناة شیء فان كانت الاشجار ملتفة لا يمكن زراعة ارضها فهى كرم. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۴۶، الفصل العاشر فى العُشر و الخراج) و مثله فى الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۵۳، باب العشر.

## د ونو په پاڼو کښې د عشر حکم

**سوال:** که چيرته په کومې علاقې کښې د ونې پاڼې خرڅيدلې نو آيا عشر يا نيم عشر به پکښې واجب وي او که نه؟

**الجواب:** د عشر د وجوب لپاره د استمناء قصد او نيت شرط دی۔ لکه څرنګه چه د ونې پاڼې مقصد بالزرع (د کرنې مقصد) نه وي د دې لپاره د پاڼو په حاصلاتو کښې عشر واجب نه دی۔

قال ابن نجيمؒ: و ان يكون الخارج منها مما يقصد بزراعة نماء الارض الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر) البته که چيرته د زمکې تيارول او دونو کرل په همدې مقصد باندې وي نو بيا په پاڼو کښې به هم عشر واجب وي۔

قال على ابن ابى بكر المرغينانيؒ: اما الحطب و القصب و الحشيش لا تستنبت فى الجنان عادة بل تنقّى عنها حتٰى لو اتخذها مقصبة او مشجرة او منبتا للحشيش يجب فيها العشر. (الهداية ج۱، ص۱۸۴، باب زكوٰة الزرع و الثمار)

قال ابن عابدينؒ: فلو استمنٰى ارضه بقوائم الخلاف و اما شبهه او با لقصب او الحشيش و كان يقطع ذٰلك و يبيعه كان فيه العشر. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۷، مطلب مهم فى حكم اراضى مصر و الشام، باب العشر) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۸۶، الباب السادس فى زكوٰة الزرع و الثمار.

## په پروړې باندې عشر واجب نه دی

**سوال:** ډير وارې له غنمو څخه د پروړې قيمت زيات وي۔ آيا په د اسې صورت کښې په پروړې کښې د عشر ادا کول ضروري وي او که نه؟

**الجواب:** د کوم مقصد لپاره چه فصل کرل کیږي یعني کوم شی چه مقصود بالزرع وي نو عشر به له هغه شي څخه ادا کیږي۔ له دې پرته په ضمني توګه چه کوم شی تر لاسه کیږي اګر که ئې قیمت تر اصل شي زیات وي عشر یا نیم عشر پکښې واجب نه وي۔ لکه څرنګه چه د غنمو او میو (یو ډول شنې دانې دي چه اکثره له وریجو سره پخیږي) له کرنې څخه مقصد غنم او مې (یو ډول شنې دانې دي) وي د دې لپاره د دوی په پروړې یا وښو کښې عشر واجب نه وي۔

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: اما الحطب و اقصب و الحشیش لا تستنبت فی الجنان عادة بل تنقی عنها حتٰی لو اتخذها مقصبة او مشجرة او منبتا للحشیش یجب فیها العشر. (الهدایة ج۱، ص۱۸٤، باب زکٰوة الزروع و الثمار)

قال العلامة الحصکفیؒ: الا فیما لا یقصد به اشتغال الارض (نحو حطب و قصب) فارسی و (حشیش) و تبن و سعفه الخ. حتٰی لو اشتغل ارضه بها یجب العشر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۷، باب العشر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸٦، باب السادس فی زکٰوة الزروع و الثمار.

## په سبزیو کښې د عشر وجوب

**سوال:** ځینې سبزۍ داسې وي چه پوره کال نه ساتل کیږي او ډیر زر خرابیږي۔ آیا له زمکې څخه د داسې سبزیو د حاصلاتو په اخیستو سره عشر واجبیږي او که نه؟

**الجواب:** د امام ابو حنیفةؒ په نزد د عشر یا نیم عشر د وجوب لپاره د زمکې د حاصلاتو تر یو څه مودې پورې پاتې کیدل ضروري نه دي۔ د دې لپاره کوم حاصلات چه له زمکې څخه تر لاسه کیږي په هغو کښې عشر یا نیم عشر به واجب وي که د اوږدې مودې پورې د پاتې کیدو صلاحیت ولري او که نه۔ په موجوده زماني کښې د دغو سبزیو د لویو لویو ګودامونو په ذریعې سره تر ډیرې مودې پورې ساتل کومه لرې خبره نه ده۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله بلا شرط نصاب و بقاء) فیجب فیما دون النصاب بشرط ان یبلغ صاعاً و قیل نصفه و فی الحضروات التی لا تبقی هٰذا قول الامام و هو الصحیح. (رد المحتار ج۲، ص۳۲٦، باب العشر)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: فاما کون الخارج مما له ثمرة باقیة فلیس بشرط لوجوب العشر بل یجب سواء کان الخارج له ثمرة باقیة او لیس لهٗ ثمرة باقیة و هی الخضروات کالبقول و الرطاب و الخیار و الفثاء و البصل و الصوم و نحوها. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸٦، الباب السادس فی زکٰوة الزروع و الثمار)

## په افیونو کښې د عشر د وجوب مسئله

**سوال:** آیا د افیونو له حاصلاتو څخه عشر یا نیم عشر ادا کیږي او که نه؟

**الجواب:** افیون د ګنو ضرر لرونکو شیانو ماده ده د دې لپاره د افیونو له زراعت او تجارت څخه علی سبیل التمول پرهیز ضروري دی۔ البته که چیرته د تداوي په نیت سره وي نو بیا ئې کرل او کاروبار جائز دی۔ له زمکې څخه د حاصلاتو په وخت کښې لکه څرنګه چه نیت بالزراع وي



د دې لپاره د عشر ادا کول پکښې لازمي خبره ده۔

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: قال ابو حنیفةؒ فی قلیل ما اخرجته الارض و کثیره العشر سواء سقٰی سیحا او سقته السماء الا القصب و الحطب و الحشیش. (الهدایة ج۱، ص۲۰۱، باب زکٰوة الزرع و الثمار)

و فی الهندیة: و یجب العشر عند ابی حنیفةؒ فی کل ما تخرجه من الحنطة...... و شباه ذٰلك مما لهٗ ثمر باقیة او غیر باقیة قل او کثر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸٦، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۲۹۱، باب العشر.

## په پوروړي باندې هم عشر واجب دی

**سوال:** که چیرته یو څوك پوروړی وي نو آیا په دې صورت کښې هم عشر پرې واجب وي او که پور د عشر ساقطوونکی دی؟

**الجواب:** پور اګر که د زکات د وجوب لپاره مانع دی لیکن د عشر د وجوب لپاره مانع نه دی د پوروړي توب سره سره به عشر ادا کوی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یمنع الدَّین وجوب العشر و خراج و کفارة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲٦۱، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و قید المصنف با لزکٰوة لان الدَّین لا یمنع وجوب العشر و الخراج و یمنع صدقة الفطر. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰٦، کتاب الزکٰوة)

## په خیریه کارونو کښې د عشر د روپو د لګولو حکم

**سوال:** آیا د عشر روپۍ په خیریه کارونو کښې لګول کیدلی شي او که نه؟

**الجواب:** عشر له واجبو صدقاتو سره تړلی دی چه په هغه کښې د بل تملیك شرط دی۔ لکه څرنګه چه په خیریه کارونو کښې تملیك نه لیدل کیږي د دې لپاره په خیریه کارونو کښې د عشر روپۍ نه شي لګول کیدلی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: هی تملیك خرج الاباحة فلو اطعم یتیما ناویا الزکٰوة لا یجزیه الا [illegible] دفع الیه المطعوم..... جزء مال خرج المنفعة عینه الشارع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵٦، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: هی تملیك المال من فقیر مسلم غیر هاشمی و لا مولاه یشترط قطع المنفعة [illegible]ن الملك من کل وجه الله تعالی لقوله تعالٰی: وَ اٰتُوا الزَّکٰوةَ. و ایتائهم التملك و مراده تملیك جزء من ماله و هو ربع العشر او ما یقوم مقامه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۱، کتاب الزکٰوة)

## په ګبینو (شهدو) کښې عشر واجب دی او که زکات؟

**سوال:** زه د شاتو (ګبین) مچۍ لرم چه له مخې ئې د شاتو کاروبار کوم آیا په شاتو کښې عشر واجب دی او که زکات؟

**الجواب:** فقهاء کرامو په مطلق ډول سره په شاتو کښې د عشر خبره کړې ده۔ په دې کښې د

ځنګلي او کورني مچیو کوم قید نشته۔ د دې لپاره په تاسو باندې شهد یا شاتو عشر ادا کول لازمي دي۔

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: ثم انما یجب العشر فی العسل اذ کان فی ارض العشر فاما اذا کان فی ارض الخراج فلا شیء فیه. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶۲، قبل فصل مقدار الواجب)

قال العلامة الحصکفیؒ: یجب العشر فی عسل و ان قل ارض غیر الخراج و لو غیر عشریة کجبل و مفازة بخلاف الخراجیة لئلا یجتمع العشر و الخراج. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۵، باب العشر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، باب زکوٰة الزرع و الثمار)

البته که چېرته مچې په خراجي زمکې کښې اېښې وي نو بیا عشر پرې لازم نه وي۔

## آیا په کبانو کښې عشر واجب وي؟

**سوال:** حضرت مفتي صاحب! مونږ د کرنې په قابلې زمکې باندې د څه کرلو په ځای د مهیانو (کبانو) د پالنې لپاره یو تالاب (حوض) جوړ کړی دی چه کبان پکښې پالو او بیائې خرڅوو۔ نو آیا د دې ټکړې زمکې عشر به په کومې طریقې سره ادا کوو؟ کبان به پکښې ورکوو او که قیمت ئې؟

**الجواب:** د عشر لپاره د زمکې کر او کښت والی شرط دی، کبان لکه څنګه چه د زمکې له حاصلاتو څخه نه دي د دې لپاره په کبانو کښې عشر نشته۔ البته که چېرته کبان د تجارت په نیت سره وپالل شي او قیمت ئې نصاب ته ورسیږي نو زکات به پرې واجب وي؟

قال الشیخ ابی عبیدؒ: ان لا یأخذ من السمك شیئاً حتیٰ یبلغ مائتی درهم فاذا بلغ مائتی درهم فخذ منه الزکوٰة. (کتاب الاموال لابی عبید ص۳۴۸)

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا فی عین قیر ای زفت نقط دهن یعلوا الماء مطلقاً ای فی ارض عشر او خراج و لکن فی حریمها الصالح للزراعة من ارض الخراج خراج لا فیها لتعلق الخراج با لتمکن من الزراعة و اما العشر فیجب فی حریمها العشر ان زرعه و الا لا لتعلقه با لخارج.

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لا فی عین قیر) لانه لیس من انزال الارض انما هو عین فوارة کعین الماء فلا عُشر فیها و لا خراج. (رد المحتار ج۲، ص۳۳۱، باب العشر)

## د کافر بادشاه له مسلمانانو څخه د مالیې یا عشر وصولولو حکم

**سوال:** که چېرته له یوه مسلمان بزګر څخه کوم کافر بادشاه مالیه یا عشر واخلي نو آیا د مسلمان عشر ادا کیږي او که دوباره ورکول ئې پرې ضروري دي؟

**الجواب:** د کافر حکومت له مسلمانانو څخه د خراج او د اسې نورو شیانو د اخیستلو حق نه لري۔ د دې لپاره کافر حکومت چه کله له مسلمان بزګر څخه عشر یا مالیه واخلي نو د مسلمان بزګر عشر نه ادا کیږي او د عشر دوباره ادا کول پرې لازم دي۔

لما قال العلامة عبد الغفور الهمایونی فی السند: و اما آنچه حکام نصاریٰ می گیرند پس در ادا خراج محسوب نه می گردد لان الکافرین لیس لهم ولایة اخذ الخراج من المسلمین و المؤمنین و ایضاً لیسوا بمصارف الخراج حتیٰ اذا



اذی المسلمون الیهم مالاً بنیة الخراج لا یخرجون عن عهدته لانهم لیسوا بمقاتلین لاهل الحرب و لا دافعین اعداء الاسلام عنهم و عن دارهم بل هم اهل الحرب و اعداء المسلمین و الاسلام اعاننا الله تعالیٰ علیهم و المصرف للخراج المقاتلون لاهل الحرب و رافعوا الاعداء عن دار الاسلام الخ. (سراج الهند فی تحقیق خراج السند بحوالهٔ احسن الفتاویٰ ج۴، ص۳۴۸، باب العشر)

قال العلامة الشیخ اشرف علی التهانویؒ: عشر وخراج از حقوق شرعیه است پس چنانچه انکم تیکس مسقط زکوٰة نیست همچنین محصول سرکاری مسقط این حقوق نباشد. (امداد الفتاویٰ ج۲، ص۷۵، باب العشر)

## د میزونو، چوکیو، د لوبو د سامانونو او د اسې نورو شیانو لپاره په کرل شویو ونو کښې د عشر مسئله

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې خلک ځینې ونې د میزونو، چوکیو، د لوبو د سامانونو او د اسې نورو شیانو د جوړولو لپاره کري۔ آیا په د غو ونو باندې به عشر واجب وي او که نه؟

**الجواب:** اګر که پخپله په ونو باندې عشر نشته لیکن کله چه د پخپله ونې مقصد وګرځول شي نو بیا عشر پکښې واجب دی۔

کما قال الشیخ عبد الحی اللکهنویؒ: المراد ما لا یقصد به استغلال الارض غالباً کا لتبز نعم لو قصد الاستغلال بشیء منها کما اذا اتخذ الجنان مقصبة و مشجرة. (بحوالهٔ جدید فقهی مباحث ج۹، ص۲۳۲)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله حتیٰ لو اشغل ارضه بها یجب بها العشر) فلو استمنیٰ ارضه بقوائم الخلاف و ما اشبهه او با لقصب او الحشیش و کان یقطع ذٰلك و یبیعه کان فیه العشر. (رد المحتار ج۲،ص۳۲۷، باب العشر، مطلب فی حکم اراضیٰ مصر و الشام) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، باب زکوٰة الزرع و الثمار.

## په یو مال کښې د عشر او زکات دواړو یو ځای کیدل

**سوال:** که چېرته یو څوك له حاصلاتو څخه عشر یو ځل ادا کړي او بیا خپل حاصلات خرڅ کړي نو آیا په د غو روپو باندې زکات واجبیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د نقدو د نصاب مالك هم وي؟

**الجواب:** که چېرته نوموړی له مخکښې څخه د نصاب خاوند وي او تر اوسه پورې ئې د خپل نصاب زکات نه وي ادا کړی او د اروپې د زکات له ادا کولو څخه مخکښې په لاس ورغلي نو د غو روپو زکات هم پرې لازمیږي۔

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: اکان له طعام فادی عشره...... او کان لهٔ ارض فادی خراجها........ ثم باعها یضم الی ثمنها اصل النصاب. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۴، فصل شرائط التی ترجع الی الحال)

قال الشیخ الدکتور وهبة الزحیلی: اما المستفاد فی اثناء الحول من جنس المال غیر النتاج و الارباح فیضم الیه و یزکی معه عند الحنفیة تیسیراً علی المزکی. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۷۴۷، المبحث الثانی سبب الزکوٰة الخ)

## د ذاتي استعمال لپاره په کرل شویو سبزیو کښې عشر واجب دی

**سوال:** که چېرته یو بزګر د ذاتي استعمال لپاره سبزي او د اسې نور شیان وکري نو عشر پرې

واجبیږي او که نه؟

**الجواب:** عشر په هر هغه حاصل باندې واجب وي چه له زمکې څخه را پورته کیږي یعنې شنه کیږي که د ځان لپاره وي او که د تجارت او خرڅولو لپاره. نو له دې وجهې د ذاتي استعمال لپاره په کرل شویو سبزیو کښې هم عشر واجب دی.

قال العلامة ابن نجیمؒ: و اما وقته فوقت خروج الزرع و ظهور الثمر عند ابی حنیفةؒ و عند ابی یوسفؒ وقت الادراك. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۷، باب العشر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یؤخذ العشر عند الامام عند ظهور الثمرة و بدو صلاحها. ........ (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۱، باب العشر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۶/۱۸۷، باب زکوٰة الزروع و الثمار.

## پخپله په شنو شویو بوټو او ونو کښې د عشر د وجوب حکم

**سوال:** زمونږ په زمکې کښې پخپله په قدرتي توګه ونې او بوټي ډیر شنه کیږي او مونږ ئې ساتنه کوو او نور خلك ئې له شکولو څخه منع کوو نو آیا د دغو ونو او بوټو عشر په مونږ واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** پخپله په شنو شویو بوټو او ونو کښې اګر که عشر واجب نه وي لیکن کله ئې چه ساتنه وشي او د حاصلاتو ذریعه وګرځي نو بیا عشر پرې واجب دی.

لما فی الهندیة: فلا عشر فی الحطب و الحشیش....... و لو کان یقطعه و یبیعه یجب فیه العشر کذا فی محیط السرخسیؒ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، باب زکوٰة الزرع و الثمار)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله حتیٰ لو اشغل ارضه بها یجب العشر) فلو استمنٰی ارضه بقوائم الخلاف و ما اشبهه او با لقصب او الحشیش و کان یقطع ذٰلك و یبیعه کان فیه العُشر. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۷، باب العشر، مطلب مهم فی حکم اراضی المصر و الشام) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۸۰۵، المطلب الرابع زکوٰة الزرع و الثمار.

## د کرنې د نوې طریقې په عشر باندې اثرات

**سوال:** د نن صبا د کرنې د نوې طریقې په زراعت باندې زیات لګښت راځي لکه سره، دواګانې او داسې نور. نو آیا د دغو اخراجاتو او لګښتونو له کبله په عشر باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ یعنې پوره عشر په نیم عشر بدلیدلی شي او که نه؟ که چېرته نه بدلیږي نو آیا په دواګانو او سرې باندې لګیدلې روپۍ د عشر تر ورکولو مخکښې ترې کمیدلی شي او که نه؟

**الجواب:** د فقهي ذخایرو له معلوماتو څخه څرګندیږي چه د کومې زمکې په حاصلاتو باندې زیات لګښتونه کیږي نو په هغو کښې به نیم عشر واجب وي. او د کومې زمکې په حاصلاتو باندې چه کم لګښتونه کیږي نو لسمه برخه یعنې عشر به واجب وي لیکن د لګښتونو منفي کول ترې جائز نه دي. لهذا د کرنې په جدیدې طریقې باندې د لګښتونو د زیاتوالي تر څنګ له عشر څخه مخکښې د هغو ایستل جائز نه دي. البته عشر به د شلمې برخې په حساب ورکول کیږي.



لما قال العلامة الحصکفیؒ: و تجب فی مسقی سماء و سیح بلا شرط نصاب و بقاء و حولان حول الخ....... و یجب العشر و یجب نصفه فی سقی غرب و دالیة لکثرة المؤنة. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله لکثرة المؤنة) علة لوجوب نصف العشر فیما ذکر. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۶/۳۲۸، باب العشر، مطلب فی حکم اراضی المصر و الشام)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و یجب نصف العشر یجب فیما سقی کا لدوالی (النواعیر) النواضح...... و سبب التفرقة واضح و هو کثرة المؤنة فی ارضی السقی و خفتها فی ارض البعل کما هو الفرق بین الماشیة المعلوفة و السائمة الخ. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۸۱۳، المطلب الرابع زکوٰة الزروع و الثمار، خامسا مقدار الواجب و صفته.

## په مقصودي فصل باندې عشر واجب دی

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې جوار او داسې نور ډیر کرل کیږي او له دې څخه د بزګر مقصد جوار نه وي بلکه وابنه ئې وي کوم چه د څناورو لپاره ډیر کار ورکوي. نو مقصود با لذات شی خو فصل وي نه وابنه. اوس ځینې خلك وایي چه په ونو او فصل دواړو کښې عشر واجب دی او ځینې وایي چه که چېرته له یوه څخه عشر ادا شي نو په بل کښې عشر نشته. دا مسئله روښانه کړی او د دواړو جهانو ثواب تر لاسه کړی؟

**الجواب:** د جوارو په دانو کښې عشر واجب دی او په ونو او تنتلونو کښې ئې عشر واجب نه دی. البته باجرې او ځینې هغه جوار چه د ونو په توګه وکرل شي او د انه ئې مقصود نه وي نو د هغو په لسو ګیډیو کښې به یوه ګیډۍ د عشر په توګه ورکول واجب وي. په دې باندې هغه تول شیان قیاس کیږي کوم چه مقصود ترې وابنه وي.

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: الا فیما لا یقصد به استغلال الارض نحو حطب و قصب فارسی و حشیش و تبن و سعف الخ حتیٰ لو اشتغل ارضه بها یجب العشر. (رد المحتار ج۲، ص۶۸، باب العشر)

او که چېرته ئې یو اځې تنتلې ریبلې او خرڅولې ئې یا ئې څناورو ته ورکولې نو په هغو کښې هم عشر واجب دی.

قال العلامة ابن عابدینؒ: قال فی الفتح غیر انه لو فصله قبل انعقاد الحبّ وجب العشر فیه لانه صار هو المقصود فلو استمنٰی ارضه بقوائم الخلاف و ما اشبهه او با لقصب او الحشیش و کان یقطع ذٰلك و یبیعه کان فیه العشر کذا فی البدائع. (رد المحتار ج۲، ص۵۸، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و منها ان یکون الخارج من الارض مما یقتصد بزراعته نماء الارض و تشتغل الارض به عادة...... حتیٰ قالوا فی الارض اذا اتخذها مقصبة و فی شجرة الخلاف التی یقطع فی کل ثلاث سنین او اربع سنین انهٗ یجب فیها العشر لان ذٰلك غلة وافرة. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۸۳، باب زکوٰة الزروع و الثمار.

## د خرڅوونکي لـــه خوا اخیستونکي ته د څو روپو په پرېښــودلو سره په هغو کښــې د عشر حکم

**سوال:** زید له عمرو څخه په پنځوسو زرو روپو باندې باغ واخیست اوس زید په باغ کښې نقصان وکړ او زید د عمرو د محنت او تکلیف لحاظ وکړ او لس زره روپۍ ئې ور معاف کړې۔ اوس د پوښتنې ځای دا دی چه زید به د پنځوسو زرو روپو عشر ادا کوي او که د څلوېښتو؟

**الجواب:** عشر د حاصلاتو د هغه قیمت په مطابق واجبیږي چه بیع پرې شوې وي۔ چونکه په صورت مسئوله کښې عمرو له اصل ثمن څخه زید ته لس زره روپۍ ور پرېښودلې د دې لپاره زید به د څلوېښتو زرو روپو عشر ادا کوي ځکه چه عمرو په بیع کښې کوم کموالی کړی دی هغه له اصل بیع یعنې له عقد سره ملحق کیږي ګوا که بیع په څلوېښتو زرو روپو شوې وي۔

لما فی الهندیة: حط بعض الثمن صحیح و یلتحق باصل العقد عندنا کا لزیادة سواء بقی محلا للمقابلة وقت الحط او لم یبق محلا کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۳، ص۱۷۳، کتاب البیوع، الباب السادس عشر فی الزیادة فی الثمن)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و الزیادة فیه و الحط منه ای من الثمن و یلتحقان باصل العقد عندنا و عند زفر لا یلتحقان....... و لنا انهما بالحط و الزیادة یغیر ان العقد من وصف مشروع و هو کونه رابحاً او خاسراً او عدلاً و لهما و لایة الرفع فاولی ان یکون لهما ولایة التغیر فصار کما اذا سقط الخیار او شرطاه بعد العقد و اذا صح یلتحق با لعقد لان وصف الشیء یقوم به لا بنفسه بخلاف حط الکل لانه تبدیل لاصله لا تغییر لوصفه. (البحر الرائق ج۶، ص۱۱۹، فصل فی بیان التصرف فی المبیع و الثمن الخ)

## په ځنګلونو باندې عشر واجب نه دی

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په سوات، هزاره، کوهستان او داسې نورو ځایونو کښې په غرونو باندې ګڼ ځنګلونه دي چه ځینې د عوامو او ځینې د حکومت په ملکیت کښې دي۔ نو آیا د خلکو په ځنګلونو کښې پوره عشر واجب دی او که نیم؟ او که بالکل عشر پرې واجب نه دی؟

**الجواب:** د ځنګلونو په ونو باندې عشر نشته۔ البته د خرڅولو په صورت کښې د کال په تېریدو سره ئې په قیمت باندې د ضابطې مطابق زکات پرې واجب دی۔

لما قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: و کذا لا عشر فیما هو تابع للارض کا لنخل و الاشجار لانه بمنزلة جزء الارض لانه یتبعها فی البیع الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۸، باب العشر)

و فی الهندیة: و لا عشر فیما هو تابعٌ للارض کا لنخل و الاشجار. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، الباب السادس فی زکٰوة الزروع و الثمار) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلیة.

## د باران او کوهي په اوبو باندې په خړوبیدونکې زمکې کښې د عشر حکم

**سوال:** د یوه سړي مثلاً د زید زمکه له کوهي څخه خړوبیږي لیکن سږ کال د منې په موسم کښې د بارانونو د ډېروالي له وجهې د کوهي اوبو ته ئې ضرورت پیدا نه شو نو آیا د مخکښینیو



کلونو په شان به نیم عشر ادا کوي او که پوره عشر؟

**الجواب:** عشر لکه څرنګه له اوبو سره تعلق لري او کښت چه کومو اوبو سره خړوبیده د هغه مطابق عشر واجبیږي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې لکه څرنګه چه کښت د باران په اوبو باندې خړوب شوی دی او د کوهي اوبو ته ئې ضرورت نه دی پیدا شوی نو د دې لپاره په داسې کښت باندې پوره عشر واجب دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و تجب فی مسقی سماء ای مطر و سیح کنهر بلا شرط نصاب....... و لو سقی سیحاً و بآلة اعتبر الغالب و لو استویا فنصفه و قیل ثلاثة و قیل اربعة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۱، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و عن انس رضی الله عنه عن رسول الله ﷺ انه قال فیما سقته السماء او العین او کان بعلا العشر و ما سقی با لرشاء ففیه نصف العشر و لان العشر وجب مؤنة الارض فیختلف الواجب بقلة المؤنة و کثرتها و لو سقی الزرع فی بعض السنة سیحاً و فی بعضها بآلة یعتبر فی ذٰلك لان للاکثر حکم الکل کما فی السوم فی باب الزکٰوة. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶۲، فصل و اما بیان مقدار الواجب) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۸۴، باب زکٰوة الزروع و الثمار.

## په عشر کښې حولان حول (د کال تیریدل) شرط نه دی

**سوال:** د زید د افیونو کښت زر روپۍ شوې نو ده سل روپۍ د عشر په توګه ترې ادا کړې او افیون ئې له ځان سره کېښود کوم چه پوره کال ورسره پراته وو۔ نو آیا د کال په تېریدو سره په دغو افیونو باندې بیا عشر یا زکات واجب دی او که نه؟

**الجواب:** په یوه فصل باندې یو ځلې یو ځل عشر واجب وي۔ بیا بیا د کال په تېریدو سره عشر نه واجبیږي۔ او که چېرته کښت بار بار راشین کیده نو هر وارې به عشر واجب وي۔ البته که چېرته کښت خرڅ کړی شي او په بدل ئې نقدې روپۍ په لاس ورشي او په دغو روپو باندې پوره کال تېر شي نو د زکات د ضابطې له مخې به زکات پرې واجب وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله و حولان حول حتٰی لو اخرجت الارض مراراً وجب فی کل مرّة لاطلاق النصوص عن قید الحول و لان لعشر فی الخارج حقیقةً فیتکرر بتکرره. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج۲، ص۴۹، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و الحول لیس بشرط لوجوب العشر حتٰی لو اخرجت الارض فی السنة مراراً یجب العشر فی کل مرّة لان نصوص العشر مطلقة عن شرط الحول. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶۲، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۸۳، باب زکٰوة الزروع و الثمار.

## د میوې تـــــر پخیدو مخکښې د باغ په خرڅیدو باندې به عشر په اخیستونکي باندې وي

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته یو څوك خپل باغ د میوې تر کولو مخکښې په بل سړي باندې خرڅ کړي او د میوې تر پخیدو پورې مشتري لـ خرڅوونکي څخه په ونو باندې د میوو د پرېښودلو اجازه واخلي نو د میوو له پخیدو نـ

وروسته به عشر په بائع (خرڅوونکي) باندې وي او که په مشتري (خرڅوونکي) باندې؟

**الجواب:** عشر په هر هغه سړي باندې واجب وي چه په مِلکیت کښې ئې کښت او میوه پیدا شي- لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې میوه د مشتري په ملکیت کښې پیدا شوې ده نو ځکه عشر ورکول به هم د ده په ذمې باندې وي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو باع الزرع ان قبل ادراکه فا لعشر علی المشتری و لو بعدهٗ فعلی البائع. قال ابن عابدینؒ قوله و لو باع الزرع....... ثم هٰذا اذا باع الزرع وحده و شمل ما اذا باعه و ترکه المشتری باذن البائع حتٰی ادرک فعندهما عشره علی المشتری......... و لو فیها زرع لم یبلغ فعلی المشتری بکل حالٍ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۵۴، باب العشر)

و فی الهندیة: و لو باعها و الزرع ان فضله المشتری فی الحال یجب علی البائع و لو ترکه حتٰی ادرک فعشره علی المشتری کذا فی شرح الطحاوی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، الباب السادس فی زکوٰة الزرع و الثمار)

## د عشر د وجوب لپاره د زمکې مالك والی شرط نه دی

**سوال:** مونږ یوه تکړه خرابه زمکه د کرنې قابله وګرځوله چه د کال دوه کښتونه ترې اخلو- نو آیا د د اسې ډول زمکې څخه به هم عشر ادا کوو او که نه؟

**الجواب:** په دې صورت کښې هم عشر ادا کول واجب دي ځکه چه د عشر د وجوب لپاره د ا شرط نه دی چه سړی به د زمکې مالك هم وي-

لما فی الهندیة: و کذا ملك الارض لیس بشرط للوجوب لوجوبه فی الاراضی الموقوفة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۵، الباب السادس فی زکوٰة الزرع و الثمار)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله و وقف افاد ان ملك الارض لیس بشرط لوجوب العشر و انما الشرط ملك الخارج لانه یجب فی الخارج لا فی الارض فکان ملکه لها و عدمه سواء. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج۲، ص۴۹، باب العشر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص ۵۶، فصل و اما شرائط الفرضیة.

## په لرګیو کښې د عشر د نه واجب والي د علّت څېړنه

**سوال:** د فقهې په کتابونو کښې لیکل شوي دي چه په حطب (لرګي) کښې عشر واجب نه دی او د دې وجه به بنایي دا وي چه لرګي او اوبه په انسانانو کښې مشترك شیان دي لیکن نن صبا مونږ وینو چه په باقاعده توګه د پټیو په شاوخوا کښې یا د اوبو د ویالو په څنګونو کښې ونې لګوي او د خلك ئې له سوځولو یا د کور د جوړولو لپاره له پرې کولو څخه منع کیږي- نو آیا په داسې صورت کښې هم عشر واجب دی او که نه؟

**الجواب:** فقهاء کرامو په ونو کښې د عشر د نشت والي علّت دا بیان کړی دی چه ونې د زمکې تابع دي- لهٰذا د دې علّت په سبب سره په هیڅ صورت کښې هم عشر پرې نه واجبیږي-

قال العلامة ابن نجیمؒ: و کذا لا عشر فیما هو تابع للارض کا لنخل و الاشجار لانه بمنزلة جزء الارض لانه



یتبعها فی البیع الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۸، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و منها ان یکون الخارج من الارض مما یقصد بزراعته نماء الارض و تستغل الارض به عادة فلا عشر فی الحطب و الحشیش و القصب الفارسی. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، الباب السادس فی زکوٰة الزروع و الثمار.

## د خرڅولو په نیت سره په کرل شویو تخمونو کښې د عشر حکم

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې د مرچو، پیاز، رومي بانجان، تور بانجان او د اسې نورو شیانو تخمونه کرل کیږي او له څه وخت وروسته ئې په باقاعده توګه د کښت د ترلاسه کولو لپاره بلې پټې ته منتقل کیږي- دا ډول تخمونه ځیني خلك د ځان لپاره کري او ځیني خلك ئې د خرڅولو لپاره کري- نو آیا له د اسې تخمونو څخه عشر ادا کیږي او که نه؟

**الجواب:** که چېرته د کوم شي د را شنه کولو او کرل رواج وي او د عادت له مخې د هغه شي له کښت څخه ګټه پورته کیږي یعنې د آمدني په غرض او نیت سره کرل کیده نو په هغه کښې عشر واجب دی او که د خرڅولو لپاره نه وي بلکه یو اځې د خپل کښت او کر لپاره ئې کري نو بیائې چه کله دا بل فصل کامل شي نو بیا عشر پرې واجب دی-

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: قوله الا فیما لا یقصد الخ اشار الی ان ما اقتصر علیه المصنف کالکنز وغیره لیس المراد به ذاته بل لکونه من جنس ما لا یقصد به اشتغلال الارض غالباً و ان المدار علی القصد حتٰی لو قصد به ذٰلك وجب العشر کما صرح به بعده. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج۲، ص ۵۰، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و منها ان یکون الخارج من الارض مما یقصد بزراعته نماء الارض و تستغل الارض به عادة.
(بدائع الصنائر ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص ۱۸۴، باب زکوٰة الزروع و الثمار)

## د کښت په بار بار را شنه کیدو باندې د عشر حکم

**سوال:** جوار، باجرې او د اسې نور فصلونه څو وارې را شنه کیږي نو آیا هر ځل به په هغو کښې واجب وي او که یو ځل عشر ورکول ترې کافي دي؟

**الجواب:** عشر په شنه کیدو پورې اړه لري که یو ځل را شنه شي او که څو څو ځلې- هر وارې به عشر ترې ادا کیږي- لهٰذا په صورت مسئوله کښې جوار، باجرې او د اسې نور چه څومره وارې له زمکې څخه را شنه شي نو هغومره وارې ئې عشر ورکول هم واجب دي-

قال العلامة ابن عابدینؒ: و حولان حول حتٰی لو اخرجت الارض مراراً وجب فی کل مرة لاطلاق النصوص عن قید الحول و لان العشر فی الخارج حقیقة فیتکرر بتکرره الخ. (رد المحتار ج۲، ص۴۹، باب العشر)

قال العلامة الکاسانیؒ: و الحول لیس بشرط لوجوب العشر حتٰی لو اخرجت الارض فی السنة مراراً یجب العشر فی کل مرّة لان نصوص العشر مطلقة عن شرط الحول و لان العشر فی الخارج حقیقة فیتکرر الوجوب بتکرار الخارج.
(بدائع الصنائع ج۲، ص ۶۲، فصل و اما شرائط المحلیة) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۸۳، باب زکوٰة الزروع و الثمار.

## په ونو او لرګيو کښې د عشر او زکات مسئله

**سوال:** زيد له خپل کښت څخه ځه ونې پرې کړې چه قيمت ئې تقريباً څلور زره روپۍ کيږي چه له هغو څخه ئې زر روپۍ په مزدورۍ کښې ورکړې. اوس به زيد په پاتې روپو کښې عشر ادا کوي او که زکات؟

**الجواب:** که چېرته زيد دا ونې په پټي کښې د کښت په قصد کرلې وې نو بيا د ونو په ټول قيمت يعني څلورو زرو روپو باندې عشر واجب دی۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: قوله الاّ فيما لا يقصد....... ان المدار على القصد حتٰی لو قصد به ذٰلك وجب العشر كما صرح به بعده. (رد المحتار على الدر المختار ج۲، ص ۵۰، باب العشر)

او که چېرته دا ونې د پټي تابع وې او د کښت په قصد ئې نه وې کرلې نو بيا په هغو کښې نه عشر واجب دی او نه زکات۔

لما فی الهندية: و لا عشر فيما هو تابع للارض كا لنخل و الاشجار. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۸٦، الباب السادس فی زكٰوة الزرع و الثمار)

قال العلامة الكاسانیؒ: و منها ان يكون الخارج من الارض مما يقصد بزراعته نماء الارض و تستغل الارض به عادة فلا عشر فی الحطب و الحشيش و القصب الفارسی. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵۸، فصل و اما شرائط المحلية) و مثله فی الهداية ج۱، ص۱۸۳، باب زكٰوة الزروع و الثمار.

## د اجارې په نقدو روپو باندې د زکات حکم

**سوال:** اجاره که چېرته په نقدو روپو باندې وي د مثال په توګه في جريب په زر روپۍ باندې، د زمکې دا اجاره خو مال دی، اوس په د غو روپو باندې د کال په تيريدو سره زکات واجبيږي او که عشر؟

**الجواب:** د اجارې دا روپۍ د نورو ګټو تابع ګرځي او د کال په تيريدو سره زکات پرې واجبيږي نه عشر۔ البته له دې زمکې څخه د فصل په حاصلوونکي باندې به عشر واجب وي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و العشر على المؤجر كخراج موظف و قال على المستاجر كمستعير مسلم و فی الحاوی و ب قولهما ناخذ. و قال ابن عابدينؒ: قال فی فتح القدير لهما ان العشر منوط با لخارج و هو للمستاجر....... فلا ينبغی العدول عن الافتاء بقولهما فی ذٰلك. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۵۵، مطلب هل يجب العشر على المزارعين فی اراضی السلطانية)

قال العلامة الكاسانیؒ: و لو آجر ارضه العشرية فعشر الخارج على المؤاجر عنده و عندهما على المستاجر وجه قولهما ظاهر لما ذكرنا ان العشر يجب فی الخارج و الخارج ملك المستاجر فكان العشر عليه كا لمستعير الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۵٦، فصل و اما شرائط الفرضية) و مثله فی النتف فی الفتاوٰی ج۱، ص۱۲۰، المعاملة فی الاراضی العشرية.

## عشر فی الفور (سمدستي) واجبيږي او که على التاخير (په ځنډ سره)؟

**سوال:** جناب مفتي صاحب! يو بزګر ډير زيات پوروړی دی، چه کله ئې کښت تيارېږي نو عشر ئې په سمدستي نه ادا کوي بلکه په يوه کاغذ يا کتابچې باندې ئې ليکي او وايي چه لکه څرنګه



چه د پور خاوند مې ډير تنګوي د دې لپاره لوم‌ړی قرضه ادا کوم څکه چه دا د بندګانو له حقوقو څخه دي په داسې حال کښې چه زما ټول فصل هم د پور له اندازې څخه کم دی. چه کله الله تعالىٰ مې له پور څخه خلاص کړي نو بيا به د ټولو کلونو عشر ادا کړم. نو آيا د شريعت له مخې د نوموړي بزګر دا طريقه صحيح ده او که نه؟

**الجواب:** په اسلام کښې عشر على الفور واجب دی او په ادا کولو کښې ئې ځنډ ګناه ده۔ لهذا که چېرته يو څوک د پوروړي توب له وجهې د عشر په ورکولو کښې ځنډ راولي نو ګنهګاريږي څکه چه د قرآنکريم مبارك ارشاد دی چه: وَ اٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ (سورة ) په داسې حال کښې چه احاديثو کښې هم د عشر زر تر زره د ادا کولو حکم راغلی دی۔

لما فی الهندية: و لا ياكل شيئاً من طعام العشر حتٰی يؤدی عشره. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۸۷، باب العشر)

البته که چېرته د عشر مال پخپل قرض کښې ورکړي نو قرضه ئې پرې ادا کيږي ليکن عشر به ئې په غاړه قرض پاتې وي، که چېرته ئې په ژوند کښې ادا نه کړي نو له مرګه وروسته به ئې له ترکې څخه اخيستل کيږي۔

(كما فی القاضی خان على هامش الهندية ج۱، ص۲۷٦)

همد ارنګه په الدر المختار کښې هم دا تصريح ده چه: و لذا كان للامام اخذه جبراً و يؤخذ من التركة و يجب مع الدَّين فی ارض صغير الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲٦، باب العشر)

## په نهري او باراني اوبو باندې د خړوبيدونکې زمکې په حاصلاتو کښې د عشر مسئله

**سوال:** که چېرته کومه زمکه له نهري (ويالې) او باراني اوبو څخه خړوبيدله نو په حاصلاتو باندې به ئې عشر له کوم حسابه واجب وي؟ آيا د دې زمکې په حاصلاتو کښې به د باراني اوبو د خړوبيدو په حساب سره عشر واجب وي او که د نهري اوبو له حساب څخه؟ د مهربانۍ له مخې تفصيلي ځواب راکړې؟

**الجواب:** کومه زمکه چه له مختلفو اوبو څخه خړوبيدله نو د هغې په حاصلاتو کښې د عشر د وجوب لپاره د اکثريت اعتبار وي. د مثال په ډول يوه فصل ته که چېرته پنځه واري د خړوبيدو ضرورت وي نو درې واري چه په کومو اوبو سره خړوب شي عشر به ئې هم له هغه حسابه ورکول کيږي. يعنې د يوه فصل چه درې واري خړوبوالی د نهر يا کوهي په اوبو باندې وشي او دوه واري د باران په اوبو سره نو د هغه په حاصلاتو کښې به د نيم عشر له حسابه عشر ادا کيږي. او که چېرته درې واري د باران په اوبو سره خړوب شي نو بيا به پوره عشر ترې ادا کيږي. البته که چېرته زمکه د دوه قسمه اوبو څخه په مساوي توګه خړوبه شي نو فقهاء کرامو ليکلي دي چه د نظراً للفقراء له وجهې د نيم عشر له حسابه به عشر ترې ادا کيږي۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و ان سقی بعض السنة بآلة و البعض بغیرها فالمعتبر اکثر کما مر فی السائمة و العلوفة و ان استویا یجب نصف العشر نظراً للفقراء کما فی السائمة. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱۶، باب العشر)

## اسلامي امارت په جبر سره عشر وصولولی شي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د یوې مسئلې وضاحت مطلوب دی او هغه دا چه آیا اسلامي امارت شرعاً دا حق لري چه له خلکو څخه په زور او جبر سره عشر وصول کړي؟ د مهربانۍ له مخې له حوالې سره ځواب راکړی؟

**الجواب:** عشر چونکه دزمکې په حاصلاتو باندې واجب وي او د زمکې حاصلات د ظاهري اموالو غوندې دي د دې لپاره که چېرته یو شوك پخپله عشر ادا نه کړي نو اسلامي امارت دا حق لري چه په زور او جبر سره عشر ترې وصول کړي او په د اسې ورکولو سره ئې اګر که غاړې خلاصیږي لیکن ثواب نه ورکول کیږي۔ البته که چېرته پخپل اختیار سره عشر ادا کړي نو د اجر او ثواب هم مستحق وي۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: لهذا جاز ان یأخذه جبراً و یسقط عن صاحب الارض الا انهٗ لا ثواب لهٗ الا اذا ادی اختیاراً. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱۳، باب العشر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حولان حول لانّ فیه معنی المؤنة و لذا کان الامام اخذه جبراً و یؤخذ من الترکة. قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله اخذه جبراً) و یسقط عن صاحب الارض کما لو ادی بنفسه الا انه اذا ادی بنفسه یثاب ثواب العبادة و اذا اخذه الامام یکون لهٗ ثواب ذهاب ماله فی وجه الله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۶، باب العشر)

## د نابالغ په مملوکه زمکه کښې د عشر مسئله

**سوال:** آیا د نابالغو کوچنیانو د زمکې په حاصلاتو کښې عشر واجب دی او که نه؟ آیا د عشر د وجوب لپاره بلوغ شرط دی او که نه؟ لکه څرنګه چه د زکات د وجوب لپاره د مزکي (زکات ورکوونکي) بالغ والی یو لازم شرط دی۔

**الجواب:** د زکات د وجوب لپاره اګر که د مزکي بالغ والی ضروري دی لیکن د عشر معامله بیله ده۔ عشر د زمکې حاصلاتو ته راجع کیږي او مالك هیڅ دخل پکښې نه لري۔ د دې لپاره په صورتِ مسئوله کښې د نابالغ د مملوکه زمکې په حاصلاتو کښې هم عشر واجب دی او د مالك بالغ والی ورته شرط نه دی۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و اما العقل و البلوغ فلیسا من شرائط الوجوب حتی یجب العشر فی ارض الصبیّ و المجنون لان فیه معنی المؤنة. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱۳، باب العشر)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یؤخذ من الترکة و یجب مع الدین و فی ارض صغیر و مجنون و مکاتب و مأذون و وقف و تسمیته زکٰوة. قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و فی ارض صغیر و مجنون و مکاتب) من مدخول العلّة فلا



تشترط فی وجوبه العقل و البلوغ و الحریة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۶، باب العشر) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۵، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار.

## پخپله په شنو شویو وبنو کښې د عشر د وجوب حکم

**سوال:** په ځینو علاقو کښې یو خاص ډول وابنه شنه کیږي او خلك ئې د ځاروو د خوراك په توګه استعمالوي، ځیني خلك ئې ساتنه هم کوي او اوبو هم ورکوي تر څو چه مړاوي نه شي۔ د دې مقصد لپاره د زمکې څه حصه هم ورته مخصوصوي او نور خلك ترې منع کوي هم۔ آیا په د اسې وبنو کښې عشر واجب دی او که نه؟

**الجواب:** عشر د زمکې په هغو حاصلاتو کښې واجب دی کوم چه مقصود وي، که کرل شوي وي او که پخپله را شنه شوي وي۔ لکه څرنګه چه پخپله شنه شوي وابنه په عمومي توګه اصلي مقصد نه وي د دې لپاره عشر پکښې واجب نه دی۔ لیکن چه کله ئې حفاظت وشي، په وخت سره اوبو ورکړل شي او نور خلك ترې منع کړی شي نو بیا په دې صورت کښې بیا مقصودي ګرځي چه شرعي حکم ورته متوجه کیږي۔ لهذا د صورت مسئوله مطابق که چېرته په رښتیا هم د د اسې ډول وبنو لپاره زمکه مخصوصه شي او وابنه پکښې نشو و نما وکړي نو بیا عشر پکښې واجب دی او په بل صورت کښې نه دی هیڅ عشر واجب نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: (الا فیما) لا یقصد به استغلال الارض (نحو حطب و قصب) فارسی (و حشیش) و تبن و سعف و صمغ و قطران و خطمی و اشنان و شجر قطن و بادنجان و بزر بطیخ و قثاء و ادویة کحلیة و شونیز حتی لو اشتغل ارضه بها یجب العشر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲۷، باب العشر)

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: و علی هٰذا کل ما لا یقصد به اشتغلال الارض لا یجب فیه العشر مثل السعف و التبن آه.

و قال فیه ایضا: انما استثنی الثلاثة لانهٗ لا یقصد بها اشتغلال الارض غالباً حتی لو اشتغل بها ارضه وجب العشر. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱۵، باب العشر) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۶، الباب السادس فی زکٰوة الزرع و الثمار.

## د فتاویٰ هندیه او دُرّ مختار د شجر القطن له عبارت څخه د پیدا شوي شبهې حل

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د فقهې په ځینو کتابونو کښې لکه دُرِ مختار او فتاویٰ هندیه او د اسې نورو له مطالعې څخه څرګندیږي چه په شجر قطن (د پنبې بوټی) کښې زکات واجب نه دی۔ نو آیا په رښتیا هم د پنبې په بوټي کښې زکات نشته؟ په د اسې حال کښې چه نن صبا پنبه (مالوچ) تر ټولو اهم او ښه حاصلات دي۔ د مهربانۍ له مخې د حنفي فقهې په رڼا کښې زمونږ دا وسواس دفع کړی؟

**الجواب:** د احنافوؒ په نزد عشر د زمکې په هرو هغو حاصلاتو کښې واجب دی چه مقصودي وي۔ پنبه چونکه یو مقصودي حاصل دی د دې لپاره په دې کښې په اتفاق سره زکات واجب

دی- البته د نصاب په مقدار (اندازې) کښې د احنافوؒ تر منځ اختلاف دی-
لما قال العلامه برهان الدين المرغيناني: قال ابو يوسفؒ فيما لا يوسق كالزعفران و القطن يجب فيه العشر اذا بلغت قيمته خمسة اوسق من ادنٰى ما يوسق الخ. قال محمدؒ و يجب العشر اذا بلغ الخارج خمسة مداد من اعلٰى ما يقدر به نوعه. (الهداية ج۱، ص۱۸٤، باب العشر)

و قال العلامة ابن نجيم المصريؒ: و يجب فى العصفر و الكتاب و برره لان كل واحد منها مقصود فيه ثم اختلفا فيما لا يوسق كالزعفران و القطن فاعتبر ابو يوسفؒ قيمة ادنٰى ما يوسق كالذرة و اعتبر محمدؒ خمسة اعداد من اعلٰى ما يقدر به نوعه فاعتبر فى القطن خمسة احمال كل حمل ثلاث مائة من الخ. (البحر الرائق ج۲، ص٤١٥، باب العشر)

او تر کومه ځایه پورې چه د دُرِ مختار او فتاوٰی هندیه اړه لري نو هلته د شجرة قطن د پنبې د بوټي نفي دی نه د پنبې- د دې لپاره د پنبې په کښت کښې اصلي مقصود پنبه وي نه بوټی-
لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و شجرة قطن) اما القطن نفسه ففيه العشر كما مر. (ردّ المحتار ج۲، ص۳۲۷، باب العشر)

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: تحت قوله بلا شرط نصاب و بقاء فيجب فيما دون النصاب بشرط ان يبلغ صاعاً و قيل نصفه و فى الخضراوات التى لا تبقى و هٰذا قول الامام و هو الصحيح. كما فى التحفة و قالاؒ لا يجب الا فيما له ثمرة باقية حولاً بشرط ان يبلغ خمسة ان كان فما يوسق و الوسق ستون صاعاً كل صاع اربعة امناء و الا فحتٰى يبلغ قيمة نصاب من ادنى الموسوق عند الثانى و اعتبر عند الثالث خمسة امثال مما يقدر به نوعه ففى القطن خمسة احمال و فى العسل افراق و فى السكر امناء و تمامه فى النهر. (رد المحتار ج۲، ص۳۲٦، باب العشر)

## په نهري زمکې کښې د عشر او نیم عشر د ورکولو مسئله

**سوال:** په داسې نهري (هغه زمکه چه له ویالو څخه اوبو خوري) زمکه چه د نهر یا ویالې په ژورولو، جوړولو او پاللو باندې محنت او روپۍ مصرفیږي- آیا د داسې زمکې په حاصلاتو کښې به عشر واجب وي او که نیم عشر؟

**الجواب:** په دې سوال کښې د نهري زمکې په باره کښې دوه مختلف او سره تکر رأیې موجودې دي- لومړۍ دا چه په دې سوال کښې یادې شوې زمکې کښې به عشر لازم وي او د دې په مقابله کښې دوهمه رأیه داده چه د داسې زمکې په حاصلاتو کښې به نیم عشر واجب وي- د لاندینې کتابونو عبارتونه د خپل اطلاق او صراحت له مخې د اولې رأیې ثبوت ورکوي لکه:

﴿۱﴾ په دُرِ مختار کښې دي چه: و يجب اى العشر فى مسقى سمآء اى مطر و سيح كنهر و يجب نصفه فى مسقى غرب اى دلو كبير و دالية اى دولاب الخ. (ج۲، ص۵۳/۵۵، باب العشر)

یعنې کومه زمکه چه له باران او ویالې څخه خړوبیږي په حاصلاتو کښې به ئې عشر واجب وي او له غرب (ډولچې یا بوکې) څخه چه خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې به نیم عشر واجب وي-

﴿۲﴾ په کنز الدقائق على هامش البحر الرائق کښې دي چه: يجب فى عسل ارض العشر و مسقى سمآء و سيح و نصفه فى مسقى غر و دالية. (ج۲، ص۲۳۷/۲۳۸، باب العشر)



د عشري زمکې په شاتو کښې او له باران او نهر څخه د خړوبیدونکې زمکې په حاصلاتو کښې عشر لازم دی او هغه زمکه چه په غرب (ډولچو او بوکو) سره خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې نیم عشر لازم دی-

﴿۳﴾ په بدائع الصنائع کښې دي چه: فما سقى بماء السماء او سقى سيحا ففيه عشر كامل و ما سقى بغرب او دالية او سمانية ففيه نصف العشر. (ج۲، ص٦۲، باب العشر)

یعنې کومه زمکه چه په باران او نهر باندې خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې عشر او کومه چه په ډولچې یا بوکې او سانیې سره ابو کیږي نو د هغې په حاصلاتو کښې نیم عشر لازم دی-

﴿٤﴾ په فتاوٰی هندیه کښې دي چه: و ما سقى بالدولاب و الدالية ففيه نصف العشر و ان سقى سيحا و بدالية يعتبر اكثر السنة فان استويا يجب نصف العشر. (ج۱، ص۱۸٦، باب العشر)

یعنې کومه زمکه په ډولچو او بوکو سره اوبو کیږي د هغې په پید اوار کښې نیم عشر لازم دی او کومه زمکه چه په نهر او باران سره اوبو کیږي د هغې په حاصلاتو کښې عشر لازم دی- او کومه زمکه چه د دواړه قسمه اوبو څخه خړوبیږي نو بیا په دواړو کښې چه په کومو اوبو باندې زیاته خړوبیدله هغو ته به اعتبار ورکول کیږي او د مساوات په صورت کښې به نیم عشر لازم وي-

﴿۵﴾ په فتاوٰی دار العلوم دیوبند کښې دي چه: سوال نمبر ۲٦۲: یوه ټکړه زمکه کومه چه د غرو په اوبو باندې خړوبیږي لیکن په محنت او مشقت سره ئې بند تړل کیږي او خړوبیږي- نو شرعاً په داسې زمکې کښې عشر واجبیږي او که نیم عشر؟ الجواب: عشر واجب دی ځکه چه مسقى سمآء او سیح کښې عشر واجبیږي- كذا فى الدر المختار انتهٰى ملخصاً- (ج۲، ص١٦٤، باب العشر، كتاب الزكات)

همدارنګه په فتاوٰی دار العلوم دیوبند کښې دي چه: سوال: په نهري زمکو کښې پوره عشر واجب دی او که نیم عشر؟ الجواب: په نهري زمکو که چېرته د نهر محصول ورکول کیده نو نیم عشر واجب دی- كما فى الدر المختار: و يجب نصفه فى مسقى غرب و دالية و فى كتب الشافعية او سقاه بماء اشتراه و قواعدنا لا تاباه الخ فقط. (ج٦، ص۱۷۲، باب العشر)

له دې ځواب څخه د مفهوم مخالف په توګه دا ثابتیږي چه د کومې نهري زمکې له اوبو څخه چه محصول نه اخیستل کیږي په هغې کښې به پوره عشر واجب وي- او مفهوم مخالف په نصوصو کښې اګر که معتبر نه دي لیکن په فقهي روایتونو کښې معتبر دی- (شرح عقود رسم المفتي)

﴿٦﴾ په الفقه علي مذاهب الاربعه کښې دي چه: و حكم زكٰوة الزروع و الثمار هو انهٗ يجب فيها العشر اذا كانت خارجة من ارض تسقى بالمطر و السيح و المآء الذى يسيح على الارض من المصارف و نحوها و نصف العشر اذا كانت خارجة من ارض تسقى بالدلاء و نحوها. (ج۱، ص٦١٦، باب العشر)

و فیه ایضاً و انما یجب نصف العشر ان سقی با لآلات فان سقی با لمطر او السیح فا لعشر و لو اشترٰی المطر ممن نزل بارضه و انفق علیه حتٰی اوصله لارضه من غیر آلة رافعة ففیه العشر ایضاً. (ج ۱، ص ۶۲۰، باب العشر)

یعنې په باران او نهر سره چه کومه زمکه خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې عشر واجب وي- او کومه زمکه چه په دلوو (ډولچو) او د اسې نورو سره خړوبیږي د هغې په پیداوار کښې به نیم عشر واجب وي-

همدارنګه په فقه علٰی مذاهب الاربعه کښې دي چه کومه زمکه د آلاتو په ذریعې سره خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې به نیم عشر واجب وي او د باران، نهر او د اسې نورو څخه د خړوبیدو په صورت کښې به نیم عشر واجب وي- لهذا که چېرته یو څوك د باران اوبه په پیسو واخلي او په محنت او خرڅې سره پرته له کومې آلې څخه خپلې زمکې ته ورسوي نو په حاصلاتو کښې به ئې عشر واجب وي-

﴿۷﴾ په امداد الفتاوٰی کښې دي چه: الجواب: فی رد المحتار و یجب ای العشر فی مسقی سمآء و سیح و نصفه فی مسقی غرب و دالیة و فی کتب الشافعیة او سقاه بمآء اشتراه و قواعدنا لا تاباه و لو سقی سیحا او بآلة اعتبر الغالب و لو استویا فنصفه و قیل ثلاثة ارباعه. آه. له دې څخه څرګنده شوه چه که چېرته د خړوبولو لپاره اوبه واخیستل شي نو نیم عشر به ورکوي او که چېرته په مفتو اوبو باندې زمکه خړوبه شي نو د کوهي په اوبو سره د خړوبیدلو په صورت کښې به هم نیم عشر وي او د نهر په اوبو باندې د خړوبولو په صورت کښې به پوره عشر ورکوي په د اسې حال کښې چه زمکه عشري وي یعنې له کوم کافر څخه نه وي اخیستل شوې- (ج ۲، ص ۵۸، باب العشر، کتاب الزکات)

او همدارنګه په امداد الفتاوٰی کښې دي چه: **سوال:** د بهشتي زیور په دریمې حصې کښې دي چه که چېرته چا کښت خړوب نه کړ او یواځې د باران په اوبو باندې فصل ورسیده یاد ویالې یا دریاب د کنارو په نمجنې زمکې باندې څه شیان را شنه شول او پرته له خړوبولو پیدا شول- نو د اسې کښت چه څومره څه لاس ته ورشي د هغو د لسمې برخې خیراتول واجب دي- او که چېرته ئې کښت په ارهټ یا کومې بلې طریقې باندې خړوب کړ نو د حاصلاتو د شلمې برخې خیراتول واجب دي او همدارنګه د کوهي په اوبو باندې هم شلمه حصه ده- او په علاج القحط و الوباء کښې لیکلي دي چه: که چېرته زمکه باراني وي نو لسمه او د کوهي و الایا نهري وي نو شلمه واجب ده- اوس عرض دادی چه په علاج القحط کښې د نهري زمکې حکم په صراحت سره شلمه لیکل شوې ده او په عربي کتابونو کښې د نهري حکم هم لسمه معلومیږي- کما فی القدوری: العشر واجب سواء سقی سیحا او سقته السمآء. له دې پرته د دې وړاندیز له جواب څخه مو ممتاز کړی چه (۱) د خړوبولو څخه څه مراد دي- (۲) د ګرستي معنی څه ده او د ګرستي اسباب څه دي؟

**الجواب:** څه تعارض پکښې نشته- په کومې نهري زمکې کښې چه لسمه برخه لیکل شوې ده هغه زمکه ده چه په خړوبولو کښې ئې خرڅه و نه شي لکه څرنګه چه د بهشتي زیور په لومړي عبارت کښې



تصریح شوې ده- او په کومې نهري زمکې کښې چه شلمه لیکل شوې ده هغه زمکه ترې مراد ده چه په خړوبولو کښې تکلیف وي او قیمت ئې ورکول کیږي الخ- (ج ۲، ص ۶۱، کتاب الزکات، باب العشر)

او د بهشتي زیور د دې عبارت چه: "او د دې طریقه دا ده چه که چېرته کښت خړوب نه شي" الخ ترجمه په جنتي کالي کښې دا لیکل شوي دي چه "طریقه دا ده چه که زمکه باراني وه یا له سیند دریاب او د اسې نورو څخه اوبه کیده او د اوبو را ایستلو څه حاجت نه وو نو په پیداوار کښې ئې لسمه برخه خیراتول واجب دي- الٰی قوله او که پټي ارتې وه یا په بلې کومې طریقې باند اوبه کیدله نو بیا شلمه ده"- له دې ترجمې څخه معلومه شوه چه د خړوبولو معنی دا ده چه اوبه په کوم شي (آلې) په ذریعه وایستل شي او زمکې ته ورکړی شي-

﴿۸﴾ په خیر الفتاوٰی کښې دي چه: **سوال:** په چترال کښې د ګرمیو په موسم کښې د ویلې شوو واورو اوبو په ویالو او خوړونو کښې بهیږي- خلك نهرونه ترې باسي او خپلې زمکې پرې خړوبوي، دا نهرونه کله کله یو کیلو متر او کله یو میل او کله تر دې زیات اوږده وي، بیا په ژمي کښې دا نهرونه تول خرابیږي نو خلك تقریباً تر شلو دیرشو ورځو پورې دا نهرونه له سره جوړوي، بیا په دې نهر کښې د اوبو له بهولو وروسته تقریباً تر یوې نیمې میاشتې پورې دوه سرې د دغو ویالو ساتنه او پالنه کوي ترڅو چه چېرته مات او خراب نه شي- اوس کومې زمکې چه له دغو اوبو څخه خړوبیږي په هغو کښې به عشر وي او که نیم عشر- د در مختار او د اسې نورو کتابونو له عباراتو څخه په ښکاره توګه دا څرګندیږي چه عشر پکښې ضروري دی په د اسې حال کښې چه حکومت آبیانه او د اسې نور څه هم نه اخلي- (سائل: مولوي فضل مولٰی، چترال)

**الجواب:** ستاسو په زمکو کښې به عشر واجب وي- څو ورځې مو د نهر په ژورولو لګیږي بیا تر دوه میاشتو پورې مو زمکې پرې خړوبیږي نو دې محنت ته مؤنت کبیره نه ویل کیږي- په ځانګړې توګه چه ستاسو په ځای کښې تعامل هم د عشر دی- و تجب فی مسقی سماء ای مطر و سیح کنهر. معلومه شوه چه له نهر څخه په خړوب شوي فصل کښې به عشر واجب وي او د دې عمومي صورت همدغه وي چه ویالې کیندل کیږي- (ج ۱، ص ۴۴۵/۴۴۶، باب العشر)

﴿۹﴾ په شرح التنویر کښې دي چه: و لو سقی سیحاً و بآلة اعتبر الغالب و لو استویا فنصفه و قیل ثلاثة ارباعه. (ج ۲، ص ۵۵، باب العشر)

یعنې کوم فصل چه له نهر څخه د خړوبیدلو تر څنګ د آلې په ذریعې سره هم خړوبیږي نو په دې صورت کښې اعتبار غالب لره دی- یعنې که ئې زیاتې اوبو له سیلاب څخه ورکولې نو عشر به لازم وي او که زیاتې اوبو له آلهٔ رافعه په ذریعه ورکولې نو نیم عشر به لازم وي- او د مساوات په صورت کښې به هم نیم عشر لازم وي- او ځینو ویلي دي چه د عشر درې پر څلور برخه به لازمه وي-

او د لومړی رأیې تایید د فقهاوو له دې تعبیر څخه چه: و یجب نصفه فی مسقی غرب و دالیة

(یعنې کومه زمکه چه په غـــرب او د الیې (ډولچو او بوکو) څخه خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې نیم عشر لازم دی) څخه هم کیږي- ځکه چه د ا تعبیر په واضحه توګه د ا وایي چه د نیم عشر په لازم والي کښې د هغه مصرف او مؤنت اعتبار لري چه د اوبو ورکولو او د زمکې د خړوبولو په وخت کښې لازمیږي- او کوم مصرف او مؤنت چه مخکښې راشي د هغه د عشر په نیم والي کښې دخل نه لـــري- او که نه نو فقهاوو به د دې تعبیر چه: و یجب نصفه فی مسقی غرب و دالیة په ځای د ا تعبیر کړی وو چه و یجب نصفی فی مسقی البیر یعنې کومه زمکه چه له کوهي څخه خړوبیږي د هغې په حاصلاتو کښې نیم عشـــــر لازم دی- لیکن فقهاوو لومړنی تعبیر غوره کړی دی چه په واضحه توګه ترې د ا څرګندیږي چه هغه مصرف او مؤنت پکښې اعتبار لري چه د اوبو ورکولو او د زمکې د خړوبولو په وخت کښې پرې راشي- او کوم مصرف او مؤنت چه تر اوبو ورکولو مخکښې راځي هغه معتبر نه دي- همد ارنګـــــه د دې رأیې تایید له دې حدیث څخه هم کیږي چه:

عن عبد الله ابن عمرؓ عن النبیﷺ قال فیما سقت السمآء و العیون او کان عثریا العشر و ما سقی با لنضح نصف العشر. (مشکٰوة ج۱، ص۱۷٤، کتاب الزکٰوة)

یعنې له حضرت عبد الله ابن عمرؓ څخه روایت دی چه نبي کریمﷺ فرمایلي دي چه کومه زمکه چه د آسمان (باران) په اوبو یا د چینې له اوبو څخه خړوبیږي یا له عاثور څخه خړوبیږي نو د هغې په حاصلاتو کښې لسمه برخه (عشر) لازم دی او کومه زمکه چه له کوهي څخه د اوبو په را ایستلو سره خړوبیږي نو د هغې په حاصلاتو کښې شلمه (نیم عشر) لازم دی- او د مشکٰوة په حاشیه کښې عاثور هغې ویالې ته ویل کیږي چه بنه ژور کیندل کیږي او زمکې پرې خړوبیږي-

او د لاندیني کتابونو څخه د دوهمې رأیې ثبوت په لاس راځي:

﴿۱﴾ په احسن الفتاوٰی کښې دي چه: **سوال:** "چه می فرمایند علماء دین و مفتیان شرع متین که در دیار مایان کاریز و قنانتها هستند که از مزرعه تا منبع آب مثلا دوازده هزار بغل فاصله دارد و هر سال کار و زحمت میخواهد که اگر کار کرده نه شود آبش خشك شود و مصرف کارش باندازه ای میباشد که نصف بلکه دو حصه محصول پیداوارش بکار کنان صرف می شود، درین صورت عشر واجب شود یا نصف عشر؟ مسئلۀ مذکورۀ بالا با لتحقیق و بحوالۀ کتاب و باب تحریر فرموده رفع اشتباه فرماید و اجرِ دارین حاصل فرمایید".

**الجواب باسم ملهم الصواب:** درین صورت نصف عشر واجب است قیاساً علی الغرب و الدالیة قال فی الشامیة تحت قوله ( و قواعدنا لاتاباه) لان العلّة فی العدول عن العشر الی نصفه فی مسقی غرب و دالیة هی زیادة الکلفة کما علّمت و هی موجودة فی شراء الماء. (رد المحتار ج۱، ص٥٥، باب العشر) فقط والله اعلم. (ج٤، ص۳۳٦، باب العشر)

﴿۲﴾ په فتاوٰی دار العلوم دیوبند کښې د دې سوال په ځواب کښې چه د نیم عشر معنٰی څه ده او زه به عشر ورکوم او که نیم عشر؟ لیکلي دي چه نیم عشر شلمه برخه ده او د ا فرق د اوبو د قیمت او د اسې نورو شیانو له وجې وي یعنې په عشري زمکو کښې د اصل عشر یعنې د



حاصلاتو لسمه برخه ورکول واجب دي لیکن که چېرته زمکې ته په اوبو ورکولو کښې مزدوري زیاته وه او تکلیف زیات وو او مصرف ډیر وو نو د عشر په ځای نیم عشر واجبیږي- لهذا په اولې رأیې کښې احتیاط ډیر دی چه عشر لازمیږي ځکه چه په زیاتو ورکولو کښې کوم حرج نشته او په کم ورکولو کښې د غاړې د نه خلاصیدو خطر موجود دی-

## د مړي په مال کښې د عشر وجوب

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ کروندګر خلك یو او خپلې یا پردۍ زمکې کرو- څو ورځې مخکښې مې پلار وفات شو، له وفات کیدو څخه مخکښې ئې په څه زمکې باندې غنم کرلي وو چه د هغه په ژوند کښې لا پاخه شوي وو، اوس ئې مونږ ریبل او د اسې نور پوره کړي دي نو آیا د هغه په دې غنمو باندې عشر لازم دی او که نه؟

**الجواب:** عشر د زمکې د حاصلاتو وظیفه ده- د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق ستا د مرحوم پلار د کرل شوې زمکې په حاصل کښې هم عشر واجب دی-

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: لذا لو مات من علیه العشر و الطعام قائم یؤخذ منه بخلاف الزکٰوة. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱۳، باب العشر)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یؤخذ من الترکة و یجب مع الدّین و فی ارض صغیر و مجنون. (الد رالمختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲٦، باب العشر)

## بسم الله الرحمٰن الرحیم

## باب صدقه الفطر

## (د صدقهٔ فطر احکام او مسئلې)

### په صدقهٔ فطر (سرسایه) کښې د غناء نصاب

**سوال:** که چېرته له یوه سړي سره څو قسمه حیوانات وي لیکن په هغوی کښې یو قسم هم نصاب ته نه رسیده او د تجارت لپاره هم نه وي نو په د اسې سړي باندې قرباني او صدقهٔ فطر واجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قربانۍ او صدقهٔ فطر (سرسایې) د وجوب لپاره په بنیادي توګه یو اځې غناء کافي ده اګر که د څو قسمه مالونو یو اځې نمونې هم موجودې وي. د مالونو د یو ډول زیاتوالی د زکات لپاره ضروري دی نه د صدقهٔ فطر لپاره. همدا وجه ده چه فقهاء کرامو فرمایلي دي چه که چېرته له یوه سړي سره له ضرورت څخه زیات یوه میښه وي او قیمت ئې د نصاب له مقدار سره برابر وي نو په هغه باندې صدقهٔ فطر او قرباني دواړه واجب دي. بیا هم په دې کښې به د هغه د ضرورت لحاظ کیږي. یو دهقان ته د زمکې لپاره د دوو غوایانو ضرورت دی نو که دریم غویی ورسره وي هغه به بې ضرورته ګڼل کیږي.

لما فی الهندیة: و ببقرة واحدة غنی و بثلاثة ثیران اذا ساویٰ احدهما مائتی درهم صاحبِ نصاب. (الفتاویٰ الهندیة ج۵، ص۲۹۳، کتاب الاضحیة، الباب الاول فی تفسیرها)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و ببقرة واحدة غنی بثلاثة ثیران اذا تساویٰ احدهما مائتی درهم صاحبِ نصاب. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۳۱۰، الفصل الثانی فی نصاب الاضحیة)

### د زکات او صدقهٔ فطر د وجوب نصاب

**سوال:** د زکات د وجوب د نصاب او د صدقهٔ فطر د نصاب تر منځ څه فرق دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دواړو نصاب یو دی. یعنې د اوه نیمو تولو سرو زرو یا د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو په ملکیت باندې زکات او صدقهٔ فطر دواړه واجب ګرځي. او د زکات لپاره د کال تیریدل پرې ضروري دي په د اسې حال کښې چه د صدقهٔ فطر لپاره د کال تیریدل پرې ضروري نه دي. یعنې که کال پرې تیر وي او که نه چه دومره سره او سپین زر یا د هغو د قیمت برابر روپۍ ورسره وي نو صدقهٔ فطر پرې واجب دی.

لما قال العلامة اکمل الدین البابرتیؒ: و لا یشترط فیه النمو ای لا یشترط ان یکون النصاب بمالٍ نام لانها وجبت با لقدرة الممکنة و النمو انما یشترط فیما یکون وجوبه با لقدرة المیسرة کا لزکوٰة علی ما عرف فی الاصول. (العنایة علی هامش فتح القدیر ج۲، ص۲۱۹، باب صدقة الفطر)

قال حسن بن عمار بن علیؒ: مالک النصاب اعلم ان النصب ثلاثة نصاب یشترط فیه النماء و تتعلق به الزکوٰة



و سائر الاحکام المتعلقة با لمال النامی و نصاب تجب به احکام اربعة حرمة الصدقه وجوب الاضحیة و صدقة الفطر و نفقة الاقارب و لا یشترط فیه النمو با لتجارة و لا حولان الحول و نصاب تثبت به حرمة السوال و هو ما اذا کان عندهٗ قوت یومه. الخ (مراقی الفلاح ص۳۹۴، باب صدقة الفطر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۹۱، کتاب الزکوٰة، الباب السابع فصل ما یوضع فی بیت المال)

### د صدقـــهٔ فطر اندازه

**سوال:** د صدقهٔ فطر مقدار څومره دی او د قیمت په اداکولو کښې به ئې د تفاوت له وجهې کوم قیمت معتبر وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقه حنفي له مخې نیم صاع یعنې یو سل او څلوېښت تولې غنم د صدقهٔ فطر مقدار دی. البته د اوربشو، خرماوو او ممیزو څخه به یو صاع یعنې دوه سوه اتیا تولې اداکیږي.

په دغو کښې کیلو او منطقوي سیرونه فرق سره لري نو ځکه د تولې له مقدار څخه د منطقوي سیر تعین آسان دی. او په اداکولو کښې به ئې د فقیر مفاد ته کتل کیږي. که چېرته ئې په قیمت کښې فقیر ته فائده وي نو مروجه قیمت به ئې ورکوي.

قـــال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یقوّم فی البلد الذی المال فیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتـــــار ج۲، ص۲۸۶، باب زکوٰة الغنم)

قال الشیخ ابن الهمامؒ: (و یقومها) ای المالک فی البلد الذی فیه المال. الخ. (فتح القدیر ج۲، ص۱۶۷، فصل فی العروض) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، الفصل الثانی فی العروض)

### په صدقهٔ فطر کښې شرعي صاع معتبر دی نه رواجي صاع

**سوال:** په صدقه فطر کښې به شرعي صاع معتبر وي او که مروجه صاع؟ او که چېرته ئې څوک په مروجه صاع باندې اداکړي نو صدقه فطر ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صدقه فطر په اداکولو کښې اصل اعتبار شرعي صاع لره دی او که د مروجه صاع مقدار مجهول وي نو بیا د هغې هیڅ اعتبار نشته او که چېرته د مروجه صاع له شرعي صاع څخه زیات وي نو بیا په زیات اداکولو کښې ئې څه حرج نشته او که چېرته مروجه صاع کم وي نو تر څو پورې چه د شرعي صاع مطابق صدقه فطر ادا نه شي تر هغو پورې ئې غاړې نه خلاصیږي.

لما قال فی الهندیة: ثم یعتبر نصف صاع من برّ او صاع من غیره با لوزن فیما روی ابو یوسفؒ عن ابی حنیفةؒ لان اختلاف العلماء فی الصاع بانه کم رطلاً و هو اجماع منهم بانه معتبر با لوزن و قبل هٰذه العباره و الصاع ثمانیة ارطال با لبغدادی و الرطل البغدادی عشرون استاراً. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۱۹۲، کتاب الزکوٰة، الباب الثامن فی صدقة الفطر)

قال الامام برهان الدین المرغینانیؒ: ثم یعتبر نصف صاع من برّ وزناً فیما یروی عن ابی حنیفةؒ و عن محمدؒ انه یعتبر کیلاً و الدقیق اولیٰ من البرّ و الدراهم اولیٰ من الدقیق. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۲۲۹، باب صدقة الفطر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۵۹، باب صدقة الفطر)

20

## د حکومت د جرمانې په ادا کولو کښې په صدقه فطر سره د چا د تعاون کولو حکم

**سوال:** که چېرته په یوه بندي (قیدي) باندې د حکومت د جرمانې ادا کول لازمي وي نو هغه ته د فطر د صدقې ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صدقه فطر او زکات مصرف یو دی۔ لهذا د نوموړي سړي په ذمې باندې که چېرته د حکومت جرمانه واجب الاداء وي نو له دې وجهې چه هغه مدیون (پوروړی) دی ځکه هغه ته صدقه فطر ورکول جائز دي۔

قال العلامة ابن نجیمؒ: و صدقة الفطر كالزكوة فى المصارف. الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۵۶، باب صدقة الفطر)

و فى الهندية: و مصرف هٰذه الصدقة ما هو مصرف الزكوٰة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۹۴، باب صدقة الفطر) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۸۶، باب صدقة الفطر)

## په اجرت کښې د صدقه فطر ورکول جائز نه دي

**سوال:** که چېرته د جوماتونو امامانو ته د دوی د امامت په اجرت کښې صدقه فطر ورکړي نو آیا په دې سره د خلکو صدقه فطر ادا کیږي او که نه؟ او پخپله د امام لپاره ئې اخیستل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صدقه فطر په ادا کولو کښې دا ضروري خبره ده چه د څه خدمت عوض او بدل نه وي۔ د واجبو صدقاتو خصوصیات همدا دي چه په هغو کښې به تملیك بغیر له کوم بدل څخه وي او دا پکښې شرط دی۔ په امامت او آذان باندې اجرت اخیستل اګر که پخپل ذات کښې څه پروا نه لري لیکن صدقه فطر د امامت د اجرت په عوض کښې ورکول جائز نه دي۔ بیائې هم که چېرته ورکړي نو اجرت پرې ادا کیږي لیکن صدقه فطر ئې له غاړې نه ساقطیږي۔ البته که چېرته امام غریب وي او د هغه لپاره د امامت په بدل کښې ځانته اجرت تاکل شوی وي نو بیا د اضافي تعاون له مخې غریب امام ته د صدقه فطر په ورکولو کښې څه حرج نشته۔

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و صدقة الفطر كالزكوة فى المصارف الا فى الدفع الى الذمى. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۶۹، باب صدقة الفطر)

قال ابن نجيم رحمه الله: و صدقة الفطر كالزكوة فى المصارف. الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۵۶، باب صدقة الفطر) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۹۴، باب صدقة الفطر)

## په صدقه فطر کښې تجزي (حصې حصې) کول پروا نه لري

**سوال:** آیا د یوه سړي سرسایه (صدقه فطر) یو کس ته ورکول ضروري دي او که ګڼ شمیر فقیرانو ته هم ورکول کیدلی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سرسایه کښې تجزي او تقسیم تاوان نه کوي نو ځکه د یوه سړي سرسایه په ګڼو فقیرانو باندې هم تقسیمول صحیح دي۔ او همدا رنګه یو اځي یوه سړي ته د



ډېرو کسانو سرسایه ورکول هم صحیح دي۔

قال شیخ الاسلام محمد بن عبد الله التمرتاشی الحنفیؒ: و جاز دفع كل شخص فطرته الى مسكين على المذهب كما جاز دفع صدقة جماعة الى مسكين واحد بلا خلاف. (تنوير الابصار متن الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۶۷، باب صدقة الفطر)

قال العلامة ابو بكر الكاسانى رحمه الله: و يجوز ان يعطى ما يجب فى صدقة الفطر عن انسان واحد جماعة مساكين و يعطى ما يجب عن جماعة مسكيناً واحداً. (بدائع الصنائع ج۲، ص۷۵، فصل و امّا رُكنها) و مثله فى فتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۲۳۱، باب صدقة الفطر)

## د ښځې سرسایه په چا باندې واجبه ده

**سوال:** آیا د ښځې سرسایه په میړه باندې واجبه وي او که پخپله ښځه به ئې ادا کوي په داسې حال کښې چه د هغې مال یا مهر د نصاب اندازې ته نه رسیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه ښځه د نصاب مالکه وي نو سرسایه به پخپله د دې په ذمې باندې واجبه وي او د میړه په ذمه ئې سرسایه نه ده لازمه۔ بیا هم که چېرته میړه د خپلې ښځې له خوا سرسایه ورکړي نو سرسایه ئې ادا کیږي۔ او که چېرته ښځه د نصاب مالکه نه وي نو بیا په هغې باندې بالکل سرسایه واجبه نه ده۔

لما قال العلامة المرغينانیؒ: و لا يؤدى عن زوجته و لا عن اولاده الكبار و ان كانوا فى عياله و لو ادى عنهم او عن زوجته اجزاهم استحساناً. (الهداية ج۱، ص۱۹۱، باب صدقة الفطر)

و فى الهندية: و لا يؤدى عن زوجته و لا عن اولاده الكبار و ان كانوا فى عياله و لو ادى عنهم او عن زوجته اجزاهم استحساناً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۹۳، الباب الثامن فى صدقة الفطر) و مثله فى الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۶۳، باب صدقة الفطر)

## آیا چا ته د قرض په معاف کولو سره سرسایه ادا کیږي؟

**سوال:** په یو چا باندې څه پور دی۔ که چېرته پور ورکوونکی هغه پور نوموړي ته په سرسایه کښې ور معاف کړي نو آیا سرسایه ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سرسایه د واجبو صدقاتو له جملې څخه ده کومه چه تملیك پکښې شرط دی۔ لهذا په نوموړي صورت کښې چونکه تملیك نشته بلکه له وصولولو پرته قرضه ورته معاف شوې ده نو ځکه ئې صدقه فطر نه ادا کیږي۔ بیا هم که چېرته یو څوك داسې کول وغواړي نو اول دې غریب پوروړي ته سرسایه ورکړي او بیا دې خپل پور ترې وغواړي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يشترط ان يكون الصرف تمليكاً. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

و فى الهندية: فهى تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمى و لا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملك من كل وجه لله تعالى هٰذا فى الشرع. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۷۰، كتاب الزكوٰة، الباب الاول فى تفسيره)

## په سرسایه (صدقه فطر) او قربانۍ کښې احتیاط

**سوال:** یو سړی د جائداد خاوند دی لیکن د دې جائداد ګټه د ده د قوت او لایموت (ورځنې ژوند) ذریعه ده او له هغه پرته هیڅ نقد مال ورسره نشته نو آیا په نوموړي سړي باندې صدقه فطر واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې مفتٰی بهٖ دا ده چه په دې سړي باندې قرباني او یا سرسایه واجبه نه ده۔ البته احتیاط په دې کښې دی چه تر خپله وسه پورې سرسایه او قرباني دواړه ادا کړي۔ او که چېرته د جائداد منافع یا ګټه د هغه له اصلي حاجاتو څخه زیاته وي نو په دې صورت کښې خو بالاتفاق سرسایه او قرباني دواړه پرې واجب دي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: سئل محمدؒ عمن لهٗ ارض یزرعها او حانوت یستغلها او دار غلتها ثلاثة آلاف لا یکفی لنفقته و نفقة عیاله سنة یحل له اخذ الزکٰوة و ان کانت قیمتها تبلغ الوجاء و علیه الفتوٰی و عندهما. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۸، باب المصرف)

و فی الهندیة: و کذا لو کان له حوانیت او دار غلة تساوی ثلاثة آلاف درهم و غلتها لا تکفی لقوته و قوت عیاله یجوز صرف الزکٰوة الیه فی قول محمدؒ و لو کان له ضیعة تساوی ثلاثة آلاف الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۰، باب المصرف)

## د روژې په ورځو کښې د سرسایې د اداکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړي سرسایه د رمضان المبارك په میاشت کښې ادا کړي نو آیا غاړې ئې پرې خلاصیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سرسایې د وجوب وخت د اختر د ورځې د ګهیځ له ختلو څخه مخکښې دی۔ لیکن که چېرته ئې څوك د اختر له ورځې څخه مخکښې ادا کړي اګر که د روژې د میاشتې په کومه ورځ کښې هم وي نو سرسایه ئې ادا کیږي۔ لیکن بیا هم مستحبه دا ده چه د اختر په ورځ ئې عیدګاه ته له تللو څخه مخکښې ادا کړي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و المستحب ان یخرج الفطرة یوم الفطر قبل الخروج الی المصلی........ فان قدمها یوم الفطر جاز لانهٗ ادی بعد تقرر السبب فاشبه التعجیل فی الزکٰوة. (الهدایة ج۱، ص۱۹۳، باب صدقة الفطر)

لما فی الهندیة: و المستحب للناس ان یخرجوا الفطرة بعد طلوع الفجر یوم الفطر قبل الخروج الی المصلی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۲، باب الثامن فی صدقة الفطر) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۶۵، باب صدقة الفطر)

## آیا په سرسایه کښې د غلې د قیمت ورکول جائز دي؟

**سوال:** نن صبا خلك په سرسایه کښې د غنمو او نورو شیانو قیمت ورکوي نو آیا په سرسایه کښې د غلې د قیمت ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت کښې د زکات او سرسایې حکم یو دی۔ لکه څرنګه چه په عشر کښې د حاصلاتو د قیمت اداکول جائز دي همدارنګه په صدقه فطر کښې هم د غلې د



قیمت اداکول صحیح دي۔ بلکه بهتر دي۔ بر خلاف د قربانۍ چه په هغې کښې د څناور حلالول ضروري دي او د قیمت په اداکولو سره ئې له قربانۍ څخه غاړې نه خلاصیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: دفع القیمة ای الدراهم افضل من دفع العین علی المذهب المفتی به جوهرة و بحر عن الظهیریة و هذا فی السعة اما فی الشدة فدفع العین افضل کما لا یخفی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۶۶، باب صدقة الفطر)

و فی الهندیة: و الدقیق اولٰی من البر و الدراهم اولٰی من الدقیق لدفع الحاجة و ما سواه من الحبوب لا یجوز الا بالقیمة و ذکر فی الفتاوٰی ان اداء القیمة افضل من غیر منصوص علیه و علیه الفتوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۲، الباب الثامن فی صدقة الفطر) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۶۴، باب صدقة الفطر)

## په منطقوي لحاظ سره د غنمو په قیمت کښې د تفاوت په صورت کښې به په سرسایه کښې د کوم قیمت اعتبار وي

**سوال:** که چېرته په پنجاب کښې د غنمو قیمت کم وي او په صوبه سرحد کښې د غنمو قیمت زیات وي نو آیا مونږ به د پنجاب د غنمو د قیمت په اعتبار سره سرسایه اداکوو او که د صوبه سرحد؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اصل دا دی چه په سرسایه کښې غنم او یا هغه شی ورکړی شي چه شریعت معتبر کړی وي۔ او که چېرته څوك د هغه شي په بدل کښې د هغه د قیمت ورکول وغواړي نو د خپل ښار قیمت به ئې معتبر وي او د بل ښار یا علاقې د قیمت اعتبار صحیح نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یقوم فی البلد الذی المال فیه و لو فی مفازة ففی اقرب الامصار الیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۸۶، باب زکٰوة الغنم)

و فی الهندیة: و یقومها المالك فی البلد الذی فیه المال حتٰی لو بعث عبداً للتجارة الی بلد آخر محال الحول تعتبر قیمته فی ذٰلك البلد و لو کان فی مفازة تعتبر قیمته فی اقرب الامصار الی ذٰلك الموضع. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۰، الباب الثالث فی زکٰوة الذهب و الفضة و العروض) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۳۰۸، مسائل صدقة الفطر)

## د نیم صاع څخه کم اوړه په سرسایه کښې د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د غنمو په ځای نیم صاع وړه ځکه ورکړي چه د غنمو په صفا کولو او وړه کولو کښې څه پیسې هم مصرفیږي نو آیا د اسې سرسایه ادا کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهي ذخائرو صریح عباراتو غنم او وړه دواړه برابر ګڼلي دي چه په سرسایه کښې نیم صاع غنم یا وړه ورکول واجب دي۔ نو ځکه په نوموړي صورت کښې سرسایه پوره ادا نه شوه۔ له نیم صاع څخه ئې چه څومره کم غنم ورکړی وي هغومره نور وړه دې هم ورکړي تر څو چه له واجبو څخه ئې غاړې خلاصې شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: نصف صاع من بر او دقیقه او سویقه او زبیب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۶۴، باب صدقة الفطر)

و فی الهندیة: و هی نصف صاع من بر او صاع من شعیر او تمر و دقیق الحنطة و الشعیر و سویقهما مثلهما و الخبز لا

يجوز الا باعتبار القيمة و هو الاصح الخ. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۱، الباب الثامن فى صدقة الفطر) و مثله فى الهداية ج ۱، ص ۱۹۲، باب صدقة الفطر)

## په غير منصوصي شيانو كښې د سرسايې حكم

**سوال:** زمونږ په ځاى كښې د وريژو فصل زيات كيږي يعنې شولې زياتې كرل كيږي. كه چېرته مونږ په صدقۂ فطر كښې وغواړو چه وريژې وركړو نو څومره وريژې به وركوو د نيم صاع په اعتبار سره او كه د پوره صاع په اعتبار سره؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** احنافو فقهاؤ په غير منصوصي شيانوسره د سرسايې د ادا كولو په باره كښې دا تصريح كړې ده چه كه چېرته څوك د غير منصوصي شيانو سره د سرسايې ادا كول وغواړي نو د منصوصي شيانو د قيمت په اعتبار به ئې وركوي. او د هغو د قيمت په برابر چه څومره وريژې او يا نور غير منصوصي شيان جوړيده هغومره دې وركړي سرسايه ئې ادا كيږي.

لما قال العلامة الحصكفىؒ: نصف صافع فاعل يجب من بر او دقيقه او سويقه او زبيب....... او صاع تمر او شعير و لو رديناً و ما لم ينص عليه كذرة و خبز يعتبر فيه القيمة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۲، ص ۳٦٤، باب صدقة الفطر)

و فى الهندية: ثم الدقيق اولىٰ من البر و الدراهم اولىٰ من الدقيق لدفع الحاجة و مسواه من الحبوب لا يجوز الا بالقيمة. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۲، الباب الثامن فى صدقة الفطر) و مثله فى الجوهرة النيرة ج ۱، ص ۱٦٥، باب صدقة الفطر)

## په ميوه جاتو كښې به د غنمو قيمت معتبر وي

**سوال:** كه چېرته يوه علاقه د اسې وي چه د غنمو او نورو منصوصي شيانو فصلونه نه وي بلكه هلته د نورو ميوه جاتو باغونه وي نو د هغه ځاى خلك دې په سرسايه كښې د غنمو د قيمت په اعتبار سره به د خپلې منطقې د غنمو قيمت ته اعتبار وركوي او كه چېرته چه غنم پيدا كيږي د هغه ځاى د غنمو قيمت ته به اعتبار وركوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چېرته چه غنم او يا نور منصوصي شيان نه پيدا كيدل نو سرسايه به د خپلې علاقې له حاصلاتو څخه به د غنمو د قيمت برابر ادا كوي او حال دا چه د خپل ښار او منطقې د غنمو قيمت ته به اعتبار وركوي او د بل ځاى د غنمو قيمت ته به اعتبار نه وركوي.

لما قال العلامة الحصكفىؒ: نصف صاع يكب من بر او دقيقه او سويقه او زبيب او صاع تمر او شعير و لو رديناً و لم ينص عليه كذرة و خبز يعتبر فيه القيمة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۲، ص ۳٦٤، باب صدقة الفطر)

و قال ايضا: و يقوم فى البلد الذى المال فيه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۲، ص ۲۸٦، باب زكٰوة الغنم)

و فى الهندية: ثم الدقيق اولىٰ من البر و الدراهم اولىٰ من الدقيق لدفع الحاجة و ما سواه من الحبوب لا يجوز الا با لقيمة. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۲، الباب الثامن فى صدقة الفطر) و مثله فى الجوهرة النيرة ج ۱، ص ۱٦٥، باب صدقة الفطر)

## په كوچنيوالي كښې د لور د نكاح له وجې د هغې د سرسايې حكم

**سوال:** په ځينو ځايونو كښې دا رواج دى چه ډير په كوچنيوالي كښې مور او پلار خپله لور په نكاح وركوي نو آيا شرعا د داسې بچې سرسايه به په مور او پلار باندې وي او كه په خسرګنى.



باندې وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د كومې نجلې نكاح چه په كوچنيوالي كښې شوې وي د هغې د سرسايې حكم دا دى چه كه چېرته هغه پخپله د مال خاونده وي نو سرسايه به د هغې له خپل مال څخه وركول كيږي او كه چېرته د مال خاونده نه وي او د پلار په كور كښې وي تر اوسه ئې د خاوند كره نه وي وړې نو سرسايه ئې په پلار باندې ده او كه نه نو په هيڅا باندې ئې هم سرسايه واجبه نه ده.

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصارى رحمه اللّٰه: زوج ابنته الصغيرة من رجل و سلمها اليه ثم جاء يوم الفطر لا يجب على الابّ صدقة الفطر. (الفتاوى التاتارخانية ج ۲، ص ٤۲٦، الفصل الثالث عشر فى صدقة الفطر)

لما فى الهندية: زوج ابنته الصغيرة من رجل و سلمها اليه ثم جاء يوم الفطر لا تجب على الابّ صدقة الفطر. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۲، باب صدقة الفطر) و مثله فى امداد الفتاوىٰ ج ۲، ص ۸۰، باب صدقة الفطر)

## حقيقي ورور ته د سرسايې وركولو حكم

**سوال:** خپل حقيقي ورور ته سرسايه او د لمانځه او روژې فديه وركول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خوندې وروڼه چونكه په فروعو او اصولو كښې داخل نه دي نو څكه دوى ته د هر ډول صدقاتو وركول جائز دي. كه زكات وي او كه سرسايه او يا د لمانځه او روژې فديه او د اسې نور د ټولو وركول ورته جائز دي.

و فى الهندية: و الافضل فى الزكٰوة و الفطر و النذر و الصرف اولاً الى الاخوة و الاخوات ثم الىٰ اولادهم ثم الى الاعمام و العمات الخ. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۰، باب المصارف)

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: قيد باصله و فرعه لان من سواهم من القرابة يجوز الدفع لهم و هو اولىٰ لما فى من الصلّة مع الصدقة كا لاخوة و الاخوات و الاعمام و العمات و الاخوال و الخالات الفقراء. (البحر الرائق ج ۲، ص ۲٤۲، باب المصارف) و مثله فى امداد الفتاوىٰ ج ۲، ص ۸۰، باب صدقة الفطر)

## صدقۂ فطر بل ښار ته د وړلو حكم

**سوال:** زكات خو له يوه ښار څخه بل ښار ته وړل مكروه دي نو آيا د صدقۂ فطر هم همدا حكم دى؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لكه څرنګه چه زكات له يوه ښار څخه بل ښار ته انتقالول مكروه دي همدا رنګه د سرسايې انتقال هم له كراهيت څخه خالي نه دى. البته كه چېرته د دې ښار خلك ډير محتاج نه وي نو بيائې په انتقالولو كښې كراهيت نشته.

و فى الهندية: و يكره نقل الزكٰوة من بلد الىٰ بلد الا ان ينقلها الانسان الىٰ قرابته او الى قوم هم احوج اليها من اهل بلدہ. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۹۰، باب المصارف)

قال العلامة ابو البركات النسفىؒ: و كره نقلها الى بلد آخر لغير قريب و احوج. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج ۲، ص ۲۵۰، باب المصارف) و مثله فى امداد الفتاوىٰ ج ۲، ص ۷٦، باب صدقة الفطر)

## د نابالغ بچي سرسایه په پلار باندې واجبه ده

**سوال:** که چېرته یو نابالغ بچی د نصاب مالك وي یا نه وي لیکن پلار ئې سرسایه نه وي ادا کړې نو آیا دا بچی به له بلوغ نه وروسته خپله سرسایه ادا کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صدقۀ فطر په هر مسلمان چه د نصاب خاوند وي واجبه ده۔ که چېرته د نابالغ بچي پلار مالدار وي نو په هغه باندې د خپل نابالغ اولاد سرسایه واجبه ده۔ اوس که چېرته بچی پخپله مالدار وي لیکن ولي ئې د هغه له خوا سرسایه نه وي ادا کړې نو له بلوغ نه وروسته په بچي باندې د خپلې سرسایې اداکول واجب دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: علی کل حرّ مسلم و لو صغیراً او مجنوناً حتی لو لم یخرجهما و لیهما وجب الاداء بعد البلوغ. (الدر المختار علی هامش الطحطاوی ج ۱، ص ۴۳۳، باب صدقة الفطر)

لما قال الشیخ اشرف علی شاه التهانویؒ: هو! دا هلك به له بلوغ څخه وروسته صدقۀ فطر ادا کوي۔ او که چېرته هلك د نصاب مالك نه وي ګواکه پلار د نصاب خاوند وو او هغه ادا نه کړ نو په هلك باندې به له بلوغ څخه وروسته واجب وي۔ (امداد الفتاوٰی ج ۲، ص ۷۸، باب صدقة الفطر)

## بندیانو ته د سرسایې ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته په بندي خانه کښې بندیانو ته سرسایه ورکړی شي نو آیا سرسایه ادا کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سرسایه کښې هم د زکات غوندې فقیر او غریب سړی مالك ګرځول لازمي دي۔ له دې وجهې که چېرته په جیل کښې غریب او فقیر سړی بندي وي نو د سرسایې ورکول ورته جائز دي۔

لما قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: هی تملیل المال من فقیر مسلم غیر هاشمیه و لا مولاه بشرط قطع المنفعة من المملك من کل وجه. (کنزا لدقائق علی هامش البحر الرائق ج ۲، ص ۲۰۱، کتاب الزکٰوة)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: هی تملیك حرج الاباحة فلو اطهم یتیماً ناویا الزکٰوة لا یجزیه..... جزء مال..... عینه الشارع و هو ربع عشر نصاب حولی..... من مسلم فقیر و لو معتوها غیر هاشمی و لا مولاه مع قطع المنفعة عن المملك من کل وجه فلا یدفع لاصله و فرعه للّٰه تعالی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۲، ص ۲۵۶ تا ۲۵۸، کتاب الزکٰوة)

## د پنځوسو روپو په نصاب باندې د قربانۍ او سرسایې تحقیق

**سوال:** د دې مسئلې په باره کښې د دین علماء کرام څه فرمایي چه په فتاوٰی رشیدیه ص ۴۳۱ کښې لیکلي دي چه له چا سره پنځوس روپۍ نقدې وي نو په هغه باندې قرباني او سرسایه دواړه واجب دي۔ آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په فتاوٰی رشیدیه کښې د پنځوسو روپو له نصاب څخه مراد د هغې زمانې د سرو زرو روپۍ دی کوم چه قیمت ئې له نصاب سره برابر وو۔ د نن صبا د کاغذي روپو دا نصاب نه دی بلکه د سپینو او سرو زرو د نصاب په حساب سره چه دا روپۍ څومره جوړیږي په هغومره روپو کښې زکات واجب دی ځکه چه موجوده کاغذي روپۍ د عروضو د تجارت په حکم کښې راځي۔



و فی الهندیة: الزکٰوة واجبة فی عروض التجارة کائنة ما کانت اذا بلغت قیمتها نصاباً من الورق و الذهب کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج ۱، ص ۱۷۹، الفصل الثانی فی العروض)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و فی عروض تجارة بلغت نصاب ورق او ذهب معطوف علی قوله اول البالب فی مائتی درهم. (البحر الرائق ج ۲، ص ۲۲۸، باب زکٰوة المال) و مثله فی الدر المختار ج ۲، ص ۳۳، باب زکٰوة المال)

## د زکات او سرسایې په نصاب کښې د نامي (هغه مال چه نمو کوي او زیاتیږي) او غیر نامي مال فرق

**سوال:** یوه سړي دا مسئله بیان کړې ده چه په کوم سړي باندې زکات واجب نه وي په هغه باندې سرسایه هم واجبه نه ده۔ نو آیا د ده دا خبره صحیح ده او که د دواړو په نصابونو کښې فرق شته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات، سرسایې او قرباني نصاب اګر که سره یو دي یعنې له چا سره چه دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر یا اوه نیمې تولې سره زر وي او یا د دواړو د قیمت په برابر موجوده پیسې یا نور سامان چه له اصلي حوائجو څخه او پور څخه زیات موجود وي۔ نو په هغه باندې زکات، سرسایه او قرباني درې واړه واجب دي۔ البته د زکات له نصاب سره نمو او د کال تیریدل ضروري دي او د صدقه فطر او قربانۍ له نصاب سره دا دواړه شرطونه ضروري نه دي۔ لهذا دا خبره صحیح نه ده چه په چا باندې زکات واجب نه وي نو هغه دې سرسایه هم نه ورکوي بلکه نفس د نصاب په موجودوالي کښې صدقه فطر واجب دی که نمو وي یا نه یا کال پرې تیر شوي وي یا نه۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی..... تام..... فارغ عن دین له مطالب الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۲، ص ٤، کتاب الزکٰوة)

و قال الحصکفیؒ: علیٰ کل حرّ مسلم..... ذی نصاب فاضل عن حاجته الاصلیة کدَینه و حوائج عیاله و ان لم ینم کما مرّ...... و انما لم یشترط النمو لان وجوبها بقدرة ممکنة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۲، ص ۷۳/۷٤، کتاب الزکٰوة، باب صدقة الفطر)

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه اللّٰه: و لا یشترط فیه النحو و یتعلق بهٰذا النصاب حرمان الصدقة و وجوب الاضحیة و الفطر. (الهدایة ج ۱، ص ۱۹۰، باب صدقة الفطر) و مثله فی الهندیة ج ۱، ص ۱۹۱، الباب الثامن فی صدقة الفطر)

## آیا د سرسایې له پاره د عامل تاکل ضروري دي؟

**سوال:** آیا د زکات غوندې د سرسایې د وصولولو لپاره د وخت حاکم عامل مقررولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د وصولولو لپاره اګر که د وخت حاکم ته اختیار حاصل دی چه عامل مقرر کړي او له خلکو څخه زکاتونه وصول کړي لیکن د سرسایې حکم ترې بیل دی۔ د هغې د وصولولو لپاره د وخت حکومت عامل نه شي مقررولی۔

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و لا یبعث الامام علی صدقة الفطر ساعیاً لان النبی ﷺ لم یبعث...... الخ. (البدائع الصنائع ج ۲، ص ۷۵، فصل فی صدقة الفطر فی آخر الزکٰوة)

لما قال ابن نجیمؒ: و لا یبعث الامام علی صدقة الفطر ساعیاً لان النبی ﷺ لم یبعث. (البحر الرائق ج ۲، ص ۲۵۶، باب صدقة الفطر)

## په سرسایه کښې د اوسیدو د ملك پیسې معتبرې دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یو سړی په انګلینډ کښې اوسیږي او غواړي چه سرسایه په پاکستان کښې ادا کړي نو آیا دا سړی به خپله سرسایه د پونډ په اعتبار ادا کوي او که د پاکستاني روپو په اعتبار۔ په دې باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سړی چه چېرته هم وي نو سرسایه به د هغه ځای د روپو په حساب ادا کوي۔ که چېرته یو سړی په انګلینډ کښې اوسیده نو هغه به د پونډ په حساب خپله سرسایه ادا کوي او که چېرته په پاکستان کښې اوسیده نو د پاکستاني روپو په حساب سره به سرسایه ادا کوي۔

## د ورور له خوا څخه د ورکړې شوې سرسایې د بیرته اخیستلو حکم

**سوال:** زما ورور په سعودي عربستان کښې دی او ښځه اولاد ئې په پاکستان کښې دي۔ په کوچني اختر کښې د هغه روپۍ ناوخته شوې او د هغه د بال بچ سرسایه ما له خپل جیب څخه ورکړه۔ اوس د هغه روپۍ را رسیدلي دي او ما ته ئې ویلي هم وو چه سرسایه ترې ادا کړه۔ نو آیا زه اوس د دغو روپو څخه خپلې هغه روپۍ را اخیستلی شم کومې چه ما د خپل ورور په سرسایه کښې ورکړې وې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه سرسایه ستا په ورور باندې واجبه وه چه تا د هغه له خوا څخه ادا کړه نو دا پیسې په هغه باندې پور شوې۔ اوس چونکه د هغه پیسې رسیدلي دي له دې وجهې ته له هغو څخه خپل حق وصولولی شې۔

لما قال المفتي عبد الرحیم صاحب: (الجواب) د صدقې د روپو له وصولیدو نه مخکښې له خپلو روپو څخه دې ورور صدقه ورکړي او بیا راتلونکې روپۍ دې خپله ور واخلي نو دا جائز دي۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۸، ص۲۴۵، احکام صدقه فطر)

## د زمکې لرونکي لپاره د صدقۀ فطر د اداکولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یو سړی ښه ډېره زمکه لري لیکن نقدې روپۍ او نور سامان ورسره نشته۔ او نه ئې له زمکې څخه څه خاص فصل لاس ته ورځي نو آیا په دا سې سړي باندې سرسایه لازمه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا زمکه د ده د اهل او عیال له ټولې نفقې څخه زیاته وي او قیمت ئې نصاب ته رسیږي نو په نوموړي باندې سرسایه لازمه ده او که چېرته ئې له ټولې آمدنۍ څخه په مشکله سره ګذاره کیدله او نقدې روپۍ او داسې نور هم ورسره نه وي نو بیا سرسایه پرې لازمه نه ده۔

لما قال العلامة الحصكفی رحمه الله: تجب علی کل مسلم لو صغیراً مجنوناً...... ذی نصاب فاضل عن حاجته الاصلیة کدَینه و حوائج عیاله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۸، تا ۳۶۰، باب صدقة الفطر)



# باب مصارف الزکوٰة

## (د زکات د مصارفو احکام او مسئلې)

## دولت مند سړي ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته د یوه سړي د غیر منقوله جائداد قیمت ولګول شي او حساب کړی شي نو د قیمت په اعتبار سره دا سړی غني ګڼل کیږي لیکن د دې جائداد څخه حاصلیدونکې آمدني دومره نه وي چه ګذاره ئې پرې وشي نو آیا د اسې سړي لپاره د زکات اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د جائداد غیر منقوله قیمت ته اعتبار نشته۔ بلکه په غناء کښې د هغه د ژوند ګذارې ته کتل کیږي۔ څکه چه د یوه سړي د جائداد قیمت زیات وي لیکن په منافعو ئې د ژوند ګذاره نه کیږي او نه له هغه سره نقدې روپۍ وي نو دا سې سړی د زکات د مصرف ځای دی او زکات ورکول ورته جائز دي۔

لما قال فی الهندیة: و كذا لو كان عندهٗ من الصاحف و هو یحتاج الیه و ان كان...... و كذا لو كان لهٗ حوانیت او دار غلة تساوی ثلثة آلاف درهم و غلتها لا تكفی لقوته و قوت عیاله یجوز صرف الزكوٰة الیه فی قول محمدؒ و لو كان لهٗ ضیعةٌ تساوی ثلثة آلاف و لا تخرج ما یكفی لهٗ و لعیاله اختلفو فیه قال محمد بن مقاتل یجوز لهٗ اخذ الزكوٰة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، كتاب الزكوٰة، الباب السابع فی المصارف)

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو كان له ضیعة تساوی ثلثة آلاف درهم و لا یخرج منها ما یكفی له و لعیاله اختلفوا فیه قال محمد بن مقاتل یجوز له اخذ الزكوٰة. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۴۲، الفصل الثامن فی اداء الزكوٰة) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۸۵، الباب الثانی فی المصرف)

## د جائداد خاوند ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** د یوه سړي تقریبا ۲۵ کناله زمکه ده او قیمت ئې د زکات له نصابه یعنې له دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو څخه زیات دی او د اوسیدلو خپل کور ئې هم شته نو آیا دا سې سړی له نورو خلکو څخه زکات اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د زمکې قیمت لره اعتبار نشته او نه ئې قیمت د غناء سبب دی۔ بلکه د زمکې منافع که چېرته د ټولو مصارفو لپاره کافي وي نو دا سړی د جائداد خاوند دی او د زکات اخیستل ورته جائز نه دي او که چېرته ئې د زمکې منافع د کور د ضروریاتو لپاره کافي نه وي نو بیا ورته د زکات په اخیستلو کښې څه حرج نشته۔

و لو كان لهٗ ضیعة قیمتها آلاف و لا یحصل منه ما یكفی لهٗ و لعیاله اختلف فیه قال ابن مقاتل یجوز صرف الزكوٰة الیه. (بزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۸۵، الباب الثانی فی الصرف)

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و كذا لو كان له ضیعة تساوی ثلاثة آلاف درهمٍ و لا یخرج منها ما یكفی لهٗ

و لعیاله اختلفوا فیه قال محمد بن مقاتل یجوز له اخذ الزکوٰة. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۴۲، الفصل الثامن فی اداء الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب الثالث فی زکوٰة الذهب و الفضة و العروض)

## د غوا مالك ته د زكات د وركولو حكم

**سوال:** که چېرته له یوه سړي سره یوه غوا وي او قیمت ئې نصاب ته رسیږي نو د دې سړي لپاره د زكات اخیستل جائز دي او که نه؟ یعني یو اځې په دې باندې چه د یوې غوا مالك دی غني ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غناء لپاره له اصلي حوائجو پرته د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو مالك جوړېدل ضروري دي. که چېرته له یوه سړي سره د اصلي ضروریاتو څخه زیات یوه غوا او یا یو غویی وي او قیمت ئې دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو ته رسیده نو نوموړی به غني ګڼل کیږي او د زكات اخیستل ورته جائز نه دي.

قال فی الهندیة: و ببقرة واحدة غنی و بثلاثة ثیران اذا ساوی احدها مائتی درهم صاحب نصاب. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۲۹۳، کتاب الاضحیة، الباب الاول فی تفسیرها الخ)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و ببقرة واحدة غنی و بثلاثة ثیران غنی اذا تساوی احدها مائتی درهم صاحب نصاب. (خلاصة الفتاوی ج۴، ص۳۱۰، الفصل الثانی فی نصاب الاضحیة)

## د غني سړي لپاره د زكات قبض كول او بيائې فقيرانو ته د وركولو حكم

**سوال:** یو د نصاب خاوند د زكات روپۍ قبض کوي او پخپله ئې نه استعمالوي بلکه فقیرانو او مستحقینو ته ئې ورکوي. نو آیا د نوموړي لپاره د زكات د مال قبض كول شرعاً روا دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي سړي لپاره له نورو خلکو څخه د زكات اخيستل جائز نه دي ځکه چه غني دی او غني ته زكات وركول جائز نه دي. او په دې صورت کښې د اسې نه اصل دی او نه وکیل. او چه د زكات مال پخپله قبض کوي او نورو خلکو ته ئې د صدقې په توګه ورکوي لهذا په دې طریقې سره د زكات مال اخیستل او محتاجانو او فقیرانو ته ئې وركول مناسب نه دي. بیا هم د وكالت په توګه ئې اخيستل او په فقیرانو باندې ویشل مرخص دی.

لما فی الهندیة: و کذا لو کان عنده من المصاحف و هو یحتاج الیه و ان کان لا یحتاج الیه و هو یساوی مائتی درهم لا یجوز صرف الزکوٰة الیه و لا یجوز له اخذها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، کتاب الزکوٰة، الباب السابع فی المصارف)

قال الامام برهان الدین المرغینانیؒ: و لا تدفع الی غنیّ لقوله علیه السلام و لا تحل الصدقة لغنیّ. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۲۰۸، باب ما یجوز دفع الزکوٰة و ما لا یجوز) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۴، کتاب الزکوٰة، باب المصرف)

## اصول او فروع د زكات مصرف نه دي

**سوال:** که چېرته یو سړی له خپلو والدینو څخه جدا اوي او منافع او مصارف ئې هم سره بیل وي آیا په داسې صورت کښې د کوم یوه د غربت په صورت کښې یوه او بل ته زكات سره ورکولی شي او که نه؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اصولو او فروعو او د مېره او ښځې رشتې دومره قوي رشتې دي چه د املاکو او مالونو له جدا والي سره سره هم جدا نه شي بلل کیدلی. نو ځکه د جدا جدا کاروبارونو په کولو سره یوه او بل ته زكاتونه نه شي سره ورکولی.

قال علی بن ابی بکر المرغینانی رحمه الله: و لا یدفع المزکی زکوٰة ماله الی ابیه و جده و ان علا و لا الی ولده و ولد ولده و ان سفل الخ. (الهدایة ج۱، ص۲۰۶، باب المصارف)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و لا الی من بینهما ولاد...... ای اصله و ان علا کابویه و اجداده و جداته من قبلهما و فرعه و ان سفل. (رد المحتار ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف)

## خپلوانو ته د زكات په وركولو کښې د صلهٔ رحمي رعایت هم دی

**سوال:** که چېرته د چا یو خپل سړی له مسکنت سره سره دیند اره هم نه وي نو آیا زكات به پردي دیند اره فقیر ته ورکوي او که نوموړي بې دینه خپل سړي ته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو سړی د زكات روپۍ د بې دینۍ په کارونو کښې لګوي نو داسې سړي ته که خپل وي او که پردی زكات وركول د تعاون علی المعصیت سره برابره ده. البته که د بې دینۍ په کارونو کښې ئې روپۍ نه لګولې او په ذاتي ضروریاتو کښې ئې لګولې نو بیا په زكات کښې د خپلوانو رعایت بهتر دی. ځکه چه د زكات له ادا کولو برسیره په دې کښې د صله رحمي رعایت هم راځي. البته که کوم پردي فقیر ته زكات ورکړی نو بیا مو هم غاړې پرې خلاصیږي.

قال ابن عابدینؒ: و قید بالولاد لجوازه لبقیة الاقارب کالاخوة و الاعمام و الاخوال الفقرآء بل هم اولی لانه صلة و صدقة و فی الظهیریة و یبدأ فی الصدقات بالاقارب ثم الموالی ثم الجیران. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۶، باب المصرف)

قال زیدن الدین ابن نجیمؒ: و قید باصله و فرعه لان من سواهم من القرابة یجوز الدفع لهم و هو اولی لما فیه من الصلة مع الصدقة کالاخوة و الاخوات و الاعمام و العمات و الاخوال و الخالات الفقراء و لهذا قال فی الفتاوی الظهیریة و یبدأ فی الصدقات بالاقرب ثم الموالی ثم الجیران الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، باب المصرف)

## خویندې ورونو ته د زكات د وركولو حكم

**سوال:** که چېرته خویندې ورونه غریبان وي نو آیا یو سړی د خپل مال زكات خپلو غریبو خویندو ورونو ته ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مېره او ښځې او اصولو فروعو نه علاوه نورو تولو خپلوانو ته زكات وركول نه یو اځې جائز بلکه تر نورو خلکو بهتر هم دي چه زكات ورکړی خو په دې شرط چه د نصاب خاوند ان نه وي. او خویندې ورونه چونکه نژدې خپلوان دي نو ځکه دوی ته د زكات په وركولو کښې څه حرج نشته.

قال ابن عابدینؒ: و قیّد با لولاد لجوازه لبقیة الاقارب کا لاخوة و الاعمام و الاخوال الفقراء بل هم اولی لانهٗ صلة و صدقة. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۶، باب المصرف)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: و قید باصلهٖ و فرعهٖ لان من سواهم من القرابة یجوز الدفع لهم و هو اولی لما فیه من الصلة مع الصدقة کا لاخوة و الاخوات و الاعمام و العمات و الاخوال و الخالات الفقراء. الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف) و مثله فه الهندیة ج۱، ص ۱۹۰، باب المصرف)

## یوه غریب ته د هبې یا د قرض په نامه سره د زکات ورکولو حکم

**سوال:** ځینې خلك زکات نه اخلي حالانکه ډېر غریب هم وي نو که چېرته هغوی ته د هبې یا قرض په نامه زکات ورکړی شي او نیت پکښې د زکات وشي نو آیا د اسې زکات ادا کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دوو وختونو کښې د ننه د زکات نیت ضروري دی یو د زکات روپۍ له نورو روپو څخه د جلا کولو په وخت کښې او بل د زکات د ورکولو په وخت کښې۔ په دغو وختونو کښې چه په کوم وخت کښې د زکات نیت وکړی شي او غریب او مستحق ته ئې چه په کومه طریقه سره ورکوي نو زکات ئې ادا کیږي۔ لهذا په نوموړي صورت کښې چه کله یوه مستحق ته د هبې او قرض په نامه چا زکات ورکړی وي او نیت ئې د زکات پکښې کړی وي نو زکات ئې ادا کیږي۔ البته که چېرته نوموړی غریب ئې بیرته ورکړي او وائې نه خلي نو بیا دې بل مستحق ته دې ورکړي۔

لما فی الهندیة و من اعطی مسکیناً دراهم سمّٰها هبة او قرضاً و نوی الزکٰوة فانها تجزیه و هو الاصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۱۷۱، کتاب الزکٰوة، الباب الاول)

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: من اعطی مسکیناً دراهم و سمّاها هبة او قرضاً و نوی الزکٰوة فانها تجزیه. (البحر الرائق ج۲، ص۲۱۲، کتاب الزکٰوة)

## د یو چا په منافعو کښې چه بچت نه وي هغه د زکات حقدار دی

**سوال:** د یوه سړي منافع خو معقول دي لیکن کورني اخراجات ئې دومره زیات دي چه په مشکله سره ئې گذاره پرې کیږي بلکه عموما نوموړی تول کال مقروض وي نو آیا د داسې سړي لپاره د زکات اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** واضحه دې وي چه کورني اخراجاتو ته په هغه وخت کښې اعتبار ورکول کیږي چه کله د انسان د ضروریاتو تکفل د شریعت په دائره کښې وشي۔ د غیر شرعي او د تبذیر و اسراف اخراجاتو ته هیڅ اعتبار نشته۔ لهذا که چېرته د یوه سړي کورني اخراجات د هغه له منافعو څخه په مشکله پوره کیده او له هغه سره دومره پیسې نه بچت کیدلې یعنې د هغه له ضروریاتو څخه زیاتې دومره روپۍ نه جمع کیدلې چه نصاب ته ورسیږي نو دا سړی د زکات حقدار دی او زکات ورکول ورته د شرعې له مخې جائز دي۔



قال ابن عابدینؒ: و ذکر فی الفتاوٰی فیمن لهٗ حوانیت و دور للغلة لکن غلتها لا تکفیه و عیاله انهٗ فقیر و یحل له اخذ الصدقة عند محمد رحمه الله. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۸، باب المصرف قبل مطلب فی جهاز المرأة)

قال العلامة فخر الدین قاضی خانؒ: و کذا لو کان لهٗ حوانیت او دار غلة تساوی ثلثة آلاف درهم و غلتها لا تکفی لقوته و قوت عیاله یجوز صرف الزکٰوة فی قول محمدؒ. (فتاوی قاضیخان ج۱، ص۱۲۷، فصل فیمن یوضع فیه الزکٰوة) و مثله فی فتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف)

## د نصاب د خاوند بچیانو ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** د یوه دولت منده سړي بچیانو ته د زکات ورکول څنگه دي په داسې حال کښې چه د بچیانو مصارف او د اسې نور ئې په پلار باندې وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له بلوغ نه وروسته په اولاد او والدینو کښې د ملکیت په اعتبار سره د بیگانگي د محسوسیدو په وجه سره کوم ملکیتي یو والی نه پاتې کیږي۔ نو ځکه د پلار دولت مندي د زوی حالت ته گټه نه رسوي نو د دې لپاره د دولت مند سړي بالغ اولاد ته چه غریب وي زکات ورکول جائز دي۔ لیکن له بلوغ نه مخکښې د بچي د تولو ضروریاتو ذمه واري په پلار باندې وي له دې وجهې دی په غناء کښې د پلار تابع دی۔ د والد د غني والي په وخت کښې ئې نابالغو بچیانو ته زکات ورکول جائز نه دي۔

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا الی ولد غنی اذا کان صغیراً لانهٗ یُعد غنیاً بمال ابیه بخلاف ما اذا کن کبیراً فقیراً لانه لا یُعدّ غنیاً بیسار ابیه و ان کانت نفقته علیه. (الهدایة ج۱، ص۱۸۸، باب المصرف)

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا الی طفله بخلاف ولده الکبیر و ابیه. قال ابن عابدینؒ: و قولهٗ (و لا الی طفله) ای الغنی فیصرف الی البالغ و لو ذکراً صحیحاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۹/۳۵۰، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف)

## مهاجرینو ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** آیا مهاجرینو ته محض د هجرت له وجهې زکات ورکول کیدلی شي او که نه؟ او که چېرته له مهاجر سره پخپل ملك کښې د نصاب په اندازه مال وي لیکن د هجرت له کولو نه وروسته د غربت ژوند تیروي نو آیا د اسې مهاجر ته زکات ورکول کیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زکات کښې بنیادي شی د فقیرانو د مشکلاتو آسانول دي محض په دې نامه سره چه فلانی سړی مهاجر دی نو زکات نه ورکول کیږي۔

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا یجوز دفع الزکٰوة الی من یملك نصابا من ای مال کان. (الهدایة باب المصرف ص۱۸۹)

قال الحصکفیؒ: و لا الی غنی یملك قدر نصاب فارغ عن حاجته من ای مال کان. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۷، باب المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۴، باب المصرف)

البته کوم سړی چه پخپل ملك کښې د نصاب خاوند وي لیکن له خپل وطن څخه د هجرت له کولو وروسته چه کله دا سړی د نصاب خاوند پاتې نه شي نو د خپل ملك د مالداری

له وجهې ذ هجرت په ځای کښې د نصاب خاوند نه شي جوړېدلی- لهذا د اسې سړي ته زکات ورکول کید ای شي- لِقولِهٖ تعالٰی: لِلْفُقَرَآءِ الْمُهَاجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ. (الآیة)

## غیر مسلم یا کافر ته د زکات او نورو واجبو صدقاتو د ورکولو حکم

**سوال:** یوه کافر ته د هغه د غربت په وجه زکات ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د ادا کولو د صحت او مصرف لپـــاره دا شرط دی چه زکـــات اخیستونکی به مسلمان وي نو له دې وجهې زکات او نور واجب صدقات کافر ته نه شي ورکول کیدلی-

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا یجوز ان یدفع الزکٰوة الی ذمی لقوله علیه السلام لمعاذ خذها من اغنیائهم و ردها فی فقرائهم و یدفع الیه ما سوٰی ذٰلك من الصدقة. (الهدایة ج۱، ص۲۰۸، باب من یجوز دفع الصدقات و ما لا یجوز)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و) لا تدفع الی (ذمی) لحدیث معاذؓ (و جاز) دفع (غیرها و غیر العشر) و الخراج (الیه) ای الذمّی و لو واجباً کنذر و کفارة و فطرة خلافا للثانی الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۱، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، باب المصرف)

## نابالغ هلك ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** نابالغ هلك ته په زکات ورکولو سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات په مصرف کښې دا ضروري نه دي چه چا ته زکات ورکوی نو هغه دې خامخا بالغ وي- بلکه دا ضروري دي چه قبض کوونکی عاقل وي- د پیسو د اخیستلو او د بیا مصرف کولو په باره کښې فهم او عقل ولري- مراهق بچی (چه بلوغ ته نژدې وي) عموماً دومره عقل لري نو ځکه مراهق عاقل بچي ته د زکات په ورکولو کښې څه حرج نشته- بیا هم د اسې نابالغ هلك په غربت او مالداري کښې د والد تابع وي نو ځکه که چېرته ئې پلار د نصاب خاوند وي نو بیا ئې نابالغ زوی ته په هیڅ صورت کښې د زکات ورکول جائز نه دي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و دفع الزکٰوة الی صبیان آقاربه برسم عید او الی مبشر او مهدی الباکورة جاز. و قال ابن عابدینؒ فی تشریح قوله (الی الصبیان آقاربه) ای العقلاء و الا فلا یصح الا بدفع الی ولی الصغیر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۶، باب المصرف)

و فی الهندیة: و لو قبض الصغیر و هو مراهق جاز و کذا لو کان یعقل القبض بان کان لا یرمی به و لا یخدع عنه و لو دفع الی فقیر معتوه جاز. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، باب المصرف)

## دیني طالبِ علم د زکات بهترین مصرف دی

**سوال:** د دیني مدارسو طالبانو ته د زکات د ورکولو څه حکم دی؟ په د اسې حال کښې چه په هغو کښې اکثر طلباء محتاج هم وي او د اهل خیر د توجیهاتو ډیر مستحق وي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دیني مدارسو طلباء شپه او ورځ د علم دین په حاصلولو کښې



مصروف اوسیږي او د دنیاوي کارونو خوا ته ئې ډیره کمه توجه وي- نو ځکه د زکات او نورو صدقاتو دوی ډیر مستحق دي- بلکه د نورو خلکو په نسبت دوی ته زکات ورکول ډیر بهتر هم دي- بیا هم کوم مالدار طالب علم ته د زکات په ورکولو سره زکات نه ادا کیږي-

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و فی المعراج التصدق علی العالم الفقیر افضل. و فی رد المحتار. ای من الجاهل الفقیر قهستانی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۴، باب المصرف)

و فی الهندیة: التصدق علی الفقیر العالم افضل من التصدق علی الجاهل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۳۹۴، باب المصرف)

## د دیني مدرسې دولت مند استاذ ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په اسلامي مدرسه کښې د درس او تدریس لپاره ځان فارغ کړی وي او په مالي اعتبار سره ئې حالت ښه وي- یعنې د نصاب خاوند وي نو آیا د اسې سړي ته د دیني علومو د تدریس له وجهې د زکات ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه د زکات په تملیك کښې د قبض کوونکي لپاره دا شرط دی چه فقیر به وي نو ځکه له عامل څخه پرته د زکات د مصرف په نورو اقسامو کښې له فقیر څخه پرته غني ته په زکات ورکولو سره زکات نه ادا کیږي- او تدریس یو د اسې عمل نه دی چه څوك د زکات د مصرف ځای وګرځوي نو ځکه د نصاب خاوند مدرس ته د زکات په ورکولو سره زکات نه ادا کیږي-

قال ابن عابدینؒ: هٰذا الفرع مخالف لاطلاقهم الحرمة فی الغنی و لم یعتمده احد. قلت و هو کذٰلك و الاوجه تقییده با لفقیر....... قال للاتفاق علی ان الاصناف کلّهم سوی العامل یعطون بشرط الفقر. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۰/۳۴۲، باب المصرف

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا یجوز دفع الزکٰوة الی من یملك نصاباً من ای مال کان. الخ (الهدایة ج۱، ص۲۰۷، باب المصرف) و مثله فی الهندیة: ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف)

## ســـــاد ات د زکات مصرف نه دي

**سوال:** د ساداتو لپاره د غنیمت په مال کښې د پنځمې پنځمه (خمس الخمس) د نه پاتې کیدو له وجهې آیا هغوی ته زکات او یا نور واجب صدقات ورکول کید ای شي او که نه؟ په خاصه توګه چه فقیران هم وي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول اللهﷺ مبارك خاندان ته منسوب سادات حضرات پخپل ذات کښې هر وخت د تعظیم او احترام قابل دي او د حضور نبي کریمﷺ په وجه سره هغوی ته د عظمت او عزت په سترګو کتل د ایماني جذبې تقاضاء ده- رسول اللهﷺ هغوی ته د زکات د نه ورکولو حکم د هغوی د عظمت او احترام له وجهې ورکړی دی - نو ځکه دد وی حکم د زمانې د تیریدو او یا د غنیمت د خمس الخمس (د پنځمې پنځمه) د نه پاتې کیدو له وجهې نه متاثر کیږي- بیا هم د استطاعت او قدرت خاوند انو لپاره ضروري دي چه په نفلي صدقاتو او عطیاتو سره د

هغوی امداد او تعاون وکړي تر څو چه د هغوی حالت بهتر وي۔ او واجب صدقات (زکات، سرسایه او د اسې نور) دې نه ورکوي۔ اګر که د امام طحاوي څخه د جواز قول راغلی دی۔

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا تدفع الی بنی هاشمی لقوله علیه السلام یا بنی هاشم انّ الله تعالی حرم علیکم غسالة الناس و اوساخهم الخ. (الهدایة ج۱، ص۲۰۶، باب المصرف)

و فی الهندیة: و لا یدفع الی بنی هاشم و هم آل علی و آل عباس و آل جعفر و آل عقیل و آل الحرث بن عبد المطلب رضی الله عنهم الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۶، باب المصرف)

## یوه مستحق ته د زکات د نصاب په اندازې سره د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یوه مستحق ته دومره زکات ورکړی شي چه د هغه د غناء سبب وګرځي او د نصاب خاوند شي نو آیا په دې سره ئې زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات په ورکولو کښې بنیادي فلسفه د فقراوو د فقر حالت بهترول دي نو ځکه هغوی ته دومره مال ورکول مناسب دي چه له وجهې ئې د هغو غربت لرې شي۔ لهذا که چېرته یو سړی مقروض وي نو هغه ته د قرض د اداکولو لپاره د زکات د تولو روپو ورکول جائز دي اګر که د نصاب له اندازې څخه زیاتې هم وي۔ لیکن بغیر له کومې وجهې یوه سړي ته د زکات د نصاب په اندازه زکات ورکول مکروه دي۔ بیا هم که څوک ئې ورکړي نو زکات ئې ادا کیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و کره اعطاء فقیر نصاباً او اکثر الا اذا کان المدفوع الیه مدیون او کان صاحب عیال بحیث لو فرقه علیهم لا یخص کل او لا یفضل بعد دَینه نصاباً فلا یکره الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۳، باب المصرف)

و فی الهندیة: قال زین الدین ابن نجیمؒ: (قولهٗ و کره الاغناء) ای کره ان یدفع الٰی فقیر ما یصیر بهٖ غنیاً. (البحر الرائق ج۲، ص۲۹، باب المصرف) و مثله فی الهندیة: ج۱، ص۱۸۸، باب المصرف)

## د عصري علومو طالب علم (زده کوونکي) ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** یو طالب علم (زده کوونکی) په پوهنتون کښې سبق وایي او د تعلیمي اخراجاتو پوره کول ئې له قدرت څخه د باندې دی نو آیا هغه ته زکات ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عصري علومو د تعلیم حاصلول څه ناجائز کار نه دی او نه په دې علم کښې د مصروفیت له وجهې د یوه سړي اهلیت متاثر کیږي۔ نو ځکه د د اسې طالب علم چه مسلمان او بالغ وي او د نصاب خاوند نه وي زکات ورکول ورته جائز دي۔ اګر که د هغه پلار دولت مند وي ځکه چه بالغ زوی د پلار په دولت مندي باندې دولت مند نه جوړیږي۔ بیا هم په غیر شرعي اخراجاتو کښې تعاون کول د تعاون علی المعصیت سره برابره ده۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا الی طفله بخلاف ولده الکبیر و ابیه الخ. و فی رد المحتار: و لا الی طفله ای الغنی فیصرف الی البالغ و لو ذکراً صحیحاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۹/۳۵۰، باب المصرف)



قال زین الدین ابن نجیم الحنفیؒ: (قوله و عبده و طفله) ای لا یجوز دفع الزکٰوة و ما الحق بها العبد الغنی و ولده الصغیر لان الملک فی العبد یقع لمولاه و هو لیس بمصرف. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۶، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۲، ص۱۸۹، باب المصرف)

## مالدار یا غني طالب علم ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو طالب علم مالدار وي نو آیا زکات ورکول ورته جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له کوم طالب علم سره په کور کښې دومره مال وي چه نصاب ته رسیږي لیکن د سفر په حالت کښې له هغه سره د نصاب له اندازې څخه کم مال وي نو د اسې طالب علم ته زکات ورکول کید ای شي ځکه چه د ید (لاس) ملکیت لره اعتبار وي۔

قال ابن عابدینؒ: و ابن السبیل اذا کان لهٗ فی وطنه مال بمنزلة الفقیر. (رد المحتار باب المصرف ص۳۴۳)

البته که چېرته له طالب علم سره موجود مال دومره وي چه د نصاب اندازې ته رسیده نو هغه ته زکات ورکول جائز نه دي ځکه چه د فقیر تملیك د زکات په اداکولو کښې شرط دی۔ البته د زکات عامل له دې شرط څخه مستثنٰی دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و هٰذا الفرع مخالف لاطلاقهم الحرمة فی الغنی و لم یعتمده احد قُلتُ و هو کذٰلك و الا وجه تقیده با لفقیر...... ثم قال الاتفاق علی ان الاصناف کلهم سوی العامل یعطون بشرط الفقر. (رد المحتار ج۲، ص۳۴۰، باب المصرف)

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا یجوز دفع الزکٰوة الی من یملك نصاباً من ای مال کان لان الغنی الشرعی مقدر به. (الهدایة ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف)

و ایضاً: و ابن السبیل من کان لہٗ مال فی وطنه و هو فی مکان لا شیء له فیه. (الهدایة ج۱، ص۱۸۷، باب المصرف)

## عربي مدارسو ته د سفیرانو په ذریعه د زکات ورکولو حکم

**سوال:** د عربي مدارسو لپاره د آمدنۍ د مستقلو ذرائع د نشت والي له وجهې زکات او نور واجب صدقات د سفیرانو په ذریعه جمع کیږي۔ آیا د مدارسو سفیرانو ته د زکات په ورکولو سره د انسان غاړه خلاصیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات او نورو واجبو صدقاتو د اداکولو لپاره د فقیرانو او مساکینو تملیك شرط دی۔ نو ځکه چه په کومو مدارسو کښې طلباوو ته خوراك ورکول کیږي نو په تملیکاً خوراك سره د زکات د پیسو اداکول صحیح دي۔ البته په کومو مدارسو کښې چه د مطبخ یعنې د خوراك او څښاك بندوبست نه وي نو د طلباوو اصالتاً یا وکالتاً قبض ضروري دی بلکه بهتره دا ده چه علماوو او طلباوو ته پخپله زکات ورکړی شي۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: یصرف المزکی الٰی کلهم او الٰی بعضهم الخ تملیکا لا اباحة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

و قال زین الدین ابن نجیم الحنفیؒ: هی تملیک المال من فقیر مسلم الخ. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۰۱، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱۷۰، کتاب الزکوٰة)

## ښځه او میړه یو بل ته زکات نه شي ورکولی

**سوال:** آیا میړه خپلې ښځې ته زکات ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځه او میړه د یوه او بل لپاره د زکات مصرف نه دي نو ځکه یوه او بل ته د زکات په ورکولو سره زکات نه ادا کیږي۔

قال علی ابن ابی بکر المرغینانیؒ: و لا الی امرأته للاشتراک فی المنافع عادة ولا تدفع المرأة الی زوجها عند ابی حنیفة. (الهدایة ج۱، ص۱۸۸، باب المصارف)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا الی من بینهما ولاد و لو مملوکاً لفقیر او بینهما زوجیة و لو مبانة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۳۴۶، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، باب المصرف

## د نژدې مدرسې په ځای لرې مدرسې ته د زکات د لیږلو حکم

**سوال:** یو سړی خپل زکات د تل لپاره د نژدې مدرسې په ځای لرې مدرسې ته ورکوي نو آیا د شریعت له مخې د اسې کول جائز دي او که نه او آیا زکات ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خپل ښار څخه بل ښار ته د زکات انتقالول مکروه تنزیهي دی۔ البته که چېرته خپل او خپلوان ئې په بل ښار کښې اوسیده او یا ئې له خپل ښار څخه د بل ښار خلک ډېر حاجتمند وو یا هلته د اسې مدرسه وي چه له نژدې مدرسې څخه ډېره امانت داره او محتاجه وي نو په دې صورت کښې څه کراهیت نشته۔ او د اسې کول یو اځې جائز نه بلکه اولی دي۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و) کره (نقلها الا الی قرابة) بل فی الظهیریة لا تقبل صدقة الرجل و قرابته محاویج حتی یبدأ بهم فیسد حاجتهم (او احوج) او اصلح او اورع او انفع للمسلمین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۳/۳۵۴، باب المصرف)

و فی الهندیة: و یکره نقل الزکوٰة من بلدٍ الی بلد الا ان ینقلها الانسان الی قرابة او الی قوم هم احوج الیها من اهل بلده و لو نقل الی غیرهم اجزأ و ان کان مکروها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۱۹۰، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۵۰، باب المصرف

## کوم سیاسي تنظیم یا انجمن ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو تنظیم مذهبي او سیاسي وي کوم چه په ملک کښې د اسلام د نفاذ لپاره هلې ځلې کوي نو آیا د اسې تنظیم ته د زکات او عشر ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات او عشر په ادا کولو کښې مسلمان فقیر لره مالك جوړول ضروري دي لهذا کوم تنظیم او انجمن اگر که مذهبي هم وي د دغو شرائطو په وجه د زکات او عشر او واجبو صدقاتو مستحق نه دی۔ لهذا تنظیم ته د زکات او عشر ورکول جائز نه دي۔



قال ابن نجیمؒ: هی تملیک المال من فقیر مسلم غیر هاشمی و لا مولاه بشرط قطع المنفعة عن الملک من کل وجه لله تعالی الخ. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۰۱، کتاب الزکوٰة)

قال شیخ الاسلام محمد بن عبد الله التمرتاشی الحنفیؒ: هی تملیک جزء مال عینه الشارع من مسلم فقیر الخ. (تنویر الابصار متن الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ۲۵۶/۲۵۷، کتاب الزکوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱۷۰، کتاب الزکوٰة)

## د زکات په نیت سره غریب ته د ډوډۍ ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو غریب او د زکات مستحق ته څوك له خپل ځان سره ډوډۍ ورکړي او په دې خوراك کښې د زکات نیت وکړي نو آیا په دې سره ئې زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات په ادا کولو کښې اهم او ضروري شرط تملیك دی چه یو غریب به د هغه مالك جوړوي۔ چونکه په صورت مسئوله کښې غریب ته په ډوډۍ ورکولو کښې تملیك نه راځي بلکه اباحت راځي۔ نو ځکه په دې سره زکات نه ادا کیږي۔ بیا هم که چېرته هغه خوراك چا ته د تملیك په توگه ورکړي نو صحیح دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: فلو اطعم یتیماً ناویاً الزکوٰة لا یجزیه الا اذا دفع الیه المطعوم لانهٗ با لدفع الیه بنیة الزکوٰة یملکه فیصیر اکلا من ملکه بخلاف ما اذا اطعمه معهٗ. (رد المحتار ج۲، ص ۲۵۶، کتاب الزکوٰة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و اما الاطعام ان دفع الطعام الیه بیده یجوز ـــــ ایضاً: لهٰذه العلّة و ان کان لم یدفع الیه و یاکل الیتیم لم یجز لانعدام الرکن هو التملیك. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۰۱، کتاب الزکوٰة)

## د وکیل لپاره د زکات روپۍ پخپله استعمالول

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته څوك د زکات روپۍ د مدرسې یا کوم غریب سړي لپاره ورکړي لیکن دا سړي ئې په ځان مصرف کړي په د اسې حال کښې چه دا سړی (وکیل) پخپله هم د زکات مستحق وي۔ نو آیا د زکات ورکوونکي زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته مزکي (زکات ورکوونکی) د اسړي یوې خاصې مدرسې او یا خاص سړي ته د زکات د رسولو وکیل جوړ کړی وي او د زکات پیسې ئې ورکړې وي او په دې صورت کښې وکیل هغه روپۍ پخپل ځان مصرف کړي نو زکات نه ادا کیږي او وکیل به د دې روپو ضامن وي۔ البته که چېرته د مزکي له خوا څخه مطلق اختیار ورکړی شوی وي چه چېرته ئې غواړي هلته دې مصرف کړي نو که چېرته نوموړی پخپله د زکات مستحق وي او د اسړی د پیسې د زکات په نیت قبض کړي نو زکات ادا کیږي او که نه وي نو نه ادا کیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و للوکیل ان یدفع لولده الفقیر و زوجته لا لنفسه الا اذا قال ربها ضعها حیثُ شئتَ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۹، کتاب الزکوٰة)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: للوکیل ان یدفع الزکوٰة لولده الفقیر او زوجته الفقیرة اذا لم یأمره با لدفع الی شخص معین و لا یجوز لهٗ ان یأخذ الزکوٰة لنفسه الا اذا قال له المؤکل ضعها حیث شئت. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص ۸۹۱، کتاب الزکوٰة، ثانیا التوکیل فی اداء الزکوٰة)

## د وکیل خپلو اقرباوو ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته د زکات د ویشلو ذمه واري ور وسپارل شي نو آیا دا سړی (وکیل) خپلو اصولو او فروعو ته د زکات د اروپۍ ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** وکیل پخپله په ذاتي توګه د مالك له اجازې پرته زکات نه شي اخیستلی لیکن اصول او فروع ئې چه کله د زکات مصرف وي یعنې مسکینان وي نو بیا دوی ته د زکات په ورکولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال الشیخ الامام حافظ الدینؒ: الوکیل باداء الزکٰوة اذا صرفه الی ولده الکبیر او الصغیر او امرأته و هم محاویج و لا یمسك لنفسه شیئاً. (بزازیة علی هامش الهندیة ج٤، ص٨٦، کتاب الزکٰوة الباب الثانی فی المصرف)

قال ابن عابدینؒ: (و لا الی طفله) ای الغنی فیصرف الی البائع و لو ذکراً صحیحاً..... فافاد ان المراد با لطفل غیر البالغ ذکراً او اُنثی فی عیال ابیه اولا علی الاصح لما انه بعد غنیاً بغناه بخلاف ولده الکبیر فانه لا یعد غنیاً بغنا ابیه و لا الاب بغنا ابنه...... و لا الطفل بغنٰی امه. (رد المحتار ج٢، ص٣٤٩/٣٥٠، باب المصرف، مطلب فی الحوائج الاصلیة) و مثله فی الهندیة ج١، ص١٨٩، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

## غني مجاهد ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** هغه خلك چه په جهاد کښې مصروف وي اګر که په مالي لحاظ سره ئې حالت ښه وي لیکن بیا هم یوائې د دې مقدس کار له وجهې هغوی ته زکات ورکول کید ای شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې سړی که چېرته په وطن کښې مال ولري لیکن د جهاد په میدان کښې څه ورسره نه وي نو بیا د اسې مجاهد ته د زکات په ورکولو کښې څه حرج نشته۔ البته که هلته هم غني وي نو بیا زکات نه شي ورکول کیدلی۔

لما قال العلامة الکاسانیؒ: و اما استثناء الغازی فمحمول علی حال حدوث الحاجة و سماء غنیاً علی اعتبار ما کان قبل حدوث الحاجة و هو ان یکون غنیاً ثم حدث به الحاجة....... ثم یعزم علی الخروج فی سفر غزوٍ فیحتاج الی آلات سفر و سلاحٍ یستعمله فی غزو و مرکب یغزّ علیه...... فیجوز ان یعطی من الصدقات ما یستعین به فی حاجته التی تحدث له فی سفره و هو فی مقامه غنی بما یملکه لانه غیر محتاج فی حال اقامته فیحتاج فی حال سفره فیحمل قوله لا تحل الصدقة لغنی الا لغازٍ فی سبیل الله علی من کان غنیاً فی حال مقامه فیعطنی بعض ما یحتاج الیه لسفره لما احدث السفر لهٗ من الحاجة الا انه یعطی حین یعطی و هو غنیّ. (البدائع الصنائع ج٢، ص٤٦، فصل الذی یرجع الی المودی)

لما قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله ما نسب للواقعات) و فی المبسوط لا یجوز دفع الزکٰوة الی من یملك نصاباً الا الی طالب العلم و الغازی و منقطع الحج لقوله علیه السلام یجوز دفع الزکٰوة لطالب العلم و ان لهٗ نفقة اربعین سنةً (رد المحتار ج٢، ص٣٤٠، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج١، ص١٨٨، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)



## زوم ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** آیا یو څوك خپل غریب او مفلس زوم ته زکات ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات مال هغو خپلوانو ته ورکول جائز نه دي کوم چه په اصولو او فروعو کښې داخل دي۔ زوم چونکه نه په فروعو کښې او نه په اصولو کښې داخل دی نو ځکه که چېرته غریب وي نو د نورو خپلوانو غوندې هغه ته هم زکات ورکول نه یوائې دا چه جائز دی بلکه افضل هم دی۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: قید باصله و فرعه لان من سواهم من القرابة یجوز الدفع لهم و هو اولٰی لما فیه من الصلة مع الصدقة کا لاخوة و الاخوات و الاعمام و العمات و الاخوال و الخالات الفقراء. و لهذا قال فی الفتاوی الظهیریة و یبدأ فی الصدقات با لاقارب، (البحر الرائق ج٢، ص٢٤٣، باب المصرف)

و فی الهندیة: و الافضل فی الزکٰوة و الفطر و النذر الصرف اولاً الی الاخوة و الاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الجیران. (الفتاوی الهندیة ج١، ص١٩٠، باب المصارف) و مثله فی رد المحتار ج٢، ص٣٤٦، باب المصرف)

## نږور ته (د زوی ښځې) ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته پلار او زوی په یو کور کښې یو ځای سره اوسیدل او خوراك چښاك ئې سره یوځای وو نو په د اسې حالت کښې نږور ته د زکات د ورکولو څه حکم دی؟ په د اسې حال کښې چه نږور ته چه کوم زکات ورکول کیږي ګټه ئې په هم هغه کور کښې محصورې پاتې کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اصولو او فروعو نه پرته نورو ټولو خپلوانو ته د زکات ورکول نه یوائې جائز بلکه افضل هم دي۔ د زوی ښځه یعنې نږور په اصولو او فروعو کښې داخله نه ده له دې وجهې د زکات مصرف هم ده۔ نو د دې لپاره هغې ته زکات ورکول جائز دي اګر که ګټه ئې بیرته په هم هغه کور کښې پاتې کیږي۔ خو په دې شرط چه نږور پخپله غنیه نه وي او د زکات مستحقه وي۔

لما قال ابن نجیمؒ: و قید باصلهٖ و فرعهٖ لان من سواهم من القرابة یجوز الدفع لهم و هو اولٰی لما فیه من الصلة مع الصدقة کا لاخوة و الاخوات و الاعمام و العمات و الاخوال و الخالات الفقراء. و لهذا قال فی الفتاوی الظهیریة و یبدأ فی الصدقات با لاقارب ثم المولٰی ثم الجیران و ذکر فی موضع آخر معزیاً الی ابی حفص الکبیر لا تقبل صدقة الرجل و قرابته محاویج فیسد حاجتهم. (البحر الرائق ج٢، ص٢٤٣، باب المصرف)

قال فی الهندیة: یکره نقل الزکٰوة من بلد الی بلدٍ...... و الافضل فی الزکٰوة و الفطر و النذور الصرف اولاً الی الاخوة و الاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الاعمام و العمات ثم الی اولادهم ثم الی الاخوال و الخالات ثم الی اولادهم. (الفتاوی الهندیة ج١، ص١٩٠، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی الرد المحتار علی الدر المختار ج٢، ص٣٥٣، باب المصرف)

## د جومات امام ته د عشر او زکات د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته د جومات یو امام د خپلو مقتدیانو څخه جبراً زکات وصول کړي یعني په مقتدیانو باندې ئې لازم ګرځولی وي چه خپل زکاتونه او عشر به امام ته ورکوي نو آیا په دې سره د نوموړي مقتدیانو عشر او زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اجرت کښې د زکات ورکول که په جبر سره وي یا په رضاء سره جائز نه دي۔ په داسې حالت کښې د قوم زکات نه ادا کیږي۔ بیا هم که چېرته امام غریب وي نو د صلهٔ رحمي په توګه هغه ته د زکات په ورکولو کښ څه حرج نشته۔

لما فی الهندیة: و لو نوی الزکٰوة بما یدفع المعلم الی الخلیفة و لم یستأجره ان کان الخلیفة لحالٍ لو لم یدفعه یعلم الصبیان. ایضاً اجزاه و الا فلا و کذا ما یدفعه الی الحذم من الرجال و النساء فی الاعیاد و غیرها بنیة الزکٰوة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۱۹۰، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

قال ابن نجیمؒ: و فی الملتقط من الاجارة المعلم اذا اعطی خلیفته شیئاً ناویا الزکٰوة فان کان بحیث یعمل له لو لم یعطه یصح عنها و الا فلا. (الاشباه و النظائر ج۲، ص ٦٤)

## مالدار امام ته د سرسایه ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته امام دولت مند ثابت شي نو له دې سره سره هغه ته د سرسایې د ورکولو څه حکم دی؟ په داسې حال کښې چه امام د سرسایې په شکل کښې د امامت د اجرت اخیستلو په حق کښې هم وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سرسایه فقیرانو او مسکینانو ته د تملیک په توګه ورکول کید ای شي۔ امام چه کله مالدار وي یعني د نصاب خاوند وي نو هغه ته د سرسایې په ورکولو سره د قوم غاړې نه خلاصیږي۔ او قوم باید چه د امام خدمت په بلې طریقې سره وکړي۔ او همدارنګه د امامت په اجرت کښې سرسایه ورکول جائز نه دي اګر که امام غریب هم وي۔ بیا هم که چېرته یو امام غریب وي نو د اجرت له نیت پرته یوائې د یوه عالم دین د ضروریاتو د پوره کولو په نیت سره د سرسایې په ورکولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال فی الهندیة: و مصرف هٰذه الصدقة ما هو مصرف الزکٰوة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹٤، کتاب الزکٰوة، الباب الثامن فی صدقة الفطر)

قال ابن نجیمؒ: و صدقة الفطر کالزکٰوة فی المصارف. (البحر الرائق ج۲، ص۲٥٦، باب المصارف) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۳٦۹، باب المصرف)

## په زکات کښې د دیني کتابونو د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته څوک دیني کتابونه واخلي او د زکات په نیت ئې په طالبانو باندې وویشي نو آیا په دې ډول سره ئې زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** کتابونه هم د نورو اجناسو غوندې د تملیک او تملك قابل دي۔ نو څکه په زکات کښې د کتابونو په ورکولو سره زکات ادا کیږي۔ بیا هم په دې کښې دا ضروري ده چه طلباوو ته تملیکاً ورکړل شي۔ او یوائې په عاریت سره د ورکولو په صورت کښې یا د مدرسې په کتب خانه کښې ئې د وقف په توګه د ایښودلو په صورت کښې د تملیك د نشت والي له وجهې زکات نه ادا کیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: یصرف المزکی الی کلهم او الی بعضهم الخ تملیکاً لا اباحة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳٤٤، باب المصرف)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: هی تملیل المال من فقیر مسلم الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۰۱، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱٦۰، کتاب الزکٰوة)

## د عیاشۍ له وجهې پوروړي سړي ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** یو سړی د عیاشۍ له وجهې پوروړی شوی دی نو آیا داسې سړی د مدیون یا پوروړي له جملې څخه په ګڼلو سره زکات ورکول ورته جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مقروض په قرض کښې دا ضروري نه دي چه هغه قرض دې د نیکۍ له وجهې وي لیکن بیا هم که چېرته د پوروړي د پور په ادا کولو کښې د هغه په فسق او فجور کښې زیاتوالی راتلو او د بې دینۍ لار نوره هم ورته خلاصیدله نو بیا د داسې سړي په ځای یوه نیك سړي ته د زکات ورکول بهتر دي۔

لما قال فی الهندیةؒ: التصدق علی الفقیر اعلام افضل من التصدق علی الجاهل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

قال الحصکفیؒ: او احوج او اصلح او اورع او انفع للمسلمین...... او الی طالب العلم و فی المعراج التصدق علی العالم الفقیر افضل. (الدر المختار لی صدر رد المحتار ج۲، ص۳٥٣/۳٥٤، باب المصرف) و مثله فی الطحطاوی ص۳۹٤، باب المصرف)

## په پوروړي سړي باندې د زکات د وجوب حکم

**سوال:** که چېرته له چا سره دومره مال وي کوم چه د نصاب مقدار ته رسیږي لیکن پخپله مقروض دی۔ که چېرته پور له هغه مال څخه ورکړي نو نصاب پوره نه پاتې کیږي نو آیا په داسې سړي باندې زکات واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له یوه سړي سره دومره مال وي چه د نصاب اندازې ته رسیده لیکن د مقروض والي له وجهې که چېرته پور ترې وایستل شي نو پاتې مال د نصاب اندازې ته نه رسیده۔ نو په داسې سړي باندې زکات نه واجبیږي۔ البته که چېرته د پور له ایستلو نه وروسته دومره مال باقي پاتې شي چه د نصاب اندازې ته رسیده نو د کال له تیرېدو وروسته به

په د اسې سړي باندې زکات لازم وي۔

قال علی بن ابی بکر المرغینانیؒ: و ان کان ماله اکثر من دَینه زکی الفاضل اذا بلغ نصاباً. (الهدایة ج۱، ص۱۶۸، کتاب الزکٰوة)

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: فلا زکٰوة علی مکاتب و مدیون للعبد بقدر دَینه فیزکی الزائد ان بلغ نصاباً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۳، کتاب الزکٰوة) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۱۱۸، کتاب الزکٰوة)

## د زکات د ورکولو په وخت کښې په ظاهري حالت باندې اکتفاء کول

**سوال:** که چېرته د یوه سړي ظاهري حالت ته په کتو سره څوك فقیر او محتاج ګڼل شي او زکات ورکړی شي په د اسې حال کښې چه د هغه له اصلي حالت څخه زکات ورکوونکی خبر نه وي نو آیا په د اسې حالت کښې د زکات ورکوونکي زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې حالت کښې د زکات د ورکولو د ارومد ار د زکات ورکوونکي په غالب ګمان پورې اړه لري۔ که چېرته د زکات د ورکولو په وخت کښې د هغه غالب ګمان د ا وي چه د ا سړی د زکات مصرف دی او زکات ورکړي نو زکات ئې ادا کیږي اګر که وروسته بیا د هغه سړي غناء ثابته شي۔

لما قال فی الهندیة: اذا شك و تحری فوقع فی اکبر رأیه انه محل الصدقة فدفع الیه او سأل منه فدفع او راٰه فی صف الفقراء فدفع فان ظهر انه محل الصدقة جاز با لاجماع و کذا ان لم یظهر حاله عنده و اما اذا ظهر انهٗ غنی او هاشمی...... فانه یجوز و تسقط عنه الزکٰوة فی قول ابی حنیفةؒ و محمدؒ الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹/۱۹۰، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: قال ابو حنیفةؒ و محمدؒ اذا دفع الزکٰوة الی رجل یظنُّه فقیراً ثم بان انه غنی او هاشمی او کافر او دفع فی ظلمة فبان انه ابوه او ابنه فلا اعادة علیه........ و هذا اذا تحرّٰی فدفع و فی اکبر رأیه انه مصرف اما اذا شك و لم یتحرّٰی او تحرّٰی فدفع و فی اکبر رأیه انهٗ لیس بمصرف لا یجزیه الا اذا علم انه فقیر هو الصحیح. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۲۱۴/۲۱۵، باب من یجوز دفع الصدقة الیه الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۷، باب المصارف)

## زکات به د کاروبار د ځای په مستحقینو باندې ویشل کیږي

**سوال:** فقهاء کرامو د ا لیکلي دي چه د زکات مال د خپل کلي د فقراوو په ځای د بل ځای په فقیرانو باندې ویشل مکروه دي۔ نو له دې څخه کوم کلی مراد دی؟ که چېرته یو سړی خپل اصلي وطن پریږدي او بل ځای خپل د اقامت وطن جوړ کړي او هلته تجارت کوي نو د ده د زکات د پیسو لپاره به وطن اصلي او که وطن اقامت خپل کلی ګڼل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له دې څخه هغه ځای مراد دی چه چېرته کاروبار کوي که هغه ئې وطن اصلي وي او که وطن اقامت۔ ممکنه ده چه یوه انسان خپل د پید ائش ځای پرېښی وي بل چېرته په کاروبار مصروف وي نو ورته په کار دي چه د کاروبار په ځای کښې دې خپلې د زکات روپۍ په فقیرانو باندې تقسیم کړي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و المعتبر فی الزکٰوة فقراء مکان المال الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۵، باب المصرف)



قال زین الدین ابن نجیمؒ: و المعتبر فی الزکٰوة مکان المال فی الروایات کلها. (البحر الرائق ج۲، ص۲۵۰، باب المصرف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، الباب السابع فی المصارف)

## د زکات په پیسو باندې د دیني کتابونو د چاپولو حکم

**سوال:** یو سړی د دیني کتابونو د چاپولو اراده لري لیکن غریب دی او وس ئې نه لري نو که چېرته له خلکو څخه زکاتونه واخلي او کتابونه چاپ کړي او بیا ئې د زکات په مستحقینو باندې وویشي نو آیا د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د اسړی پخپله د زکات مصرف وي او د زکات ورکوونکو په اجازې سره له طباعت نه وروسته د ا کتاب په مستحقینو باندې وویشي نو زکات ادا کیږي ځکه چه د زکات په ادا کولو کښې د فقیر تملیك ضروري دی۔ او که چېرته تملیك ممکن نه وو نو بیا په د اسې ځای کښې د زکات روپۍ لګول صحیح نه دي۔

لما قال الحصکفیؒ: و یشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحة فلا یصرف الی بناء نحو المسجد و لا الی کفن میت و قضاء دینه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

قال فی الهندیة: اما تفسیره فهی تملیك المال من فقیر مسلم الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۰، کتاب الزکٰوة، الباب الاول)

و فیه ایضا: و لا یجوز ان یبنی با لزکٰوة المسجد و کذا القناطر و السقایات..... و کل ما لا تملیك فیه الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۲۰۷/۲۰۸، باب المصرف)

## په مدارسو او خانقاوو باندې د زکات د روپو د لګولو حکم

**سوال:** د مدارسو له مهتممینو او یا د خانقاوو له رئیسانو سره د زکات روپۍ جمع کیږي او په مطبخ او د اسې نورو باندې مصرفیږي۔ په د اسې حالت کښې له مطبخ څخه دولت مند او غریب دو اړه قسمه خلك خوراکونه کوي۔ نو آیا په دې سره زکات ادا کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د ادا کولو د صحت لپاره یوه فقیر او مسکین لره مالك جوړول ضروري دي۔ په دیني مدارسو کښې عموماً غریب او نادار طلباء اوسیږي کوم چه د زکات پیسې ورکول کید ای شي۔ لیکن د خانقاوو له لنګر څخه د ډوډۍ خوړونکي یوائې مساکین نه وي بلکه دولت مند خلك هم وي۔ هسې هم د خوراك په خوړلو کښې تر څو پورې چه باقاعده تملیك نه وي نو یوائې د اباحت په توګه د زکات ورکول د زکات د صحیح ادا کیدو لپاره کافي نه دي۔ بهتره د ا ده چه فقراء زکات قبض کړي بیا که وغواړي نو په مطبخ او لنګر کښې دې مصرف کړي لیکن په دې کښې هم له فقیر څخه د پیسو په زوره اخیستل د تملیك په دې حیلې کښې د هزل ښوونه کوي۔ په هر حال د حیلۀ تملیك نه پرته د زکات پیسې په لنګر باندې مصرفول له نقصان څخه خالي نه وي۔

قال فی الهندیة: منها الفقیر و هو من لهٗ ادنٰی شیء و هو ما دون النصاب او قدر نصابٍ غیر نامٍ و هو مستغرق فی

الحاجة فلا يخرجه عن الفقر ملك نصاب كثيره غير نامية اذا كانت مستغرقة بالحاجة. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۸۷، كتاب الزكٰوة، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة الحصكفیؒ: ای مصرف الزكٰوة و العشر هو فقير و هو من لهٗ ادنٰی شیء ای دون نصاب او قدر نصابٍ غير نامٍ مستغرق فی الحاجة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۹، باب المصرف) و مثله فی المراقی الفلاح ص۳۹۲، باب المصرف)

## د دیني مدارسو او خیریه ادارو په جمع شوي مال باندې د زکات حکم

**سوال:** د ځینو دیني مدارسو او خیریه ادارو ډیره آمدني وي نو آیا په هغو باندې به زکات واجب وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د وجوب لپاره ذاتي ملکیت ضروري دی۔ د دې لپاره د مدارسو او خیریه ادارو په آمدني باندې د کال له تیریدو سره سره زکات نه واجبیږي۔

لما قال ابن عابدینؒ: (قوله ملك نصاب) فلا زكٰوة فی سوائم الوقف و الخيل و المسبلة لعدم الملك. (رد المحتار ج۲، ص۲۵۹، كتاب الزكٰوة)

قال العلامة كاسانیؒ: و اما الشرائط التی ترجع الی المال فمنها الملك فلا تجب الزكٰوة فی سوائم الوقف و الخيل المسبلة لعدم الملك و هٰذا لان فی الزكٰوة و التمليك فی غير الملك لا يتصور. (بدائع الصنائع ج۲، ص۹، فصل الشرائط التی ترجع الی المال) و مثله فی تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج۱، ص۲۵۲، كتاب الزكٰوة)

## کوم سیاسي ګوند یا ډلې ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** په نننۍ زمانې کښې ځینې سیاسي ګوندونه د خپل ځان لپاره د زکات روپۍ او د قربانۍ څرمنې جمع کوي نو آیا هغوی ته د زکات ورکول جائز دي او که نه؟ او که څوك ئې ورکړي نو زکات ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زکات او واجبو صدقاتو کښې له عوض پرته تملیك شرط دی۔ چونکه سیاسي ګوندونو کښې دا شی موجود نه وي نو ځکه د زکات مالونه د سیاسي مقاصدو، مقدماتو، انتخاباتو او نورو کارونو کښې استعمالول جائز نه دي او نه زکات پرې ادا کیږي۔ بلکه د هغو په ځای دیني مدارس د زکاتونو بهترین مصرف دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: هوی تمليك خرج الاباحة فلو اطعم يتيماً ناويا الزكٰوة لا يجزيه الا اذا دفع اليه المطعوم...... جزء ماله اخرج المنفعة فلو اسكن فقيراً داره سنة ناوياً لا يجزيه عينه الشارع...... من مسلم فقير و لو عتوها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۷/۲۵۸) كتاب الزكٰوة)

لما قال العلامة ابو البركات النسفیؒ: هی تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمی. (الكنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۲۰۱، كتاب الزكٰوة)



## د ټیکس په ادا کولو سره د زکات او عشر وجوب نه متاثر کیږي

**سوال:** حکومت له تجارتي او صنعتي ادارو څخه ډیر ټیکسونه اخلي او هغه ټیکسونه په خیریه کارونو کښې مصرفوي۔ نو آیا په د اسې طریقه د ټیکس په ادا کولو سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مختلف ډول ټیکسونه د حکومت د منافعو ذرائع دي چه په هغو کښې د عبادت عنصر مفقود دي۔ نو ځکه د ټیکسونو په ادا کولو سره زکات نه ادا کیږي۔ همدا وجه ده چه حکومت ټیکس له هر ښهري او اوسیدونکي ~~څخه~~ وصولوي که مسلمان وي او که کافر۔ په د اسې حال کښې چه د زکات د ادا کولو لپاره اسلام شرط دی۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: الزكٰوة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملك نصاباً ملكاً تاماً و حال عليه الحول. (الهداية ج۱، ص۱۸۵، كتاب الزكٰوة)

لما قال العلام الحصكفیؒ: و شرط افتراضها عقل و بلوغ و اسلام و حرية و العلم به و لو حكماً ككونه فی دارنا فلا زكٰوة. قال ابن عابدينؒ: قوله و اسلام فلا زكٰوة علی كافر لعدم خطابه با لفروع. (رد المحتار ج۲، ص۲۵۸، كتاب الزكٰوة) و مثله فی شرح الوقاية ج۱، ص۲۶۹، كتاب الزكٰوة)

## د موقوفه زمکې په مقدمه باندې د زکات د روپو د مصرفولو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي د قبرستان په زمکې باندې یوه سړي ناجائزه قبضه کړې ده نو آیا مونږ په دې مقدمه کښې د خپل زکات روپۍ مصرفولی شو او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات په ادا کولو کښې له عوض پرته تملیك شرط دی۔ چونکه په دې مقدمه کښې دا شرط مفقود دی یعنې نشته۔ نو ځکه د قبرستان په مقدمې کښې او یا په نورو خیریه کارونو کښې د زکات د پیسو لګول صحیح نه دي او نه زکات پرې ادا کیږي۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفیؒ: و يشترط ان يكون الصرف تمليكاً لا اباحة كما مر لا يصرف الی بناء نحو مسجد و لا الی كفن ميت و قضاء دَينه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

لما قال العلامة ان نجيمؒ: تحت قوله و لا الی ذمّی و غيرها و بناء مسجد و تكفين ميّت و قضاء دينه و شراء قن يعتق...... و عدم الجواز لانعدام التمليك الذی هو الركن فی الاربعة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصارف)

## د زکات له روپو څخه د مشترکې فائدې لپاره د سامان د اخیستلو حکم

**سوال:** که چېرته د کلي خلك د خوشحالۍ او غم لپاره لوښې، خیمې او یا چوکۍ او د اسې نور شیان په اجتماعي توګه د اخیستلو اراده وکړي نو آیا د دې کار لپاره د زکات پیسې استعمالیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زکات او واجبو صدقاتو کښې له عوض پرته تملیك شرط دی۔ د مشترکه مفاد لپاره چه کوم شیان اخیستل کیږي هغوی چونکه د یوه سړي ملکیت نه وي نو

ځکه په د اسې شیانو کښې د زکات د پیسو استعمالول جائز نه دي۔

لما قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یشترط ان یکون الصرف تملیکاً لا اباحةً کما مر لا یصرف الی بناء نحو المسجد و لا الی کفن میّت........ لعدم التملیك و هو الرکن. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

قال فی الهندیة: و لا یجوز ان یبنی با لزکٰوة المسجد و کذا القناطر و التعایات و اصلاح الطرقات........ و کل ما لا تملیك فیه. (الفتاوی الهندیة: ج۱، ص۱۸۸، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۲، ص۲۰۷، باب من یجوز دفع الصدقة الیه الخ)

## آیا سنیان شیعه ګانو ته زکات ورکولی شي؟

**سوال:** که چېرته په شاوخوا کښې د شیعه ګانو آبادي زیاته وي او سُني سړی خپل زکات شیعه ګانو ته ورکړي نو آیا زکات ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زکات او نورو واجبو صدقاتو کښې له عوض پرته تملیك شرط دی۔ او د زکات د مصرف لپاره هم دا شرط دی چه هغوی به مسلمان وي۔ او حال دا چه غالي ډوله شیعه ګان د خپلو باطلو عقائدو له وجهې له اسلام څخه وتلي دي نو ځکه د اسې خلك د سُني د زکات د مصرف ځایونه نه دي او نه په دوي باندې زکات ووځي۔ بیا هم له واجبو صدقاتو پرته نورې نفلي صدقې کافرو ته په ورکولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: و هی تملیك جزء مال عینه الشّارع من مسلم فقیر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۶/۲۵۷، کتاب الزکٰوة)

قال فی الهندیة: و اما الحربی المستامن فلا یجوز دفع الزکٰوة و الصدقة الواجبة الیه با لاجماع و یجوز صرف التطوع الیه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصارف)

## په قسطونو باندې په پلورل شویو شیانو کښې د زکات حکم

**سوال:** یوه سړي یو ګاډی په یو لك نقدو روپو باندې واخیست او بیا ئې په یو لك پنځه ویشت زره روپو باندې په قسطونو د اسې وپلوره چه هر کال به پنځه ویشت زروه روپۍ د قسط په توګــــــه ورکوي۔ نو آیا زکات به په ټولو پیسو باندې راځي او که یوازې په قسطونو باندې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته څوك یو شی د تجارت په نیت باندې واخلي او بیا ئې په قسطونو باندې په ګټه وپلوري نو په دې کښې به زکات د هر قسط له وصولولو وروسته واجبیږي۔ کله چه کم تر کمه څلویښت روپۍ ورته د قسط په توګه وصول شي نو په هغو کښې به څلویښتمه یعنې یوه روپۍ زکات ورکول لازم وي۔ که چېرته له څلویښتو روپو څخه کمې وي او له اول څخه نصاب پوره وي نو د قسط په صورت کښې حاصلیدونکي روپۍ به هم له نصاب سره یو ځای کوي او د ټول مال زکات به ورکوي او که له اول څخه نصاب پوره نه وي نو د



څلویښتو روپو له پوره کیدو نه وروسته به زکات لازمیږي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: فتجب زکٰوتها اذا تم نصابا و حال الحول لکنّ لا فوراً بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوی کقرض و بدل مالِ تجارة فکلما قبض اربعین دزهماً یلزمه درهم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۰۵، باب زکٰوة المال)

و فی الهندیة: و قوی و هو ما یجب بدلا عن سلع التجارة اذا قبض اربعین زکی لما مضی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۵، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۰۷، کتاب الزکٰوة)

## د زکات د حیلې حکم

**سوال:** په مدارسو او مساجدو کښې د پیسو د مصرف کولو لپاره په عمومي توګه دا حیلې جوړیږي چه یو سړی د زکات ټولې روپۍ قبض کوي او بیا ئې په تعمیر او د اسې نورو شیانو کښې مصرفوي۔ او ډیر وخت قبض کوونکی متولی او د مدرسې مهتمم د زکات مصرف هم نه وي۔ نو په دې صورت کښې زکات ادا کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** واضحه دې وي چه د زکات د ادا کولو لپاره تملیك شرط دی۔ لیکن په تملیك کښې دا ضروري ده چه قبض کوونکی به پخپله د نصاب خاوند نه وي۔ که چېرته د مدرسې مهتمم او یا ناظم پخپله د نصاب خاوند نه وي نو هغوی ته قبض جائز دی او بیا د هغو روپو په جومات او مدرسې باندې په لګولو کښې څه حرج نشته۔ لیکن بهتر صورت ئې دا دی چه د دې حیلې په ځای دې د زکات روپۍ په طالبانو وویشل شي تر څو چه زکات ئې ښه بهتر ادا شي۔

قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و حیلة التکفین بها التصدق علی فقیر ثم هو یکفن فیکون الثواب لهما و کذا فی تعمیر المسجد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۵، کتاب الزکٰوة)

قال زین الدین ابن نجیمؒ: و الحیلة فی الجواز فی هٰذه الاربعه ان یتصدق بمقدار زکٰوته علی فقیر ثم یامره بعد ذٰلك با لصرف الی هٰذه الوجوه فیکون لصاحب المال ثواب الزکٰوة و للفقیر ثواب القرب. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الاشباه و النظائر ج۲، ص۲۲۴، کتاب الزکٰوة)

## یو چا ته د خپل پور په معاف کولو سره زکات نه ادا کیږي

**سوال:** که چېرته دائن د مدیون یعنې پوروړي مفلسي او بد حالت ته وګوري او خپل دین او پور مدیون ته په زکات کښې ور پریږدي نو آیا په دې سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسقاط کښې د تملیك د نشت والي په وجه د اسې زکات نه ادا کیږي۔ او که چېرته د زکات پیسې ورکړي او بیا ئې بیرته په پور کښې ترې واخلي نو په د اسې کولو سره ئې زکات ادا کیږي۔

و فی الهندیة: و لو وهب دَینه من فقیر و نوٰی زکٰوة دین آخر له علی رجل آخر او نوٰی زکٰوة عین لهٗ لم یجز کذا فی الکافی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۷۱، کتاب الزکٰوة، الباب الاول فی تفسیرها الخ)

قال فخر الدین الشّهیر بقاضی خانؒ: و ان کان المدیون فقیراً فوهب الدّین ینوٰی به زکٰوة مال عین عند

الواهب لا يسقط عنه زكوٰة ذلك المال و كذا نوى به زكوٰة دَين آخر على غيره. (الفتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۲۶۳/۲۶۴، فصل فى هبة الدَّين من المديون) و مثله فى خلاصة الفتاوى ج۱، ص ۲۴۴، جنس فى هبة الدَّين)

## د زکات روپۍ چه غلا شي يا ئې څوك په زوره يوسي نو زكات ادا كيږي او كه نه؟

**سوال:** كه څېرته څوك د زكات پيسي بيلې كړي او په دې غرض سره ئې له ځان سره كښيږدي چه كله كوم مسكين پيدا شي نو وركوم به ئې- او بيا كوم غل دا پيسي غلا كړي او يا ئې په زور سره تري يوسي نو آيا د ده غاړې پرې خلاصيږي او كه له سره به ئې ادا كوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زكات په ادا كولو كښي د ادا كوونكي نيت ضروري دی- د جبر په صورت كښي ئې چه نيت نه وي نو زكات ئې نه ادا كيږي-

قال زين الدين ابن نجيمؒ: لو امتنع من ادائها فا لساعى لا يأخذ منه كرها و لو اخذ لا يقع عن الزكوٰة لكونها بلا اختيار. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۱۱، كتاب الزكوٰة)

نيت كول د زكات د وركولو په وخت كښي ضروري نه دي- بلكه كه څېرته د زكات د روپو د بيلولو په وخت كښي ئې نيت كړې وي نو كافي ده- ليكن بيا هم غاړې ئې تر هغه وخته پورې نه خلاصيږي تر څو چه فقراوو قبض كړې نه وي- د غلا په وخت كښي چونكه د فقراوو قبض وجود نه لري نو ځكه په زكات وركوونكي باندې دوباره زكات واجب دی- البته په اموال ظاهره كښي د جبراً زكات په وصولولو سره زكات ادا كيږي-

قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: و شرط صحة ادائها نية مقارنة له اى للاداء و لو حكماً او بعزل ما وجب كله او بعضه و لا يخرج عن العهدة با لعزل بل با لاداء للفقراء. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، كتاب الزكوٰة)

قال زين الدين ابن نجيمؒ: انه لا يخرج ما وجب عن العهدة بل لا بد من الاداء الى الفقير. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۱۱، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الطحطاوى حاشية الدر المختار ج۱، ص ۳۹۰، كتاب الزكوٰة)

## د ډاك يا حوالې په ذريعه چا ته د زكات د ليږلو حكم حال دا چه هغه روپۍ زكات اخيستونكي ته پوره نه رسيږي كومې چه مزكي ور ليږلي دي

**سوال:** يو سړی د بل چا په ذريعه زكات ليږي نو آيا هغه سړي ته بعينه همدغه روپۍ وركول ضروري دي او كه تبديلولی ئې شي؟ او همد ارنگه د ډاكخانې يا حوالې په ذريعه كومې روپۍ چه مستحق ته ليږل كيږي نو بعينه هغه روپۍ مستحق ته نه رسيږي بلكه تبديليږي نو په دې صورت كښي ئې زكات ادا كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بل چا په ذريعه مستحقينو ته د زكات ليږل جائز دي او د پيسو تبديلي كه د مزكي په اجازه شوې وي نو دا سړی به ضامن نه وي- او د ډاكخانې په ذريعه د زكات په ليږلو كښي هيڅ حرج نشته ليكن ډاكخانې ته ئې د وركولو په وخت كښي د زكات نيت ضروري دی- لما فى الشامى لا يخرج المزكى عن العهدة با لعزل بل با لاداء للفقراء.



لما قال علاؤ الدين الحصكفيؒ: تمليك الدين ممن ليس عليه الدَّين باطل الا فى ثلث حوالة او وصيّة و اذا سلّطه اى سلط المملك غير المديون على قبضه اى الدين فيصح حينئذٍ و منه ما لو وهبت من ابنها ما على ابيه فا لمعتمد الصحة للتسليط. (الدر المختار ج۴، ص ۵۲۱)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: كما اذا وكل رجلاً بدفع زكوٰة ماله و نوى المالك عند الدفع الى الوكيل بلا نية يجزيه لان المعتبر نية الامر لانه المودى حقيقةً. (البحر الرائق ج۲، ص ۲۱۰، كتاب الزكوٰة) و مثله فى الهندية: ج۱، ص ۱۷۰، كتاب الزكوٰة)

## په بل ځای كښي اوسيدونكو خپلوانو ته د زكات د ليږلو حكم

**سوال:** يو سړي د خپل زكات روپۍ د خپل يوه خپلوان لپاره بل ځای ته ليږل غواړي په داسي حال كښي چه دی پخپله په كوم ځای كښي اوسيږي هلته هم غريبان شته نو آيا د شاو خوا خپلوانو ته زكات نه وركول او لرې اوسيدونكو خپلوانو ته ئې ليږل جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسي خو عموماً له يوه ځای څخه بل ځای ته د زكات ليږل مكروه دي ليكن كه څېرته د زكات وركوونكي كوم محتاج خپل په كوم بل ځای كښي اوسيده نو د خپلوي په وجه د زكات انتقالول مرخص دي بلكه لومړی پخپلو خپلوانو باندې د زكات ويشل افضل دي.

لما قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (تحت قوله بل فى الظهيرية لا تقبل) عن ابى هريرة رضى الله عنه مرفوعاً الى النبى ﷺ انهٗ قال يا امّة محمد و الذى بعثنى با لحق لا يقبل الله صدقة من رجل و لهٗ قرابة يحتاجون الى صلته و ليصرفها الى غيرهم و الذى نفسى بيده لا ينظر الله اليه يوم القيمة و المراد بعدم القبول عدم الاصابة عليها و ان سقط بها الفرض لان المقصود منها سدخله المحتاج و فى القريب جمع بين الصلة و الصدقة و الافضل اخوته و اخواته الخ. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۳/۳۵۴، باب المصرف)

قال ابن نجيم رحمه الله: و يبدأ فى الصدقات با لاقارب ثم الموالى ثم الجيران و ذكر فى موضع آخر معزياً الى ابى حفص الكبير لا تقبل صدقة الرجل و قرابته محاويج فيس حاجتهم. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف) و مثله فى نور الايضاح ص ۱۶۰، كتاب الزكوٰة، باب المصارف)

## د زكات له پيسو څخه د زكات ويشونكو ته مزدوري وركول

**سوال:** په اوسني دور كښي د وخت حكومت په بانكونو كښي د عوامو له جمع شويو روپو څخه حصه گرځوي او بيا ئې خلكو ته وركوي او د دې كار لپاره حكومت ځيني خلك مقرر كړي دي چه هغوی ته د دغو روپو د تقسيم او نورو معاملاتو په عوض كښي د مياشتي څه پيسي د تنخواه په توگه وركوي نو آيا د داسي خلكو لپاره د اسي روپۍ اخيستل جائز دي او كه نه؟ په داسي حال كښي چه د حكومت د بيان مطابق دا د زكات پيسي وي او په تقسيم كوونكو كښي اكثره د زكات مستحق هم نه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عوامو له روپو څخه تولې اخيستل شوې روپۍ د زكات نه وي بلكه

په هغو کښې د سود دروپو هم څه حصه شامله وي۔ بیا هم که چېرته د زکات روپۍ هم وي نو عامل ته د زکات له روپو څخه مزدوري ورکول جائز دي۔ اګر که هغه مالدار او دولت مند هم وي۔

لما فی الهندیة: و منها العامل و هو من نصبه الامام لاستیفاء الصدقات و العشور و یعطیه ما یکفیه و اعوانه با لوسط مدة ذهابهم و ایابهم ما دام المال باقیاً الا اذا استغرقت کفایته الزکٰوة فلا یزاد علی النصف. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، کتاب الزکٰوة، الباب السابع فی المصاحف)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و عامل یعم الساعی و العاشر فیعطی و لو غنیاً لا هاشمیاً لانه فرغ نفسه لهٰذا العمل فیحتاج الی الکفایة و الغنی لا یمنع من تناولها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۳۹/۳۴۰، باب المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۱، باب المصارف)

## د مدرسو د مهتممینو لپاره زکات د خپل صوابدید مطابق او یاد حیلهٔ تملیك نه وروسته د مصرفولو حکم

**سوال:** د مدارسو مهتممینو ته د زکات پیسې چه کله د مدارسو لپاره ورکړی شي نو آیا مهتمم هغه روپۍ د خپل صوابدید مطابق د مدرسې په ټولو امورو کښې مصرفولی شي او که د حیلهٔ تملیك نه به نې وروسته مصرفوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مدارسو مهتممین اګر که د عاملینو غوندې دي لکه څرنګه چه د زکات عاملین د زکات مالونه د خپل صوابدید مطابق په غیر شرعي مصارفو کښې نه شي لګولی همدارنګه مهتممین هم د زکات روپۍ په غریبو طالبانو باندې له تملیك نه پرته د هغوی په نورو امورو کښې نه شي مصرفولی۔ بلکه د مدرسې په کارونو کښې د مصرفولو لپاره شرعي حیله ضروري ده۔

لما قال ابو بکر الکاسانیؒ: ما یوضع فی بیت المال من الاموال فاربعة انواع الاول زکٰوة السوائم و العشور و ما اخذه العشار من تجار المسلمین اذا مروا علیهم و محله ما ذکرنا من المصارف ای الفقراء و المساکین. (بدائع الصنائع ج۲، ص۶۸، فصل و اما بیان ما یوضع...... الخ)

و فی الهندیة: ما یوضع فی بیت المال اربعة انواع الاول زکٰوة السوائم و العشور و ما اخذه العاشر من تجار المسلمین الذی یمرون علیه و محله ما ذکرنا من المصارف. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، کتاب الزکٰوة) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۶۳، کتاب الزکٰوة)

## د دیني مدارسو مهتممینو ته د زکات ورکولو حکم

**سوال:** خلك د دیني مدارسو مهتممینو ته زکاتونه ورکوي په داسې حال کښې چه مهتممین خپله مالداره وي نو آیا دغو مهتممینو ته د زکات په ورکولو سره د زکات ورکوونکو زکاتونه اداکیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په موجوده زمانه کښې د دیني مدارسو د مهتممینو حیثیت د زکات



د عاملینو غوندې دی۔ کله چه یو سړی هغوی ته زکات ورکوي نو زکات ئې په هم هغه وخت کښې ادا کیږي۔ البته د مهتممینو لپاره لازمه ده چه هغوی د زکات روپۍ پخپلو ذاتي مصارفو کښې و نه لګوي۔ بلکه د دیني علومو په طالبانو دې مصرف کړي۔ او همدارنګه له غیر ضروري مصارفو څخه هم احتیاط ورته ضروري دی۔

لما قال العلامة ابن همامؒ: فهذه جهات الزکٰوة فلما لك ان یدفع الی کل واحد منهم و له ان یقتصر علی صنف واحدٍ. (فتح القدیر ج۲، ص۲۰۵، کتاب الزکٰوة)

و ذکر الامام ابو بکر الجصاص الرازیؒ: عن عليّ و ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قالا اذا اعطی الرجل الصدقة صنفاً واحداً من الاصناف الثمانیة اجزاه و روی مثل ذٰلك عن عمر بن الخطاب و حذیفة و عن سعید بن جبیر و ابراهیم و عمر بن عبد العزیز و ابی العالیة و لا یروی عن الصحابة خلافه فصار اجماعاً من السلف لا یسع احد خلافه لظهوره و استفاضته فیهم الخ. (احکام القرآن ج۳، ص۱۳۹)

## د غني لپاره د زکات اخیستل صحیح نه دي

**سوال:** په ځینو علاقو کښې ځینې مولوي صاحبان ډیر دولت مند وي لیکن له دې سره سره هغوی له خلکو څخه زکاتونه، سرسایې او داسې نور اخلي نو آیا د داسې علماوو لپاره د زکات اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زکات یوائې د فقراوو او مساکینو حق دی۔ کوم چه الله تعالی په غنیانو باندې مقرر کړی دی۔ نو د دې لپاره مالدار که مولوي وي او که بل څوك د زکات اخیستل ورته صحیح نه دي۔ داسې سړي ته د زکات په ورکولو سره زکات نه اداکیږي۔

لما قال الشیخ عبد الحی الکهنویؒ: علماء اغنیاء را زکٰوة گرفتن بالاتفاق حرام است. (مجموعة الفتاوٰی ج۲، ص۲۸۷، باب تصرف الزکٰوة)

لما قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: هی تملیك المال من فقیر مسلم غیر هاشمی و لا مولاه. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۰۱، کتاب الزکٰوة) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۵۶/۲۵۸، کتاب الزکٰوة)

## آیا له اموال ظاهره څخه حکومت زکات اخیستلی شي؟

**سوال:** آیا خلك د اموال ظاهره وو زکات پخپله ورکولی شي او که د حکومت په ذمه باندې واجب دي چه له خلکو څخه زکاتونه وصول کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اموال په دوه قسمه دي۔ (۱) اموال ظاهره (۲) اموال باطنه۔ د فقه حنفي له مخې له اموال ظاهره وو څخه حکومت زکات وصولولی شي او له اموال باطنه وو څخه به مالك پخپله زکات اداکوي۔ په ابتداء کښې دا صورت رائج وو۔ لیکن وروسته حضرت عثمان رضی الله عنه له اموال ظاهره څخه د زکات اداکول هم د مال مالك ته وسپارل۔ لهٰذا د اموال ظاهره او باطنه وو څخه به د مال څښتن پخپله زکات اداکوي۔

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: قال عامة مشائخنا ان رسول اللهﷺ طالب زکٰوته و ابو بکر و عمر طالباً و عثمان طالب زماناً و لما کثرت اموال الناس و رأی ان فی تتبعها حرجاً علی الامة و فی تفتیشها ضرراً باربابِ الاموال فوض الاداء الی اربابها. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۵، کتاب الزکٰوة، فصل بیان من له المطالبة)

## په نشې باندې عادي سړي ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** نن صبا اکثره هیروئینیان او چرسیان زکاتونه او خیراتونه غواړي که چېرته د اسې خلکو ته زکات ورکړی شي نو آیا زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زکات په هر فقیر او مسکین باندې ووځي اګر که هغه مال په ګناهونو باندې لګوي هم۔ لیکن بیا هم زکات ورکوونکي ته د دې خبرې خیال ساتل په کار دي چه د کوم عادي عاصي (ګناهګار) سره په ګناه کښې تعاون و نه کړي لهذا بناء په دې صورت هیروئیني او چرسي او د اسې نورو ته د دغو امورو د ارتکاب له وجهې زکات ورکول مناسب نه دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: هی تملیک خرج الاباحة فلو اطعم یتیماً ناویا الزکٰوة لا تجزئه الا اذا دفع الیه المطعوم...... جزء مال خرج المنفعة فلو اسکن فقیراً داره سنة ناویاً لا یجزیه عینه الشارع........ من مسلم فقیر غیر هاشمی و لا مولاه. (الدر المختار علی هامش الطحطاوی ج۱، ص۳۸۹، کتاب الزکٰوة)

قال الامام ابو البرکات النسفیؒ: هی تملیک المال من فقیر مسلم غیر هاشمی و لا مولاه بشرط قطع المنفعة عن المملك من کل وجه لله تعالٰی. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۲۰۱، کتاب الزکٰوة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۵، کتاب الزکٰوة، فصل شرائط الفریضة)

## دیني مدارسو ته د زکات ورکولو په وخت کښې د زکات تصریح ضروري ده

**سوال:** یوې دیني مدرسې ته د زکات ورکولو په وخت یوائې نیت کافي وي او که د رسید د لیکلو په وخت کښې د زکات د مال تصریح ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** په دیني مدارسو کښې د زکات د ورکولو په وخت کښې د زکات تصریح ضروري ده۔ تر څو چه د مدرسې اراکین د زکات دا مال د زکات په مصرف کښې ولګوي۔ یوائې نیت کافي نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یخرج عن العهدة با لعزل بل با لاداء للفقراء. و قال ابن عابدینؒ: فلو ضاعت لا تسقط عنه الزکٰوة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۲، قبیل افتراضها عمری)

و فی الهندیة: و اذا وضعها و لم یخطر بباله انه مصرف ام لا فهو علی الجواز الا اذا تبیّن انهٗ غیر مصرف........ او غلب علی ظنه انهٗ لیس بمصرف فهو علی الفساد. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۰، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۱۱، کتاب الزکٰوة)

## څوك چه لړل تپل کوي هغه لره د زکات د وکیل جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمایي د دین علماء د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته د یوې مدرسې مهتمم زکاتونه او صدقې جمع کړي او بیا پکښې څه خُرد و بُرد وکړي یعنې د طلباوو په نامه باندې د



زکات او صدقاتو پیسې پخپله خوري او په مدرسه کښې د طلباوو نوم او نشان هم نه وي۔ په د اسې حال کښې چه دا زکاتونه د طالبانو لپاره مهتمم ته د وکیل د جوړولو په صورت کښې ورکول کیږي۔ نو آیا د مدرسې د اسې مهتمم ته د مدرسې لپاره زکات ورکول جائز دي او که نه؟ او د زکات ورکوونکو زکاتونه ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه غالب ګمان دا وي چه دا روپۍ مهتمم پخپله خوري نو د اسې مهتمم ته زکات ورکول صحیح نه دي۔ او که چېرته ورکړی شوي وي او دا خطره وي چه په صحیح ځای باندې نه مصرف کیږي۔ نو باید چه دوباره ئې ادا کړي تر څو چه د زکات ادا کول یقیني شي۔

قال الحصکفیؒ: دفع بتحرّ لمن یظنه مصرفاً..... لا یعید لانه الی بما فی وسعه حتی لو دفع بلا تحرّ لم یجز ان اخطأ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۸، باب المصرف)

قال المرغینانیؒ: قال ابو حنیفةؒ و محمدؒ اذا دفع الزکٰوة الی رجل یظنه فقیراً ثم بان انه غنی او هاشمی او کافرٌ...... فلا اعادة علیه. و قال ابو یوسفؒ علیه الاعادة....... و الظاهر هو الاوّل و هٰذا اذا تحری و دفع و فی اکبرُ رأیه انه مصرف اما اذا شكّ و لم یتحر او تحری فدفع و فی اکبر رأیه انهٗ لیس بمصرف لا یجزیه الا اذا علم انه فقیر هو الصحیح. (الهدایة ج۱، ص۱۸۹، باب من یجوز دفع الصقات الیه و من لا یجوز) و مثله فی نور الایضاح ص۱۶۰، باب المصرف

## فقیر عالم دین ته زکات ورکول افضل دي

**سوال:** زمونږ یو مستقل امام دی کوم چه مستقله تنخواه هم لري لیکن فقیر دی۔ نو آیا مونږ نوموړي غریب امام ته د زکات روپۍ ورکولی شو او که نه؟ او که بل فقیر ته ورکول ئې ضروري دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د جومات د امام مستقله تنخواه وي لیکن د غربت په وجه د زکات حقدار وي نو یوه اُمي ته د زکات ورکولو په ځای نوموړي غریب عالم دین ته زکات ورکول بهتر دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و فی المعراج التصدق علی العالم الفقیر افضل. قال ابن عابدینؒ عن القهستانی قوله افضل ای من الجاهل الفقیر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹، کتاب الزکٰوة، باب المصرف)

و فی الهندیة: التصدق علی الفقیر العالم افضل من التصدق علی الجاهل کذا فی الزاهدی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۷، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۵۰، قبیل باب صدقة الفطر)

## یو چا ته د نصاب د مقدار برابر د زکات ورکولو حکم

**سوال:** زما د یوه ملګري حج ته ډیر شوق کیږي لیکن طاقت او قدرت ئې نه لري نو آیا د شریعت له مخې هغه ته د زکات د پیسو د ورکولو په صورت کښې په هغه باندې حج کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ستا د ملګري په ملکیت کښې د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو له قیمت سره برابر مال وي نو زکات ورکول ورته جائز نه دي۔ او که چېرته فقیر وي نو بیا د زکات مصرف دی لیکن بیا هم دومره زکات ورکول چه د نصاب مقدار ته ورسیږي مکروه دي لیکن زکات ادا کیږي۔ لهذا که چېرته تاسو خپل ملګري ته د نصاب له مقدار څخه زیاتې پیسې په زکات ورکړی تر څو هغه حج پرې وکړي نو زکات دې ادا کیږي لیکن په دومره

زیاتي اندازې سره چا ته زکات ورکول له کراهیت څخه خالي نه وي۔

لما فی الهندیة: و یکره ان یدفع الی رجل مائتی درهم فصاعداً و ان دفعه جاز. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۸، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة الحصکفیؒ: و کره اعطاء فقیر نصابا او اکثر الا اذا کان المدفوع الیه مدیونا او کان صاحب عیال. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۴، باب المصرف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴۹، باب المصرف

## د کور مزدور ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** زما یو مزدور دی چه د میاشتې دوه زره روپۍ تنخواه ورکوم۔ نو آیا زه خپل مزدور ته زکات هم ورکولی شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقیر ملازم ته زکات او صدقه ورکول دواړه صحیح دي او د ملازم لپاره ئې اخیستل هم صحیح دي۔ البته که چېرته د ازکات په تنخواه کښې ورکړی نو زکات مو نه ادا کیږي۔

لما فی الهندیة: و یجوز دفعها الی من یملك اقل من النصاب و ان کان صحیحاً مکتسبا کذا فی الزاهدی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: یجوز دفع الزکوٰة الی من یملك ما دون النصاب او قدر نصاب غیر تام و هو مستغرق فی الحاجة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۰، باب المصرف) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۴، باب المصرف)

## د حکومت له خوا څخه دیني مدارسو ته د زکات د ورکولو حکم

**سوال:** د دې مسئلې په باره کښې دیني علماء کرام څه فرمایي چه حکومت له بانکونو څخه دیني مدارسو ته څه پیسې د زکات په توګه ورکوي آیا دا پیسې به د زکات ګڼل کیږي، که د سود او که د کوم بل شي او آیا طلباو ته د دې پیسو استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا په ظاهره سره د زکات روپۍ دي۔ او طلبه د زکات مصرف دي۔ د دوی لپاره ئې استعمال جائز دی اګر که په دغو کښې د سود د روپو د ګډوالي وهم هم موجود وي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: لو اخرج زکوٰة المال الحلال من مال حرام ذکر فی الوهبانیة انه یجزی عند البعض...... و لو نوی فی المال الخبیث الذی وجبت صدقة ان یقع عن الزکوٰة وقع عنها. (رد المحتار ج۲، ص۲۸، مطلب فی التصدق من المال الحرام)

قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: و العبرة لنیة الدافع لا لعلم المدفوع الیه و بعد اسطر فلا یأخذه لا من لا یجوز له اخذ الصدقة. (فتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۸۶/۸۸، الباب الثانی فی المصرف) و مثله فی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۴۰۰، کتاب الخطر و الاباحة و ما یکره اکله و ما لا.

## د سیّد او بزرګ په اولاده کښې د زکات د مصرف په اعتبار سره فرق موجود دی

**سوال:** زمونږ په علاقې کښې د "سیّد" او "صاحبزاده" یو ډول قدر او عزت کیږي۔ سیّد ان خود علیه السلام آل دي او صاحبزاده د کوم بزرګ او ولي الله اولاده وي۔ نو آیا صاحبزادګان د



زکات مصرف دي او که صاحبزادګان او سیدان سره برابر دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سیّد او میان (صاحبزاده) تر منځ ښکاره فرق موجود دی۔ ځکه چه صاحبزادګان د کوم "غیر سیّد" ولي الله اولاده وي نو ځکه هغو ته زکات ورکول جائز دي او سید انو ته زکات ورکول جائز نه دي۔

لما فی الهندیة: و لا یدفع الی بنی هاشم و هُم آل علی و آل جعفر و آل عقیل و آل الحرث بن عبد المطلب رضی الله عنهم کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة ابن نجیمؒ: قولهٗ و بنی هاشم و موالیهم ای لا یجوز الدفع لهم لحدیث البخاری نحن اهل بیت لا تحل لنا الصدقة و لحدیث ابی داؤد و مولی القوم من انفسهم و انا لا تحل لنا الصدقة اطلق فی بنی هاشم فشمل فان کان ناصراً للنبی ﷺ و من لم یکن ناصراً له منهم کولد ابی لهب فیدخل من اسلم منهم فی حرمة الصدقة لکونه هاشمیاً...... (و اما ابو لهب و ابناه) و روی حدیثا لا قرابة بینی و بین ابی لهب و نص فی البدائع علی ان لکرخی قید بنی هاشم با لخمسة الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۶، باب المصرف) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۲، باب المصرف)

## عباسي کورنۍ د زکات مصرف نه ده

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه له عباسي خاندان یا کورنۍ سره تعلق لرم نو آیا زه د خپلې عباسي کورنۍ مسکینانو او یتیمانو ته زکات ورکولی شم او که به خپل زکات د اسې چا ته ورکوم چه عباسي نه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عباسي فقیر ته زکات ورکول جائز نه دي ځکه چه آل عباس آل هاشم دي او د هاشم اولاد د زکات مصرف نه دي اګر که زکات ورکوونکی عباسي وي او یا بل څوك۔

لما فی الهندیة: و لا یدفع الی بنی هاشم و هم آل علی و آل عباس و آل جعفر و آل عقیل و آل الحارث بن عبد المطلب کذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب السابع فی المصارف)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و الخمسة المذکورون من بنی هاشم لان العباس و الحارث عمان للنبی ﷺ و جعفر و عقیل اخوان لعلیؓ رضی الله تعالی عنه بن ابی طالب و هو ابن عم النبی ﷺ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۶، باب المصرف) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۲، باب المصرف)

## فقیر د ائن ته د زکات اخیستل جائز دي

**سوال:** د دې مسئلې په باره کښې علماء کرام څه فرمایي چه زید فی الحال مسکین دی لیکن په عمر ئې د ومره پور دی چه که چېرته وصول شي نو زید د نصاب خاوند جوړیږي لیکن عمر هم مسکین دی او د زید د پور اداکول ئې په وس کښې نشته۔ نو آیا زید ته د زکات اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت کښې د زید مثال د ابن السبیل غوندې دی چه اګر که د نصاب خاوند دی لیکن اوس ئې په لاس کښې مال وجود نه لري۔ لهذا

د داسې سړي لپاره چه په بل ځائ پور وي زکات اخیستل جائز دي او د داسې ځا ته د زکات په ورکولو سره د زکات فریضه هم ادا کیږي۔

لما فی الهندیة: و ان کان الدَّین غیر مؤجل فان کان من علیه الدین معسراً یجوز لهٗ اخذ الزکوٰة فی اصح الاقاویل لانه بمنزلة ابن السبیل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۸۹، الباب السابع فی المصارف و منها الغارم)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله من له مال لا معه ای سواء کان هو فی غیر وطنه او فی وطنه و له دیون لا یقدر علی اخذها کما فی النهر......... قال و الحق بهٖ کل من هو غائب عن ماله و ان کان فی بلدة لان لحاجة هی المعتبرة و قد وجدت لانه فقیر بدا و ان کان غنیاً ظاهراً. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج۲، ص۶۷، باب المصرف) و مثله فی الفتاوی الخانیة ج۲، ص۲۶۶، باب المصرف

## قرضه په زکات کښې د مجرا کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو سړی د نصاب د ډیرو خاوندانو مقروض یا پوروړی دی۔ آیا د نصاب خاوندان که چېرته خپلې قرضې په زکات کښې مجرا کړي نو زکاتونه ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې په داسې طریقې سره زکات نه ادا کیږي۔ بلکه د زکات د ادا کولو دوه صورتونه دي۔

﴿۱﴾ قرض غوښتونکی د خپل ځان له خوا هغه ته واجب الاداء روپۍ ورکړي او بیا دې بیرته پخپل پور کښې ترې وصول کړي۔

﴿۲﴾ مقروض دې له بل چا څخه پور واخلي او پور غوښتونکي ته دې ورکړي او قرض غوښتونکی دې پخپل قرض کښې په وصولولو سره دې مقروض ته په زکات کښې بیرته ورکړي نو زکات ئې ادا کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و اداء الدَّین عن العین و عن دَین سیقبض لا یجوز و حیلة الجواز ان یعطی مدیونه الفقیر زکوٰته ثم یاخذها عن دَینه و لو امتنع المدیون مدید مواخذها لکونه ظفر بجنس حقه فان مانعه دفعه للقاضی. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۱۳، قبیل افتراضها عمری)

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: و یستفاد منه ان رجوع المتبرع بقضاء الدین عند التصدق علی الدائن محمول علی ما اذا کان بغیر امر المدیون اما اذا کان بامرهٖ فهو تملیك منه فلا رجوع عند التصدق بانه لا دین علی الدائن و انما یرجع علی المدیون و هو بعمومه......... و الحیلة فی الجواز فی هٰذه الاربعة ان یتصدّق بمقدار زکوٰته علی فقیر ثم یأمره بعد ذلك با لصرف الی هٰذه الوجوه الخ. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف)

## د زکات په روپو باندې دیني مدارسو ته د قرآنکریم د هدیه کولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یوه دیني مدرسه ده په داسې حال کښې چه د کلي اکثره خلك غریبان دي او مدرسه د چندې په روپو چلیږي نو آیا د زکات په پیسو باندې د مدرسې لپاره قرآن کریم



او دیني کتابونو اخیستل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د ادا کولو لپاره تملیك شرط دی۔ له تملیك پرته زکات نه ادا کیږي۔ البته که چېرته له تملیك نه وروسته هغه سړی چا ته چه زکات ورکړ شوی دی د ځان له خوا څخه د مدرسې لپاره قرآن مجید او دیني کتابونه وقف کړي نو جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: الحیلة ان یتصدق علی الفقیر ثم یأمره ان یفعل هٰذه الاشیاء و هل لهٗ ان یخالف امره لم اره و الظاهر نعم. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۶، باب المصرف)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حیلة التکفین بها التصدق علی فقیرٍ ثم هو یکفن فیکون الثواب لهما و کذا فی تعمیر المسجد. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۲، قبیل افتراضها عُمری)

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: و الحیلة فی الجواز فی هٰذه الاربعة ان یتصدق بمقدار زکوٰته علی فقیر ثم یأمره بعد ذلك با لصرف الی هٰذه الوجوه فیکون لصاحب المال ثواب الزکوٰة و للفقیر ثواب هٰذه القرب. کذا فی المحیط. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف)

## د سیّد فقیر لپاره د زکات له پیسو څخه د کفن اخیستلو حکم

**سوال:** که چېرته سیّد فقیر او محتاج مړ شي او د کفن او د داسې نورو لپاره ورسره هیڅ شی نه وي نو آیا د زکات له روپو څخه دفقیر سیّد لپاره د کفن اخیستل جائز دي او په دې سره زکات ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکات د ادا کولو لپاره د زکات مال یو نادار فقیر ته تملیکا ورکول ضروري دي۔ د مړي په تکفین کښې چونکه د تملیك شرط موجود نه دی لهذا د مړي لپاره که سید وي یا غیر سید د زکات له مال څخه کفن اخیستل جائز نه دي۔ بیا هم که چېرته د زکات مال کوم فقیر ته ورکړی شي او فقیر د ځان له خوا څخه د مړي لپاره د کفن اخیستل وغواړي نو زکات ئې ادا کیږي او فقیر ته به هم د صدقې ثواب ورکول کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و حیلة التکفین بها التصدق علی فقیر ثم هو یکفن فیکون الثواب لهما و کذا فی تعمیر المسجد و تمامه فی حیل الاشباه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۱۲، کتاب الزکوٰة)

قال ابن نجیم رحمه الله: و الحیلة فی الجواز فی هٰذه الاربعة ان یتصدق بمقدار زکوٰته علی فقیر ثم یأمره بعد ذلك با لصرف الی هٰذه الوجوه فیکون لصاحب المال ثواب الزکوٰة و للفقیر ثواب هٰذه القرب، کذا فی المحیط. (البحر الرائق ج۲، ص۲۴۳، باب المصرف)

## د زکات او عشر د آرډیننس (فیصله نامه) فقهي جائزه، ترامیم او تجویزونه

د پاکستان پخوانی صدر او د بري فوج سربراه جناب جنرل محمد ضیاء الحق مرحوم د خپل حکومت په دور کښې کله چه د زکات او عشر آرډیننس (فیصله نامه) د اجراء فیصله وکړه او د عامه رأیې د معلومولو لپاره ئې مشتهره کړه نو د پاکستان اسلامي جمهوریت جیدو او مقتدرو علماء کرامو د دې آرډیننس جائزه واخیستله او د څو خامیو او هغې لره په عملي توګه باندې د مؤثر جوړولو لپاره حکومت ته د خپل ځان له خوا ښخه ترامیم او تجاویز وړاندې کړل۔ په دې بورډ او کمیټي کښې چه کوم علماء کرام شامل وو د هغوی نومونه په لاندې ډول دي۔

﴿۱﴾ شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق صاحبؒ باني د ار العلوم حقانیه اکوړه خټک۔

﴿۲﴾ فقیه العصر حضرت مولانا مفتي رشید احمد لدهیانوي صاحبؒ د ار الافتاء ناظم آباد کراچي۔

﴿۳﴾ مفتي اعظم پاکستان حضرت مولانا مفتي ولي حسنؒ د ار الافتاء بنوري ټاون کراچي۔

﴿۴﴾ شیخ الاسلام حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب نائب رئیس د ار العلوم کراچي۔

﴿۵﴾ حضرت مولانا مفتي محمد رفیع عثماني رئیس د ار العلوم کراچي۔

﴿۶﴾ حضرت مولانا عبد الرزاق سکندر صاحب مهتمم جامعه بنوري ټاون کراچي۔

﴿۷﴾ شیخ الحدیث حضرت مولانا سبحان محمودؒ د ار العلوم کراچي۔

﴿۸﴾ حضرت مولانا مفتي عبد الرؤف سکهروي د ار الافتاء د ار العلوم کراچي۔

دا تجاویز او ترامیم د فقهي مباحثو سره د مناسبت له وجهې په فتاوٰی د ار العلوم حقانیه کښې شامل کړی شو۔

از مرتب

### د پاکستان د صدر له خوا ښخه جاري کړی شوي د زکـــــات او عشر آرډیننس فقهي جائزه، ترامیم او تجاویز

بسم الله الرحمٰن الرحیم

الحمد لله و کفٰی و سلام علی عباده الذین اصطفٰی اما بعد

اوس اوس د پاکستان حکومت په سرکاري سطح د زکات او عشر د وصولولو او تقسیم لپاره یو فرمان (آرډیننس) نافذ کړی دی چه له مخې به ئې په مسلمانانو باندې د واجب الاداء زکات یوه حصه به حکومت وصولوي او د ویش انتظام به ئې کوي۔

د زکاتونو د وصولولو او د ویشلو انتظام د اسلامي حکومت یوه اهمه ذمه واري ده او که چېرته حکومت په دې انتظام کښې صحیح د شرعي احکامو مطابق په قائمولو کښې کامیاب شي نو دا به د شریعت د جاري کیدو په لاره کښې انشاء الله یو انتهایي مثبت قدم وي



او د دې ملك مسلمانان به ئې د اخروي او دنیوي برکاتو ښخه پوره فائده اوچته کړي۔ لیکن دې نظام لره په سرکاري سطحه د جاري کولو په وخت کښې دې حکومت دا خبره یاده لري چه د زکات د نظام نفاذ چه د اسلامي معیشت د قیام لپاره څومره ضروري او اهم دی دغومره نازك او توجه طلب هم دی۔ زکات د نورو محاصلو او ټیکسونو غوندې یو ټیکس نه دی۔ بلکه دا هغه عظیم الشان عبادت دی چه د اسلام له پنځو بناګانو یا رکنونو ښخه یو اهم رکن دی۔

عن ابن عمر رضی الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ بُنی الاسلام علی خمس. شهادة ان لاَّ اِلٰهَ الاَّ الله و انَّ محمداً عبدهٗ و رسولہٗ و اقام الصلٰوة و ایتاء الزکٰوة و الحج و صوم رمضان. متفق علیه. (مشکٰوة المصابیح ج۱، ص۱۲، کتاب الایمان، الفصل الاول)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قدموا الزکٰوة علیه اقتداء بکتاب الله...... و لانها افضل العبادات بعد الصلٰوة قهستانی. (رد المحتار علٰی هامش الدر المختار ج۲، ص۲، کتاب الزکٰوة)

لهذا په دې کښې د عبادت او د خدای د اطاعت د ټولو تقاضو لحاظ ساتل ضروري دي۔

حکومت د زکات د وصولولو او د هغه د ویشلو انتظام پخپله ذمه باندې په اخیستلو سره د اسې د روند بار او نازکه ذمه واري پخپل سر باندې اخلي کوم چه د هغه د دیني جذبې، اخلاص او حسن انتظام لپاره یو زبردست د آزموینې او امتحان حیثیت لري۔ په دې کښې حکومت ته یوې خوا ته د دې خبرې لحاظ ساتل په کار دي چه له یوه مسلمان سره د زکات په وصولولو کښې بې انصافي و نه شي او چه څومره پیسې د هغه په ذمې باندې شرعا واجب الاداء وي له هغو ښخه به یوه روپۍ هم زیاته نه اخلي ځکه چه په یوه پاك حدیث کښې د رسول کریم ﷺ مبارك ارشاد دی چه: المعتدی فی الصدقة کمانعها (یعنې د زکات په وصولولو کښې زیاتی کوونکی د اسې ګناهګار دی لکه زکات نه ادا کوونکی)۔

عن انسٍ رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ المعتدی فی الصدقة کمانعها رواه ابو داؤد و الترمذی. (مشکٰوة المصابیح ج۱، ص۱۵۹، باب ما یجب فیه الزکٰوة، الفصل الثانی)

او بلې خوا ته په دې خبرې باندې به ژوره کتنه کوي چه د زکات دا حاصلیدونکې روپۍ به صحیح د شریعت مطابق د هغوی صحیحو مستحقینو ته ورسوي۔ او هیڅ ډول خیانت، بد عنواني او له شرعي احکامو ښخه به تجاوز پکښې نه کوي۔ د زکات د تقدس اندازه له دې خبرې ښخه کیدلی شي چه الله تعالی د دغې مقدسې فریضې تعین انبیاوو ته هم نه دی پریښی بلکه پخپله ئې په قرآن کریم کښې تعین کړی دی۔

قال الله تعالی: اِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَآءِ وَ الْمَسَاکِیْنَ وَ الْعَامِلِیْنَ عَلَیْهَا وَ الْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَ فِی الرِّقَابِ وَ الْغٰرِمِیْنَ وَ فِی سَبِیْلِ اللهِ وَ ابْنِ السَّبِیْلِ. (سورة التوبة آیت ۶۰)

چنانچه تر څو پورې زکات پخپلو مصارفو باندې په صحیح توګه د مصرف کولو اطمینان بخښونکی انتظام و نه شي د زکات مقصد نه شي پوره کیدلی۔ لهذا که چېرته حکومت د زکات د

وصولولو او تقسیمولو دواړو په انتظام کښې په صحیح توګه په مقررولو کښې کامیاب شي نو دا به د حکومت عظیمه او لویه کارنامه وي چه برکات به ئې انشاء الله په سترګو ولیدل شي.

که چېرته خدای مکړه د زکات دا مقدسې پیسې تر مستحقینو پورې د رسولو صحیح انتظام و نه کړی شي نو د کروړونو مسلمانانو د عبادت د خرابوالي وبال به په دنیا کښې هم سخت او سنګین وي او په آخرت کښې هم. زمونږ دعا ده چه الله تعالی حکومت ته په دې سختې آزمویني کښې د کامیابۍ او پوره توفیق ورکړي او دا نازکه مرحله ورته آسانه کړي. آمین

د دې مقصد د حصول لپاره لومړی دا قدم اخیستل په کار دي چه د زکات او عشر چه کوم قانون جاري شوی دی د شرعي اعتبار له مخې صحیح او درست وي او په شرعي لحاظ سره پکښې هیڅ سقم (عیب) موجود نه وي. او دوهم دا قدم اخیستل په کار دي چه د دې قانون مطابق عمل درست وي. ترکومه ځایه پورې چه د قانون تعلق دی د موجوده مسائلو د تحقیق د مجلس په اجلاس کښې په اوسني زکات او عشر آرډیننس باندې غور وکړی شو او د شرعي نقطهٔ نظر له مخې د جائزې له اخیستلو وروسته لاندینی تبصره د رأیو په اتفاق سره منظوره شوه.

**﴿۱﴾ د زکات نصاب:** د دې آرډیننس (فرمان) د تولو نه غټه غلطي دا ده چه په دې کښې په هر هغه سړي باندې د زکات ادا کول لازم شوي دي چه د چا د بانك په اکاونټ کښې د زکات د ادا کولو په وخت کښې له زرو روپو څخه زیاتې پیسې جمع وي. او له بانکونو علاوه په نورو مالیاتي ادارو کښې د زرو روپو قید هم نشته. بلکه د هغو مالونو حاملو افرادو ته د هغوی د مالونو د مالیت له لحاظ پرته په لازمي توګه د زکات مستوجب ګرځول شوی دی. دا په شریعت کښې ډیره غټه غلطي ده. او عملاً په دې قانون سره له ډیرو خلکو سره دغه زیاتی کیدلی شي چه په هغوی باندې شرعاً زکات د نه واجب کیدو باوجود له هغوی څخه زکات اخیستل کیږي.

په داسې حال کښې په شریعت کښې زکات یواځې په هغه سړي باندې فرض دی کوم چه د نصاب یعنې دوه پنځوس نیمې تولې سپینو زرو او یا د دغو په برابر نقدې روپۍ، سره زر یا د تجارت د مال مالك وي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: قوله نصاب هو ما نصبه الشارع علامة على وجوب الزكوٰة من المقادير. (رد المحتار على هامش الدر المختار ج۲، ص۵، كتاب الزكوٰة)

او یا د دې څلورو شیانو څخه د ځینو او یا توله مجموعه د دوه پنځوس نیمې تولې سپینو زرو له قیمت سره برابر وي. البته که چېرته له چا سره له سرو زرو پرته کوم بل شی موجود نه وي نو نصاب ئې اوه نیمې تولې سره زر دي.

قال العلامة الحصكفيؒ: نصاب الذهب عشرون مثقالاً و الفضة مائتا درهم كل عشرة دراهم وزن سبعة مثاقيل...... في غرض تجارة قيمته نصاب. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۱، باب زكوٰة المال)

بیا اګر که شرعاً د زکات د فرضیت لپاره دا ضروري نه ده چه په هره پیسه باندې بیل



بیل کال تیر شي لیکن دا ضروري ده چه تول کال او یا د کال په اول او آخر کښې کم تر کمه د نصاب په اندازه د مالیت مالك وي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: قوله لحولانه عليه اى لان حولان الحول على النصاب شرط لكونه سبباً و هذا علته للنسبة و سمى الحول حولاً لان الاموال تتحول فيه او لانه يتحول من فصل الى فصل من فصوله الاربع. (رد المحتار على هامش الدر المختار ج۲، ص۵، مطلب الفرق بين السبب و الشرط و العلة)

په فرمان کښې د زکات د دې بنیادي شرائطو هیڅ لحاظ نه دی شوی.

لهذا که چېرته د زکات نظام په واقعیت کښې د شرعي اصولو مطابق جوړول وي نو په فرمان کښې دا ترامیم ضروري دي چه له مخې به ئې زکات یواځې له هغو خلکو څخه اخیستل کیږي چه په ذمه باندې ئې شرعاً زکات فرض وي.

عن ابى سعيد الخدرى رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ ليس فيما دون خمسة اوسق من التمر صدقة و ليس فيما دون خمس اواق من الصدق صدقة و ليس فيما دون خمس الخ. (مشكوٰة المصابيح ج۱، ص۱۵۸، باب ما يجب فيه الزكوٰة)

او د دې عملي طریقه دا ده چه په دوهمه ماده دوه دیرشم ذیل کښې د نصاب د خاوند چه کوم تعریف لیکل شوی دی.

"یعنې د نصاب له خاوند څخه مراد هغه سړی دی چه په ذمه باندې ئې د فرمان له مخې زکات واجب الاداء وي".

دا دې تبدیل کړی شي او د نصاب د خاوند تعریف دې داسې وکړی شي چه:

"د نصاب له خاوند څخه مراد هغه سړی دی چه ملکیت ئې دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر یا ئې د قیمت په برابر نقدې روپۍ، سره زر یا د تجارت سامان وي یا له دغو څلورو شیانو څخه د ځینو یا د تولو د مجموعې په یو ځای کولو سره د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو له قیمت سره برابر وي".

قال العلامة الحصكفيؒ: نصاب الذهب عشرون مثقالاً و الفضة مائتا درهم كل عشرة دراهم وزن سبعة مثاقيل...... في عرض تجارة قيمة نصاب. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۱، باب زكوٰة المال)

بیا هر کال د زکات له تاریخ څخه مخکښې د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو چه کوم قیمت وي د هغه اعلان دې وکړي او دا قیمت د زکات د وصولولو (۱) معیار وټاکل شي. یعنې یواځې له هغو خلکو څخه دې زکات وصول کړي چه د نصاب په اندازه مالیت ئې په بانکونو یا نورو مالیاتي ادارو کښې جمع وي.

(۱) قال العلامة الحصكفيؒ: مقوماً باحدهما ان استويا فلواحدهما اروج تعين التقويم به و لو بلغ باحدهما نصاباً دون الآخر تعيّن ما يبلغ به الخ (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۴، باب زكوٰة المال)

**﴿۲﴾ د کال د تیریدلو مسئله:** د زکات د فرضیت لپاره دا هم ضروري دي چه د نصاب په مقدار

باندې پوره کال تیر شوی وي۔ دلته دا خبره واضح کول غواړي چه کله یو سړی یو ځل د نصاب خاوند جوړ شي او ټول کال د نصاب خاوند پاتې شي نو د کال په آخر کښې چه څومره روپۍ هم د هغه په ملکیت کښې وي د هغو زکات به ورکوي۔ لهذا په هرې هرې روپۍ باندې د کال تیریدل ضروري نه دي لیکن د نصاب مقدار د کال په دواړو خواوو کښې یعنې په سر او آخر کښې په ملکیت کښې پاتې کیدل ضروري دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و المستفاد و لو بهبة اوارث وسط الحول یضم الی نصاب من جنسه فیزکیه بحول الاصل. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۵، باب زکوٰة الغنم)

د موجوده فرمان مطابق د اسې صورتونه عملاً ممکن دي چه په کوم تاریخ کښې د یوه سړي له اکاونټ څخه زکات وضع کړی شي له دې څخه یو اځې یو څو ورځې مخکښې هغه د نصاب خاوند جوړ شوی وي نو په داسې صورت کښې په همدې کال کښې له د اسې سړي څخه په جبر سره زکات وصولول شرعا درست نه دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: فمن انکر تمام الحول ای علی ما فی یدهٖ و علی ما فی بیتهٖ فلو کان فی بیتهٖ مال آخر قد حال علیه الحول و ما مر به لم یحل علیه الحول و اتحد الجنس فان العاشر لا یلتفت الیه لوجوب الضم فی متحد الجنس الا لمانع بحر. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج۲، ص۴۳، باب العاشر)

نو ځکه په فرمان کښې د د اسې ګنجائش موجود والی په کار دی چه که چېرته یو سړی دا ثابته کړي چه دی په کوم وخت کښې د نصاب خاوند جوړ شوی دی یعنې کال ئې لا نه وي پوره شوی نو له هغه څخه دې زکات نه اخیستل کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ای سبب افتراضها ملك نصاب حولی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴، مطلب الفرق بین السبب و الشرط و العلة)

﴿۳﴾ **د پور مسئله:** په فرمان کښې پورونه د قابل زکات مالیت څخه د لرې کولو هم هیڅ ګنجائش نشته۔ په دې سلسله کښې د امت د فقهاوو د مذاهبو خلاصه دا ده چه د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د هر ډول پور د منفي کولو څخه وروسته زکات واجبیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فارغ عن دَین له مطالب من جهة العباد. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵، کتاب الزکوٰة)

د امام شافعيؒ پخوانی قول هم همدا دی۔ د امام مالك رحمه الله په نزد پور د اموال باطنه وو د زکات مانع دی او د اموال ظاهره وو د زکات مانع نه دی۔ او د امام شافعي رحمه الله جدید قول دا دی چه هیڅ ډول پور به له زکات څخه نه لرې کیږي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و من کان علیه دَین یحیط بماله فلا زکوٰة علیه. و قال الشافعیؒ یجب لتحقق السبب و هو ملك نصاب نامٍ. (الهدایة ج۱، ص۱۶۸، کتاب الزکوٰة) وګوری (المجموع شرح المهذب ج۵، ص۳۱۳/۳۱۴)



په دولسم ربیع الاول ۱۳۹۹ سنه هجري کښې د زکات د فرمان په هغې مسودې کښې چه دعامه رأيې د معلومولو لپاره خپور کړی شوی وو په هغې کښې د پورونو د لرې کولو ګنجائش موجود وو او په دې باندې د تبصرې په کولو سره "مجلسِ تحقیقِ مسائلِ حاضره" په هغه وخت کښې هم دا رأیه وړاندې کړې وه۔ ماهنامه "بینات" ص۸، جمادي الثاني ۱۳۹۹ سنه هجري وګوری۔

لهذا د مجلس په رأیه کښې نصاب، حولان حول، او د پورونو په باره کښې پورته ذکر شوي تجویزونو ته په کتلو سره د فرمان د دریمې مادې د مجوزه ترمیم نه وروسته د اسې لیکل په کار دي۔

"د فرمان د نورو احکامو تابع د هر صاحبِ نصاب مسلمان څخه په اوله ګنه کښې د ورکړ شوي تفصیل مطابق هر کال د زکات په اختتام باندې به لازماً زکات وصولیږي۔ شرط دا دی چه هر څوك دا ثابته کړي چه "د زکات د تاریخ په ورځو کښې د هغه د زکات وړ ټول مملوکات د نصاب اندازې ته په رسیدلو سره پوره کال نه دی پرې تیر شوی" د هغه به له نوموړي مالونو څخه زکات نه اخیستل کیږي۔ او بل دا شرط چه کوم سړی دا ثابته کړي چه پوروړی یم او قرضه مې د کومې ګټې په غرض نه ده اخیستې۔ نو د ده د قرضې روپۍ به د زکات لائق له روپو څخه ایستل کیږي"۔

﴿۴﴾ **اموال ظاهره او باطنه:** د بانك له اکاونټونو او نورو مالیاتي ادارو څخه د زکات په منفي کولو باندې یو علمي اشکال دا دی چه د فقهاء کرامو د تصریح مطابق حکومت د اموال ظاهره وو د زکات د وصولولو حق لري لیکن د اموال باطنه وو څخه ئې نه لري۔

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: ان مال الزکوٰة نوعان ظاهر و هو المواشی و المال الذی یمر به التاجر علی العاشر و باطن وهو الذهب و الفضة و اموال التجارة فی مواضعها امّا الظاهر فللامام و نوابه و هم المصدقون من السعاة و العشار ولایة الاخذ الخ قال بخلاف الاموال الباطنة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۳۱، باب العاشر)

په عامه توګه فقهاء کرامو په مفتو مال چرو کښې د څریدونکو حیواناتو، فصلونو او باغونو په حاصلاتو او د تجارت په هغو مالونو کوم چه له ښار څخه د باندې وړل کیږي په اموال ظاهره وو کښې شمار کړي دي او نقدې روپۍ، زیورات او د اسې نور ټول قابلِ زکات مالونه ئې په اموال باطنه وو کښې شمار کړي دي۔ او د بانك اکاونټ چونکه د نقدو په صورت کښې وي نو ځکه په علمي توګه سره دا سوال د غور وړ دی چه حکومت له هغوی څخه زکات اخیستلی شي او که نه؟

نو په دې مسئلې باندې د غور له کولو نه وروسته مجلس دې نتیجې ته رسیدلی دی چه په موجوده زمانه کښې د بانك اکاونټونه په اموال ظاهره وو کښې شمارلیدلی شي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لیاخذ الصدقات...... من التجار المارین باموالهم الظاهرة و الباطنة علیه. قال ابن عابدینؒ: و مراده مُهنا با لباطنة ما عدا المواشی بقرینة قوله المارین باموالهم. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۴۲، مطلب ما ورد فی ذم العشار)

د دې مسئلې تفصیل دا دی چه د حضور ﷺ، حضرت ابو بکر صدیق، او حضرت عمر فاروق رضی الله عنهما په دور کښې د اموال ظاهره او اموال باطنه تر منځ کوم فرق موجود نه وو. بلکه له دواړو قسمونو څخه به زکات په حکومتي سطح وصولیده. لیکن د حضرت عثمان غني رضی الله په دور او د خلافت په زمانه کښې چه د زکات وړ مالونه ډیر شو او ده مبارك دا محسوسه کړه چه که چېرته د زکات عاملین د خلکو کورونو او دوکانونو ته ورځي او د هغوی د مالونو معائنه کوي نو خلکو ته به تکلیف جوړیږي او په دې سره به د دوی د کورونو، دوکانونو او ګودامونو او محفوظ شخصي مقامات او ذاتي حیثیت مجروح کیږي. نو ده دا فیصله وفرمایله چه یواځې له هغو مالونو څخه به په حکومتي سطحه زکات وصولیږي چه د هغو د زکات په وصولولو کښې دا ضرر لاحق نه وي او د هغوی د حساب د کولو لپاره د هغوی د دوکانونو او کورونو تلاشي ته ضرورت پیښ نه شي. داسې اموال په هغې زمانې کښې یواځې په دوه قسمه وو یعنې حیوانات، زرعي حاصلات. چنانچه یواځې د هغو اموالو زکات ده مبارك په سرکاري سطح د وصولولو اعلان وکړ او پاتې اموال ئې باطنه وګڼل او د هغود ادا کولو ذمه واران ئې پخپله د هغوی مالکان وګرځول.

وروسته بیا چه کله د حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله دور راغی نو هغوی له ښارونو د باندې داسې چاونۍ ګانې جوړې کړې چه کله به له چا سره د تجارت مال وو او په هغو ځایونو باندې تیریده نو له هغوی څخه به هم هلته زکاتونه وصولیدل. په دې مقام باندې له ښار نه د باندې وړونکي مال تجارت ئې هم په اموال ظاهره وو کښې ګڼل. ځکه چه حکومت د هغو زکاتونو د وصولولو لپاره د هغو مالونو د مالکانو کورونو او دوکانونو او داسې نورو ته د تللو ضرورت نه وړاندې کیده.

د پورته ذکر شوي صورت حال دوضاحت لپاره د حضراتو فقهاء کرامو تصریحات په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ علامه ابن الهمام رحمه الله لیکي:

ظاهر قوله تعال "خُذ مِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً". (الآیة) توجب اخذ الزکٰوة مطلقاً للامام، و علی هذا کان رسول الله ﷺ و الخلیفتان بعده فلما ولی عثمان رضی الله عنه و ظهر تغیّر الناس کره ان یفتش السعاة علی الناس مستوراً اموالهم، ففوض الدفع الی الملاك نیابة عنه و لم یختلف الصحابة فی ذٰلك علیه و هٰذا لا یسقط طلب بها. (فتح القدیر ج۱، ص۴۸۷، کتاب الزکٰوة)

﴿۲﴾ او امام ابو بکر جصاص رحمه الله لیکي:

و قوله تعالی: "خُذ مِن اَموَالِهِم صَدَقَةً" (الآیة) یدل علی ان اخذ الصدقات الی الامام و انهٗ متٰی اداها من وجبت علیه الی المساکین لم یجزه لان حق الامام قائد فی اخذها فلا سبیل الٰی اسقاطه و قد کان النبی ﷺ یوجّه العمال علی صدقات المواشی و یأمرهم بان یاخذوا علی المیاه فی مواضعها.

مخکښې لیکي:



اما زکٰوة الاموال فقد کانت تحمل الٰی رسول الله ﷺ و ابی بکر و عمر و عثمان ثم خطب عثمان فقال هٰذا شهر زکٰوتکم فمن کان علی دَین فلیؤده ثم لیزك بقیة ماله فجعل لهم ادائها الی المساکین و سقط من اجل ذٰلك حق الامام فی اخذها لانه عقد عقده امام من ائمة العدل فهو نافذ علی الامة لقوله علیه السلام و علیهم او لهم و لم یبلغنا انه بعث سعاه علٰی زکٰوة الاموال کما بعثهم علٰی صدقات المواشی و الثمار فی ذٰلك لان سائر الاموال غیر ظاهرة للامام و انما تکون مخبوة فی الدور و الحوانیت و المواضع الحریزه و لم یکن جائزاً للسعاة دخول احرازهم و لم یجز ان یکلفوهم احضارها...... و لما ظهرت هٰذه الاموال عند التصرّف بها فی البلدان اشبهت المواشی فنصب علیها عمال یاخذون منها ما وجب من الزکٰوة و لذٰلك کتب عمر بن عبد العزیز الٰی عماله ان یاخذوا مما مر به المسلم من التجارات عن کل عشرین دیناراً نصف دینار. (احکام القرآن ج۳، ص۱۵۵، مطبوعه استنبول ۱۳۳۵هج)

﴿۳﴾ او د فقه حنفي په مشهور کتاب "الاختیار" کښې دي چه:

لان الاخذ کان للامام و عثمان رضی الله عنه فوضه الی الملاك و ذٰلك لا یسقط حق طلب الامام حتٰی علم ان اهل بلدة لا یؤدون زکاتهم طالبهم بها و لو مرّبها علی الساعی کان له اخذها. (الاختیار ج۱، ص۱۰۰، کتاب الزکٰوة)

﴿۴﴾ او علامه برهان الدین المرغیناني رحمه الله لیکي:

و من مرّ علٰی عاشرها بمائة درهم و اخبره ان له فی منزله مائة اخرٰی و قد حال علیها الحول لم یزك التی مرّ بها لقلته. و ما فی بیته لم یدخل تحت حمایته. (الهدایة ج۱، ص۱۸۱، باب من یمرّ علی العاشر)

د فقهاء کرامو د پورته ذکر شوي تصریحاتو څخه دا خبره څرګندیږي چه نقدي روپۍ او د تجارت مال تر هغه وخته پورې اموال باطنه دي تر څو چه په ذاتي او شخصي ځایونو کښې د مالکانو تر حفاظت لاندې وي. د داسې اموالو د زکات په وصولولو کښې د هغوی په شخصي ځایونو کښې د مداخلت ضرورت مخې ته راځي. نو ځکه ئې د حکومت له وصولولو څخه مستثنٰی ګرځولی دی. لیکن کله چه دا مالونه مالکان له خپلو شخصي ځایونو څخه اوباسي او د حکومت تر حفاظت لاندې راشي نو بیا د اموال ظاهره په حکم کښې راځي.

قال العلامة الحصکفیؒ: نصبه الامام علی الطریق...... لیاخذ الصدقات...... من التجار...... المارین باموالهم الظاهرة و الباطنة علیه. قال ابن عابدینؒ: و مراده هنا با لباطنة ما عدا المواشی بقرینة قوله المارین باموالهم و الا فکل ما مر به علی العاشر فهو من نوع ظاهر و سماها باطنة باعتبار ما کان قبل المرور. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۴۲، مطلب ما ورد فی ذم العشّار) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸۳، الباب الرابع فیمن یمر علی العاشر)

او حکومت ته له هغو څخه د زکات د وصولولو اختیار لاس ته ورځي. ګواکه د یوه مال په اموال ظاهره وو کښې د شمارلو لپاره دوه بنیادي اموره ضروري دي.

یوه دا چه هغه په داسې شخصي ځایونو کښې نه وي ایښې چه د هغو د حساب په وخت کښې د شخصي ځایونو تلاشي ته ضرورت پیښ کیږي. کما فی العبارة الاولٰی و الثانیة.

دوهمه دا چه د حکومت تر حفاظت لاندې راشي کما فی العبارة الرابعة.

نو که چېرته په دې معیار باندې د بانك د پیسو جائزه واخیستل شي نو په هغو کښې

دا دواړه خبرې موجودې دي. يوې خوا ته دا هغه اموال دي چه مالکانو ئې له خپل حفاظت څخه ايستلي دي. او پخپله ئې په حکومت باندې ظاهر کړی دی. او د هغوی په حسابونو کښې د شخصي ځايونو د پلټنې ضرورت نه وي. او دوهمه دا چه د حکومت تر حمايت او ساتنې لاندې نه بلکه د حکومت تر ضمانت لاندې هم راغلي دي. بالخصوص چه کله بانك سرکاري ملکيت وي او هغو ته چه کوم سرکاري تحفظ حاصل دی هغه ته په عاشر باندې تر تيريدونکو اموالو په مقابله کښې زيات حاصل دی. نو ځکه د مجلس رأيه دا ده چه د بانك پيسې او په نورو مالي ادارو کښې اينبودل شوې روپۍ د اموال ظاهره وو په حکم کښې دي او حکومت له هغو څخه زکات اخيستلی شي.

او که چېرته بالفرض هغوی او له هغوی څخه ځينې اموال باطنه وبلل شي نو بيـــــا هم فقهاء کــــــــرامو دا تصريح کړې ده چه د کومې علاقې خلك پخپله زکات نه ادا کوي نو هلته حکومت د اموال باطنه وو د زکات مطالبه هم کولی شي. لکه چه د "فتح القدير" او د "الاختيار" په عبارتونو کښې ئې تصريح تيره شوې ده او همـــــــدا مسئله په "بدائع الصنائع ج۲، ص۷" کښې هم موجوده ده.

﴿۵﴾ **د زکات د نيت مسئله:** له بانك او نورو مالياتي ادارو څخه د جبراً زکات اخيستلو په باره کښې يو بل علمي اشکال هم کيدلی شي او هغه دا چه زکات يو عبادت دی او د نورو عبادتونو غوندې ئې په اداکولو کښې نيت ته ضرورت دی. ليکن کله چه د ذکر شوي ادارو څخه جبراً زکات اخيستل کيږي نو په دې کښې د مالکانو له خوا څخه شايد نيت و نه شي.

ليکن د فقهاء کرامو په تصريحاتو کښې د دې اشکال حل هم موجود دی. او هغه دا چه حکومت چه د کومو مالونو د زکات اخيستلو حق لري په هغو کښې د حکومت زکات وصولول پخپله پخپل ذات کښې د نيت قائم مقام ګرځي. چنانچه علامه ابن عابدين فرمايي:

و فی مختصر الکرخیؒ: اذا اخذها الامام کرها فوضعها موضعها اجزاء لان لهٗ ولاية اخذ الصدقات فقام اخذه مقام دفع المالك و فی القنية فيه اشکال لان النية فيه شرط و لم توجد منه آه قلت: قول الکرخیؒ فقام اخذه الخ يصلح للجواب تامل. (رد المحتار حاشية الدر المختار ج۲، ص۲۷، مطلب فيما لو صادر السلطان)

﴿۶﴾ **د بانك اکاونټ ته د پور حيثيت ورکول:** د بانك له پيسو څخه د زکات په وصولولو باندې دريمه شبهه دا کيدلی شي چه په بانکونو کښې کومې پيسې جمع کيږي هغه په فقهي اعتبار سره د قرض په حکم کښې دي. او مقروض کله دا حق لري چه د قرض غوښتونکي له روپو څخه زکات ورکړي. ليکن د غور له کولو څخه دا څرګنديږي چه د قرض له جوړيدو نه وروسته د مضمون والي په بناء باندې نور هم زيات د حکومت په تحفظ کښې راغلی دی. نو ځکه د بانك اکاونټ د قرض په صورت کښې له کيدو سره هم د حکومت د زکات د وصولولو په حق باندې څه منفي اغيزه نه کوي. دا له شك او شبهې پرته قوي دين دی. چه په دې باندې په اتفاق سره



زکات فرض دی. او بانکونه د سرکاري ملکيت والي په وجه سره دا پيسې يو اځې د حکومت په علم کښې نه بلکه د هغه په قبضه او ضمانت کښې هم راغلي دي. نو ځکه که چېرته حکومت د ولايت عامه په وجه په هغه کښې زکات وضع کړي نو څه شرعي قباحت پکښې نشته.

﴿۷﴾ **محتاطه طريقه:** ليکن مجلس په دې پوهيږي چه له بانکونو او نورو مالياتي ادارو څخه د زکات د وصولولو محتاطه طريقه به دا وي چه کله يو سړی د خپلو روپو د اينبودلو لپاره راشي نو هغه به يوه فورمه ډکوي چه پکښې به د خپل ځان له خوا نو مورې ادارې ته دا اختيار ورکوي چه د زکات د تاريخ په پوره کيدو سره به د ده له روپو څخه زکات اخلي او زکات فنډ ته به ئې ورکوي نو په دې طريقې سره دا ادارې د زکات د مالکانو له خوا څخه باقاعده وکيل باداء الزکات جوړيږي. او بيا په دې کښې نه د اموالو په بنياد باندې څه اشکال باقي پاتې کيږي او نه د نيت په بنياد باندې او نه د اکاونټس د قرض والي په بنياد باندې.

﴿۸﴾ **سودي اکاونټونه او زکات:** د بانك له اکاونټونو څخه د زکات په وصولولو باندې يوه بله انديښنه د ځينو خلکو په ذهنونو کښې دا پاتې کيږي چه دا د سود اکاونټونه دي او سود او زکات څنګه سره جمع کيږي؟ په دې کښې شك نشته چه په يوه اسلامي حکومت کښې د سود د کاروبار وجود د شرم خبره ده او په خاصه توګه د زکات د نظام له جاري کولو نه وروسته د دې حرام او ناپاك کار د باقي پاتې کيدو هيڅ جواز نشته. لهذا دا د حکومت فريضه ده چه څومره زر کيدلی شي مسلمانان د سود له لعنت څخه خلاص کړي. ليکن تر کومه ځايه پورې چه د زکات د اداکولو مسئله ده د فقهي اعتبار له مخې که چيرته د يوه سړي منافع له حرامو او حلالو څخه مخلوطې وي او د له ټولو څخه زکات ورکړي نو په دې کښې څه قباحت نشته.

قال العلامة علاؤ الدين الحصکفی رحمه الله: اما اذا اخذ من انسان مائة و من آخر مائة و خلطها ثم تصدّق لا يکفر لانه ليس بحرام بعينه. قال ابن عابدينؒ: بان المراد ليس هو نفس الحرام لانه ملکه با لخلط. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۲۹/۲۸، مطلب فی التصدق من المال الحرام)

فرق يواځې دومره دی چه له حلالو منافعو څخه دوه نيم فيصده به زکات وي او له حرامو منافعو څخه به دوه نيم فيصده صدقه ګڼل کيږي کوم چه له حرامو څخه د ځان د خلاصولو په نيت ادا کيږي. اصل شرعي حکم دا دی چه سود اخيستل حرام دي ليکن که چېرته يو سړی سود وصول کړي نو بيا به ټول واجب التصدق وي.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: انما يکفر اذا تصدق با لحرام القطعی. قال ابن عابدينؒ: ای مع رجاء الثواب الناشی عن استحلاله. و قال الحصکفی رحمه الله فلا زکٰوة کما لو کان الکل خبيثاً. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۲۸، مطلب فی تصدّق من المالِ الحرام)

اوس که چېرته حکومت په دې کښې دوه نيم فيصده د زکات په فنډ کښې داخل کړي په داسې حال کښې چه د زکات په فنډ کښې نورې نفلي صدقې او عطيې هم شاملې دي نو په

مالکانو باندې شرعاً واجب دي چه پاتې سود هم د ځان د خلاصون په نیت صدقه کړي داسې نه چه د دې په بنیاد د اصل مال زکات هم ادا نه کړي۔

د مثال په توګه د یوه سړي زر روپۍ په بانك کښې جمع دي او په هغو کښې سل روپۍ د سود ور جمع شوي دي نو حکومت به د پوره ۱۱۰۰ روپو باندې دوه نیم فیصده په حساب سره زکات اخلي یعنې اوه ویشت نیمې روپۍ زکات به اخلي۔ په دغو اوه ویشت نیمو روپو کښې پنځه ویشت روپۍ د دې سړي د اصل یعنې زرو روپو زکات دی او دوه نیمې روپۍ زکات نه دي بلکه دا چه د سود روپۍ به تولې صدقه کوي خو دا دوه نیمې روپۍ د هغې صدقې یوه برخه ده۔ که چېرته دا هم د زکات په فنډ کښې لاړې شي نو په دې کښې څه قباحت نشته ځکه چه د دې روپو مصرف هم فقراء دي۔

﴿۹﴾ **د نابالغ زکات:** د امام صاحب رحمه الله په نزد د زکات د وجوب لپاره د نصاب د خاوند عاقل والی او بلوغ شرط دی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و شرط افتراضها عقل و بلوغ و اسلام و حریة. قال ابن عابدین رحمه الله فلا تجب علی مجنون و صبی لانها عبادة محضة و لیسا مخاطبین بها. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص٤، مطلب الفرق بین السبب و الشرط و العلة)

په داسې حال کښې چه د امام شافعي او امام مالك رحمهما الله په نزد په نابالغ او د فاتر العقل په مال باندې هم زکات لازم دی۔ په فرمان کښې چونکه د بالغ او نابالغ په اکاونټونو کښې فرق نه دی شوی نو ځکه په دې کښې غالباً شافعي مسلك اختیار کړی شوی دی۔ او د خلکو موجوده حالاتو ته په نظر کولو سره که چېرته ضرورت وي نو د دې ګنجائش شته لیکن بیا هم د حکومت لپاره په دې کښې ډیر له احتیاط څخه کار اخیستل لازم دي۔

﴿۱۰﴾ **د ترکې مال:** البته په بانك کښې ځینې اموال داسې هم کیدلی شي چه د یوه مرحوم سړي ترکه وي او چونکه د مرحوم له انتقال سره سره په هغو اموالو کښې د وارثانو حق ثابتیږي او په وارثانو کښې د هر یوه صاحبِ نصاب کیدل ضروري نه دي۔ نو ځکه له دې مال څخه هم د زکات اخیستل به صحیح نه وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لذا لا یؤخذ العُشر من الوصی اذا قال هٰذا مال الیتیم. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٤٧، قبیل باب الرکاز)

لهذا په فرمان کښې دا استثنٰی هم په کار ده چه کوم سړی د زکات د وضع کولو په ورځ کښې مړ شوی وي د هغه له مال څخه به زکات نه وضع کیږي۔

﴿۱۱﴾ **کمپنۍ او شرکتونه:** په فرمان کښې ئې کمپنۍ هم د نصاب خاوند انګرځولي دي او د کمپنۍ حصې ئې هم په اولې ګنې کښې درج کړي دي او د زکات د وضع کولو حکم ئې ترې ورکړی دی۔ له دې څخه په ظاهره دا معلومیږي چه د هرې کمپنۍ د بانك له اکاونټونو څخه د فرد په



حیثیت به قانوناً جلا زکات اخیستل کیږي۔ که چېرته ربښتیا همداسې وي نو دا طریقه د شریعت خلاف ده۔ ځکه چه په دې کښې له یوه مال څخه په کال کښې دوه ځلې د زکات د اخیستلو احتمال شته کوم چه بالکل ناجائز دی۔ لهذا که چېرته له کمپنیو څخه زکات وصولیږي نو له شریکانو څخه دې ځانته ځانته زکات وصول نه شي او که چېرته له حصه لرونکو او شریکانو څخه زکات وصولیږي نو بیا دې له کمپنۍ څخه وصول نه کړي۔ په دې دواړو صورتونو کښې د مجلس په نزد بهتره خبره دا ده چه زکات په حصو باندې وصول کړی شي۔

﴿۱۲﴾ **عشر د نقدو په صورت کښې:** په فرمان کښې د عشر هم د یوې حصې له لازماً وصولولو څخه مستثنٰی شوې ده۔ مثلاً د باراني زمکو له حاصلاتو څخه پنځه فیصده په هر ډول زمکو کښې د بزګر حصه او داسې نور۔ لیکن دا تصریح هم ورسره شوې ده چه په هغوی باندې شرعاً عشر واجب دی کوم چه مالکان به ئې پخپله ادا کوي۔ په دې حکم کښې شرعاً څه خرابي نشته۔ البته د فرمان په پنځمه ماده ذیل نمبر پنځم کښې صراحت شوی دی چه عشر به د نقدو په صورت کښې اخیستل کیږي۔ یوائې د غنمو او دانو په باره کښې دا استثنٰی شوې ده چه که چېرته صوبایي کونسل وغواړي نو هغه دې د جنس په صورت کښې وصول کړي۔ د مجلس په نزد کښې دا حصه هم د ترمیم لائق دی۔ ځکه چه شرعاً عشر د نقدو په صورت کښې ادا کول لازم نه دي۔ بلکه شریعت په دې کښې د زمکې د مالك د سهولت لحاظ کړی دی۔

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و یجوز دفع القیم فی الزکٰوة عندنا و کذا فی الکفارات و صدقة الفطر و العشر و النذر...... و لنا ان الامر بالاداء الی الفقیر ایصال للرزق الموعود الیه الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۷٤، فصل فی الخیل)

لهذا دغه پابندي دې ختمه کړي او دا معامله دې د زمکې مالك ته پرېږدي چه هغه ته څه ډول آسانه وي هغسې دې ادا کړي۔

﴿۱۳﴾ **د حاصلاتو څلورمې حصه له عشر څخه د استثنا مسئله:** په فرمان کښې د زرعي حاصلاتو څلورمه حصه د اخراجاتو په وجه د عشر څخه د مستثنا کیدو ګنجائش ایښې دی۔ اګر که له ځینو ائمه وو څخه منقول دي چه څلورمه حصه حاصلاتو پورې د اخراجاتو له مد څخه مستثنٰی کیدلی شي۔ مطالعه کړی (فتح الباري ج۳، ص۲٧٤، باب خرص التمر۔) لیکن د حنفیه ووؒ او اکثرو فقهاوو په مسلك کښې دا خلاصون نشته۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و کل شیء اخرجته الارض مما فیه العشر لا یحتسب فیه اجر العمال و نفقة البقر لان النبی علیه السلام حکم بتفاوت الواجب لتفاوت المؤنة فلا معنٰی لرفعها. (الهدایة ج۱، ص۱۸۵، باب زکٰوة الزروع و الثمار)

لهذا که چېرته حکومت دا څلورمه حصه لازمي د وصولۍ څخه مستثنٰی کول غواړي نو حکومت ته ورسره دا اعلان کول هم په کار دي چه د دې حصې عشر دې مالکان پخپله ادا کړي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: فی قلیل ما اخرجته الارض و کثیره العشر سواء سقی سیحاً الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۸۳، باب زکٰوة الزروع و الثمار)

﴿۱۴﴾ **د زکات تاریخ:** د موجوده فرمان مطابق هر کال کښې به زکات د رمضان له اول تاریخ څخه شروع د شوال تر آخري تاریخه پورې وي او دا خبره د اطمینان وړ ده چه د شریعت مطابق د زکاتونو د تقسیم لپاره هجري کال غوره کړی شوی دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و حولها ای الزکٰوة قمری بحر عن القنیة لا شمسی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۲، ص ۳۰، قبیل باب زکٰوة المال)

لیکن د مختلفو سامانونو د قیمت لګولو لپاره په اوله ګنه کښې مختلف تاریخونه ټاکلي دي کوم چه د اسې صورت حال شرعا درست نه وي۔ شرعي صورت ئې دا دی چه کله یو څوك د نصاب خاوند جوړ شي نو د هغه د هرې روپۍ لپاره ځانته ځانته کال نه شمارل کیږي بلکه د هغه د ټولو سامانونو لپاره د زکات د وجوب یو تاریخ وي۔

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و من کان لهٗ نصاب فاستفاد فی اثناء الحول من جنسه ضمه الیه و زکٰوة به...... لنا ان المجانسة هی العلّة فی الاولاد و الارباح لان عندها یتعسر التمییز فیعسر اعتبار الحول لکل مستفاد و ما شرط الحول الاّ للتیسیر. (الهدایة ج ۲، ص ۱۷۵، فصل فی الخیل)

لهذا صحیح طریقه دا ده چه په ټولو سامانونو کښې د قیمت لګولو تاریخ یو وټاکل شي۔ البته د هغوی د قیمت په لحاظ سره د زکات د وضع کولو تاریخونه د مختلفو سامانونو په لحاظ سره مختلف کیدلی شي۔

﴿۱۵﴾ **د قیمتي ډبرو او ماهیانو زکات:** د فرمان په دوهمه ګنه کښې د هغو اشیاوو فهرست ورکړ شوی دی چه په لازمي توګه زکات ترې نه وصولیږي۔ بلکه په مالکانو باندې پخپله د هغو زکات واجب وي۔ او حالانکه په هغو دواړو باندې زکات تر هغو پورې واجب نه دی تر څو پورې چه د تجارت په نیت نه وي اخیستل شوی۔

و فی الهندیة: و لا شیء فیما یستخرج من البحر کا لعنبر و اللؤلؤ و السمك کذا فی فتاوٰی قاضی خان. (الفتاوی الهندیة ج ۱، ص ۱۸۵، قبیل الباب السادس فی زکٰوة الزروع و الثمار)

و قال العلامة الحصکفیؒ: لا زکٰوة فی اللآلی و الجواهر و ان ساوت الفاً اتفاقاً الاّ ان تکون للتجارة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۲، ص ۱۵، قبیل باب السائمة)

لهٰذا! دا دواړه شیان له دغې ګنې څخه باید و ایستل شي ځکه چه د تجارت په نیت سره د اخیستلو په صورت کښې دا شیان په اموال تجارت کښې شاملیږي کوم چه ذکر ئې په دوهمې ګنې کښې تیر شوی دی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: الزکٰوة شرعا تملیك خرج الاباحة فلو اطعم یتیماً ناویا الزکٰوة لا یجزیه الاّ اذا دُفع الیه المطعوم. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۲، ص ۲، کتاب الزکٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج ۲، ص ۲۰۱، کتاب الزکٰوة)

﴿۱۶﴾ **د زکات مصارف:** د زکات د مصارفو په بیان کښې په فرمان کښې مخامخ فقــــــرا او وته د



زکات لـــــــه رسولو سره د مختلفو ادارو په واسطه د فقراوو د امداد ذکر هم شته۔ په دې کښې دا وضاحت کول په کار دي چه په هر صورت کښې به د زکات مستحق مالك جوړوي او ور اداکوي به ئې۔

## د وړاندیزونو خلاصه د حکومت لپاره

﴿۱﴾ د نصاب د خاوند د موجوده تعریف په ځای باندې دې لاندینی تعریف وکړی شي۔
"د نصاب له خاوند څخه مراد هغه سړی دی چه د هغه په ملکیت کښې دوه پنځوس نیمې تولې سپین زر او یا د هغو له قیمت سره برابر نقدې روپۍ، سپین زر یا د تجارت سامان وي۔ یا له دغو څلورو شیانو څخه د ځینو یا د ټولو په یو ځای کولو سره د دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو د قیمت په برابر سامان وي"۔

او بیا هر کال د زکات له تاریخ څخه مخکښې د دوه دوه پنځوس نیمو تولو سپینو زرو چه څومره قیمت وي د هغه اعلان دې وکړي او همدا قیمت د زکات د وصولولو لپاره معیار وټاکي۔ یعنې له هغو خلکو څخه دې زکات وصول کړي چه د دومره مالیت روپۍ ئې په بانکونو یا نورو مالیاتي ادارو کښې جمع وي۔

﴿۲﴾ د فرمان په دریمه ماده کښې دې ترمیم وکړي او د اسې دې ولیکي:
"د فرمان د نورو احکامو تابع له هر مسلمان صاحبِ نصاب سړي څخه په اوله ګنه کښې د ورکړ شوي تفصیل مطابق هر کال د زکات په اختتام باندې به زکات وصولیږي"۔

بل شرط دا دی چه کوم سړی دا ثابته کړي چه د زکات د تاریخ په ورځ نوموړی مقروض وي او قرضه ئې د کوم حاصلاتي غرض له مخې نه وي اخیستلې نو د قرض پیسې به ئې د قابلِ زکات له روپو څخه ایستل کیږي۔

بل شرط دا دی چه د کوم سړي په باره کښې باقاعده د مرګ د شهادت نامه (سند) په ذریعه دا ثابته شي چه نوموړی د زکات د ورکولو په تاریخ کښې مړ شوی دی نو د هغه له پیسو څخه به هم زکات نه وضع کیږي۔

﴿۳﴾ په بانکونو او نورو مالیاتي ادارو کښې د پیسو ایښودونکي سره یوه وکالت نامه لیکل کیږي چه د هغې له مخې متعلقه مالي ادارې ته دا اختیار ورکول کیږي چه د زکات د تاریخ په راتلو سره هغه اداره به د هغه له خوا څخه د زکات په وضع کولو کښې به زکات په فنډ کښې جمع کوي۔

﴿۴﴾ په شرکتونو او د هغو په حصو باندې دې د بیل بیل زکات نه وصولوي بلکه که له شرکتونو څخه ئې وصولوي نو له حصو څخه دې نه اخلي او که چېرته ئې له حصو څخه وصولوي نو له کمپنۍ یا شرکت څخه دې نه وصولوي لیکن په دغو دواړو کښې بهتر صورت دا دی چه په حصو باندې وصول شي۔

﴿۵﴾ عشر د نقدو په صورت کښې د ادا کولو پابندي دې ختم کړی شي بلکه دا خبره دې د حاصلاتو مالك ته پرېښودله شي چه که غواړي نو د جنس په صورت کښې دې ادا کړي او که غواړي نو د نقدو په صورت کښې دې ادا کړي۔

﴿۶﴾ له ټولو زرعي حاصلاتو څخه څلورمه حصه کوم چه حکومت ئې د اخراجاتو د منفي کولو په توګه پرېږدي د هغو په باره کښې دې اعلان وکړي چه د دې حصې عشر دې مالکان پخپله ادا کړي۔

﴿۷﴾ د اولې ګنې لاندې د ټولو سامانونو لپاره د قیمت د مقررولو تاریخ دې یو وټاکل شي او د مختلفو سامانونو لپاره دې مختلف تاریخونه و نه ټاکل شي۔ البته د زکات د وضع کولو تاریخونه د مختلفو سامانونو له لحاظه مختلف کیدلی شي په دې شرط چه د سامانونو اسباب مختلف وي۔

﴿۸﴾ قیمتي ډبرې او ماهیان دې له ګنې څخه خارج کړی شي۔

﴿۹﴾ په دوهمه ګنه کښې د څناورو د زکات د شرح په بیانولو کښې له پنځو څخه تر پنځه ویشتو اوښانو پورې شرحه ډېره مجمله ده کوم چه د اترې محسوسیږي چه له پنځو څخه تر پنځه ویشتو اوښانو پورې یو اوښ واجب دی۔ د دې اصلاح دې وکړی شي او په واضحه توګه دې باید د اسې ولیکل شي چه له پنځو څخه تر پنځه ویشتو پورې په هرو پنځو اوښانو کښې به یو پسه واجب وي۔

﴿۱۰﴾ د زکات په مصارفو کښې دې دا وضاحت وکړی شي چه په هر صورت کښې به د زکات مستحق د زکات مالك او قابض جوړیږي او د اداري د روپۍ په آبادیو او د استاذانو په تنخواه ګانو کښې نه شي لګول کیدلی۔

دا څو تجویزونه دي کوم چه د فرمان له فوري کتنې څخه مخته راغله۔

و لعل الله یحدث بعد ذٰلك امراً و آخر دعوانا ان الحمد لله رب العٰلمین.

﴿۱﴾ بنده عبد الحق مهتمم دار العلوم حقانیه اکوړه ختك (پشاور) ۱۴۰۰/۹/۴هج

﴿۲﴾ رشید احمد عفا الله عنه دار الافتاء دار العلوم کراچي ۱۴۰۰/۸/۲۱هجري

﴿۳﴾ محمد رفیع عثماني عفا الله عنه دار الافتاء دار العلوم کراچي ۱۴۰۰/۸/۲۱ هجري

﴿۴﴾ احقر محمد تقي عثماني عفی عنه خادم دار الافتاء دار العلوم کراچي ۱۴۰۰/۸/۲۱هجري

﴿۵﴾ مفتي ولي حسن دار الافتاء جامعه علوم اسلامیه بنوري تاون کراچي ۱۴۰۰/۸/۲۱هجري

﴿۶﴾ عبد الرزاق اسکندر دار الافتاء جامعه علوم اسلامیه بنوري تاون کراچي ۱۴۰۰/۸/۲۱هجري

﴿۷﴾ بنده سبحان محمود دار العلوم کراچي نمبر ۱۴

﴿۸﴾ بنده عبد الرؤف سکهروي دار الافتاء دار العلوم کراچي



## د اسلامي قوانینو په نفاذ کښې د شیعه او سُني تفریق تباه کُن دی

د وفاقي مجلسِ شورٰی منعقده ۷ او ۹ فروري ۱۹۸۳ء کښې د عشر نظام او د قاضي عدالتونو په مسودو باندې مولانا سمیع الحق صاحب د لسو دقیقو په محدود وخت کښې د مختصر خطاب په دوران کښې په دوو اهمو امورو باندې توجه وکړه۔ د مولانا صاحب دا خطاب د عشر او خراج له قانون سره د مناسبت په وجه د وفاقي مجلس شورٰی له راپور څخه من و عن په نقل کولو سره د عامې افادې لپاره په فتاوٰی کښې هم شامليږي۔

از مرتب

**جناب چئیرمین:** مولانا سمیع الحق صاحب!

**مولانا سمیع الحق:** نحمده و نصلی علی رسوله الکریم بسم الله الرحمٰن الرحیم

**جناب چئیرمین صاحب:** د عشر په باره کښې زمونږ دوستانو ډېرې فاضلانه خبرې وکړې او د هغو د شرعي حیثیت له مخې چه کومې نکتې وې زمونږ علماوو په تفصیل سره په ګوته کړې۔ په دې محدود وخت کښې په لنډه توګه په درېو نکاتو باندې عرض کول غواړم کوم چه حضراتو هم اشاره ورته وکړه۔

**له عشر سره خراج هم شته:** اوله مسئله خو دا ده چه د زمکو په اړه چه د اسلام کوم د محاصلو نظام دی هغه له دوو شیانو څخه عبارت دی یو عشر او بل خراج۔ نو کله چه مونږ دې خوا ته قدم اخلو او دا انتهایي د ستاینې وړ قدم دی۔ ان شاء الله په دې لاره کښې چه کومې خامۍ او موانع شتون لري هغه به ورو ورو له منځه ځي۔ لیکن د عشر د نظام تر څنګ د خراج نظام یو مخ له نظره غورځول شوی دی۔ د خراج معنٰی دا ده چه کومې زمکې د کفارو دي په هغو باندې دې هم د عشر غوندې یو خاص ډول ټیکس ولګول شي۔ عشر خو په عباداتو کښې شامل دی۔ او له غیر مسلمو څخه حاصلیدونکي محاصلو ته عشر نه شو ویلی لیکن د اسلام په نظر کښې د یوه اسلامي مملکت ټول اوسیدونکي د حقوقو له لحاظه هم سره برابر وي او د زاویو له لحاظه هم۔ زمکه چه کله د یوه اسلامي مملکت له مسلمان رعیت سره وي یا ورکول کیږي او محاصل ئې هم متعین دي او چېرته چه مصرف کیږي هغه هم متعین دي۔ لهذا موجوده طریقه ډېره خطرناکه ده چه مثال ئې په ټول عالم اسلام کښې نشته۔ د شخصي احوالو معامله بیله ده۔ په شخصي قوانینو کښې مونږ د فقهي اختلافاتو د ګنجائش رعایت کوو لیکن کله چه د عامو قوانینو مسئله راځي نو په هغې کښې تفریق په یوه ځای کښې هم نه غوره کیږي۔ د دې یو خطرناك اړخ ما د بجټ په موقع کښې هم ذکر کړی وو۔ مونږ د سُني حضراتو او یا شیعه حضراتو لپاره په داسې طریقې سره د مسلك د بدلولو لارې ایستلي دي۔ د مالي مفاداتو په خاطر یو سړی په فارم کښې لیکي چه د فلاني مسلك سره تعلق لرم او چېرته چه ورته نقصان وي نو وایي چه زه له فلاني مسلك سره تعلق لرم۔ او جناب صدر صاحب پخپله هم په یوې مشورې

کښې وعده وکړه چه د غلط مذهب په ښوولو باندې په سخته سزا ورکول کیږي- لیکن د زکات په مسئله کښې د اسې وشول چه په زرګونو خلکو خپل مذهبونه غلط ښودلي دي- او سُنیانو خپل ځانونه شیعه ګان ښودلي دي- نو آیاد مذهب دا غلطه ښوونه هم په عدالت کښې چیلنج شوې دی؟ د دې نقصان سُنیانو ته دی چه د خوش قسمتۍ یا بد قسمتۍ له مخې په اکثریت کښې دي- لیکن هغوی د نقصان خوا ته روان دي- سُنیان د محض مالي مفاداتو له وجهې د اسې کوي ځکه چه دا د خلکو کمزوري دي نو ډیر د اسې لیکي چه مونږ شیعه ګان یو د زکات په مسئله کښې د اسې وشول- دا فارم زمونږ په خلاف دلیل جوړیږي چه د شیعه ګانو تعداد په دومره اکثریت کښې دی- نو تاسو دې ته لاره ولې خلاصوی چه سنیان شیعه ګان جوړ شي او شیعه ګان سُنیان جوړ شي؟ دې ته په اسلامي اصطلاح کښې الحاد، زنادقه ویل کیږي- نو زه وایم چه که چېرته حکومت د اسلامي نظام نافذول غواړي یعني که غواړي چه اسلامي نظام نافذ کړي نو د خدای لپاره د هغوی د اصولو مطابق د هغوی د مسلك مطابق او د هغو د رأیې مطابق دې هم څه طریقهٔ کار وضع کړی او همد اسې ئې مه پرېږدي- کمال خو دا دی چه د زکات او عشر د مصارفو په تقسیم کښې خو تاسو کوم تمیز او فرق نه دی تاکلی چه په دې کښې د سُني او شیعه امتیاز څنګه کیږي؟ لیکن په اخیستلو کښې یوائې د اهل سنتو له یوې خاصې طبقې څخه اخلی او په ویشلو کښې ئې له فراخ دلي (لوی زړه) څخه کار اخلی- اخیستونکي که شیعه وي او که سُني اخیستلی ئې شي-

**د مراعات لپاره چه حکومت عادله ضروري نه دی نو د ذمه واریو لپاره ولې؟:** زمونږ شیعه ګان ملګري وایي چه کله حکومت عادل شي نو بیا به دغه شیان په مونږ باندې لازم وي- د عادل حکومت دا نادر منطق زمونږ له پوهې څخه پورته دی- که چېرته د دنیاوي عهدو، منصبونو، مراعاتو لپاره حکومت، عادله حکومت له کوم کافر سره وي نو اسلام دا نه وایي چه د غیر مسلم زمکه همد اسې پرېږدی او یوائې په مسلمانانو باندې ټیکس یا عشر ولګوی- نو کوم جائدادونه او زمکې چه د غیر مسلمو سره دي په هغو باندې هم خراج ولګوی که چېرته مونږ ته د اسلامي اصطلاحاتو څخه شرم راځي یعني پرې شرمیږو او مونږ د کمتري په احساس کښې له ضرورت څخه زیات مبتلا یو نو مونږ د خراج په ځای هغه ته بل نوم هم ورکولی شو لیکن د خدای پاك تو له زمکه سره برابره ده او دا چه د کومو خلکو ملکیت دی په هغو کښې چا لره مستثنٰی ګرځول او چا لره پابند جوړول په اسلامي تاریخ کښې د دې هیڅ مثال نه پیدا کیږي-

**په عوامي قوانینو کښې تفریق تباه کُن دی:** له دې برسیره یوه بله خبره هم ډیره په درد او افسوس سره کوم چه غلط تعبیر ترې ونه کړی- جناب وزیر خزانه صاحب ډیر مدلل ځواب ورکړ لیکن دا مسئله هغه معمولي وبلله او پخپل ځای ئې پرېښووده- مسئله دا ده چه مونږ د یوه مسلم مملکت مسلمانان او اوسیدونکي یو نو مونږ ته په مکمله توګه د فکري یو والي ضرورت دی-



زمونږ د حمزه کمیټي په راپور کښې هم په دې جانب په مناسبه انداز توجه ورکړې شوې دی چه د عشر په معامله کښې او یاد هر یوه اسلامي قانون په باره کښې د دوی طریقې اختیارول او فقهي مسائل مانع او خنډ ګڼل او ځیني خلك مستثنٰی ګڼل د ملك لپاره ډیر خطرناك ثابتیدلی شي- قسم په خدای زه دا په تعصب سره نه وایم بلکه د شیعه حضراتو د ښیګړې په خاطر دا وایم چه هغوی پخپله له ما سره خبرې کړې دي- دلته زما ورور نصرت علي شاه صاحب او ځیني نور حضرات هم شته دي- چه هغوی په دې وخت کښې هم د خپلو جذباتو اظهار کړی وو- چه د څو سیاسي بخت ازموونکو له وجهې (کوم چه په هره فرقه کښې شته) د ملك ریل ګاډی په د اسې پټرۍ یا سړك باندې برابروي چه انجام ئې بالآخره انتشار او افتراق وي- دا ډیر خطرناك شی دی- د حدودو د فرمان په مسئله کښې هم د اسې وشول او بیا د زکات په مسئله کښې هم همدا چل وشو- که چېرته کومه فرقه زمونږ له فقهي مسلك سره اختلاف ولري نو مونږ په ډیر خلاص زړه هغو ته ښه راغلاست وایو لیکن د هغوی په نزد هم یو نظام، څه قوانین او څه احکام شته- په د اسې حال کښې چه شریعت مطهره یوه فرقه یا ډله هم آزاده نه پرېښې- د مثال په توګه زمونږ د شیعه حضراتو په فقه کښې هم په څلورو شیانو باندې عشر لازم دی- په غنمو، خرماوو، ممیزو او اوربشو باندې د دوی په فقه کښې هم په دغو څلورو شیانو باندې عشر شته- او په کومو شیانو باندې چه دوی د عشر قائل نه دي د هغوی په اړه دوی وایي چه د هغو شیانو خمس ورکول په کار دي-

د دوی عقیده دا ده چه په سلو منو کښې شل منه ده- نو د حکومت له خوا څخه چه کومې ذمه وارۍ په رعایا باندې عائد کیږي د هغو لپاره ولې حکومت حکومتِ عادله نه بلل کیږي؟ نو زه وایم چه په بدقسمتۍ سره یو شی د عوامو په زړه کښې پیدا کیږي- مونږ همدا وایو چه شیعه او سُني دې همیشه د وروڼو غوندې اوسیږي- او په ملك کښې دا آواز پورته نه شي او خلك دا نه وایي چه نن په دغې معامله کښې شیعه زمونږ نه جلا شوي دي نو په آخر کښې د سُنیانو له خوا څخه هم دا آواز پورته کیږي چه وروره کله چه دوی جلا کیږي نو مونږ هم بیل کړه- او هغوی هم بیل کړه- خدای مکړه، خدای مکړه که چېرته د اسې وشول نو د ملك او قوم لپاره به ډیره خطرناکه کیسه شي-

پرون د مالیې وزیر صاحب وویل چه دا مسئله د علماوو د افهام او تفهیم مسئله ده- کمال خو دا دی چه په علماوو کښې د افهام او تفهیم له مخې د اسې احکامات جاري کیدلی شي کوم چه حکومت ئې نه شي جاري کولی- علماء څنګه کښیني او افهام و تفهیم وکړي؟ علماء خو تاسو ته وایي چه وروره عشر نافذ کوی هم مه، ستاسو چه کوم علماء دي د هغوی اکثریت ستاسو خلاف دي- زه تاسو ته دا حقیقت وښایم چه علماء وایي چه عشر نافذ کوی هم مه، لیکن په دې مسئلې کښې تاسو علماوو ته وایی چه پخپل منځ کښې افهام او تفهیم پیدا کړی کوم چه

د علماوو په طاقت كښې نه دى. پخپل منځ كښې مفاهمت پيدا كول د يو والي قائمول دي. د هغوى په قوانينو كښې دا د حكومت اولينه فريضه ده. او انشاء الله په دواړو طبقو كښې معتدل سنجيده او مخلص حضرات موجود دي او هغوى دا نه شي كتلى. نو انشاء الله العزيز الله تعالى ... لپاره دا لاره آسانوي او كه نه نو چېرته تاسو دغه دوه عملي او د تفريق سلسله جاري كولى شي؟

**عشر او نصف العشر(نيم عشر):** زما دريم ګذارش دا وو چه د اخراجاتو په سلسله كښې مسئله موګرد جنه (خړه) كړې ده. شريعت پخپله په كروندګر باندې په مصارفو كښې رعايت كړى دى. په باراني زمكو باندې ډير مصارف نه راځي نو ځكه په هغو كښې عشر يعنې لسمه حصه او په نهري او د كوهى. په زمكو باندې مصارف زيات راځي نو ځكه په هغو باندې نيم عشر يعنې شلمه حصه ده. ... دا يو عجيب صورت حال دى چه د مصارفو د لرې كولو په ټولو اسلامي تاريخ كښې ئې مثال نه پيدا كيږي چه عشر نافذ شوى وي نو له هغه ځخه دې اخراجات او مصارف منفي شوى وي مخكښې الله تعالى د دې رعايت كړى دى، نو دا مسئله دې دومره و نه ځيړله شي او په عشر او نيم عشر باندې دې پرېښودله شي.

نو جناب والا! زما بنيادي خبره دا ده كومه چه په منځ كښې ما وويل چه د فقهي اختلافاتو دا سلسله نه په ايران كښې موجوده ده او نه په عراق كښې نه په مصر كښې او نه په شام كښې. د خداى لپاره دا اسلسله بنده كړى. شكريه



## زكات او متجددين

## د اسلام په عمارت (مانۍ) كښې د سوري د پيدا كولو كوشش

زكات يو عبادت دى چه الله تعالى د نصاب په خاوند باندې فرض كړى دى. بلكه زكات د اسلامي عمارت يوه اهمه مته يا ستن ګڼل شوې ده. په نننۍ زمانه كښې ځينې روشن خياله او متجددين مثلاً ډاكټر فضل الرحمٰن د تحقيقاتو د ادارې مخكښينى ډائريكټر او د اسې نورو حكمرانانو دسياسي مقاصدو د تكميل لپاره د علماء اسلام، ديني مدارسو او ديندارو خلكو په نامه مهم شروع كړى وو. په دې ضمن كښې ئې زكات د عبادت له جملې ځخه وايست او د ټيكس ګڼلو لپاره ئې په تحريري توګه شروع وكړه. حضرت مولانا سميع الحق صاحب د دې باطلې نظريې او د متجددينو د تحريراتو تعاقب وكړ او د "په قصر اسلام كښې د شګاف د سعې" يعنې د اسلام د عمارت د سوري كولو د كوشش تر عنوان لاندې يو ژوندى مضمون وليكه چه په ماهنامۀ الحق كښې هم شائع شوى دى چه اوس ئې د عامې افادې لپاره په فتاوىٰ حقانيه كښې هم شاملوو.

از مرتب

هغه ملك چه د يوه اوږده او پيهم جدو جهد او بې حده قربانيو ځخه وروسته منځ ته راغى چه په خاطر ئې په لكونو مسلمانان د اور او وينې له سيلابونو سره مخامخ شول او په زرګونو د عصمتونو او عزتونو ډيوې مړې شولې. او د لكونو مظلومانو ژوند د اغيارو په لاسونو لوټ شول. غرض دا چه مسلمانان په ټول ژوند كښې او د ژوند په هره ګړۍ كښې او ټول عمر په دې لاره كښې په دغو قربانيو خوشحاله وو.

نو اوس كه چېرته يو بدبخته پورته شي او د دې بنياد له بيخه وباسي او ديوالونه ئې سوري كړي نو آيا د هغوى لپاره د اسې غدارانه حركتونه هره لحظه برداشت كيدلى شي؟ او آيا دا سړى به د قومي غدار ويلو مستحق نه وي كوم چه په دې مضبوط حصار (مضبوطې كلا) كښې سورى جوړوي او د قومي قتل مجرم جوړيږي؟

**د ملت حنيفيه د حفاظت لپاره د حضورﷺ او صحابه وو رضى الله عنهم قربانى:** د امت مسلمه هغه مضبوطه او اوسپنيزه كلا چه په استحكام باندې ئې نه يوازې زمونږ بلكه د ټولې دنيا د ساه اخيستونكي انسانيت لپاره مدار دى، كوم چه مونږ د ملت اسلاميه او ملت حنفيه په خواږه نامه تعبيروو. د هغې اولنۍ خښته د اولنۍ معمار حضرت ابراهيم عليه السلام په لاس اېښودل شوې ده او تكميل ئې د فطرت له ټولو نه لوى علمبردار او كامله اكمله هستي نبي آخر الزمان په لاس باندې وشو. دى مبارك د شپې او ورځې آرام او راحت د دغې لارې لپاره

قربان کړي وو۔ او د دې کلا د تکمیل لپاره ئې هغه مصیبتونه په ځان تیر کړه چه نه له ده مخکښې چا تیر کړي وو او نه به ئې وروسته تیروي۔ و اذیت فی الله ما لم یؤذ احد او کما قال. د هغه د معصوم او پاک زړه هره ساه او آرزو د دې حصار یا کلا د استحکام او مضبوطی سره تړلې وه چه اوس تر قیامته پورې د راتلونکي مخلوق حقیقي فلاح او بقا د دې ”خدایي کلا“ د مضبوطتیا سره تړلې دی۔ حضور ﷺ له خپلو مقدسو صحابه کرامو سره خپل ژوند، مال، ځان، عزت او آبرو، کور او کلی، ملك او وطن غرض دا چه خپل هر څه د اسلام د حفاظت او اشاعت لپاره او همد ارنګه د اسلام په مدافعت باندې قربان کړل۔ او کله چه هغه ذات قدسي صفات له دې عالم څخه سترګې پټې کړې نو د دین د دې قصر ”مانی“ د یوه حسیني او جمیلې، کاملې و مکملې مرقع په شکل کښې په دنیا کښې موجوده وه او د ذرې غوندې کمي او خامي پکښې نه وه چه د تکمیل او تعمیر لپاره ئې د بل معمار ضرورت پیښ شوي وای۔

## ارکان خمسه

هره مانۍ په ستنو، چت یا بام او له دَر او دیوالونو څخه عبارت او پخپل مضبوط او راسخو بنیادونو باندې استوار وي۔ نو همد ارنګه د اسلام عظیم الشان عمارت هم په دې بنیادونو او متو باندې قائم دی چه هغوی مونږ د ارکان خمسه (شهادتین، لمونځ، زکات، روژه او حج) په نامه سره پیژنو۔ او دې ته حضور اقدس ﷺ په دعائم الاسلام (د اسلام په ستنې) تعبیر ورکړی دی۔ مطالعه کړی عمده القاري ج۱، ص۱۴۱، بحواله مصنفه عبد الرزاق۔ که چېرته د دې بنیادي ستنو څخه یوه ستن لرې کړی شي او یا ئې لږ غوندې ښوک کړه کړي نو مکمله مانۍ له بیخ څخه نړېږي چه بالآخره د تولو اوسیدونکو د تباهی او هلاکت سبب ګرځي۔ که چېرته یو خِرد باخته (کم عقله) سړی د دې مانۍ په بنیادونو کوم ضرب ولګوي او له خپل ځایه څخه ئې وښوروي نو هوښیار توب خو دا دی چه د دې عمارت تول اوسیدونکي پورته شي د هغه سړي لاسونه پرې کړي کوم چه د تول قوم او ملت د نقصان او تباهی سبب جوړېږي۔ او نه یوائې دا بلکه هغه تول لاسونه غوڅ کړي چه د دې ملي غل او خائن تر شا ولاړ دي او امداد او تعاون ئې کوي۔ او دا یو لوی او ریښتونی حقیقت دی چه د اسلام او د محمدي ﷺ دین اهمیت، عظمت او نزاکت په باره کښې پخپله حضور اقدس ﷺ د یوه ساده مثال په ذریعه د خلکو په زړونو کښې اچولی دی او بار بار ئې فرمایلي دي چه صحابهٔ کرامو په مختلفو طریقو سره را نقل کړی دی۔

بُنی الاسلام علی خمس شهادة ان لا اله الا الله و ان محمداً رسول الله و اقام الصلوٰة و ایتاء الزکوٰة و الحج و صوم رمضان. (عن عبد الله بن عمر، بخاری، مسلم، ترمذی، نسائی)

”د اسلام دا عظیم الشانه کارخانه په پنځو ستنو باندې درول شوې ده۔ د الله تعالی وحد انیت (یو والی)، د محمدي ﷺ رسالت اقرار، د لمانځه اداکول، د زکات ورکول، حج کول، او د رمضان د روژو نیول“۔



کله د غو ارکانو ته دعائم الاسلام ویل شوي دي او کله د عماد په لفظ سره د هغو په اساسي حیثیت باندې رڼا اچول شوې ده۔ پخپله د قرآن مجید اکثره مضامین، احکام، اوامر او نواهي، قصص او آد اب اود امثالو او مواعظو مرکزي نقطه هم د غه پنځګوني ارکان دي چه دین او آخرت او د غیب تول عالم پرې باندې استوار دي۔

**د ارکانو پخپل منځ کښې ربط او تړون:** او بیا نه یوائې دا چه د دین د دې مانۍ بقاء د دغو ارکانو په مجموعي حیثیت باندې موقوفه ده بلکه دا تول ارکان پخپل منځ کښې د اسې سره مربوط او وابسته دي چه که چېرته په هغو کښې یو نه وي نو په پاتې تولو رکنونو کښې سستي پیدا کیږي او د تولې مانۍ توازن برقراره نه پاتې کیږي۔ که چېرته په دغو کښې د یوه ضرورت او اهمیت محسوس نه شي یا بیکاره وګڼل شي او یا د هغو په اساسي هیئت کښې د بدلون سعی او کوشش وشي که هغه ایمان بالله وي او که یا لمونځ، یا روژه، یا حج، یا زکات وي نو دا سړی د اسلام د دې تولې مانۍ د ښمن بلل کیږي څکه چه د دې متینې مانۍ هره حصه په نورو حصو باندې ولاړه ده۔ کوم معمار ﷺ چه د رباني هد ایاتو په رڼا کښې دغه مانۍ جوړه او تیاره کړې ده او چه کومه نقشه ئې جوړه کړې ده نو ئې د دغو ارکانو پخپل منځ کښې ربط او تعلق او د هغو اهمیت په لاندې الفاظو کښې بیان کړی دی۔

قال رسول الله ﷺ اربع فرضهن الله فی الاسلام فمن جاء بثلاث لم یغنین عنهُ شیئاً حتی یأتی بهن جمیعا الصلوٰة و الزکوٰة و صیام رمضان و حج البیت. (ترجمان السنة بحوالهٔ احمد و طبرانی)

”(د ایمان له راوړلو وروسته) څلور شیان دي چه الله تعالی په اسلام کښې فرض کړي دي چه له لمانځه، زکات، روژه او حج د بیت الله څخه عبارت دي۔ څوك چه له دغو څخه درې ادا کړي او په هغو کښې د یوه له فرضیت څخه هم منکر وي نو دا نور هم په کار نه ورځي تر څو چه تول ادا نه کړي (یعنې په تولو ئې ایمان او یقین نه وي)“۔

په دغو څلورو شیانو کښې زکات هم دومره ضروري او اهم دی لکه څومره چه لمونځ دی او په دې وجه قرآن کریم په هر ځای کښې له اقیموا الصلوٰة څخه وروسته اٰتوا الزکوٰة حکم ورکړی دی۔ روژه هم همد اسې فرض او بنیادي عبادت دی لکه حج۔

**د یوه رکن څخه انکار او په هغه کښې بدلون هم کفر دی:** که چېرته یو سړی د ایمان مدعي دی لیکن د لمانځه او یا زکات څخه انکار وکړي او یا د هغو په خاکه کښې د ترمیم او بدلون ناوړه او ناروا عمل پرمخ بیایي کومه خاکه چه لومړنی معمار ﷺ د دغو عباد اتو لپاره تیاره کړې ده۔ نو هغه ته په دغې محمدي ﷺ مانۍ کښې د اوسیدلو هیڅ حق حاصل نه دی او نه د دوی د ایمان دعوی د اعتناء وړ ده۔ اګر که هغه په زرګونو ځلې د هغه د استحکام لپاره د کار کولو دعوې هم وکړي او زمونږ د دې دعوې مأخذ پخپله قرانکریم او سنت رسول ﷺ او د صحابهٔ کرامو او خلفاء راشدینو رضی الله عنهم طرز عمل دی۔

فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا سَبِيْلَهُمْ. (سورة التوبة)

"دغه مشرکین چه چرته پیدا کوی قتل کوی ئې پس که چېرته هغوی تائب شي او لمونځونه اداکړي او زکاتونه ورکړي نو بيائې لاره پرېږدی".

له حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې راغلي دي چه حضور اقدس ﷺ وفرمايل چه تر څو پورې خلك د توحيد او رسالت اقرار او لمونځ او زكات نه وي اداکړی نو ما ته حکم دی چه زه به له هغوی سره تر هغو پورې جنګیږم. نو کله چه هغوی د اسې وکړي یعنې د ا تول شیان په ځای کړي وروسته بیا له ما نه خپل مال او عزت محفوظولی شي- (بخاري او مسلم)

او بيائې د دغو رکنونو پخپل منځ کښې ارتباط او تعلق د اسې بيان کړی دی چه کله د بنو ثقیف یو وفد له طائف څخه د حضور اقدس ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د اسلام د قبلولو اراده ئې ښکاره کړه لیکن په دې شرط باندې چه مونږ ته به د اسلام یو رکن یعنې لمونځ معاف کیږي نو حضور ﷺ له ډيرې سختئ. او حقارت سره د دوی دا غوښتنه رد کړه او وئې فرمایل چه:

لا خیر فی دین لا صلوة فیه

"یعنې په هغه دین کښې خیر نشته چه لمونځ پکښې نه وي"

حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنهما د دې مفهوم په دې الفاظو سره بیان کړی دی.

من لم یزكّ فلا صلوة له (ترجمان السنة ج ۱، ص ۵۸۷)

"څوك چه زكات ور نه كړي د هغه لمونځ هم نه قبليږي".

د رسول الله ﷺ خلیفه حضرت سیدنا ابو بکر صدیق رضی الله عنه د صحابۂ کرامو رضی الله عنهم په یوې لویې مجمعې کښې وفرمايل:

و الله لاقاتلنّ من فرّق بین الصلوة و الزکوة.

"په خدای مې دې قسم وي چه کوم سړی په لمانځه او زکات کښې فرق پیدا کوي (په دغو دواړو کښې د یوه له تعبدي حیثیت څخه انکار وکړي) نو زه به له هغه سره جنګیږم".

**د زکات منکرین او صدیقيؓ فراست:** د رسالت له زمانې سمدستې وروسته چه کله څينو غير راسخ الایمانه قبائلو عبس، ذبیان، بنو کنانه، غطفان او بنو فزاره د زکات له ادا کولو څخه انکار وکړ نو د مسلمانانو خلیفه حضرت سیدنا ابو بکر صدیق رضی الله عنه د خپل ایماني فراست او جذبې په بنیاد د دې باغیانه او کافرانه جسارت په مهلکو اثراتو باندې فوراً پوه شو چه که چېرته په دې وخت کښې د محمدي ﷺ مانې په بنیادونو دا اول ضرب برداشت کړی شي نو په راتلونکي کښې د بد باطنه خلکو یعنې منافقینو، زنادقینو او محرفینو په لاسونو باندې به دا تول عمارت له خاورو سره خاورې شي- جزاه الله عن الاسلام و المسلمین-

حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ته د زکات او یا د هغه له تعبدي حیثیت څخه



انکار کوونکو په اقدام په کفر او ارتداد کښې لږ غوندې هم متردد نه شو او دا څکه چه د امام العصر حضرت مولانا انور شاه کشمیري صاحب رحمه الله په نظر چه:

ان الایمان اسمٌ لالتزام کل الدین فمن فرق بین الصلوة و الزکوة فکانه لم یؤمن با لکل و من لم یؤمن با لکل فهو کافرٌ قطعاً. (فیض الباری ج ۱، ص ۱۰۸)

"بنا پر دې چه ایمان د تول دین التزام ته ویل کیږي- پس که چېرته یو څوك په لمانځه او زکات کښې فرق پیدا کوي ګواکه هغه په تول دین باندې ایمان نه دی راوړی او چه څوك په تول دین ایمان نه وي راوړی نو هغه سړی قطعي کافر دی".

حضرت عمر رضی الله عنه ته چه کله اندازه ولګیده چه د هغو خلکو جسارت او بدبختي یوائې له حکومت څخه بغاوت او سرکشي نه ده بلکه د دین له یوه اهم رکن څخه انکار یا په هغه کښې د تحریف او یا غلط تاویل کول دي چه په تول دین باندې ئې اثرات تباه کوونکي دي نو د هغه مبارك سینه هم په دې باندې خلاصه شوه او نه یوائې فاروق اعظم رضی الله عنه بلکه تول صحابۂ کرام رضوان الله علیهم اجمعین قولاً او عملاً د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه سره ودریدل او په دې طریقې سره د اسلام د یوه رکن (زکات) په قطعیت کښې د صحابۂ کرامو احماع منعقده شوه. او د اسې اجماع چه په نفاذ کښې ئې د مخالفینو د وینې له تویولو څخه هم صرفه و نه شوه او د څینو مخالفینو وینه هم پکښې تویه شوه.

**د زکات مانعینو زکات نه ټیکس ویل:** د زکات د مانعینو د دې اقدام د اسبابو او عواملو په پلټنې کښې مونږ ته دا خبره په لاس راځي چه د زکات منکرین نه یوائې صدیق اکبر رضی الله عنه ته د زکات له ورکولو څخه انکاري وو بلکه د خپلې غلطې نظریې او رأیې په بناء باندې ئې زکات یوائې یو ډول ټیکس ګڼلی وو. او په دې ډول سره د هغه له عبادتي حیثیت څخه منکر وو.

محدث جلیل علامه کشمیري رحمه الله فرمایي:

و انما زعموا ان الزکوة جبایة مال کما یجبی السلطان من الرعایا جبایات من جهات فکانت الی النبی ﷺ في عهده و اذا ولینا نحن ولاة منا سقطت و بقیت کسائر الجبایات علی رأی الوالی. (فیض الباری ج ۱ ص ۱۰۹)

"د زکات د منکرینو دا ګمان وو چه زکات یو مالي ټیکس دی لکه څنګه چه بادشاه له خپل رعیت څخه څو ډوله مالیې یا ټیکسونه وصولوي- پس د حضور ﷺ په زمانه کښې د دې ټیکس یا مالیې د وصولولو حق د حضور ﷺ وو او چه کله مونږ له خپلو څخه والیان او حاکمان ورکړل نو زکات له مونږ څخه ساقط شو او د نورو مالیو غوندې اوس زکات د زکات معامله هم د حاکم په رأیه پورې وتړل شو".

پوره څوارلس سوه کاله وروسته د زکات د مانعینو هم هغه استدلال او د اسلام له ارکانو څخه د بغاوت اعاده ده کوم چه نن د اسلامك ریسرچ انستي تیوټ (د اسلامي تحقیقاتو د اداره) سربراه ډاکتر فضل الرحمٰن او د هغه لاديني ریسرچ او تحقیق په صورت کښې مونږ ته مخې ته راځي-

**د زکات په مصارفو او مقادیرو کښې کموالی او زیاتوالی جائز نه دی:** ډاکټر فضل الرحمٰن وایي چه "د معاشرې د ضروریاتو لپاره د زکات موجوده شرح کافي نه ده. حکومت ته په دې کښې د زیاتي د کولو حق حاصل دی. (فکر و نظر اکتوبر ۱۹۶۴ء) د پي پي اي نمائنده ته ئې پخپلې مرکې کښې وویل. په مقدس قرآن کښې په مسلمانانو باندې مملکت ته یواځې د ټیکس یا مالیې د لګولو اختیار ورکړ شوی دی او هغه زکات دی. دا ټیکس په بنیادي توګه د دې لپاره وضع کړی شوي دی چه د مملکت د مختلفو ضروریاتو په پوره کولو سره د مسلماني معاشرې سماجي ترقي بلکه د مملکت دفاعي او په نورو ضروریاتو کښې لکه ټرانسپورټ او په باندینی قرضې باندې هم ولګول شي الخ."

ډاکټر صاحب خومره بنه خبره کوي، الله تعالی په قرآن کښې د زکات د لګولو لپاره اته ګوني مصارف مخصوص کړي او رسول الله ﷺ ئې نصاب او مقادیر متعین کړي او د هغه د تقسیم او لګولو دومره اهتمام ئې وکړ چه یو ځل یوه سړي له انحضرت ﷺ څخه د زکات له مال څخه د څه ورکولو غوښتنه وکړه نو حضور ﷺ ورفرمایل: "ای سړیه! الله تعالی د زکات په مال کښې هیڅ یوه انسان ته هم بلکه پخپله پیغمبر ته هم اختیار نه دی ورکړی بلکه د زکات تقسیم ئې پخپل لاس کښې نیولی دی او د هغه ئې اته مصارفه بیان کړي دي. که چېرته ته په دغو اتو مصارفو کښې داخل یې نو زه ئې تا ته درکولی شم او که نه یې داخل نو نه ئې شم درکولی". (ابو داود کتاب الزکوٰة)

**د اسلامي ریاست د منافعو ذریعې:** او بیا دا خبره د مسخرې خبره ده چه په اسلام کښې له زکات پرته د ملکي ضروریاتو لپاره کومه بله آمدني نه ده ټاکل شوې. آخر د ډاکټر یعنې د داسې "محقق" په باره کښې دا خبره په نادانۍ او ناپوهۍ او یا په تجاهل عارفانه باندې محمول کیږي او که څنګه؟. اسلام د یوه اسلامي ریاست د مصارفو او ضروریاتو لپاره بې شمیره ذرائع ټاکلي دي. د آمدنۍ یوه ذریعه خراج دی کوم چه له غیر مسلمو څخه د هغو د زمکې په بدل کښې ترې اخیستل کیږي چه په هغو باندې له مقابلې یا صلحې څخه وروسته د مسلمانانو تسلط قائم شوی وي کوم چه د زمکې په حاصلاتو او د آبپاشۍ او یا کچ او پیمائش کولو په طریقې باندې لګول شوي وي. د امام ابو یوسفؒ په الفاظو کښې د دې د وصولولو لپاره به داسې افسر ټاکل کیږي چه فقیه، عالم، متقي یا پرهیزګاره، منصف مزاجه، متدین او له ځان خوښونې څخه پرهیز کوونکی وي.

یوه ذریعه جزیه ده کومه چه د غیر مسلمو اهل ذمه وو څخه اخیستل کیږي او اسلامي حکومت به د دوی د ښاري حقوقو، مال او ځان محافظ وي. دوهمه ذریعه د غنیمت مخصوصه حصه چه له غیر مسلمو څخه د جنګ په دوران کښې قیدیانو او د مال او دولت په صورت کښې چه لاس ته راځي. څلورمه ذریعه مال فيء دی کوم چه له دښمن څخه له جنګ او جدل پرته د



مسلمانانو لاس ته ورځي. پنځمه ذریعه معدنونه او کانونه. د مدفونې خزانې یا معدنونو پنځمه حصه هم بیت المال ته د اخلیږي. او همدارنګه د اجارې او ټیکې منافع چه د زمکې کومه ټکړه د کوم کاروبار لپاره چا ته په دې شرط باندې ورکول کیږي چه له منافعو څخه یوه مخصوصه حصه به بیت المال ته د اخلوي. له دې برسیره د عشر په شکل کښې په زمکې باندې محصول یعنې د حاصلاتو یوه په لسمه حصه او یا په بل قسم جائدادونو کښې نصف العشر یعنې یوه په شلمه حصه چه د کموالي او زیاتوالي اختیار چا ته نشته او د هغه مصارف او مقدار هم معین دي او له دې برسیره په غیر ملکي درآمد باندې محصول (امپورټ ډیوټي) کوم چه د حضرت عمر رضی الله په زمانه کښې رواج شو او حال دا چه د نورو ممالکو مسلمانانو تاجرانو څخه په مالونو باندې ئې دا ډول محصول ولګاوه او که چېرته یو اسلامي حکومت واقعي په اسلامي بنیادونو او حقوقو باندې قائم وي د اسلامي نظام احیاء او نفاذ کوي او په محاصلو او مصارفو کښې د قرآن او سنتو په هدایاتو باندې په سختۍ سره عمل کوونکې وي نو د داسې حکومت له مذکوره شیانو برسیره نور محاصل او ټیکسونه هم لګولی شي. د اسلام فقهاوو دا تصریح کړې ده چه د ملکي دفاع او فوجي قوت د استحکام او پولیسو اخراجات او یا خیریه کارونو لکه د ویالې جوړول، د پلونو تعمیر، د بندیانو خلاصول او داسې نورو لپاره ټاکل شوي او اضطراري یعنې بیړني دواړه ډوله محاصل وصولیدلی شي (هدایه کتاب الکفاله او د فقهي نور کتب) نه دا چه د زکات سالم هیئت بدل کړي او ټیکس ترې جوړ کړي او د الله تعالی د ټاکل شویو مصارفو پرته په نورو مصارفو باندې ولګول شي.

**د جاهلي نظریاتو نوی تعبیر:** د اوسني زماني دغه نام نهاده محققین نن دا ټول جاهلي نظریات د تاویل او تحریف او دجل و تلبیس په اسلحو باندې مسلح کړي دي او د اسلام د نوي تعبیر په شکل کښې ئې دوباره وړاندې کړي دي کوم چه اسلام په سختۍ سره غلط ګرځولي دي او کوم چه د هغه عظیم پیغمبر ﷺ تر خپلو قدمونو لاندې پائمال کړي دي. د جاهلیت اولی د هغه بد او منحوس دیو روح دی کوم چه کله د مرزا غلام احمد قادیاني په شکل کښې څرګندیږي او کله د غلام احمد پرویزي شکل غوره کوي او کله د فضل الرحمٰن او د ده غوندې نورو محققینو او مغرب وهلي پوهانو په شکل کښې څرګندیږي. او بیا د ټولو فتنه ګرو خلکو سره د اسلام په یوه یوه رکن او یوه یوه اساس باندې حمله کوي. د خپل وخت شیطاني ذرائع او وسائل ئې شا ته ولاړ دي. کله ئې ګذار د محمدي ﷺ رسالت په بنیاد "ختم نبوت" باندې وي او کله ئې د سنتو په تشریعي حیثیت او د رسالت په منصب باندې وي. کله د تجدد او نوي رڼا تر نامه لاندې د مسلمانانو "پرسونل لاء" (شخصي قانون) مسخ کیږي. نو کله ظاهري ترقي او د مغربیت په پړک و ترړک باندې د اسلام په ټول معاشرتي نظام طلاق، نکاح، عده، میراث او داسې نورو ته لاسونه اوږدوي. په دې پیړۍ کښې دغه طاغوتي روح د مسلمانانو ټوله اقتصادي باډۍ تجارت او صنعت، په دغه جاهلي نظام یعنې سود، قمار (جوارۍ)، حرام کاروبار، معاشي برترۍ او ظلم او تعدی په بنیادونو باندې درولې دي او د عالم

اسلام ټول حاکمه هیئت او نافذه قوت ئې شا ته غورځولی دی. د دې منحوس سیوری د مسلمانانو په ټول نظام یعني اخلاق او کرادر، تمدن او د معاشرې په طرز او طریقې باندې لویدلی دی او په ځای ئې مغربي خود غرضي، نفس پروري، ماده پرستي، جنسي هیجان او اباحیت قدم ایښی دی او د "بدأ الاسلام غریبا و سیعُود غریبا" منظر مخې ته راغلی دی.

**د غفلت یا مداهنت خطرناکې نتیجې:** په دې حالاتو کښې که چېرته مسلمه امت یوه لمحه له غفلت، مداهنت او یا رواداری، څخه کار واخلي او د اسلام په یوه یوه اصل باندې د شیطانت دغه وار او ګذار وزغمي نو ښکاره خبره ده چه نتائج به ئې څومره مهلك او تریخ وي؟ بیا هم دا معلومه نه ده چه دا سلسله به تر کومه ځایه پورې رسیږي؟ که چېرته نن د زکات شرعي حیثیت تباه او برباد کړی شي چه د زکات موجوده شرح د حکومت د مصارفو لپاره کافي نه ده نو صبا ته د لمانځه په باره کښې هم دا ویل کیږي او په هغه کښې هم خُرد او بُرد کیږي چه د نن صبا په مصروف ژوند کښې دا پنځه وخته لمونځ د وخت د ضائع کیدو سبب ګرځي او دې ته څوك فرصت لري. او دا چېرته د هوښیاری، خبره ده چه په دې صنعتي او مشیني دور کښې د میاشتې پوره دیرش ورځې روژه څوك ونیسي او د ملك مادي حیثیت ته نقصان ورسول شي؟ او د حج او زیارت لپاره په زرګونو میله سفر کوي او د خلکو وخت او د ملك پیسې او اقتصاد ضائع کول چېرته د هوښیاری، خبره ده؟ و العیاذ بالله العظیم که نن څوك سود حلال وګڼي نو دا څه لرې خبره نه ده چه صبا ته به زنا او شراب څوك حلال و بولي. او که چېرته نن د مسلمانانو په معاشرتي معاملاتو کښې په تحریف او تبدیل باندې صبر وکړو نو د دې ضمانت به څوك کوي چه صبا ته به د ټولو عباداتو او اعتقاداتو پورې له دین څخه د لاس مینځلو ته اړ نه شو؟

**د نفاق وهلي خلکو خندوونکی حالت:** پورته چه کوم شیان بیان شول له هغه څخه له نورو ارکانونو پرته د زکات په بنیادي او تعبدي حیثیت باندې هم رڼا لویږي او دا هم څرګندیږي چه ډاکټر فضل الرحمٰن او د هغه غوندې د نورو ثقافتي او ریسرچي فکر او نظر خاوندانو تحقیقات تر کومه ځایه پورې رسیږي.

په اصل کښې چه کوم زړونه د اسلام په باره کښې د سوء ظن، سطحیت یا د حسد او عناد ښکار دي او اسلام د موجوده "عهد جاهلیت" لپاره رکاوټ بولي د ځینو سیاسي او مادي اغراضو په وجه نه په واضحه توګه د اسلام د "ابدي دین" او د دې چه د ژوند پوره ضابطه ده انکار کولی شي او نه د اندروني نفاق له وجهې د اسلام د جامعیت او د حنفي دین د صد اقتونو اقرار. دا صم بکم حالت دوی د تضاد، تعارض او تذبذب او نفاق په یوه عجیب او خندوونکي مقام باندې درولي دي.

کله دوی په سرمایه دارانه نظام باندې د اسلام تاپې لګوي او کله کمیونزم او مارکسیست د دنیا کامیاب مذهب بولي او کله وایي چه سائنس او حکمت او دین و مذهب



سره یو ځای کیدای نه شي او کله وایي چه د اسلام مقصد یوائې د سائنسي ترقي او مادي عروج او ارتقاء ده او کله کله بالکل د سنت رسولﷺ د حجیت څخه انکار کوي او کله د هرې زمانې ماؤف او استشراق وهلي زړه او دماغ اجتهاداتو ته د سنت جاریه نوم او مقام ورکوي. ګواکه د دوی دا کیفیت صحیح د دې ارشاد خداوندي مصداق دی.

فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِىْ بِهِ الرِّيْحُ فِى مَكَانٍ سَحِيْقٍ. (پاره ۱۷، سورة الحج رکوع ۱۱)

"ګواکه هغه له آسمان څخه وغورځید بیا ئې مرغان وتښتوي یا ئې هوا واخلي او له هسك ځای څخه ئې کوم لرې او ژور ځای ته وغورځوي"

بیا دا خلك د خپلو نوي اختراعاتو او تحریفاتو د اثبات لپاره چه کوم دلائل او براهین وړاندې کوي یو عقل سلیم او مؤمن زړه به هغه څنګه قبلوي؟ خپله د دوی ضمیر هم د هغوی په دلائلو باندې خاندي. د علم او تحقیق دنیا په دې تحریف او تلبیس باندې خپل سر وهي لیکن د تحقیق او ریسرچ دا دعویداران په کلکه سره د خپل تجرد او تعمق آواز پورته کوي او په هر کوشش سره له دین څخه د کوچنیانو د لوبو شی جوړوي.

**د مسلمه ملت فریضه:** که چېرته امت مسلمه ته د اسلام "شجرهٔ طوبٰی" د سیوري عاطفت او د محمديﷺ مانی، په پناه کښې اوسیدل مقصود وي او د هغه هر دیوال او بنیاد د دښمنانو او اغیارو له نقب او نخښه کولو څخه ساتل مقصود وي نو ضرورت دې ته دی چه د اسلامي ملت هر نوم اخیستونکی که عامي وي او که عالم، جاهل وي او که مقتداء د خپلو مقاصدو او اغراضو څخه لاس په سر شي او د سیدنا ابو بکر صدیق رضی الله عنه د فراست او سیدنا فاروق اعظم رضی الله عنه له جرأت څخه کار واخلي او میدان ته ودانګي او کومه ژبه، لاس او قلم او کوم لاس چه هم په دې محمديﷺ مانی، کښې د سوري د پیدا کولو کوشش او سعی کوي د همیشه لپاره ئې مفلوج کړي چه د چا په قول باندې دا وخت د "بدر او حنین" دی د جُمل او صفین نه دی. و الله فی عونکم ما دمتم فی عون الاسلام.

## کتاب الصوم

## باب رؤیه الهلال

## (د میاشت د لیدو احکام او مسئلې)

### د اخبار رؤیت لپاره د شهادت شرائط ضروري نه دي

**سوال:** که چېرته په یوه کلي کښې رؤیت هلال ثابت شي او کلي وال په دې باندې یقین وکړي او روژه ونیسي نو د نورو کلیو خلکو ته د خبر ورکولو لپاره د کومو شرائطو رعایت ضروري دي تر څو چه د بل کلي خلك هم د هغو مطابق روژه ونیولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شهادت او اخبار کښې ښکاره فرق دی۔ د نورو کلیو خلکو ته د میاشت د لیدلو د خبر ورکولو لپاره د شهادت د شرائطو ضرورت نه وي بلکه چه کله هم د یوه سړي خبر د غلبهٔ ظن لپاره مفید وي نو دا خبر کافي دی۔ همدا وجه ده چه په دې کښې د کتاب القاضي الی القاضي د شرائطو رعایت هم ضروري نه دی۔

قال عالم بن العلاء رحمه اللّٰه: و تقبل شهادة الواحد علی شهادة الواحد فی هلال رمضان و لا تشترط فیه لفظ الشهادة. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۲۵۲، کتاب الصوم، الفصل الثانی فی رؤیة الهلال)

قال عالم بن العلاءؒ: و ذکر الامام الائمة الحلوانیؒ: ان الصحیح من مذهب اصحابنا ان الخبر اذا استفاض و تحقق فیما بین اهل احدی البلدتین یلزمهم حکم اهل هٰذه البلدة. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۵۵، کتاب الصوم، الفصل الثانی رؤیة الهلال)

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله بخبرهم و هو مفوّضٌ الی رأی الامام) و الصحیح من هٰذا کله انهٗ مفوّضٌ الی رأی الامام ان وقع فی قلبه صحته ما شهدوا به و کثرت شهود امر با لصّوم او و کذا صححه فی المذاهب. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۸، کتاب الصوم، فصل فیما یثبت به الهلال الخ) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۵۳۸، کتاب الصوم، فصل فیما یثبت به الهلال الخ.

### په دوربین سره د میاشت د لیدنکو د شهادت حکم

**سوال:** که چېرته ځیني خلك په دوربین سره میاشت ویني او ګواهي ورکړي چه مونږ میاشت لیدلې ده نو آیا د دوی ګواهي به قبلیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په موجوده زمانه کښې ډول ډول نوي آلات وجود ته راغلي دي چه له هغو څخه دوربین هم داسې یوه آله ده چه د هغې په ذریعه د میاشت د لیدنکو په ګواهي باندې غلبهٔ ظن حاصلیږي نو ځکه د هغوی ګواهي به قبلیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو کانوا ببلدة لا حاکم فیها صاموا بقول ثقة و افطروا بافطار عدلین مع العلة للضرورة الی ان قال و قیل بلا علّة جمع عظیم یقع العلم الشرعی هو غلبة الظن بخبرهم و هو الامام انهٗ یکتفی بشاهدین



و اختاره فی البحر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۸۷، کتاب الصوم)

قال عالم بن العلاء: و قبل الامام شهادة شاهدین عدلین و قد سکن قلب القاضی علی قولهما جاز و ثبت حکم رمضان. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۵۰، کتاب الصوم، رؤیة الهلال) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۹۸، الباب الثانی فی رؤیة الهلال.

### د مطالعو اختلاف شرعاً معتبر دي او که نه؟

**سوال:** د مطالعو د اختلاف شرعي حیثیت څه شی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مطالعو د اختلاف په باره کښې د فقهاء کرامو له اقوالو څخه معلومیږي چه د مطالعو اختلاف لره اعتبار نشته او همدغه ظاهر المذهب هم دی او په دې قول باندې فتوٰی منقوله ده نو ځکه که چېرته د شرعي قواعدو او ضوابطو په لحاظ کولو سره خبر ورسیږي نو په هر ځای کښې د روژو نیول او د اختر لمانځل په کار دي۔

قـــال فی الهندیة: و لا عبرة لاختلاف المطالع فی ظاهر الروایة و علیه الفتوٰی الفقیه ابی اللیث و به کان یفتی شمس الائمة الحلوانی قال لو رأی اهل مغرب هلال رمضان یجب الصوم علی اهل المشرق. کـــذا فی الخلاصة ثم انما یلزم الصوم علی متاخری الرؤیة اذا ثبت عنده رؤیة اولٰئك بطریق موجب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۸/۱۹۹، الباب الثانی فی رؤیة الهلال)

قال محمد بن عبد اللّٰه: و اختلاف المطالع و رؤیته نهاراً قبل الزوال و بعده غیر معتبر علی ظاهر المذهب و علیه اکثر المشائخ و علیه الفتوٰی بحر من خلاصة. (فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب) اذا ثبت عندهم رؤیة اُولٰئك بطریق موجب کما مر.

قال ابن عابدینؒ: (قوله بطریق موجب) کان یحتمل اثنان الشهادة او یشهدا علی حکم القاضی او یستفیض الخبر. (شامی ج۲، ص۳۹۳/۳۹۴، کتاب الصوم، مطلب اختلاف المطالع) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۳۷۳، کتاب الصوم.

### د شرعي ثبوت نـــه وروسته د اختر په لمانځلو کښـــې خنډ اچول بې دیني ده

**سوال:** که چېرته منطقوي علماء کرام د شرعي تقاضو په پوره کولو سره د اختر اعلان وکړي لیکن حکومت د خپل انانیت له وجهې خلك د اختر له لمانځلو څخه منع کړي نو په دې باره کښې شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اختر او رمضان ثبوت په رؤیت الهلال پورې موقوف دی۔ که چېرته د منطقي علمـــاء کرام د شرعي تقاظو په لحاظ کولو سره اعلان وکړي نو د عامو خلکو په حق کښې که هغه سرکاري ملازم وي یا غیر حکومتي سړی وي په ټولو باندې د روژو نیول او یا د اختر لمانځل واجب ګرځي۔ په داسې حالت کښې د حکومت د اختر په جوړولو کښې رکاوټ جوړیدل له بې دینۍ سره برابره ده۔ او په داسې حالت کښې د حکومت تابعداري کول ضروري نه دي۔

لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق. (رواه فی شرح السنة، مشکوٰة ج۱، ص۳۲۱)

قال ابو محمد محمود العینیؒ: و لا عبرة باختلاف المطالع بل اذا ثبت فی مصر لزم الناس. (شرح کنز عینی ج۱، ص۸۱، کتاب الصوم)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی رحمه الله: و اذا ثبت الهلال (فی) بلدة (مطلع فطر) هار لزم سائر الناس فی ظاهر المذهب و علیه الفتویٰ. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ج۱، ص۵۴۰، کتاب الصوم، فصل فیما لا یثبت به الهلال الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۰، کتاب الصوم.

## د رؤیت او دیرشو له تکمیل نه علاوه یو ائحې حساب کوم اعتبار نه لري

**سوال:** که چېرته رؤیت نه وي او نه د شعبان دیرش ورځې پوره وي نو آیا کوم حساب ته به اعتبار ورکول کیږي او د روژو حکم ورکول کیدلی شي او که نه؟ او حال دا چه د میاشتې په حساب کنبې تطبیق قائم وي او د غلبۀ ظن لپاره مفید هم وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې د ثبوت په رؤیت هلال یا په پوره کیدو د دیرشو ورځو د شعبان باندې موقوف دی. لحدیث النبی ﷺ صوموا لرؤیته و افطروا لرؤیته له دې نه علاوه په نور حساب باندې روژه نه فرض کیږي اګر که د غلبۀ ظن لپاره مفید هم وي.

قال عالم بن العلاء رحمه الله: یجب صوم رمضان برؤیة الهلال او باستکمال شعبان ثلاثین و لا یجوز تقلید المنجم فی حسابه لا فی الصوم و لا فی الافطار. (فتاویٰ تاتارخانیة ج۲، ص۳۵۷، کتاب الصوم، الفصل الثانی فی رؤیة الهلال)

قال العلامة الکاسانیؒ: و اما صوم رمضان فوقته شهر رمضان لا یجوز فی غیره فیقع الکلام فیه فی موضعین احدهما فی بیان وقت صوم رمضان و الثانی فی بیان ما یعرف به وقته اما الاول فوقت صوم رمضان شهر رمضان لقوله تعالیٰ فَمَنْ شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهرَ فَلْيَصُمْهُ ای فلیصم فی الشهر و قول النبی ﷺ و صوموا شهرکم ای فی شهرکم لان الشهر لا یصام و انما یصام فیه و اما الثانی و هو بیان ما یعرف به وقته فان کانت السماء مصحیه یعرف برؤیة الهلال و ان کانت متغیمة یعرف باکمال شعبان ثلاثین یوماً ثم صوموا. (بدائع الصنائع ج۲، ص۸۰، کتاب الصوم) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۳۱۶، کتاب الصوم.

## د شعبان د تکمیل لپاره د یوه سړي ګواهي قبوله نه ده

**سوال:** که چېرته یو سړی د شعبان د دیرشمې ورځې خبر ورکړي نو ګواهي ته به ئې اعتبار ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رؤیت هلال کښې د رمضان نه پرته د هرې میاشتې د ثبوت لپاره په آسمان کښې د علت په وخت کښې د دوو سړیو او یا د یوه سړي او د دوو ښځو شهادت به مقبول وي. په خلاف د رمضان د میاشتې ځکه چه د هغې د ثبوت لپاره د یوه سړي ګواهي هم مقبوله ده. لهذا د شعبان د دیرشمې د پوره کیدو لپاره د یوه سړي خبر به مقبول نه وي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و هلال الاضحیٰ و بقیة الاشهر التسعة کالفطر علی المذهب. قال ابن عابدینؒ قوله و بقیة الاشهر التسعة فلا یقبل فیها الا شهادة رجلین او رجل و امرأتین عدول احرار غیر محدودین. (رد المحتار ج۲، ص۳۹۱، کتاب الصوم، مطلب ما قاله السکی من الاعتماد علی قول الحساب مردود)



قال فی الهندیة: و ان کان بالسماء علة لا تقبل الا شهادة رجلین او رجل و امرأتین و یشترط فیه الحریة و لفظ الشهادة کذا فی خزانة المفتین. و تشترط العدالة هکذا فی النقایة. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۱۹۸، کتاب الصوم، الباب الثانی فی رؤیة الهلال) و مثله فی الطحطاوی علی مراقی الفلاح ج۱، ص۵۳۳، کتاب الصوم، فصل فیما یثبت به الهلال الخ.

## په یوم الشک کښې د روژې د نیولو حکم

**سوال:** د رمضان شریف په اوله ورځ او د شعبان په دیرشمه د اشتباه په صورت کښې په دغو ورځو کښې د روژې د نیولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقه په کتابونو کښې په کومه ورځ چه باقاعده رؤیت نه وي شوی او نه د شعبان دیرش ورځې پوره وي هغې ورځې ته یوم الشک ویل کیږي. دیر ځله د رمضان احتمال له وجهې په دې ورځ کښې هم د فرض روژې له نیت سره د رمضان روژه نیول کیږي. همد ارنګه ځینې خلک بیا په نفلو او فرضو کښې د تردید له مخې نفلي روژه نیسي نو په دا سې ورځ کښې د روژې نیول ممنوع دي.

و روی عمران بن حصین: انه علیه الصلوٰة و السلام قال الرجل هل صحت من صوم شعبان قال لا.

البته که چېرته خواص خلک د نفلو په نیت روژه ونیسي نو بیا هیڅ پروا نه لري او همد ارنګه که چېرته په دې ورځ په اتفاقي توګه څوک قضایي روژه ونیسي نو بیا هم څه پروا نه لري.

قال عالم بن العلاءؒ و فی التهذیب: و المختار ان یفتی بالتطوع فی حق الخواص و الانتظار و التلوم فی حق العوام و فی السغناقی: و الفاصل بین الخاصة و العامة هو ان کل من یعلم فیه صوم یوم الشک فهو من الخواص و الا فهو من العوام. (فتاویٰ تاتارخانیة ج۲، ص۳۹۲، الفصل الثامن، الاوقات المکروه فیها الصوم)

قال ابن الهمام رحمه الله: کان المختار ان یصوم المفتی بنفسه اخذ الاحتیاط و یفتی العامة بالتلوم الی وقت الزوال ثم با لافطار حسما لمادة اعتقاده الزیادة و یصوم فیه المفتی سراً لئلا یتهم بالعصیان فانه اتهموه بالافطار بعد التلوم لحدیث العصیان و هو مشتهر بین العوام فاذا خالف الی الصوم اتهموه بالمعصیة. (فتح القدیر ج۲، ص۲۴۷، کتاب الصوم) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۷۸، کتاب الصوم، فصل شرائطها فنوعان.

## د لمر تر ختلو وروسته د رؤیت هلال د خبر د راتللو حکم

**سوال:** د رمضان خبر که چېرته له زوال څخه مخکښې راشي نو کومو خلکو چه له سهار نه وروسته دوډۍ خوړلې وي د هغو لپاره به په دې خبرې باندې د عمل کولو څه حکم وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شک په ورځ تول اهل اسلام ته په کار دي چه تر زواله پورې له خوراک، څښاک او له روژې سره له منافي کارونو څخه اجتناب وکړي. که چېرته د رؤیت خبر راشي نو روژه دې پوره کړي او که را نه شي نو د خواصو لپاره د روژې نیولو اجازه شته او عوام دې وخوري. البته که چا په دې ورځ کښې سهار څه خوړلي او څښلي وي نو د هغو لپاره د رمضان د تقدس په خاطر امساک واجب دی. که چېرته څوک له دې سره سره د دې خبرې رعایت و نه ساتي نو یوائحې قضاء پرې واجبیږي لیکن کفاره نه پرې لازمیږي.

قال قاضیخانؒ: غلام بلغ فی النصف من رمضان فی ای نصف النهار او نصرانی اسلم فانهٗ لا یأکل یومه. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۹۶، کتاب الصوم)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی رحمه الله: (یجب علی الصحیح و قیل یستحب الامساك بقیة الیوم علی من فسد صومه) و لو بعذر ثمّ زال و علی حائض و نفساء طهرتا بعد طلوع الفجر. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ج۱، ص۵۵۸، کتاب الصوم) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۳۴۷، کتاب الصوم، فی بیان وقت الصوم و ما یتصل به.

## د ورځې چه د رؤیت خبر راشي نو امساك ضروري ده

**سوال:** نصف النهار یعنې د نیمې ورځې له تیریدو نه وروسته که چېرته د رمضان د روژې د فرضیت اطلاع راشي نو تر ماښامه پورې د امساك څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نصف النهار نه وروسته د روژې فرضیت ثابت شي نو کومو خلکو چه تر اوسه پورې د روژې سره منافي شیان استعمال کړي نه وي نو هغوی دې خپل امساك تر ماښامه پورې برقرار ساتي او همد ارنګه په نورو مسلمانانو چا چه خوراك او څښاك یا نور له روژې سره د منافي شیانو استعمال کړی وي په هغو باندې هم امساك واجب دی. البته که چېرته له نصف النهار څخه مخکښې ئې د روژې نیت نه وي کړی په خوراك او څښاك باندې کفاره نه لازمیږي او د ورځې د پاتې حصې د امساك حکم د رمضان د میاشتې د شرافت له وجهې دی بیا هم کومو کسانو چه د روژې د منافي شیانو له استعمالولو پرته امساك کړی وي د هغوی لپاره همدا ورځ د رمضان له روژې څخه ګڼل کیږي په داسې حال کښې چه په نورو خلکو باندې د دغې ورځې قضاء لازمه ده.

لما قال العلامة محمد انور شاه الکشمیریؒ: لو شهد رجل بانی رأیت الهلال فی النهار لا یعتبر قوله اصلاً سواء شهد قبل نصف النهار او بعده و لو قال رأیتُه فی اللیل الماضیة فان کان هلال رمضان و کان قبل نصف النهار فمن لم یأکل بعدِ الصبح یصوم و من اکل یقضیه. (عرف الشذی علی الجامع الترمذی ج۱، ص۱۴۹، باب ما جاء فی الصوم با لشهادة)

لما قال العلامة السید محمد یوسف البنوریؒ: لو شهد برؤیته فی اللیلة الماضیة فان کان هلال رمضان فلیضم بقیة و یومه و یقضیه ان اکل و ان لم یأکل و کان قبل الضحوة الکبرٰی صام و لا قضاء. (معارف السنن ج۵، ص۳۴۵، مسئلة رؤیة الهلال نهاراً)

## د رؤیت هلال د کمیټې شرعي حیثیت

**سوال:** د رؤیت هلال د کمیټې اعلان عموماً له منطقوي فیصلو څخه مختلف وي په داسې حالت کښې د کمیټې د فیصلو شرعي حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رؤیت هلال د کمیټې کوم چه په با اعتماده علمي اشخاصو باندې شامله ده نو د دې لپاره د داسې کمیټې اعلان ته ساقط الاعتبار ویل د هوښیارۍ خبره نه ده. دا بیله خبره ده چه د ځینو انتظامي کمزوریو په وجه د هغوی اعلان عموماً د غلط فهمۍ ښکار



کیږي. که چېرته حکومت د دې کمزوریو د مخنیوي لپاره کوشش وکړي او د منطقوي علماوو رؤیت ته اعتبار ورکړي نو ښایي چه دا اختلاف لرې شي. بیا هم که چېرته د منطقوي علماوو اعلان د شرعي تقاضو مطابق وي نو د رؤیت هلال کمیټې د نه اعلان سره سره د علاقایي علماوو د فیصلې پابند اوسیدل ضروري دي.

و فی الهندیة: لما فی الفصل الثانی من اوّل الکراهیة من الهندیة یقبل قول الواحد فی المعاملات عدلاً کان او فاسقاً کان او عبداً ذکراً کان او اُنثٰی مسلما کان او کافراً دفعاً للحرج و الضرورة و من المعاملات الوکالات و المضاربات و الرسالات فی الهدایا و الاذن فی التجارات کذا فی الکافی اذا صح قول الواحد فی اخبار المعاملات عدلاً کان او غیر عدل فلا بد فی ذٰلك من تغلیب رأیه فیه ان اخبره صادق فان غلب علی رأیه ذٰلك عمل علیه و الا فلا کذا فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۱۰، الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قال العیون و الفتوٰی علی قولهما اذا تیقن انهٗ خطه سواء کان فی القضاء و الرؤیة او الشهادة علی الصك و ان لم یکن الصك فی ید الشاهد لان الغلط نادر و اثر التغیّر یمکن الاطلاع علیه فلما یشبه الخط من کل وجه فاذا تیقن جاز الاعتماد علیه توسعة علی الناس آه. (شامی ج۵، ص۴۳۷، کتاب القاضی الی القاضی، مطلب فی دفتر البیاع) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان ج۳، ص۱۱۶، کتاب القاضی الی القاضی.

## د ریډیو او ټي وي په خبر باندې د رمضان د فرضیت حکم

**سوال:** د ریډیو او ټي وي خبر د رمضان او اختر د ثبوت لپاره سبب جوړیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د قاضي او یا هلال کمیټي په شهادت باندې مطمئن شي او د اختر یا رمضان اعلان په ریډیو او ټي وي باندې خپور کړي نو دا اعلان د رمضان او اختر د ثبوت لپاره سبب جوړیدلی شي. په پخوا زمانه کښې توپ، ډول، قنادیل او رڼا د رمضان او یا د اختر د اعلان لپاره استعمالیده. بیا هم دا ضروري دي چه په ریډیو او ټي وي باندې د قاضي او یا د هلال کمیټي اعلان ډیر په احتیاط سره اورول په کار دي.

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و الظاهر انهٗ یلزم اهل القرٰی الصوم بسماع المدافع او الرؤیة القنادیل من المصر لانه علامة ظاهرة تفید غلبة الظن و غلبة الظن حجة موجبة للعمل کما مر صوابه. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۶، مبحث فی صوم یوم الشك)

لما قال الشیخ مفتی محمد شفیع صاحبؒ: البته په کوم ښار کښې چه قاضي یا هلال کمیټي په کوم شهادت باندې اطمینان وکړي او د اختر وغیره اعلان وکړي، دا اعلان که چېرته په ریډیو باندې خپور کړی شي نو د کوم ښار قاضي یا هلال کمیټې چه دا فیصله کړې ده د هم هغه ښار او د هغه د شاوخوا مضافات او کلیو په خلکو باندې د دې ریډیو په اعلان اختر وغیره کول جائز دي. شرط دا دی چه ریډیو به د دې پابنده وي چه د میاشت په اړه مختلف خبرونه نه خپروي یوائې هغه فیصله به خپروي چه د همدې ښار قاضي یا هلال کمیټې ورکړې وي. (د آلات جدیده شرعي احکام ص۱۷۷، باب د هلال په معامله کښې د جدیدو آلاتو د خبرونو درجه) و مثله فی امداد المفتین الشهیر بفتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۲، ص۴۷۷، کتاب الصوم.

## د اختر او رمضان د ثبوت لپاره د ټیلیفون د خبر حکم

**سوال:** د رمضان د فرضیت او د اختر د ثبوت لپاره د ټیلیفون د خبر څه حیثیت دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ټیلیفون په ذریعه خبر د غلبۀ ظن لپاره مفید وي او د دوکې او د اسې نور خطره نه وي نو د ټیلیفون په خبر باندې په عمل کولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: و لو سمع من وراء حجات کثیف لا یشف من ورائه لا یجوز لهٗ ان یشهد لان النغمة تشبه النغمة الا اذا احاط بعلم ذٰلك لان المسوغ هو العلم غیر ان رؤیته متکلماً با لعقد طریق العلم به فاذا فرض تحقق طریق آخر جاز. (فتح القدیر ج۶، ص۴۶۳، کتاب الشهادة، فصل ما یتعلق بکیفیة الشهادة)

قال ابن عابدینؒ: قال فی العیون و الفتوٰی علی قولهما اذا تیقن انهٗ خطه سواء کان القضاء او الروایة او الشهادة علی الصك و ان لم یکن فی ید الشاهدان لان الغلط قادر و اثر التغیر یمکن الاطلاع علیه و قلما یشتبه الخط من کل وجه فاذا یتقن جاز الاعتماد علیه توسعة علی الناس. (رد المحتار ج۵، ص۴۳۷، کتاب القاضی الی القاضی) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۲، ص۹۴، کتاب الصوم.

## د خط په ذریعه د اختر یا د روژې ثبوت

**سوال:** په یوه ځای کښې که چېرته رؤیت ثابت شي او بل ځای ته د خط په ذریعه اطلاع ورکړی شي نو د دې شرعي حیثیت څه شی دی آیا په خط سره د روژې فرضیت ثابتیږي او که نه؟ او آیا د دې لپاره د کتاب القاضي الی القاضي رعایت ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دیني معاملاتو تعلق عموما په غلبۀ ظن باندې مبني وي۔ که چېرته خط د رمضان او اختر د ثبوت لپاره د اطمینان ذریعه جوړه شي او د خط لیکونکی عادل وي او د هغه د خط پیژندګلي کیدلی شوی نو له اطمینان نه وروسته د رمضان او اختر د ثبوت سبب جوړیدلی شي۔ په مقدس شریعت کښې د خط د حجیت کافي نظائر موجود دي۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: الکتابة المرسوسة بخلاف خط السمسار و الصرّاف لانه حجة للعرف الجاری. (فتح القدیر ج۶، ص۴۶۴، کتاب الصوم)

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: صراف کتب علی نفسه بمال و خطه معلوم بین التجار و اهل البلد ثم مات فجاء غریم یطلب المال من الورثة و عرض خط المیّت بحیث عرف الناس خطه یحکم بذٰلك فی ترکته ان ثبت انه خطه و قد جرت العادة بین الناس بمثلة و هو حجةٌ. (رد المحتار ج۵، ص۴۳۷، کتاب القاضی الی القاضی) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۲، ص۹۴، کتاب الصوم.

## د ټیلیګرام یعنې تار په ذریعه د رمضان او اختر ثبوت

**سوال:** د شریعت له مخې د رمضان او اختر په باره کښې د ټیلیګرام د خبر تصدیق کیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ټیلیګرام یعنې تار چونکه هر یو سړی کولی شي نو د ا معلومات مشکل وي چه دا تار چا کړی دی نو په دې وجه د نن دور جید و فقهاء کرامو د تار خبر ته اعتبار نه ورکوي۔



لما قال الشیخ عبد الحی اللکهنویؒ: بحسب ضوابط فقهیة تار ته به اعتبار نه ورکول کیږي۔ (مجموعة الفتاوٰی (اُردو) ج۱، ص۳۵۳، باب رؤیة الهلال)

قال الشیخ اشرف علی التهانویؒ: لکه څنګه چه په تار کښې د دې هیڅ علامه نشته چه د چا تار دی۔ همد ارنګه په دې کښې غلط والی او خلط هم ډیر وي د دې لپاره معتبر نه دی۔ (امداد الفتاوٰی ج۲، ص۹۳، کتاب الصوم و الاعتکاف، د تار د خبر تحقیق) و مثله فی عزیز الفتاوٰی الشهیر بفتاوٰی دار العلوم ج۱، ص۳۸۳، کتاب الصوم.

## د هلال د کمیټي په موجودوالي کښې د عالم دین د فیصلې حکم

**سوال:** زمونږ د علاقې قومي اسمبلي حلقه این اې ۱۹۸ پښین چه کچلاك، پښین بازار، بادو بازار، جنګل پیر، علي زئي بازار، قلعه عبد الله بازار، چمن بازار، ګلستان بازار، سي زئي او له ورو بازارونو پرته نور لوی لوی کلي مثلا کربلا، حرمزئي، ګانګزئي، تانګزئي، تانګی، کللك او د اسې نور لويې ورې علاقې شاملې دي په دغو علاقو باندې د پاکستان د حکومت قانون جاري دی او دا ټوله علاقه د صوبايي حکومت تر تسلط لاندې دي۔ لیکن دلته اختر او روژه ډیر په عجیب انداز سره جوړیږي۔ په یوه کلي کښې اختر وي او په بل کلي کښې روژه، په یوه کور کښې اختر وي او په بل کور کښې روژه آن تر دې پورې چه د کور د یوه سړي روژه وي او د بل اختر وي۔ په د اسې حال کښې چه د علاقې مشهور عالم دین مولانا عبد الغني صاحب په شرعي ګواهانو باندې د اختر او د روژې فیصله کوي۔ نو آیا د نوموړي عالم په فیصله باندې مونږ عمل وکړو او که د حکومت له خوا ځخه په قائم شوي د هلال کمیټي په فیصله باندې عمل وکړو؟ او ځینې خلك د افغانستان د اعلان مطابق اختر کولی شو او که نه؟ نو مهرباني وکړی چه د مقدس شریعت په رڼا کښې د دې مسئلې تفصیلي وضاحت وکړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام خلکو ته د اجتماعیت دعوت ورکوي له دې وجهې نې د مسلمانانو په ذمه اجتماعي کارونه فرض کړي دي۔ لمونځ، روژه، حج او زکات د دې مثالونه دي۔ همد ارنګه عیدین هم د اجتماعیت د اعیان دي۔ مسلمانانو ته په کار دي چه هغوی یو ځای روژه ونیسي او په یوه ځای عید سره وکړي۔ د رسول اللهﷺ مبارك ارشاد دی: صوموا لرؤیة الهلال فا فطروا بهٖ. (مشکوٰة ص۱۷۴، باب رؤیة الهلال، الفصل الاول)

په یوه بل حدیث کښې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: صومکم یوم تصوموون و اضحاکم یوم تضحون و فطرکم یوم تفطرون. (مجموعة الفتاوٰی لابن تیمیة ج۲۵، ص۱۰۵، فصل مسئلة رؤیة بعض البلاد الخ)

دا وجه ده چه د مذاهب ثلاثه فقهاوو په اتفاق سره او د شافعي مذهب ځینو فقهاوویعنې د مذهب اهل حدیث، زیدیه، ظاهریه او د اسې نورو اجتماعي فیصله ده چه اختلاف د مطالعو لره اعتبار نشته۔ د اهل غرب رؤیت د اهل شرق لپاره د حجت قابل دی۔ لهذا د رمضان او [illegible]یدینو میاشت چه کله ولیدل شي نو د وخت قاضي یا هلال کمیټي او یا د

منطقي عالم ته په کار دي چه هغوی دا شهادت قبول کړي او د شهادت مطابق د روژې او یا د عیدینو حکم صادر کړي۔ او حساب و کتاب، د کمپیوټر اطلاع او عدم احکام ته و نه ګوري۔

عـــــلامه ابن عابدین رحمه الله فرمایي: حتى لو اخبر رجلٌ عدم القاضى بمجىء رمضان يقبل و يامر الناس با لصوم يعنى فى يوم الغيم و لا يشترط لفظ الشهادة و شرائط القضاء. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۹، کتاب الصوم، مطلب فى رؤية الهلال)

و ايضاً قال بان المعمول بهٖ فى المسائل الثلاث ما شهدت به البينة لان الشهادة نزلها الشارع منزلة اليقين. و ما قاله السبكى مردود ردّه عليه جماعة من المتاخرين و ليس فى العمل با لبينة مخالفة لصلاتهﷺ و وجه ما قلنا ان الشارع لم يعتمد الحساب بل الغاه ب الكلية بقولهٖ نحن امة اميّة لا نكتب و لا نحسب الشهر هٰكذا و هٰكذا. و قال ابن دقيق العبد الحساب لا يجوز الاعتماد عليه و اصلا. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۷، کتاب الصوم، مطلب فى رؤية الهلال)

ځکه چه شرعي قاضي ته بغیر له شرعي وجهې څخه د چا د شهادت د ردولو هیڅ حق حاصل نه دی بلکه هغه به د شهادت په حوالې سره فیصله کوي۔

علامه علاؤ الدین الحصکفي رحمه الله فرمایي: رأى مكلف هلال رمضان او الفطر و ردَّ قوله بدليل شرعى. (الدر المختار علىٰ صدر رد المحتار ج۲، ص۳۸٤، کتاب الصوم)

﴿۲﴾ اګــــــر که د شرعي قاضي په موجود والي کښې د بل سړي فیصله د عیدینو او یا رمضان په اړه قابل قبول نه دی۔ د شرعي احکامو په باره کښې یوائې د شرعي قاضي فیصلـــــــه به قابل قبول وي۔

لما قال العلامة وهبة الزحيلى: القيام على شعائر الدين من آذان و اقامة و قامة الصلٰوة الجمعة و الجماعة و الاعياد و صيام و صبح. (الفقه الاسلامى و ادلته ج٦، ص۷۰۰، کتاب الامارة)

لیکن که چېرته شرعي قاضي نه وي او یا وي خو د شرعي دلائلو په رڼا کښې ئې حکم نه صادرولو نو د عیدینو، رمضان او د اسې نورو عبادتونو په قیام کښې د منطقي معتمد عالم دین د شرعي قاضي قائم مقام کیدلی شي۔

په احسن الفتاوىٰ کښې دي چه که چېرته مسلم حاکم موجود نه وي او یا موجود وي لیکن شرعي فیصلې ئې نه شوای کولی نو هلته اګر که په ټولو معاملاتو کښې خو عالم د قاضي قائم مقام نه شي جوړیدلی لیکن د رؤیت هلال او د اسې نورو ځینو جزئیاتو کښې د هغه فیصله د قاضي د حکم قائم مقام ګرځي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و فى الفتح اذا لم يكن سلطان و لا من يجوز التقلد منه كما هو فى بعض بلاد المسلمين غلب عليهم الكفّار كقرطبة الآن يجب على المسلمين ان يتفقوا على واحدٍ منهم. (رد المحتار ج٤، ص۳٤۲، کتاب الجهاد)

و فــــى عمدة الرعاية: و العالم الثقة فــــى بلدة لا حاكم فيها قائم مقامـــــــه. (ج۱، ص۳۰۹) (احسن الفتاوىٰ ج٤، ص٤٦٦، کتاب الصوم)

د موجوده هلال کمیټي اعلان اګر که د اعتبار قابل دی۔ په دې باندې مسلمانان د اخترونو



او رمضان غونډې امورو انجام کولی شي لیکن له دې پرته د علماوو کمیټي او یا یو معتمد عالم دین هم د دې خبرې مجاز لري چه هغه د شهادت او یا د نورو اطلاعاتو په بناء باندې د رمضان او عیدینو فیصله کولی شي۔ دا هم د قاضي قائم مقام جوړیدلی شي۔ د عیدینو او رمضان د اعلان حق یوائې هلال کمیټي ته حاصل نه دی۔ چنانچه علامه محمد یوسف بنوري رحمه الله فرمایي:

و اعلم ان بلاد الهند اليوم ليست فيها حكومة اسلامية و ليس فيها دار القضاء للمسلمين فا لحكم فى مثلها الصوم باخبار ثقة و الفطر بقول ثقتين و لا ينبغى لعلماء العصر من المفتيين المشى على ما هو شان قضاة دار السلام من الشهادة و غيرها. (معارف السنن ج٥، ص۳٤٥، کتاب الصوم)

ځکه چه هلال کمیټي د نورو تسامحاتو څخه علاوه شرعي شهادت هم د خپل مغروضه رایې او د عدم رؤیت له اعلان نه وروسته نه قبلوي۔ او شهادت د کمپیوټر په حساب سره تلي کوم چه شریعت د دې اجازه نه ورکوي چه په دې باندې په تیر شوي اخترونو کښې (عید الفط او عید الاضحیٰ) اعلان واضح دلیل دی کوم چه د ټولو په مخکښې دی او په اخبارونو او رسالو کښې ئې په خلاف کافي مدلل او مفصل مضامین ولیکل شول او له دې سره د شرعي قاضي حکم هم په هغه وخت کښې نافذ ګرځي کله چه د شریعت موافق وي۔

لهذا کله چه په یوه علاقه کښې میاشت ولیدل شي او دا رؤیت چه چېرته هم وي په شرعي ثبوت باندې د ثابتیدو په نتیجه کښې هلال کمیټي یا د علاقې معتمد عالمِ دین د روژې یا اخترونو فیصله (اعلان) وکړي نو مسلمانانو ته په کار دي چه په دې فیصلې یا اعلان باندې عمل وکړي۔ د اختلاف د ختمولو په خاطر یوه آسانه طریقه دا ده چه د هلال کمیټي یوائې د کوم مخصوص وخت پورې د ګواهي یا اطلاع پابندي و نه کړي بلکه د شپې تر آخره پورې د ملك او له ملك څخه د باندې رابطې وکړي په کوم ځای کښې چه هم رؤیت هلال شرعا ثابت شي نو د رمضان یا اختر اعلان دې وکړي۔

هلال کمیټي دې د کمپیوټر په حساب سره شهادت نه موازنه کوي ځکه چه ممکنه ده چه په پاکستان کښې د طول البلد او عرض البلد په حساب سره د رؤیت امکان وي او په نورو ممالکو کښې ئې امکان نه وي د دې لپارهَ دې شهادت په شرعي اصولو باندې موازنه کړي۔

لیکن که چېرته د هلال کمیټي غړي پخپلو خود ساخته اصولو باندې قائم اوسیږي او د رابطې له کولو څخه روګرداني کوي نو په مسلمانانو باندې لازم دي چه هغوی د علاقې د معتمد عالمِ دین په اعلان باندې د رمضان او اخترونو اهتمام وکړي تر څو چه اختلاف ختم شي او په خلکو کښې وحدت پیدا شي کوم چه د اسلام فلسفه ده۔ لهذا هلال کمیټي او یا د علاقې معتمد عالم دین ته د شرعي ثبوت له مخې د رؤیت هلال ثبوت وشي نو د هغو په اعلان باندې د علاقې مسلمانان باید د رمضان د روژې ونیسي او اخترونه باید وکړي او په دې طریقې سره به ان شاء الله وحدت (یو والی) قائمیږي۔

د بل ملك په يو ائحي اعلان باندې روژه نيول او يا اختر كول شرعا صحيح نه دي تر څو پورې چه د هغه ځای رؤيت د شرعي طريقو يعنې شهادت على الرؤيت يا شهادت على الشهادت يا شهادت على القضاء يا استفاضه له مخې ثابت نه شي او د علاقې كوم معتمد عالم دين يا د علماوو كميټي او د اسې نور اعلان و نه كړي.

## د صفا مطلع (ځای د راختو د مياشت) په صورت كښې جم غفير (د خلكو د يو لويې ډلې) رؤيت ضروري دي

**سوال:** كه چېرته مطلع بالكل صفا وي نو بيا د څو كسانو په رؤيت باندې د اعتماد په كولو سره د روژې يا عيدينو اعلان بايد وشي. كه چېرته بالفرض درې يا څلور كسان د مياشت د ليدلو گواهي وركړي نو آيا د دوی گواهي به قبليږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شريعت كښې د مياشت د ليدلو لپاره قانون دا دی چه كه چېرته په ۲۹ مه شپه كښې مطلع بالكل صاف او شفاف وي نو بيا جم غفير (لويه ډله) د روژې او د اختر د مياشتې د ليدلو لپاره ضروري ده. د جم غفير د تعداد په باره كښې مختلف قولونه د فقه په ذخائرو كښې درج دي. له ځينو څخه ۵۰ او له ځينو څخه د ۵۰۰ خلكو اقوال مروي دي. البته د علامه ابن عابدين رحمه الله له تعداد څخه قطع نظر د قاضي صاحب د زړه اطمينان ته ترجيح وركړې دی. ليكن د قاضي اطمينان هم په دوو شرائطو پورې مشروط دی. يو د رؤيت امكان او دوهم د گواهانو ډير والی. نو ځكه د صفا مطلع په صورت كښې د دريو او يا څلورو كسانو گواهي د قبول وړ نه ده. (كذا فی رد المحتار ج۲، ص۱۰۱، كتاب الصوم)

## د رؤيت هلال په باره كښې د يوه استفسار جواب

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء كرام د لاندينې مسائلو په باره كښې چه:

﴿۱﴾ ۲۳ جنوري ۱۹۶۶ء د پاكستان د حكومت د وزارت داخله له خوا چه د اختر كوم اعلان وشو آيا دا اعلان د شريعت له مخې صحيح دی او كه نه؟

﴿۲﴾ او كوم خلك چه د دې اعلان مطابق د اختر لمونځ كړی وي د هغوی د اختر د لمانځه ادا كول شرعا جائز وو او كه نه؟

﴿۳﴾ او كوم خلك چه په دې ورځ روژه نه وه نيولې او يا ئې روژه خوړلې وه آيا په هغو باندې د دې ورځې د روژې قضاء لازمه ده او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مونږ سره په اكوړه خټك كښې پخپله ما ته د شوال د مياشتې ليدلو حاضر شهادت تير شو او په اتو گواهانو سره مې په شرعي طريقې سره شهادت واخيست او هر يو گواه په لفظ اشهدُ باندې د شوال د مياشتې په راختو باندې د يك شنبې په شپه كښې د مابنام د لمانځه نه وروسته د علت له وجود سره شهادت وركړ. چه د دې شهادت په بناء باندې



مونږ د يك شنبې ورځ د اختر ورځ اعلان كړه او د شهادت د دې ټولو واقعاتو اطلاع مو د مقامي تانې يا څوكۍ په واسطه د پشاور ډپټي كميشنر او كميشنر ته هم وركړه او هغو د داخلې وزارت ته اطلاع وركړه. نو اوس كه چېرته وزارت داخله چه كومه د هلال كميټي تاكلې ده كه چېرته په ثقاتو او عادلو علماوو باندې مشتمله وي او هغوی زمونږ دا اطلاع او همدا ډول د نورو ځايونو څخه كوم اطلاعات چه دوی ته وركړ شوي وي قبول كړي وي او د اختر فيصله ئې كړې وای او بيا د حكومت تر نگرانۍ لاندې دا فيصله او حكم د مختلفو ريډيو ستيشنونو په ذريعې سره د ثقاتو په واسطه سره وركړ شوي وای نو دا اعلان به په شرعي لحاظ سره صحيح وای.

﴿۲﴾ اوس كوم خلك چه د دې اعلان مطابق د يكشنبې په ورځ د اختر لمونځ كړی وي هغه بالكل صحيح او جائز دی.

﴿۳﴾ په نومورې طريقې سره د اختر له اعلان نه وروسته چه كومو خلكو په دې ورځ روژې نه دي نيولې او يا ئې روژې نيولې وې او بيائې ماتې كړې دي په هغوی باندې به قضاء نه وي لازمه.

## د پورته ذكر شوي استفسار په ځواب باندې اشكال او د هغه حل

**سوال:** محترم حضرت مفتي صاحب! له تير شوي اختر نه وروسته ما ستاسو څخه يوه فتوٰی غوښتې وه چه ما ته رسيدلې هم ده كه هغه دوباره مطالعه شي نو د هغه ۲۹۶۰ دی. په دې سلسله كښې د څو خبرو وضاحت په كار دی.

﴿۱﴾ ستاسو له فتوٰی څخه معلوميږي چه په اكوړه خټك كښې د مياشت د ليدو ثبوت په شرعي طريقې سره شوی وو. په دې صورت كښې د وريځ او د اسې نورو د موجودگۍ په صورت كښې چه تاسو كومه فيصله كړې وه هغه كه چېرته په شرعي شرائطو سره خپره شوې وای نو آيا دا د هغو خلكو لپاره هم حجت دی چېرته چه مطلع صفا وه او كه هلته د جم غفير ځانته شهادت په كار دی؟

﴿۲﴾ كه چېرته د حكومت په نگرانۍ كښې دا موجوده اعلان فرض كړی شي نو آيا دا اعلان به د پاكستان په دواړو برخو كښې واجب العمل وي او كه نه؟ او كه چېرته نه وي نو اندازه به ئې څه وي؟

﴿۳﴾ زما د تيرې شوې استفتاء د دريم سوال په ځواب كښې تاسو ليكلي دي چه په مذكوره طريقې باندې د اختر له اعلان نه وروسته چه كومو خلكو روژې نه وي نيولې په هغو باندې قضاء نه ده واجبه. دا خو په هغه وخت كښې صحيح گڼدلی شي چه پخپله ستاسو په فتوٰی كښې نومورې شرائط موجود وي نو آيا ستاسو په علم كښې د حكومت له اعلان څخه مخكښې دا ټول شرطونه موجود وو او كه نه د حوالې وړ خبرو باندې حواله هم وليكئ؟

**يادونه:** ستا په اختر باندې زمونږ څه اعتراض نشته. غرض يوائحې دا دی چه ستاسو فيصله په صحيح صورت كښې تر مونږ پورې په شرعي طريقې سره رسيدلې ده او كه نه؟ (مولوي محمد يونس ساكن لوره ضلع راولپنډي)

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مخدومي المحترم جناب مولانا محمد یونس صاحب!

السلام علیکم ورحمه الله و برکاته۔

امید دی چه صحت مو ښه وي۔ ستاسو دواړه خطونه یو د جناب شیخ الحدیث صاحب په نامه او دوهم د عاجز بنده (قاضي انور الدین) په نامه باندې مشتمل په څو استفساراتو مونږ ته رسیدلي دي۔ د حالاتو او کوائفو څخه خبر شولو، د ډول ډول مصروفیاتو او مشاغلو په وجه سره په ځواب کښې څه ځنډ راغی۔ امید دی چه تاسو محترم دا ځنډ محسوس نه کړی۔ حضرت شیخ الحدیث صاحب ته د درس حدیث او د اهتمام له کارونو څخه بالکل فرصت نشته چه له چاسره دا ډول د خط او کتابت سلسله جاري وساتلی شي۔ لکه څنګه چه تاسو محترم د مطالبې او غوښتنې په اساس لیکلي دي۔ د دې لپاره هغه ستاسو د اشکالاتو جوابونه نه شي درکولی۔ البته له دار الافتاء څخه تاسو خپل اشکالات حل کولی شی او هغه هم د مناظرې په غرض سره نه بلکه د تشفّي او تسلي د حاصلولو په غرض سره۔ او که چېرته د دار الافتاء له ځواب څخه ستاسو تسلي و نه شي نو کولی شی چه د پاکستان د کومې بلې دار الافتاء څخه خپله تسلي حاصله کړی۔ واضحه دې وي چه دار الافتاء د دار العلوم حقانیه یوه شعبه ده۔ د کومې مسئلې ځواب چه له دار الافتاء څخه جاري کیږي هغه د حضرت شیخ الحدیث صاحب تر نظر ثاني او ذمه وارۍ لاندې را ووځي۔ هغه د دار العلوم حقانیه د مهتمم او شیخ الحدیث په حیثیت سره د دې ذمه وار دی۔ واقعي حضرت مولانا حسین الدین صاحب خطیب سبزي منډي راولپنډي سره دریو ملګرو دلته تشریف راوړی وو او د اختر د رؤیت هلال په اړه ئې په شرعي طریقې سره خپله تسلي حاصله کړې وه۔ هغه چه کومه لیکنه د دې ځای د راتلو په اړه کړې وه هغه صحیح او واقعي ده۔ د حضرت شیخ الحدیث صاحب په نامه چه ستاسو کوم خط راغلی دی د هغه په ځواب کښې هغومره ویل کافي دي کوم چه وویل شول او د بنده په نامه خط کښې او د هغه په ځواب کښې دا عرض دی چه:

په رؤیت الهلال کښې د ښارونو د لرې والي اعتبار نشته او اکثره فقهاء کرام اختلاف د مطالعو ته اعتبار نه ورکوي۔ د فقهي کتابونو په عبارتونو باندې د غور له کولو څخه څرګندیږي چه په یوه ښار کښې د رؤیت په وجه په بل ښار کښې د رؤیت د ثبوت فتوٰی ورکول کیدلی شي۔ لکه څرنګه چه په الدر المختار کښې دي: فیلزم اهل المشرق برؤیة اهل المغرب اذا ثبت عندهم رؤیة اولئك بطریق موجب آه. (الدر المختار ج۲، ص۳۹۳)

دا ځانته خبره ده چه کوم ښارونه د قواعدو او هیئت له مخې د مطالعو اختلاف لري په هغه کښې مطالعو ته اعتبار ورکول کیږي لکه څرنګه چه د محققینو په نزد ثابت دی۔ لیکن زمونږ په ښارونو کښې د قواعدو او هیئت په اعتبار سره د مطالعو اختلاف ته اعتبار نه شي ورکول کیدلی۔ البته دا ضروري خبره ده چه د یوه ښار د رؤیت ثبوت د طریق موجب د هغو دریو صورتونو مطابق وشي کوم چه فقهاء کرامو بیان کړي دي او هغه په لاندې ډول دي۔



(۱)شهادت علی الرؤیت (۲)شهادت علی شهاده الرؤیت (۳)شهادت علی قضاء الحاکم الشرعي۔ او یو څلورم صورت هم شته چه هغه ته استفاضه الخبر ویل کیږي۔ په دغو څلورو صورتونو کښې چه په کوم صورت سره هم د رؤیت هلال ثبوت وشي نو هغه به حجت وي۔

له دې تحقیق څخه وروسته ستاسو د اصل سوال ځواب دا دی چه:

﴿۱﴾ چه زمونږ په نزد چه د رؤیت هلال کومه ګواهي شوې وه چه د هغې په بناء باندې مونږ د یکشنبې په ورځ د اختر اعلان کړی وو او د هغه اطلاع مو بالوسائط مرکزي رؤیت الهلال کمیټي ته ورکړې وه۔ اوس که چېرته د مرکزي رؤیت الهلال کمیټې غړي هغه منظور کړي او د حکومت په نګرانۍ کښې ئې له شرائطو سره خپور کړي نو دا د استفاضه الخبر په کیدو سره د هغه خلکو لپاره هم حجت جوړیږي چېرته چه مطالع صافې وي اګر که هغو د میاشت د لیدو اهتمام نه وي کړی او یا ئې کړی وي لیکن میاشت ئې تر نظر لاندې نه وي راغلې نو له دې وروسته هغو ته د جم غفیر د ځانته ګواهي ضرورت نه پاتې کیږي۔

﴿۲﴾ هو صاحبه! که چېرته د حکومت په څارنه کښې نوموړي شرائط "له مخکښیني فتوٰی سره" که چېرته دا اعلان فرض کړو نو د پاکستان د دواړه برخو په حق کښې به نافذ العمل او واجب العمل وي۔

﴿۳﴾ د خپل علم تر حده پورې چه ما ته څومره معلومه ده هغه دا ده چه حکومت د داخلې د وزارت لاندې یوه مرکزي رؤیت هلال کمیټي جوړه کړې ده چه د هغه اعلی غړی یعنې مشر یا رئیس د راولپنډي ضلعي خطیب مولانا فیض علي فیضي دی او هغه د رؤیت هلال په اړه د کمیټې د نورو غړیو سره دا فیصله کړې ده او د حکومت تر څارنې لاندې د رادیو او تلویزون له لارې ئې هم خپور کړی دی نو ځکه بنده په مخکښیني فتوٰی کښې ستاسو د دریم سوال په ځواب کښې لیکلي وو چه په نوموړي طریقې باندې د اختر له اعلان څخه وروسته چه په دې ورځ کومو خلکو روژې نه وې نیولې او یا ئې نیولې وې لیکن له دې اعلان وروسته ئې ماتې کړې وې په هغو باندې قضا نه ده واجبه۔ او د "نه به وي" په ځای یواځې "نه" ئې ولیکه۔ که چېرته ستاسو په علم کښې دا اعلان تر شرائطو لاندې نه وي شوی او په استفاضه الخبر کښې داخل نه وي نو زه یواځې د دې په ځای چه "واجب نه دی" "واجب به نه وي" ولیکم او غاړه به مې خلاصه شي۔

**هیله:** زما صاحبه! ستاسو د اختر نه کول په مونږ پورې هیڅ اړه نه لري مونږ د خپلو معلوماتو تر حده پورې د دې مسئلې واضح کول غواړو چه د اختر اعلان د رادیو او تلویزون په ذریعه حجت دی او که نه؟ نو زما په رأیه کښې چه د اختر په اړه د رؤیت او شهادت کوم خبرونه مونږ مرکزي رؤیت الهلال کمیټې ته رسولي وو او د کمیټې غړیو په هغو باندې فیصله کړې وه او د رادیو په ذریعه ئې خپره کړه او د اختر اعلان ئې وکړ نو دا استفاضه الخبر دی او چا چه دا اعلان اوریدلی دی د هغو لپاره حجت دی۔ اوس که چېرته زمونږ له دې رأیې سره ستاسو اتفاق نه وي نو مونږ تاسو پرې نه مجبورو۔ فقط و السلام

## باب تعریف الصوم و اقسامه و شرائطه
## (د روژې تعریف، اقسام او شرائطو احکام او مسئلې)

### د روژې د نیت وخت

**سوال:** که چېرته له چا څخه د ورځې د روژې نیت په شپه کښې هیر شي نو تر کومه وخته پورې نیت کولی او روژه نیولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ګهیځ له را ختو نه وروسته له روژه لرونکي څخه د روژې ضد کار نه وي شوی نو له نصف النهار نه تر مخکښې وخت پورې دې نیت وکړي او روژه دې ونیسي۔ البته د نصف النهار له تیریدو نه وروسته نیت لره اعتبار نشته۔

قال عبد الرحمٰن الجزائریؒ: و یسن له ان یتلفظ بها. وقتها کل یوم بعد غروب الشمس الی ما قبل نصف النهار و النهار الشرعی من انتشار الضوء فی الأُفق الشرقی عند طلوع الفجر الیٰ غروب الشمس فیقسم هٰذا الزمن نصفین و تکون النیة فی النصف الاوّل بحیث یکون الباقی من النهار الی غروب الشمس اکثر مما مضی. (کتاب الفقه علی مذاهب الاربعة ج۱، ص۵۴۵)

قال العلامة سید احمد الطحطاویؒ: و لو نهاراً الی ما قبل نصف النهار) المراد انهٗ من اللیل الی هذا الوقت ظرف النیّة و فمتیٰ حصلت فی جزء من هٰذا الزمان صح الصوم لما ذکره المصنف، و ان نوی الصوم من النهار ینوی انهٗ صائم من اوله حتیٰ لو نویٰ قبل الزوال انهٗ صائم من حین نوی لا من اول النهار لا یصیر صائما حموی و انما تجوز قبل الضحوة اذا لم یوجد قبلها ما ینافی الصوم کاکل و شرب و جماع. (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ج۱، ص۵۳۰، کتاب الصوم) و مثله فی فتاویٰ قاضی خان ج۱، ص۹۵، کتاب الصوم.

### د روژې د فرضیت لپاره د عمر اندازه

**سوال:** په یوه مسلمان باندې روژه په کوم عمر کښې فرض کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په بنیادي توګه بلوغ ته د رسیدو سره په مسلمان باندې روژه فرض کیږي او بلوغ په دې باندې پیژندل کیږي چه د هلك احتلام وشي او نجلۍ ته حیض راشي۔ البته که چېرته په کوم بچي باندې د بلوغ آثار ښکاره نه وي نو بیا چه هلك پنځلسو کلونو ته ورسیږي نو په دې صورت کښې د روژې نیول پرې واجب دي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فان لم یوجد فیهما شیء منها فحتیٰ یتم لکل منهما خمس عشرة سنة و به یفتی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص۱۵۳، کتاب الحجر)

قال العلامة فخر الدینؒ: بلوغ الغلام با لاحتلام و الاحبال و الانزال و الا فحتی یتم لهٗ ثمانی عشر سنة و الجاریة با لحیض و الاحتلام و الحبل و الا فحتیٰ یتمّ لها سبع عشرة سنة و یفتیٰ با لبلوغ فیهما بخمس عشرة سنة. (تبیین الحقائق ج۵، ص۲۰۳، کتاب الحجر) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۸۵، کتاب الحجر.



### د شك په ورځ د نفلو له نیت سره سره روژه په فرضو کښې شمارل کیږي

**سوال:** که چېرته د شك په ورځ کښې څوك د نفلو په نیت سره روژه ونیسي لیکن وروسته په شرعي ثبوت سره دا معلومه شي چه دا ورځ د رمضان المبارك اوله ورځ ده نو د شریعت له مخې د دغې روژې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان د اولې ورځې د ثبوت په صورت کښې دا ورځ د شك ورځ نه بلل کیږي بلکه د رمضان اوله ورځ ګڼل کیږي او چونکه رمضان د فرض روژو لپاره ټاکل شوې ده نو ځکه د نفلي روژې په نیت سره په فرضي روژې باندې کوم تاثیر نه پریوځي بلکه همدغه روژه به د رمضان روژه ګڼل کیږي او په نوموړي سړي باندې قضاء هم نه ده لازمه۔

قال عالم بن العلاء: فان ظهر انه من رمضان کان صائماً عن رمضان و فی الخانیة و قیل علی قول محمد لا یکون صائما. (فتاویٰ تاتارخانیة ج۲، ص۳۹۲، کتاب الصوم، الفصل الثامن، الاوقات التی یکره فیها الصوم)

قال ابن نجیمؒ: و اعلم انه یتفرع علی کیفیة النیّة و وقتها مسئلة الاسیر فی دار الحرب اذا اشتبه علیه رمضان فتحتری و صام شهراً عن رمضان فلا یخلوا ما ان یوافق اولا با لتقدیم او با لتاخیر فان وافق جاز و ان تقدم لم یجز. (البحر الرائق ج۲، ص۲۶۲، کتاب الصوم) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۲۴۴، کتاب الصوم.

### ټول ژوند د روژې د نیولو نذر منل

**سوال:** که چېرته یو سړی ټول عمر د روژې د نیولو نذر په ځان ومني نو د ده لپاره د افطار د کولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ټول عمر روژې نیولو نذر منل بې له شکه صحیح دي لیکن بهتر نه دي ځکه چه انسان په هر حالت کښې یو ډول نه وي۔ د ټول عمر د روژې نیولو د نذر په منلو کښې هیڅکله هم د افطار د کولو ګنجائش نشته۔ البته د منهیاتو په ورځو (په هغو ورځو کښې چه د روژې نیول منع دي) د روژې نیول مکروه تحریمي دي۔ نو ځکه د نوموړي په ذمه هر کال پنځه ورځې روژه باقي پاتې کیږي چه د خپلې غاړې د خلاصون لپاره به د نوموړیو ورځو د فدیې ورکولو وصیت کوي۔

قال طاهر بن احمدؒ: رجل قال للّٰه عليّ صوم هٰذه السنة فانهٗ یفطر یوم الفطر و یوم النحر و ایام التشریق و یقضی تلك الایّام و علیه کفارة الیمین. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۶۱، کتاب الصوم، الفصل الرابع فی النذر)

قال عالم بن العلاءؒ: و اذا قال و للّٰهِ علی صوم الابد یفطر ایّام العید و یطعم عن کل یوم مسکیناً نصف صاع من حنطة. هشام عن محمدؒ: فیمن جعل علیٰ نفسه صوم الابد فافطر یوم الفطر و یوم الاضحیٰ. لا یطعم هٰذه الایام فی حیاته و علیه ان یوصی ان یطعم الخ. (فتاویٰ تاتارخانیة ج۲، ص۴۰۵، کتاب الصوم، الفصل الحادی عشر فی النذور) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۲۲۸، کتاب الصوم، فی ما یوجبه علی نفسه.

## په ښار کښې د روژې له ماتولو نه وروسته له طیارې ښځه د لمر په لیدلو سره روژه لرونکی باید څه وکړي؟

**سوال:** په ښار کښې د لمر له لویدو نه وروسته یوه سړي روژه ماته کړه لیکن له دې نه فوراً وروسته په هوایي جهاز کښې د سفر په صورت کښې ئې لمر ولیده نو آیا په دې سره په نوموړي باندې قضایي لازمیږي او که نه؟ او همدارنګه د امساك ئې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه نوموړي سړي ته په یقیني توګه دا معلومه شوې وه چه لمر لویدلی دی او له دې وجهې ده روژه ماته کړې ده۔ اوس ئې چه کله بیا لمر ولیده نو بیا دې تر هغه وخته پورې امساك وکړي تر څو چه په حقیقي توګه لمر ډوب شي۔ دا امساك یوائې د روژه لرونکو سره د مشابهت له وجهې ضروري دی ورنه روژه ئې ادا شوې ده او قضاء هم پرې لازمه نه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: قال فی شرح التنویر فلو غربت ثم عادت هل یعود الوقت با لظاهر نعم. و قال ابن عابدینؒ: (قوله الظاهر نعم) بحث صاحب النهر حیث قال ذکر الشافعیة ان الوقت یعود الی قوله قلت علی ان الشیخ اسمٰعیل رد ما بحثه فی النهر تبها للشافعیة بان صلٰوة العصر بغیبوبة الشفق تصیر قضاءً و رجوعها لا یعیدها اداء و ما فی الحدیث خصوصیة لعلیؓ رضی اللّٰه عنه کما یعطیه قوله علیه الصلٰوة و السلام انه کان فی طاعتك و طاعة رسولك آه. عود الوقت بعودها لککلّ، و اللّٰه تعالٰی اعلم. (رد المحتار ج۱، ص ۳۶۰/۳۶۱، کتاب الصوم)

لما قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و کذا من وجب علیه الصوم فی اوّل النهار لوجود سبب الوجوب و الاهلیة ثم تعذر علیه المضٰی فیه بان افطر متعمّداً و اصبح یوم الشك مفطرا ثم تبین انهٗ من رمضان او تسحر علٰی ظن ان الفجر لم یطلع ثم تبین له انهٗ طلع فانهٗ یجب علیه الامساك فی بقیّة الیوم تشبّها با لصّائمین. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۰۲/۱۰۳، کتاب الصوم، الفصل ام حکم الصوم الموقت) و مثله فی مراقی الفلاح علی هامش طحطاوی ج۱، ص۵۵۸، کتاب الصوم.

## په طویل النهار (اوږدو ورځو لرونکو) ممالکو کښې د روژې د نیولو طریقه

**سوال:** د دنیا ځینې ملکونه داسې دي چه ورځ پکښې ډیره اوږده وي نو هلته د روژې د نیولو شرعي طریقه څرنګه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومو ملکونو کښې چه ورځ له ۲٤ ساعتونو څخه زیاته وي نو په هغو کښې اوسیدونکو مسلمانان به د نژدې ملك او علاقې د وخت لحاظ به کوي ځکه چه په عامه توګه انسان د ۲٤ ساعتو روژې نیول برد اشت کولی نه شي۔ البته که چېرته له ۲٤ ساعتونو څخه ورځې دومره وړې وي چه د پیشلمي او روژه ماتې وخت پکښې پیدا کیده او طلوع او غروب هم کیده نو خپل د دغه ملك د وخت موافق به روژې نیسي۔ بیا هم یقینا د مریضانو لپاره په شریعت کښې مراعات موجود دی۔



قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: (تتمّة) لم ار من تعرض عندنا لحکم صومهم فیما اذا کان یطلع الفجر عندهم کما تغیب الشمس او بعده بزمان لا یقدر فیه الصّائم علی ما یقیم بنیته و لا یمکن ان یقال بوجوب الصّوم موالاة الصّوم علیهم لانهٗ یؤدی الی الهلاك فان قلنا بوجوب الصوم یلزم القول با لتقدیر و هل یقدر لیلهم باقرب البلاد الیهم. کما قاله الشافعیة هنا. ایضاً ام یقدر لهم بما یسع الاکل و الشرب یجب علیهم القضاء فقط دون الاداء کل محتمل فلیتامل. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۹، کتاب الصلٰوة، مطلب فی طلوع الشمس من مغربها)

قال العلامة کمال الدینؒ: و لا یرتاب متامل فی ثبوت الفرق بین عدم محل الفرض و بین سببه الجعلی الذی جعل علامة علی الوجوب الخفی الثابت فی نفس الامر و جواز تعدد المعرفات للشیء فانتفاء الوقت انتفاء للعرف و انتفاء الدلیل علی الشیء لا یستلزم انتفائه لجواز دلیل آخر و قد وجد و هو ما تواطات علیه اخبار الاسراء من فرض اللّٰه الصلٰوة خمساً بعد ما امروا اوّلا بخمسین ثم استقر الامر علی خمس شرعا عاماً ما لاهل الآفاق تفصیل فیه بین اهل قطر و قطر و ما روی ذکر الدجال رسول اللّٰهﷺ قلنا ما یُشبه فی الارض قال اربعون یوماً یوم کسنة و یوم کشهر و یوم کجمعة و سائر ایّامه کایامکم فقیل یا رسول اللّٰهﷺ فذلك الیوم الذی کسنة ایکفینا فیه صلٰوة یوم قال لا اقدروا لهٗ (رواه مسلم) فقد احب فیه ثلثمائة عصر قبل صیرورة الظلّ مثلاً او مثلین و قس علیه فاستفدنا ان الواجب فی نفس الامر خمس علی العموم غیر ان توزیعها علی تلك الاوقات عند وجودها فلا یسقط بعدمها الوجوب. و کذا قال رسول اللّٰهﷺ خمس صلٰوة کتبهنّ اللّٰه علی العباد و من افتٰی بوجوب العشاء یجب علی قوله الوتر آه. (حاشیة شبلی لی تبیین الحقائق ج۱، ص ۸۱، کتاب الصلٰوة، باب المواقیت) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲٤٦، کتاب الصلٰوة، باب المواقیت.

## د اختر په ورځ د روژې نیول ممنوع دي

**سوال:** که چېرته یو سړی د اختر په ورځ روژه ونیسي نو شرعاً ئې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مبارکو احادیثو او د فقه له کتابونو څخه دا حکم داسې څرګندیږي چه په ټول کال کښې پنځه ورځې روژه نیول ممنوع دي چه په هغو کښې دوه ورځې د اخترونو یعنې د عید الفطر او عید الاضحٰی دوه اولنۍ ورځې هم شاملې دي۔ لهذا د نوموړي سړي لپاره د اختر په ورځ د روژې نیول نه دي په کار او که نه نو بیا به ګنهګاریږي۔

قال عبد الرحمٰن الجزائریؒ: الصّوم المکروه ینقسم الٰی قسمین مکروه تحریماً و هو صوم ایام الاعیاد و التشریق فاذا صامها انعقد صومه مع الاثم. (فقه مذاهب اربعه ج۱، ص۵۵۹)

قال ابن نجیمؒ: و عندنا یکره الصوم فی یومی العید و ایام التشریق. (البحر الرائق ج۲، ص۲۵۸) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۲۰۱، کتاب الصوم، الباب الثالث فی ما یکره للصائم.

## په لیوني باندې د روژې فدیه واجبه نه ده

**سوال:** که چېرته لیوني په روژه نیولو باندې قادر نه وي نو د هغه اولیاء ئې فدیه ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي احکامو مکلف عاقل او بالغ وي۔ همدا وجه ده چه لیونی په عبادتونو باندې مکلف نه وي۔ نو ځکه د هغه له مړینې نه وروسته ئې په وارثانو باندې فدیه

ورکول هم لازم نه دي- خو په دې شرط چه دا مرض ممتد وي يعنې دا ليونتوب ئې د تل لپاره وي- يعنې د رمضان په ټوله مياشت کښې ليونى وي- او که چېرته عارضه يا مرض ئې ممتد نه وي نو په دې صورت کښې چه کومې روژې ترې پاتې شوي وي د هغو قضاء پرې لازمه ده او که چېرته د قضاء له راګرځولو مخکښې مړ شي نو د وصيت په صورت کښې فديه ورکول ئې په وارثانو لازم دي-

قال العلامة الكاسانیؒ: و لا وجوب على المجنون لان الوجوب با لخطاب و لا خطاب عليه لانعدام القدرتين و لهٰذا لم يجب القضاء فى الجنون السمتوعب شهراً وجه قول اصحابنا....... فى الجنون العارض ما اذا افاق فى وسط الشهر او فى اوله حتٰى لو جن قبل الشهر ثم افاق فى آخر يوم منه يلزمه قضاء جميع الشهر. (بدائع الصنائع ج۲، ص۸۸/۸۹، كتاب الصوم، فصل شرائط الصوم)

قال ابن نجيمؒ: (قوله و بجنون غير ممتد) اى يقضيه اذ فاته بجنون غير ممتد و هو ان لا يستوعب الشهر و هو مسقط للحرج. (البحر الرائق ج۲، ص۲۹۰، كتاب الصوم، فصل فى العوارض) و مثله فى فتاوٰى تاتارخانية ج۲، ص۳۹۶، كتاب الصوم، الفصل العاشر فى الجنون.

## په کومو شيانو باندې بايد روژه ماته شي

**سوال:** شرعا په څه شي باندې د روژې ماتول افضل دي؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه روژتي سړى په خُرما باندې روژه ماته کړي او که چېرته خُرما موجوده نه وي نو بيا په اوبو باندې د روژې ماتول بهتر دي- بيا هم پر دې برسيره په نورو شيانو هم د روژې ماتول جائز دي-

اخرج ابو عيسٰى محمد بن عيسٰیؒ: عن انس بن مالك رضى الله تعالى عنه قال قال رسول اللهﷺ من وجد تمراً فليفطر على ماء فان الماء طهور. (الجامع الترمذى ج۱، ص۱۴۹)

محمد بن يزيدؒ: عن سليمان بن عامر قال قال رسول اللهﷺ اذا افطر احدكم فليفطر على تمر فان لم تجد فليفطر على الماء فانهٗ طهور. (ابن ماجة ج۱، ص۱۲۲، باب ما جاء على ما يستحب الفطر) و مثله فى ابى داؤد ج۱، ص۳۲۱، باب ما يستحب الفطر.

## د پيشلمي او افطاري مستحبه طريقه

**سوال:** په سحري (پيشلمي) او افطاري (روژه ماتي) کښې د تعجيل او تاخير حکم يو دى او که څه فرق پکښې شته؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شريعت کښې د لمر له ډوبيدو نه فوراً وروسته افطاري کول مستحب دي او په سحري (پيشلمي) کښې تر آخري د شپې پورې تاخير کول بهتر دي- بيا هم احتياط په دې کښې دى چه سړى په غالب ګمان باندې د ګهيځ له راختو څخه څو دقيقې مخکښې سحري بنده کړي-



قال العلامة سيد احمد الطحطاویؒ: النهار عبارة عن زمان ممتد من طلوع الفجر الصادق الى غروب الشمس و هو قول اصحاب الفقه و اللغة (قوله الى الغروب) هو اوّل زمان بعد غيبوبة تمام جرم الشمس بحيث تظهر الظلمة فى جهة المشرق. و فى البخارى عنهﷺ اذا قبل الليل من هٰهنا فقد افطر الصائم. اى اذا وجدت الظلمة حسا فى جهة المشرق فقد دخل وقت الفطر او صار مفطر فى الحكم. لان الليل ليس طرفا للصوم قهستانى. (مراقى الفلاح على هامش طحطاوى ج۱، ص۵۲۱، كتاب الصوم)

قال طاهر بن احمد بن عبد الرشيد البخاریؒ: و يستحب للصائم تعجيل الافطار قبل طلوع النجوم و تاخير السحور و فى يوم الغيم لا يستحب التعجيل و لا يفطرما لم يغلب على ظنه غروب الشمس. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۲۶۶، كتاب الصوم، الفصل الخامس فى الحظر و الاباحة) و مثله فى رد المحتار ج۲، ص۴۱۹، كتاب الصوم، مطلب فى حديث التوسعة على العيال الخ.

## آيا د سهار د آذان د سحري د پاى ته رسيدو دليل دى؟

**سوال:** د پيشلمي آخري وخت د معلومولو څه طريقه ده؟ آيا د سهار آذان د پيشلمي د آخري دليل ګرځيدلى شي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په بندولو کښې بنيادي اعتبار د وخت آخري لره دى- ځکه د سهار د راختو څخه مخکښې د روژې نيول واجب دي- البته که چېرته آذان په صحيح وخت باندې کيده نو بيا د اسې آذان د وخت د آخري دليل ګرځيدلى شي او که نه نو د تقديم او تاخير په صورت کښې آذان لره د وخت آخري ګڼل درست نه دي- زمونږ په علاقو کښې آذان په عمومي توګه د وخت له داخليدو وروسته کيږي نو ځکه په دې وخت کښې خوراك او څښاك کول جائز نه دي بلکه له دې نه څو دقيقې مخکښې بايد خوراك بند کړى شي-

قـــــــال العلامة عالم بن العلاءؒ: قال اصحابنا وقت الصّوم من حين يطلع الفجر الثانى و هو الفجر المستطير المنتشر فى الافق الٰى غروب الشمس و اذا غربت الشمس خرج وقت الصوم و لم ينقل عنهم ان العبرة لاول طلوع الفجر الثانى او لاستطارته و انتشاره. و قد اختلف المشائخ فيه قال بعضهم العبرة لاوله. و بعضهم قـــــالوا العبرة لاستطارة. قال الشمس الائمة الحلوائیؒ القول الاول احوط و الثانى اوسع. (فتاوٰى تاتارخانية ج۲، ص۳۴۶، كتاب الصوم، الفصل الاول فى بيان وقت الصوم)

قال ابن عابدينؒ: (قوله و هو اليوم) اى اليوم الشرعى من طلوع الفجر الى الغروب و هل المراد اوّل زمان الطلوع او انتشار الضوء فيه خلاف كا لخلاف فى الصلٰوة و الاول احوط و الثانى اوسع. (رد المحتار ج۲، ص۳۷۱، كتاب الصوم) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۹۴، كتاب الصوم، الباب الاول تعريفه و تقسيمه.

## يوازې د جُمعې په ورځ د روژې د نيولو حکم

**سوال:** د احنافو په نزد يوازې د جُمعې په ورځ روژه نيول څنګه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو علماوؒ په نزد راجح مذهب دا دى چه يوازې د جُمعې په

ورځ روژه نیول مکره نه دي۔ البته په کومو احادیثو کښې چه منع راغلې ده هغه د ضعف او کمزورۍ او د اسې نورو په پیدا کیدو باندې محمول دی چه له مخې ئې د جُمعې په ادا کولو کښې فرق راځي۔

قال العلامه ابن عابدینؒ: و لا بأس بصوم یوم الجمعة عند ابی حنیفةؒ و محمدؒ لما روی عن ابن عباسؓ انه کان یصومه و لا یفطر. (رد المحتار ج۲، ص۹۱، کتاب الصوم)

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و منه صوم یوم الجمعة و لو منفرداً فلا بأس بصیامه عند ابی حنیفةؒ و محمدؒ. مما روی عن ابن عباسؓ انهٗ کان یصومه و لا یفطر. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۵۹۲، مسائل صوم مندوب) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۶۵، کتاب الصوم، الفصل الخامس فی الحظر و الاباحة.

## په ذی الحجه کښې د ایام بیض (د بیض د ورځو) د روژې نیولو حکم

**سوال:** د ایام بیض د روژې نیول شرعا مسنون دي چه د هرې میاشتې په ۱۳، ۱۴، ۱۵ تاریخ کښې نیول کیږي نو آیا د ذی الحجې په میاشت کښې هم په دغو ورځو کښې روژې ونیسو او که نورو ورځو ته ئې ونځنډوو؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې د لوی اختر یعني په ۱۰، ۱۱، ۱۲ کښې روژې نیول ممنوع دي نو ځکه د ذی الحجې په میاشت کښې د ۱۳ تاریخ روژه نیول جائز نه دي۔ بلکه له دیارلسم ځخه وروسته د ۱۴، ۱۵، ۱۶ ورځو روژې ونیسی۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه الله: یکره الصوم فی العیدین و ایّام التّشریق لانعقاد الاجماع و لو صام یکون صائماً مسیئاً و لو افسده لا یقضی عند ابی حنیفةؒ. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۸۸، کتاب الصوم، فصل فی بیان الاوقات التی یکره فیها الصوم)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و الثانی الذی کره تحریماً صوم عیدین الفطر و النحر و منه صوم ایّام التّشریق. و قال السید احمد الطحطاویؒ قولهٗ (منه صوم ایام التّشریق) هی ثلاثة بعد ایّام النحر. (طحطاوی ص ۳۵۱، کتاب الصوم) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلّتهٗ ج۲، ص ۵۸۲.

## د حاجي لپاره د عرفې د ورځې روژه نیول جـــائز دي او که نه؟

**سوال:** په مبارکو احادیثو کښې د عرفې د ورځې روژه نیول منقول دي آیا دا حکم د حاجي لپاره هم دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عرفې په ورځ روژه نیول شرعا سنت دي او دا حکم د ټولو لپاره یو ډول دی۔ البته که چېرته حاجي ته د روژې په نیولو کښې کمزوري لاحق کیدله چه له مخې ئې د حج په مناسکو کښې د خلل د واقع کیدو احتمال وي نو په دې صورت کښې د عرفې په ورځ د حاجي لپاره د روژې نیول مکروه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: المستحبة و عرفة و لو لحاج لم یضعفه الخ. قال ابن عابدینؒ (قوله لم یضعفه صفة لحاج) ای ان کان لا یضعفه عن الوقوف بعرفات و لا یخل بالدعوات محیط فلو اضعفه کره. (رد المحتار ج۲، ص۹۱، کتاب الصوم)



قال الشیخ الدکتور وهبة الزحیلی: و منه صوم یوم عرفة و لو لحاج لم یضعفه عن الوقوف بعرفات و لا یخل بالدعوات فلو اضعفه کره. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۲، ص۵۹۲، اراء المذاهب فی الصّوم المندور) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۸۹، الاوقات التی یکره فیها الصوم.

## د عاشورا د ورځې د روژې حکم

**سوال:** د محرم الحرام په لسم تاریخ د روژې د نیولو څه حکم دی آیا یوازې یوه ورځ روژه نیول کیږي او که له دې تاریخه مخکښې یا وروسته ورځې به هم روژه نیول کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عاشورا د ورځې یعني د محرم الحرام د میاشتې په لسم تاریخ روژه نیول سنت دي لیکن له دې روژې سره یوه ورځ مخکښې یا شاته پیوسته کول ضروري دي ځکه چه یوازې د لسمې ورځې د محرم روژه نیول مکروه دي۔

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و اما صوم یوم عاشوراء فیستحب ان یصوم قبله یوماً و بعده یوماً. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۶۵، کتاب الصّوم، باب الحظر و الاباحة)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و کانوا یستحبون ان یصوموا قبل عاشوراء او بعده یوماً. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۹۰، کتاب الصوم فی الاوقات التی یکره فیها الصوم) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلّته ج۲، ص۵۹۰، النوع الرابع، صوم التطوع.

## په رمضان المبارك کښې د میلمه د لحاظ د تواضع حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د کارو بار په سلسله کښې په انګلستان کښې اوسیږم۔ هلته زما ځینې انګریز ملګري دي۔ که چېرته هغوی ماته د رمضان المبارك په میاشت کښې د ورځې راشي نو آیا زه د هغوی په خاطر تواضع کولی شم او که نه؟ د قرآن او سنتو په رڼا کښې ځواب راکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د میلمه د مدارا تو په خاطر د نفلي روژې د ماتولو اجازه ورکړې ده۔ د دې لپاره که چېرته یو څوك د میلمه د مدارا تو په خاطر نفلي روژه ماته کړي نو څه پروا نه لري لیکن د همدې روژې قضایي راوړل ضروري دي۔ چه کله په غیر رمضان کښې د میلمه په خاطر نفلي روژه ماتیدلی شي نو په رمضان المبارك کښې خو په طریقه اولی سره جائز دی۔ په دې سره په روژې باندې کوم اثر نه پریوزي۔

لما قال العلامه اشرف علي تهانويؒ: که چېرته د چا کره میلمه راشي یا یو څوك چا ته دعوت ورکړي او د خوراك د نه کولو په وجه ئې په زړه کښې کوم فرق راته نو په دې وجه د نفلي روژې ماتول صحیح دي او د میلمه په خاطر د کور د خاوند لپاره هم د نفلي روژې ماتول جائز دي۔ (بهشتي زیور ص۲۰۴، کتاب الصوم)

## د عاشورا په ورځ د رمضان د روژې د قضايي حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! د عاشورې يعنې محرم الحرام په لسم باندې د رمضان د روژې قضايي را ګرځول صحيح دي او که نه؟ او که چېرته ئې څوك وګرځوي نو حکم ئې څه دی؟ د حنفي فقهې په رڼا کښې د دې مسئلې حل بيان کړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام په ټول کال کښې يوائې پنځه ورځې د روژې نيول ممنوع او د ګناه سبب ګرځولي دي۔ له دې پرته په نورو ورځو کښې چه په کومه ورځ وغواړي نو د رمضان د مياشتې قضايي روژې ګرځولی شي او غاړه ئې هم پرې خلاصيږي۔

لما فی الهندية: لو نوی قضاء رمضان و التطوع کان من القضاء. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندية ج۱، ص ۲۰۰، کتاب الصوم)

او هغه پنځه ورځې دا دي د کوچني اختر اوله ورځ او د ذی الحجې لسم، يوولسم، دولسم، ديارلسم۔

## د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د روژې د نيولو حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! زما والده صاحبه له څو کلونو څخه د دوشنبې او پنجشنبې په ورځو کښې روژې نيسي۔ آيا په قرآن او حديثو کښې د دې په باره کښې څه فضيلت راغلی دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول اللهﷺ مبارك ارشاد دی چه د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د بندګانو اعمال نامې د الله تعالی دربار ته وړاندې کيږي او زما دا خوښيږي چه زما اعمال د الله تعالی په وړاندې پيښ کيږي او زه د روژې په حالت کښې وم۔ لهذا د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د روژې نيول د ثواب کار دی۔

عن عائشةؓ قالت کان النبیﷺ يتحری صوم الاثنين و الخميس. (الجامع الترمذی ج۱، ص۱۵۸، باب ما جاء فی صوم الاثنين و الخميس)

عن حفصةؓ قالت کان رسول اللهﷺ يصوم ثلثة ايام من الشهر الاثنين و الخميس و الاثنين من الجمعة الاخریٰ. (ابو داؤد ج۱، ص۳۳۲، باب من قال الاثنين و الخميس) و مثله فی مشکٰوة المصابيح ص۱۷۹، کتاب الصوم، باب صيام التطوع.

## د شعبان د پنځلسمې ورځې د روژې شرعي حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! د شعبان د پنځلسمې ورځې د روژې ثواب شته او که نه؟ او همدارنګه د دې روژې شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو ليکلي دي چه د الله تعالی په نزد په مرغوبو روژو کښې د شعبان د پنځلسمې ورځې روژه هم ده۔ لهذا په دې ورځ روژه نيول د اجر او ثواب موجب دی۔



لما فی الهندية: المرغوبات من الصيام انواع اولها صوم المحرم و الثانی صوم رجب و الثالث صوم شعبان. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۲۰۰)

لما قال العلامة اشرف علی التهانوی رحمه الله: د برات د مياشتې د پنځلسمې ورځې روژه او د کوچني اختر د مياشتې شپږ ورځې روژه نيول د نورو نفلي روژو څخه زيات ثواب لري۔ (بهشتي زيور يا جنتي کالي، دريمه برخه، ص۲۰٤، کتاب الصوم)

## په مروجه افطار ګروپونو کښې د شرکت مسئله

**سوال:** په رمضان المبارك کښې ځينې سياسي خلك يو بل روژه ماتي ته را بولي کوم چه په هغه کښې د کبيره ګناهونو ارتکاب هم کيږي۔ نو آيا په دې ډول د روژه ماتي په دعوتونو کښې شرکت کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که په روژه دارو باندې افطاري کول يعنې روژه دارو ته روژه ماتي ورکول ډېر لوی د ثواب کار دی۔ په مبارکو احاديثو کښې د دې ډېر لوی ثوابونه راغلي دي ليکن په مروجه افطاري ګروپونو کښې چونکه اکثره د کبيره ګناهونو ارتکاب کيږي نو ځکه په دې ډول افطاري ګروپونو کښې شرکت کول نه دي په کار۔ تر څو له ګناه څخه محفوظ پاتې شي۔

لما قال عليه السلام: من فطر صائماً کان لهٗ مغفرته لذنوبه و عتق رقبته من النار و کان له مثل اجره من غير ان ينقص من اجره شیء. (مشکٰوة ص۱۷۳، کتاب الصوم، الفصل الثالث)

لقوله عليه السلام: من فطر صائماً فلهٗ مثل اجره. (مجمع الزوائد ج۳، ص ۳۷۲، کتاب الصوم، باب فيمن فطر صائماً)

## د مطلع د نه صفا والي په صورت کښې د روژې د ماتولو حکم

**سوال:** د رمضان په مياشت کښې که چېرته په آسمان کښې وريځ وي او د لمر د ډوبيدو صحيح حال معلوم نه شي نو په داسې ورځ د روژې ماتولو شرعا حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مستحبه خو دا ده چه څنګه لمر ډوبيږي نو فوراً دې روژه لرونکي روژې ماتې کړي۔ ليکن که چېرته مطلع صفا نه وي او يا په آسمان کښې ګرد او غبار او يا وريځ وي نو بيا د روژې په ماتولو کښې بايد دومره ځنډ وشي تر څو د لمر د ډوبيدو او نه ډوبيدو شك له منځه لاړ شي۔ او نن صبا خو هسې هم د هر چا په لاس کښې ګړی وي نو د ګړی په حساب سره د لمر د ډوبيدو له يقين نه وروسته د روژې ماتول په کار دي۔

لما قال العلامة المرغينانیؒ: و لو شك فی غروب الشمس لا يحل له الفطر. (الهداية ج۱، ص۱۸۷، کتاب الصوم)

لما قال العلامة اشرف علی التهانویؒ: تر څو پورې چه د لمر په ډوبيدو کښې شك او شبهه پاتې وي تر هغو پورې د روژې ماتول جائز نه دي۔ (بهشتي زيور، دريمه برخه، ص۲۰۹، کتاب الصوم)

## د روژې د ماتولو لپاره د وخت د مقررولو حکم

**سوال:** افطارۍ تر څو دقیقو پورې باید وشي۔ ځینې خلك د روژه ماتي په وخت کښې پوره مکمل خوراك کوي او بیا وروسته لمونځ کوي۔ په دې باره کښې د مقدس شریعت څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د افطارۍ لپاره شرعا کوم وخت نه دی ټاکل شوی۔ ضروري خبره دا ده چه د ماښام لمونځ ادا کړی شي۔ نوځکه بهتره او افضله دا ده چه مختصر غوندې افطار وکړی شي او بیا د ماښام لمونځ وکړی شي او بیا پوره خوراك وکړی شي۔ بیا هم که چېرته د پوره خوراك نه وروسته لمونځ په وخت باندې ادا کړی شي نو بیا څه پروا نه لري۔

## د روژې نیت په عربي یا په مورنۍ ژبې باندې د ادا کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د رمضان المبارك د روژو نیت په عربي سره ضروري ده او که پخپلې مورنۍ ژبې باندې هم نیت کول صحیح دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نیت تعلق له زړه سره دی۔ یوائې د ارادې په کولو سره هم روژه صحیح کیږي۔ بیا هم په ژبې سره په نیت باندې تلفظ کول بهتر دي که په عربي وي او که په مورنۍ ژبې سره۔ دواړه صحیح دي۔

لما فی الهندیة: و النیة معرفته بقلبه ان یصوم کذا فی الخلاصة و محیط السرخسی و السنة ان یتلفظ بها کذا فی النهر الفائق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۵، کتاب الصوم، الباب الاول فی تعریفه)

قال المفتی عبد الرحیمؒ: د روژې نیت په ژبه باندې ادا کول ضروري نه دي، یوائې د زړه اراده کافي ده، که چېرته په خپله مورنۍ ژبه یا په عربي سره په ژبه هم نیت وکړي نو ښه خبره ده او منع نه ده۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۸، ص۲۶۳، کتاب الصوم)

## پـــــه طیاره کښې د سفر په دوران د روژې د ماتولو لپاره د جهـــــاز وخت معتبر دی

**سوال:** یو سړی په هوایي جهاز کښې سفر کاوه۔ د زمکني وخت په لحاظ سره لمر ډوب شوی وي لیکن د جهاز د جګوالي په وجه سره تر اوسه پورې لمر د آسمان په کنارو کښې معلومیده نو آیا د نوموړي سړي لپاره د زمکې د وخت په لحاظ سره روژه ماته کړي او که په حالت سفر کښې چه لمر ډوب شي نو بیا دې افطار وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قاعده دا ده چه په روژې او لمانځه کښې به د هغه مقام وخت معتبر وي چېرته چه سړی موجود وي۔ چونکه د نوموړي صورت مطابق دا سړی په جاز کښې دی نو د دې لپاره کله چه په همدغه حالت کښې لمر ډوب شي نو بیا دې روژه ماته کړي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: المراد با لغروب زمان غیوبة جرم الشمس بحیث فظهر الظلمة فی جهة الشرق. (رد المحتار ج۲، ص۸۸، کتاب الصوم)



قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: تحت (قوله و هو الیوم) ای هو من اوّل زمان الصبح الصادق الی المغرب ای زمان غیوبة تمام جرم الشمس بحیث تظهر الظلمة فی جهة المشرق. (الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۳۴۶)

## د شوال د شپږو روژو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د څو کلونو څخه بنده د کم اختر په دوهمه ورځ د شوال شپږ روژې شروع کوي۔ زما د یوه ملګري خبره ده چه د شوال شپږ روژې مکروه دي او دا د احنافو مذهب دی۔ هغه یوه رساله هم ما ته راکړې ده چه په همدې موضوع باندې لیکل شوې ده۔ د خپل ملګري خبره مې چه واوریده او رساله مې مطالعه کړه نو سخت پریشانه شوم۔ مهرباني وکړی د دې مسئلې وضاحت وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې د شوال د شپږو روژو ډېر فضیلت راغلی دی۔ رسول اللهﷺ دا عمل د ډېر اجر او ثواب باعث بللی دی۔ نو ځکه د احنافو فقهاوؒ تقریبا په هر کتاب کښې دا روژې مستحب ګڼلي دي۔ تر کومه ځایه چه د کراهیت خبره ده نو په دې باره کښې د امام صاحبؒ یو شاذ او نادر قول نقل دی۔ د احنافوؒ مذهب دا نه دی۔ او که نه نو بیا فقهاء کرامو په ډېر اهتمام سره نه ذکر کاوه او مفتٰی بهٔ ئې نه ګرځاوه۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و منه ایضاً صوم ستّة من شوال عند ابی حنیفة متفرّقا کان او متتابعاً و عن ابی یوسف کراهته متتابعاً لا متفرقاً لٰکن عامة المتاخرین لم یروا به بأسا و قال ابن عابدینؒ (تحت قوله و لم یروا به بأساً) قد سرد عبارتهم العلامة قاسم فی فتاواه و رد قول من صحح الکراهة فراجعه. (البحر الرائق و منحة الخالق ج۲، ص۲۵۸، کتاب الصوم)

## باب ما یفسد الصوم او ما لا یفسد

## (باب دی په بیان د هغو شیانو په کومو شیانو سره چه روژه ماتیږي او په کومو شیانو چه نه ماتیږي)

### د مذي او ودي په وتلو سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** د ښځې سره د لمس او تقبیل او یا لوبې کولو په وخت کښې که چېرته څه شی له سرې ووځي نو په دې سره روژه ماتیږي او که نه؟ او که چېرته له متیازې سره څه شی پریووزي نو په روژې باندې کوم اثر کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمس او تقبیل په صورت کښې که چېرته انزال وشي نو روژه پرې ماتیږي۔ قضاء پرې واجبه ده لیکن کفاره پرې نشته۔ البته د کمزورۍ په وجه سره د متیازو د کولو په وخت کښې که چېرته څو څاڅکي پریووزي نو په دې سره روژه نه ماتیږي۔

قال فی الهندیة: و اذا قبل امرأته و انزل فسد صومه من غیر کفارة. ایضاً فی الهندیة و کذا لا یفطر با لفکر اذا امنی هکذا فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۴، کتاب الصوم، الباب الرابع فیما یفسد)

قال محمد بن عبد اللّٰه: او وطی امرأته میتة) او بهیمة او فخذا او بطناً او قبل) او (لمس) فانزل قید للکل حتٰی لم ینزل لم یفطر کما مر. قال محمد بن عبد اللّٰه: (او قُبل) و لم ینزل (او احتلم او انزل بنظر او بفکر الخ. (شامی ج۲، ص۳۹۶، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده.

### د خاوند د سختۍ له وجهې ښځې ته د خوراکي شیانو د خوند څکلو حکم

**سوال:** د روژې په حالت کښې د میړه له ویرې د پاخه شوي شیانو خوند څکل ښځې ته څنګه دي۔ آیا په دې عمل سره په روژې کښې څه فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په حالت کښې عموماً د شیانو د خوند څکل مکروه دي او ځینې وختونه د روژې فاسدوونکی هم ګرځي۔ لیکن که چېرته د کومې ښځې میړه بد او سخت مزاجه وي او ښځه ئې له وهلو اوښکنځلو ډاریده نو د داسې ښځې لپاره د پاخه شوي شیانو خوند څکل له کراهیت پرته جائز دي۔

قال قاضی خان رحمه اللّٰه: اذا کان الزوج سیء الخلق لا بأس للمرأة ان تذوق المرقة بلسانه. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۹۸، کتاب الصوم)

قال عالم بن العلاء: ان کان زوجها سیء الخلق بذی اللسان یضایقها فی ملوحة الطعام فلا بأس به. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۸۰، کتاب الصوم، الفصل السادس فی الاسباب المبیحة) و مثله فی شامی ج۲، ص۴۱۶، کتاب الصوم، مطلب فیما یکره للصائم.



### حامله ښځې ته که چېرته وینه راشي نو روژه ئې نه ماتیږي

**سوال:** د حمل په حالت کښې که چېرته ښځې ته کله وارې وینه راشي نو په روژه کښې ئې څه فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې له مفسداتو څخه د حیض او نفاس د وینې راتلل هم دي۔ او کومه وینه چه ښځې ته د حمل په حالت کښې راشي نو هغه به د مرض وینه وي کوم چه روژه پرې نه ماتیږي۔ لهذا په د اسې وینې سره په روژه کښې څه فرق نه راځي۔

قال عبد الرحمٰن الجزائریؒ: ان الدم الذی یخرج عند خروج اکثر الولد هو دم نفاس کا لدم الذی یخرج عقب خروجه اما ال م الذی یخرج بخروج اقل الولد او قبله فهو فساد و لا تعتبر نفساء و یفعل ما یفعله الطاهرات. (الفقه علی مذاهب الاربع: ج۱، ص۱۳۱، باب الحیض)

قال کمال الدینؒ: لما کان الحیض اکثر وقوعاً قدمه ثم اعقبه الاستحاضة لانها اکثر وقوعاً من النفاس باعتبار کثرة اسبابها فانّها تکون مستحاضة بما رأت الدم حالة الحبل او زاد الدم علی عشرة او زاد علی معروضها و جاوز العشرة او رأت ما دون الثلاث او رأت قبل تمام الطهر او رأت قبل ان تبلغ تسع سنین علی ما علیه العامة بخلاف النفاس فان سببه شیء واحد و قدم حکم المستحاضة و من بمعناها علی تعریضها لان المقصود و بیان الحکم. قال برهان الدینؒ یتوضئون لوقت کل صلٰوة. (العنایة علی هامش فتح القدیر ج۱، ص۱۵۹، باب الحیض) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۱۵، باب الحیض.

### د روژې په ماتولو کښې بیړه کول بهتر دي

**سوال:** په افطار کښې د احتیاط په خاطر د ځنډ د کولو په شریعت کښې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمر ډوبیدل یو قطعي او بدیهي امر دی۔ له دې نه وروسته د غلبۀ ظن او د احتیاط خبره او دعوٰی کول بې بنیاده خبرې دي۔ همدا وجه ده چه د شریعت له مخې د روژې په ماتولو کښې تعجیل یعنې بیړه بهتره ده۔

قال عالم بن العلاءؒ: و یستحبّ للصائم تعجیل الافطار قبل طلوع النجوم. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۸۱، کتاب الصوم، الفصل السادس فی الاسباب المبیحة)

قال طاهر بن احمدؒ: و یستحب للصّائم تعجیل الافطار قبل طلوع النجوم. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۶۶، کتاب الصوم، الفصل الخامس فی الحظر و الاباحة) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۵۶۲، کتاب الصوم.

### په رمضان شریف کښې د دوایي په ذریعه د حیض د بندولو حکم

**سوال:** ځینې ښځې په رمضان شریف کښې له روژې څخه د نه محرومۍ په خاطر او یا په غیر رمضان کښې د لمانځه د نه قضا کیدو په خاطر د حیض بندوونکي دوایی استعمالوي۔ آیا د شریعت له مخې دا اقدام جائز دی او که نه؟ او په شرعي احکامو باندې ئې څه اثر پریووزي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځې ته د حیض ورتلل یو فطري او طبعي امر دی۔ نو ځکه مقدس شریعت په دغو ورځو کښې ښځه معذوره ګڼلې ده او له هغوی څخه د عباد اتو ذمه واري پورته کړې ده۔ او همدا وجه ده چه په جدید او قدیم طب کښې حیض د ښځې د صحت او تندرستۍ علامه او نښه ګڼل شوې ده۔ که چېرته کومه ښځه د دوايي ګانو په ذریعه خپل حیض بند کړي نو شرعي احکام پرې نه متاثر کیږي۔ یعنې د حیض او نفاس د نه راتلو په وجه سره د روژې او لمانځه کول ضروري ګرځي۔ لیکن د ښځې د صحت لپاره د نقصان رسیدو په وجه باید له داسې کولو څخه پ هیز وشي۔ لیکن بیا هم په داسې طریقې سره د حیض د بندولو په صورت کښې ئې روژه صحیح کیږي۔

قال عالم بن العلاء: و شرط صحة الاداء و هو الوقت القابل و هو اليوم المتحرّى عن الاكل و الشرب و طهارة المؤدبين من الحيض و ا نفاس. (فتاوٰی تاتارخانية ج۲، ص۳۴۵، کتاب الصوم)

قال طاهر ابن احمد بن عبد الرشيدؒ: اعلم بان الصَوم هو الكف عن المفطرات شرعاً فى وقته بنية يشرط من اهله و اهله العاقل البالغ المسلم و فى المرأة الطهارة من الحيض و النفاس. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۲۵۱، کتاب الصوم، الفصل الثانى فى المقدمة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۵۹، کتاب الصوم.

## د زهرجنو حشراتو په چیچلو سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** د لړم او غمبسې په چیچلو سره روژه ماتیږي او که نه په داسې حال کښې چه د چیچونکي لړم یا بل شي زهر د روژتي بدن ته داخلیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه شي معدې یا دماغو ته رسیدل هلته د روژې مفسد جوړیږي چه هغه شی جوف دماغ او جوف معدې ته په طریقه د منفذ سره داخل شي۔ که چېرته هغه شی د ترسح (خوله) په ذریعه جوف دماغ یا جوف معدې ته ورسیږي نو د صوم مفسد نه دی۔ لکه څنګه چه په نوموړي صورت کښې زهر معدې ته د خوله په ذریعه سره رسیږي نو له دې وجهې د روژې مفسد نه دی۔

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانىؒ: و لو اكتحل لم يفطر لانهٗ ليس بين العين و الدماغ منفذ و الدمع يترشح كا لعرق و الداخل من المسام لا ينافى كما لو اغتسل با لماء البارد. (الهداية ج۱، ص۱۹۷، کتاب الصوم، باب ما يوجب القضاء و الكفارة)

قال العلامة عبد اللّٰه بن محمود بن مودود الموصلىؒ: و اما الاقطار فى الاحليل فعندهما لا يفطر. و قال ابو يوسفؒ يفطر بناء على ان بينه و بين الجوف منفذ بدليل الخروج البول و الاصح انّ ليس بينهما منفذ بل البول يترشح الى المثانة ثم يخرج و ما يخرج رشحا لا يعود رشحا فلا يصل. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص۱۳۳، کتاب الصوم، فصل فى وجوب الكفارة و القضاء الخ) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۲۷۹، کتاب الصوم، باب ما يوجب القضاء و الكفارة.



## په بد نظري سره انزال د روژې ماتوونکی نه دی

**سوال:** یوې ښائسته ښځې ته په کتو سره چه شهوت غالب شي او د روژتي انزال وشي نو په دې سره ئې روژه ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په انزال سره د روژې فساد او ماتوالي لپاره د حقیقي جماع او یا معنوي جماع شته والی ضروري دی۔ چونکه په شهواني نظر سره په انزال کښې دواړه ډوله جماع وجود نه لري نو ځکه فقهاء کرامو د روژې د نه ماتید و فتوی ورکړې ده۔

قال ابن الهمام رحمه اللّٰه: اذا نظر الى امرأة بشهوة الى وجهها او فرجها كرر النظر او لا يفطر اذا انزل لما بينا انهٗ لم توجد صورة الجماع و لا معناه و هو الانزال عن مباشرة و هو حجة على مالك فى قوله اذا كرره فانزل افطر. (فتح القدير ج۲، ص۲۵۶، کتاب الصوم، باب ما يوجب القضاء و الكفارة)

لما قال العلامة بدر الدين العينىؒ: و كذا لا يفطر اذا نظر الى امرأة فامنٰى ان انزل المنى لما بينا و هو قوله لانهٗ لم يوجد صورة الجماع و لا معناه ثم انه سواء اذا نظر الى وجهها او فرجها بخلاف حرمة المصاهرة فانها فثبت با لنظر الى فرجها. (البناية شرح الهداية ج۴، ص۲۸۴، باب ما يوجب القضاء و الكفارة) و مثله فى طحطاوى ص۳۶۱، باب فى بيان ما لا يفسد الصَوم.

## په خوله کښې د دوايي د خوند احساس د روژې مفسد دی

**سوال:** د دوايي له خوړلو نه وروسته که چېرته د سهار د راختو په وخت کښې او یا وروسته له هغه نه چه د دوايي اثر او خوند محسوس شي نو آیا په دې سره روژه ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خوله کښې د دوايي د خوند احساس د روژې د فساد ذریعه نه ده خو په دې شرط چه له حلق څخه ښکته لاړه نه شي لیکن کله چه له حلق څخه تیر شي او جوف ته د ننه ورسیږي نو بیا روژه ئې ماتیږي۔

قال ابن نجيمؒ: و فى المحيط يجوز ان يقال لا بأس به كى لا يغبن و المضغ بعذر بان لم تجد المرأة من يمضغ لصبيها الطعام من حائض او نفساء او غيرهما ممن لا يصوم و لم تجد طبيخاً و لا لبنا حليبا لا بأس به للضرورة الا ترى انه يجوز لها الافطار اذا خافت على الولد فا لمضغ اولٰى و اطلق فى الصَوم فشمل الفرض و النفل. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۰، باب ما يفسد الصوم و ما لا يفسد)

قال العلامة محمد عبد الحىّؒ: و دخوله شىء فى فمه فانه لو دخل شىء من الخارج فى فمه لا يفسد صومه ما لم يدخل فى حلقه و هٰذا آية كونه خارجاً فانه لو كان داخلا لفسد صومه فى هٰذه الصورة لان دخول شىء من الخارج الى الداخل مفسد له. (السعاية ج۱، ص۲۷۸، کتاب الطهارة و فرض الغسل) و مثله فى الشامى ج۲، ص۴۴۰، کتاب الصوم، مطلب فيما يكره للصائم.

## له یوه ملك څخه بل ملك ته په تللو کښې به روژه د اولنی ملك معتبره وي

**سوال:** که چېرته ي سړی د رمضان په دوران کښې سفر وکړي او یو داسې ملك ته لاړ شي چېرته د میاشت د رؤیت د مقدم والي له وجهې ئې دیرش ورځې پوره شوي نه وي نو په دې حالت کښې نوموړي ته څه کول په کار دي؟ آیا د روژې په شمار کښې به د موجوده ملك اعتبار کوي چېرته چه مثلاً ۲۹ روژې پوره دي او که د خپل ملك اعتبار به کوي کوم چه دیرش ورځې ئې پوره شوي دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ترکومه ځایه پورې چه د اختر د کولو حکم دی نو دا د موجوده ملك تابع دی لیکن د روژې په تعداد کښې به د هغه ملك اعتبار وي چېرته چه نوموړي اوله روژه نیولې ده۔ او که چېرته د هغه ملك حالت معلوم نه وي نو بیا دې د احتیاط له مخې ۳۰ روژې پوره کړي په دې شرط چه د هغه روژې پوره شوي نه وي۔

قال فی الهندیة: اذا صام اهل مصر تسعة و عشرین یوماً للرؤیة و فیهم مریض لم یصم فعلیه القضاء تسعة و عشرین یوماً فان لم یعلم هٰذا الرجل ما صنع اهل المصر صام ثلاثین یوماً لیخرج عن العهدة بیقین کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۹، کتاب الصوم، الباب الثانی فی رؤیة الهلال)

قال العلام بن العلاء رحمه اللّٰه: اذا صام اهل المصر تسعة و عشرین یوماً للرؤیة و فیهم مریض لم یصم فعلیه القضاء تسعة و عشرین یوماً فان لم یعلم هٰذا الرجل ما صنع اهل المصر صام ثلاثین یوماً لیخرج عن العهدة بیقین. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۵٤، کتاب الصوم، رؤیة الهلال) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲٦٤، کتاب الصوم و یثبت رمضان الخ.

## د فصل ریبل د روژې د ماتولو لپاره شرعي عذر نه دی

**سوال:** که چېرته په رمضان شریف کښې فصل پوخ شي او چه د رمضان تیرېدو ته انتظار وشي نو د فصل د ضائع کیدو خطره وي نو د فصل د ریبلو لپاره د روژې د نه نیلو شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په موجوده دور کښې د فصل د ریبلو لپاره جدید ترین آلات موجود دي مثلاً د ریبلو ماشین او داسې نور۔ البته که پخپله ئې د ریبلو طاقت نه وي نو په مزدوري باندې ئې ریبل هم امکان لري۔ نو له ځکه د فصل ریبل د روژې د نه نیولو لپاره شرعي عذر نه دی۔

قال ابن نجیم رحمه اللّٰه: و فی القنیة لا یجوز للخباز ان یخبز خبزاً یوصله الی ضعف مبیح للفطر بل یخبز نصف النهار و یستریح فی النصف قیل له لا یکفیه اجرته او ربحه فقال هو کاذبٌ و هو باطل باقصر ایّام الشتاء. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد)

قال علام بن العلاء رحمه اللّٰه: سالت ابا حامد عن خباز یخبز فی شهر رمضان و یضعف فی آخر النهار هل یجوز له ان یعمل هٰذا العمل فقال لا یجوز له بان یعمل ما یوصله الی هٰذا النوع من الضعف و لکن یخبز نصف النهار و یستریح فی



النصف الباقی قبل له اذا کان لا یکفیه ما یاخذ فی نصف النهار فقال هو کاذبٌ فان ایّام الشتاء اقصر الایّام فما یفعل فی تلك الایّام یفعله الیوم. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۸۵، کتاب الصوم، الفصل السابع الاسباب المبیحة للفطر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۱۰۱، کتاب الصوم، فصل فی فساد الصوم.

## د قاضي لپاره د قضاء مسند د روژې د نه نیولو سبب نه دی

**سوال:** که چېرته یو قاضي د قضاء په مسند کښې له داسې حالت سره مخامخ وي چه د فیصلې د کولو په وخت کښې روژه ورته ډیره د تکلیف سبب وي نو آیا د ده لپاره د روژې خوړل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا یو داسې شرعي عذر نه دی چه له مخې ئې د روژې خوړل ورته مرخص وي نو ځکه په هغه باندې روژه واجبه ده۔

قال فی الهندیة: شرط وجوبه الاسلام و العقل و البلوغ و شرط وجوب الاداء الصحة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۹۵، کتاب الصوم، الباب الاوّل تعریفه الخ)

قال عالم بن العلاء رحمه اللّٰه: شرط نفس الوجوب و هو الاسلام و العقل و البلوغ و شرط وجوب الاداء و هو الصحة و الاقامة و شرط صحة الاداء و هو الوقت القابل. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳٤۵، کتاب الصوم) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۱، کتاب الصوم، الفصل الثانی فی المقدمة.

## د روژې په حالت کښې د ستنې لګول روژه نـــــه ماتوي

**سوال:** په روژه کښې د ستن (پیچکاری) د لګولو په پاره کښې څه حکم دی؟ آیا د رګ او غوښې په ستن کښې څه فرق شته او که په دواړو روژه نه ماتیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له عبارتونو څخه څرګندیږي چه مطلق د یوه شي او یا د هغه د اثراتو تر بدنه پورې رسیدل د روژې ماتوونکی نه دی بلکه دا په هغه وخت کښې د روژې ماتوونکی ګرځي چه کله په معتادو ذرائعو باندې بدن ته داخل شي تر نسه یا تر دماغو ورسیږي۔ د جدیدو تحقیقاتو په رڼا کښې د ستنې اثرات تر دماغه یا تر معدې پورې نه رسیږي بلکه دا په رګونو کښې حلول کوي او بدن ته د راحت د رسولو ذریعه جوړیږي۔ نو ځکه په دې سره روژه نه ماتیږي۔ چونکه دا علت په هر ډول ستنې کښې موجود دی نو له دې وجهې هر ډول ستن که د رګ وي یا د غوښې روژه پرې نه ماتیږي۔ لکه د تندې په وخت کښې د مساماتو په ذریعه د برودت حاصلول د روژې ماتوونکی نه دی۔ تر خپله وسه پورې د روژې په حالت کښې د رګ له ستنې لګولو څخه باید پرهیز وکړی۔

قال فی الهندیة: و من اغتسل فی ماء وجد بردة فی باطنه لا یفطر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۳، کتاب الصوم، الباب الرابع فیما یفسد)

قال ابن نجیمؒ: و فی التحقق ان بین الجوفین منفدا اصلیا فما وصل الی جوف الرأس یصل الی جوف البطن.

(البحر الرائق ج۲، ص۲۷۹، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد)

قال اکمل الدین محمد بن محمودؒ: اذا علم ان الدواء الیابس وصل الی جوفه لم یفسد صومه عندهٗ الا انه ذکر الرطب و الیابس بناء علی العادة. (العنایة علٰی هامش فتح القدیر ج۲، ص۲۶۶، باب ما یوجب القضاء و الکفارة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۳، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الخ.

## د روژتي له خپل شرمګاه سره لوبې کول

**سوال:** آيا د روژې په حالت کښې له خپلې شرمګاه سره لوبې کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په حالت کښې له خپلې شرمګاه سره لوبې کول کوم داسې عمل نه دی چه له وجهې ئې روژه ماته شي ليکن بيا هم له دې عمل څخه پرهيز بهتر دی ځکه چه په دې سره د روژې د ماتيدلو خامخا خطر موجود وي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و لا بأس با لقبلة اذا امن علی نفسه ای الجماع و الانزال و یکره اذا لم یأمن. (الهدایة ج۲، ص۱۹۹، کتاب الصوم، باب ما یوجب القضاء و الکفارة)

قال محمد بن عبد اللّٰه: (او قبل) و لم ینزل (او احتلم او انزل بنظر) و لو الی فرجها مرارا (او بفکر) و ان طال مجمع. (شامی ج۲، ص۳۹۶/۳۹۵، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد.

## د غــــابن د ایستلو په وخت کښې له هغه څخــــه د وتونکي وينې په روژې بــــاندې اثر

**سوال:** د تکليف له وجهې د روژتي لپاره د غابن ايستل شرعا څنګه دي؟ که چېرته د غابن د ايستلو په وخت او يا وروسته وينه ووځي نو آيا روژه پرې ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د علاج په صورت کښې د غابن ايستل جائز دي۔ البته د غابن د ايستلو په وخت کښې چه وينه راشي او هغه وينه تيره شي نو په دې سره روژه ماتيږي او چه تيره نه شي نو روژه پرې نه ماتيږي۔

قال ابن نجیمؒ: اذا خرج من الاسنان و دخل الحلق ان کانت الغلبة للبذاق لا یفسد صومه و ان کانت للدم فسد. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۳، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد)

قال العلامة الحصکفیؒ: (او خرج الدم من بین اسنانه و دخل حلقه) یعنی و لم یصل الی جوفه اما اذا وصل فان غلب الدم و تساویاً فسد و الا لا، الا اذا وجد طعمه. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۳۹۶، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۶۹، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد.

## له قصده پرته قی کول د روژې ماتوونکی نه دی

**سوال:** روژتي که چېرته قی وکړي او د قی څه حصه نس ته ترې تيره شي نو د روژې د صحت حکم ئې شرعا څه دی؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** له قصد پرته قی کول د روژې ماتوونکی نه دی۔ البته که چېرته د نخود يا چنړې د دانې په اندازه قی او يا له دې څخه زيات بيرته تير کړي نو روژه ئې پرې ماتيږي۔ او که چېرته له قصد پرته ترې تير شي نو روژه ئې پرې نه ماتيږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و ان ذرعه القیء و خرج و لم یعد (لا یفطر مطلقاً) ملأ او لا (فان عاد) بلا صنعه (و) لو هو ملأ الفم مع تذکره للصوم لا یفسد. قال ابن عابدینؒ ان کان ملأ الفم و اعاده او شیئاً منه قدر الحمصة فصاعداً افطر اجماعاً لانه خارج ادخله جوفه و لو جود الصنع. (شامی ج۲، ص۴۱۴، کتاب الصوم، باب مطلب فی الکفارة)

قال ابن الهمام رحمه اللّٰه: و الکل اما ان خرج او عادا و اعاده فان ذرعه و حرج لا یفطر قل او کثر لاطلاق ما روینا و ان عاد بنفسهٖ و هو ذاکر للصوم ان کان ملأ الفم فسد صومه عند ابی یوسفؒ (انه خارج شرعاً حتی انتقصت به الطهارة) و قد دخل و عند محمدؒ لا یفسد و هو الصحیح الخ. (فتح القدیر ج۲، ص۲۵۹، باب ما یوجب القضاء و الکفارة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۴، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد.

## په اوبه کښې د ډوبيدلو په صورت کښې روژه نه ماتيږي

**سوال:** که چېرته روژتي سړی د اوبو په حوض يا نهر کښې ځان ډوب کړي نو آيا په روژه کښې ئې کوم فرق راځي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې خوله ته داخلې نه شي او يوازې په غوړو او يا بدن کښې د اوبو د يخوالي (برودت) احساس وشي نو په دې سره روژه نه ماتيږي۔ البته که چېرته ئې بدن ته داخلې شي نو روژه ئې پرې ماتيږي بيا هم له داسې عمل څخه پرهيز کول مناسب دي۔

قال عالم بن العلاءؒ: و لو اغتسل و فی الفتاوی العتابیة او خاض الماء فدخل الماء اُذُنه لا یفسد صومه بلا خلاف. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۶۴، کتاب الصوم، الفصل الثالث ما یفسد الصوم الخ)

قال ابن نجیم المصریؒ: ان خاض الماء فدخل اُذُنه لا یفسد. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۸، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۲۰۳، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده)

## د روژې په حالت کښې د احتلام حکم

**سوال:** په روژه کښې که چېرته د روژتي احتلام وشي (شيطان ئې خطا کړي) نو د روژې به ئې څه حکم وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** احتلام له روژې سره کوم منافي عمل نه دی نو ځکه په روژه کښې احتلام په روژې باندې څه اثر نه کوي۔

قال برهان الدین رحمه اللّٰه: فان نام فاحتلم لم یفطر لقولهﷺ ثلث لا یفطرن الصیام القیء و الحجامة و الاحتلام الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۹۹، کتاب الصوم)

قال العلامة الحصکفیؒ: او احتلم او انزل بنظر و لو الی فرجها مرارا او بفکر..... لم یفطر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۹۶، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۳۲۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده.

## په روژه کښې له خپلې ښځې سره ملاعبت (لوبې) کولو حکم

**سوال:** په روژه کښې له خپلې ښځې سره لوبې او ملاعبت جائز دی او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دواړه خواوې (مېړ: او ښځه) که د امن په صورت کښې لمس، تقبیل او یو بل په غیږ کښې ونیسي نو څه پروا نه کوي- بیا هم که چېرته د انزال خطره وي نو د اسې افعال هم مکروه دي-

قال محمد رحمه اللّٰه: (و) کره (قبلة) و مس و معانقة و مباشرة فاحشة (ان لم یأمن) المفسد و ان امن لا بأس. (فتاویٰ شامی ج۲، ص۴۱۷، کتاب الصوم، مطلب فیما یکره للصائم)

و لا بأس با لقبلة اذا امن علی نفسه الجماع و الانزال و یکره ان لم یأمن. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۰، کتاب الصوم، الباب الثالث فیما یکره) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده.

## په روژه کښې په هیره سره د خوراك او څښاك حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د روژې په حالت کښې په هیره سره د روژې ضد کار وکړي نو د روژې په حقیقت ئې کوم اثر پرېوځي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** روژه په هغه وخت کښې ماتیږي چه کله د روژې ضد کار په لیدلو سترګو او قصد او وکړی شي- لیکن په هیره سره په خوراك، څښاك او په جماع سره روژه نه ماتیږي-

قال عبد الرحمٰن الجزریؒ: اما النسیان فانهٗ لا یفسد الصیام اصلاً فلا یجب به قضاءٌ و لا کفّارة. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱، ص۵۶۵، باب ما یوجب القضاء دون الکفارة...... الخ)

قال برهان الدین رحمه اللّٰه: اذا اکل الصائم او شرب او جامع ناسیاً لم یفطر. (الهدایة ج۱، ص۱۹۹، کتاب الصوم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۲، کتاب الصوم، الباب الرابع فیما یفسد الخ.

## په حوض کښې د غسل د کولو په وخت کښې د هوا په وتلو سره روژه نه ماتیږي

**سوال:** په یوه حوض کښې د ځان د مینځلو په وخت کښې که چېرته د چا هوا خارجه شي او د استرخاء له وجهې د اوبو د ورننوتلو احتمال پیدا شي نو آیا یواځې د دې احتمال په بناء سره روژه ماتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محض د مفاصلو استرخاء له وجهې د اوبو د ننوتلو په احتمال سره روژه نه ماتیږي لیکن له کراهیت څخه خالي نه ده نو ځکه باید پرهیز ترې وشي-

قال فی الهندیة: و لو فساء الصائم او ضرط فی الماء لا یفسد الصوم و یکره لهٗ ذٰلك هٰکذا فی معراج الدرایة. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۱۹۹، کتاب الصوم، الباب الثالث فیما یکره للصائم)

قال العلامة سید احمد الطحطاویؒ: و لا صام سبعة اشیاء (قوله ذوق شیء) مثله مثلهٗ فساء او ضراطه فی الماء. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۵۵۹، کتاب الصوم)



## په روژه کښې د نسوارو د اچولو حکم

**سوال:** د نسوار په اچولو سره روژه ماتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نسوار خولې ته په اچولو سره د خولې له لارې سره یو ځای کیږي او نس ته ور د اخلیږي کوم چه د روژې د فساد ذریعه ګرځي بلکه د نسوارو عادي خلك نسوار د غذا نعم البدل بولي نو له دې وجهې د نسوارو په کولو سره روژه ماتیږي-

قال العلامة ابن عابدینؒ: اختلفوا فی معنی التغذی قال بعضهم ان یمیل الطبع الی اکله و تنقضی شهوة البطن به و قال بعضهم هو ما یعود نفعه الی صلاح البدن و فائدته فیما اذا مضغ لقمة ثمّ اخرجها ثم ابتلعها. فصل الثانی یکفر لا علی الاول و با لعکس فی الحشیشه لانه لا نفع فیها للبدن و ربما تنقص عقله و یمیل الیها الطبع و تنقضی بها شهوة البطن. (رد المحتار ج۲، ص۴۱۰، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم)

قال شیخ الاسلام ابی بکر بن علیؒ: قوله و من ابتلع الحصاة او الحدید الفطر و لا کفارة علیه ذکره بلفظ الابتلاع لان المضغ لا ینافیه و انما افطر لوجود صورة الفطر و لا کفارة علیه لعدم المعنیٰ و هو قضاء شهوة البطن. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۷۱، فصل فیما یفسد الصوم) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۶۱، باب فی بیان ما لا یفسد الصوم.

## د توپك ګولۍ د روژې ماتوونکې ده

**سوال:** که چېرته د چا په نس کښې د توپك ګولۍ ولګیږي نو آیا روژه ئې پرې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د توپك ګولۍ که چېرته په نس کښې ولګیږي او بلې خوا ته ترې ووځي نو روژه ئې پرې نه ماتیږي البته که چېرته ګولۍ ئې په نس کښې د ننه پاتې شي نو بیا ئې روژه پرې ماتیږي-

قال العلامة شمس الدینؒ: و لو طعن برمح حتیٰ وصل الی جوفه لم یفطره لان کون الرمح بید الطاعن من یمنع و صوله الی باطنه حکماً فان بقی ازج فی جوفه فسد صومه. (المبسوط السرخسی ج۲، ص۹۸)

قال طاهر بن احمد بن عبد الرشیدؒ: و لو طعن برمح فوصل الی جوفه ثم نزاعه لا تفسد صومه و لو بقی الرمح فی جوفه اختلف المشائخ و الصحیح انه لا یفسد صومه هٰذا فی نسخة الامام فخر الدین و فی التجریة یفسد. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۲۵۳، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الصوم) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۲۶۶، باب ما یوجب القضاء و الکفارة.

## په رحم کښې د دوایي اچول روژه ماتوي

**سوال:** که چېرته یوه ښځه د کومې بیمارۍ له وجهې په خپل رحم کښې د علاج په توګه دوایي کښېږدي نو آیا روژه ئې پرې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د علاج په توګه په رحم کښې د دوایي اېښودل جائز دي په دې شرط چه په کومې بلې طریقې سره ئې علاج ممکن نه وي- بیا هم که چېرته دوایي د روژې په حالت

کښې د رحم د ننه کيښودله شي نو روژه ئې پرې ماتيږي- البته د فرج په باندينۍ حصې باندې د دوايي لګول روژه نه ماتوي-

قال طاهر بن احمدؒ: و تكلم المشائخ فى الافطار فى اقبال النساء منهم من قال على الخلاف و منهم من قال تفسد بلا خوف و هو الصحيح. (خلاصة الفتاوى ج۱، ص۲۵۳، كتاب الصوم، الفصل الثالث فيما يفسد الصوم)

قال عالم بن العلاء الانصاریؒ: و تكلم المشائخ فى الافطار فى اقبال النساء منهم من قال هو على هذا الاختلاف و منهم من قال يفسد الصوم بلا خلاف كا لحقنة و هو الصحيح. (فتاوى تاتارخانية ج۲، ص۳۶۵، كتاب الصوم، الفصل الرابع ما يفسد الخ) و مثله فى الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۷۴، باب ما يفسد الصوم.

## د روژتي لپاره د غاښو د کريم استعمالول

**سوال:** د روژتي لپاره د غاښونو د کريم استعمالول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غاښونو په کريم کښې د معجونو ذائقه څکل کيږي بلکه ډير ځله د حلق نه د تيريدو احتمال هم وي نو ځکه د روژې په حالت کښې د غاښونو د کريم استعمال مکروه دی- او که چېرته له حلق څخه د ننه نس ته لاړ شي نو روژه ئې پرې ماتيږي-

قال قاضى خانؒ: و كذا اذا ذاقت شيئاً بلسانها لان فيه تعريض الصوم للفساد. (فتاوى قاضى خان ج۱، ص۹۷، الفصل الرابع فى فيما يكره للصائم و ما لا يكره)

قال ابن الهمامؒ: (قوله لما بينا) من انه تعريض للصوم على الفساد اذ قد يسبق شيء منه الى الحلق فان من حام حول الحمى يوشك ان يقع فيه. (فتح القدير ج۲، ص۲۶۸، باب ما يوجب القضاء و الكفارة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۸۰، باب ما يفسد و ما لا يفسد.

## په بد نظري سره روژه نه ماتيږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام چه که چېرته د روژې په حالت کښې د چا نظر بې ځايه ولګيږي نو آيا روژه ئې پرې ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په حالت کښې د نظر ساتنه هم يو ضروري امر دی- په نظر کښې د بې احتياطۍ له وجهې د روژې په حقيقت کښې خامخا فرق راځي ليکن روژه پرې نه ماتيږي-

قال ابن نجيمؒ: لان عينه ليس بمفطر. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما يفسد الصوم و ما لا يفسد)

قال العلامة فخر الدينؒ: و اما اذا انزل بنظر فلعدم المباشر و لنا ان النظر مقصور عليه متصل بها فصار كالانزال با لتفكر. (تبيين الحقائق ج۱، ص۳۲۳، باب ما يفسد الصوم و ما لا يفسده) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۲۵۷، باب ما يوجب القضاء و الكفارة.

## له غاښونو څخه د وينې بهيدل روژه نه ماتوي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما له غاښونو څخه هر وخت وينې بهيږي نو آيا په دې سره زما په روژه کښې څه فرق راځي او که نه؟ بينوا توجروا-



**الجواب باسم ملهم الصواب:** له غاښونو څخه يواځې د وينې وتل د روژې مفسد نه دی- بلکه په دې کښې تفصيل دا دی چه که چېرته وينه کمه وي او لاړې پرې ډيرې وي نو روژه پرې نه ماتيږي- او که د وينې خوند په حلق کښې محسوس شي نو روژه پرې ماتيږي او همدارنګه که چېرته وينه په لاړې باندې زياتې وي او يا مساوي وي نو روژه پرې ماتيږي ليکن يواځې قضاء در باندې لازميږي نه کفاره-

و فى الهندية: الدم اذا خرج من الاسنان و دخل حلقه ان كانت الغلبة للبزاق لا يضرّه و ان كانت الغلبة للدم يفسد صومه و ان كان سواء افسد ايضاً استحساناً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۰۳، كتاب الصوم، الباب الرابع فيما يفسد و ما لا يفسد)

قال العلامة الحصكفى رحمه اللّٰه: او خرج الدم من بين اسنانه و دخل حلقه يعنى و لم يصل الى جوفه اما اذا وصل فان غلب الدم او تساويا فسد و الا لا الاّ اذا وجد طعمه بزازية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۹۶، كتاب الصوم، باب ما يفسد الصوم و ما لا يفسده) و مثله فى البزازية على هامش الهندية ج۳، ص۹۸، كتاب الصوم، الثالث فيما يفسده و ما لا يفسده.

## د انهيلر په استعمال سره روژه ماتيږي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا د طب په ميدان کښې پوره ترقي شوې ده په خاصه توګه د ساه بندۍ غوندې خطرناکې بيمارۍ په علاج کښې انهيلر (يو خاص ډول ګېس) کامياب ايجاد دی چه د سابندي مريض ته د ضرورت په وخت کښې د ساه بندۍ د ختم کولو لپاره استعماليږي نو آيا د هغه په استعمال سره په روژه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ په وضاحت سره ئې بيان کړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د موجوده انهيلر پمپ په استعمال سره روژه ماتيږي او که چېرته ئې د روژې په حالت کښې د ډيرې مجبورۍ له مخې استعمال کړي نو له رمضان شريف څخه وروسته به د هغې روژې يواځې قضايي راوړي کفاره به پرې نه وي- او بيا هم که چېرته داسې وي چه له دې پرته ئې ګذاره نه کيدله نو بيا دې روژې نه نيسي او د روژې په بدل کښې به فديه ورکوي-

## د روژې په حالت کښې په سترګو کښې دوايي اچول

**سوال:** که چېرته د چا په سترګو کښې سخت تکليف وي نو آيا هغه د روژې په حالت کښې د سترګو دوايي استعمالولی شي او که نه؟ په داسې حال کښې چه له اچولو وروسته د دوايي اثر په حلق کښې محسوسيږي؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د مجبورۍ او اضطرار يعنې د انتهايي تکليف په وخت کښې د روژې د ماتولو اجازه ورکړې ده چه د حاذق او مسلمان طبيب يا ډاکټر په مشوره دې روژه ماته کړي- البته په سترګو کښې د دوايي په اچولو سره روژه نه خرابيږي نو ځکه که چېرته د تکليف په وخت کښې د روژې په حالت کښې په سترګو کښې، څوك دوايي واچوي نو جائز دي او روژه پرې نه ماتيږي اګر که د دې دوايي اثر په حلق کښې هم محسوس شي-

لما فى الهندية: لو افطر شيئاً من الدواء فى عينيه لا يفطر صومه عندنا و ان وجد طعمه فى حلقه. (الفتاوى

الهندیة ج۱، ص۲۰۳، کتاب الصوم، باب ما لا یفسد الصوم)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او ادهن او اکتحل او و ان وجد طعمه فی....... لم یفطر حلقه. قال ابن عابدینؒ قوله ان وجد طعمه فی حلقه ای طعم الکحل او الدهن کما فی السراج و کذا لو بزق فوجد لونه فی الاصح. (رد المحتار ج۲، ص۳۹۵، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم الخ)

## په روژه کښې بیا بیا د غسل کولو او یا د سر د پرې مینځلو حکم

**سوال:** که چېرته د رمضان میاشت د سختې ګرمۍ په موسم کښې راشي آیا روژتي سړی د ګرمۍ د شدت له وجهې بار بار غسل کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سختې ګرمۍ له وجهې د روژې په حالت کښې بار بار غسل کول او بار بار د سر پریمینځل چه اوبه ئې حلق ته لاړې نه شي جائز او مرخص دي۔ په داسې کولو سره په روژه کښې کوم فرق نه راځي۔

عن بعض اصحاب النبیﷺ قال رأیت النبیﷺ امر الناس فی سفره عام الفتح با لفطر و قال اتقوا و لعدوکم و صام رسول اللهﷺ قال ابو بکر قال الذی حدثنی لقد رأیت رسول اللهﷺ با لعرج یصب علی رأسه الماء و هو صائم من العطش او من الحر. (ابو داؤد ج۱، ص۳۲۲، باب الصائم یصب علیه الماء من العطش، کتاب الصوم)

## په روژه کښې خپلې ښځې ته د غیږ ورکـــــــــولو حکم

**سوال:** که چېرته د رمضان په میاشت کښې د روژې په حالت کښې څوك خپلې ښځې ته غیږ ورکړي او یو ځای سره څملي او په دواړو کښې د یوه هم انزال و نه شي نو آیا په داسې کولو سره روژه خرابیږي او که نه؟ مهرباني وکړې د حنفي فقهې په رڼا کښې ځواب راکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په حالت کښې خپله ښځه ښکلول او غیږ ورکول او ورسره څملاستل ممنوع نه دي خو په دې شرط چه پخپل ځان باندې ئې پوره قدرت وي چه جماع به نه کوي۔ او که چېرته ئې په ځان باندې قدرت نه وي نو داسې کول نه دي په کار ځکه چه په ممنوع کار کښې واقع نه شي۔ لهذا په نوموړې صورت کښې که چېرته ښځه او میړه د یوه هم انزال و نه شي نو روژه ئې نه ماتیږي۔ البته په دواړه کښې چه د یوه هم انزال وشي نو روژه ئې فاسدیږي او قضائي ئې پرې لازمیږي۔

لما قال العلامة قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله: یا زن را بوسه کرد یا مس بشهوت کرد اگر انزال شد روزه فاسد شود و الا فاسد نه شود. (ما لا بد منه ص۹۷، کتاب الصوم)



# باب القضاء و الکفاره

## (د قضاء او کفارې احکام او مسئلې)

## په سفر باندې تر روانیدو مخکښې د روژې د خوړلو حکم

**سوال:** آیا د سفر د اراده کوونکي لپاره له روانیدو څخه مخکښې په کور کښې د خوراك او څښاك کول جائز دي او که نه؟ او که چېرته ئې یو څوك په داسې حالت کښې په کور کښې روژه وخوري نو آیا یوازې قضاء پرې لازمیږي او که کفاره هم پرې لازمیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سفر باندې له وتلو څخه مخکښې د روژې خوړل د نه جواز لـــــه وجهې که چېرته یو سړی په کور کښې روژه وخوري او بیا وروسته په سفـــــــر باندې روان شي نو په نوموړي باندې قضاء او کفاره دواړه لازم دي۔ یوازې د سفر اراده په کفاره باندې کوم اثر نـــــــــه شي کولی۔ او بیا که چېرته سفر ته له وتلو څخه وروسته روژه وخوري نو یوازې قضاء پرې لازمیږي نه کفاره۔

لما قال الشیخ ابو اللیث السمرقندیؒ: و لو افطر ثم سافر فعلیه الکفارة. (فتاوٰی نوازل ص۹۹، کتاب الصوم، فصل فیما یفسد الصوم)

لما قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: ان سافر بعد طلوع الفجر لا یفطر ذٰلك الیوم لانه لزمه صومه او هو مقیم فلا یبطله باختیاره فان افطر قبل الخروج فعلیه القضاء و الکفارة بخلاف ما لو افطر بعد الخروج فعلیه القضاء دون الکفارة. (الفتاوی الکاملیة ص۱۶، کتاب الصوم) و مثله فی فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۸۵، کتاب الصوم، الاسباب المبیحة للفطر.

## قصداً د روژې د نه نیولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د رمضان المبارك په عظمت او تقدس کښې شك ولري او قصداً روژه و نه نیسي نو د داسې سړي څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان المبارك روژه په قصد سره د نه نیولو په وجه په سړي قضاء او کفاره دواړه لازمیږي۔ مقدس شریعت په کفاره کښې تر ټولو مخکښې د غلام آزادول مقرر کړي دي او که چېرته ئې د غلام آزادول په وس کښې نه وي نو دوه میاشتې پرله پسې روژې به نیسي۔ او که چېرته ئې د روژې د نیولو طاقت هم نه وي نو بیا دې شپیتو مسکینانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکړي او یا دې د سرسایې د مقدار په برابر هر مسکین ته غنم او یا پیسې ورکړي۔ لیکن دا خبره په ذهن کښې وساتی چه که په هر صورت کښې کفاره ادا کړي نو قضائي روژه به خامخا اګر څوي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لو اکل او شرب ما یتغذی به او یتداوی به فعلیه القضاء و

الکفارة...... و کفارة الظهار. قال العلامة بدر الدین العینیؒ تحت قوله مثل کفارة الظهار ای الکفارة التی تجب با لوقاع مثل کفارة الظهار و هی عتق رقبة فان لم یجد فصیام شهرین متتابعین فان لم یستطع فاطعام ستین مسکیناً لکل مسکین نصف صاع من بر او صاع من تمر الخ. (البنایة شرح الهدایة ج٤، ص٣٠٨، باب ما توجب القضاء و الکفارة)

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: ان جامع فی رمضان اداء او جومع فی احد السبیلین او اکل او شرب غذاء او دواء عمداً او احتجم فظن فطره به فاکل عمداً قضی و کفر ککفارة المظاهر. قال العلامة ابن عابدینؒ تحت قوله ککفارة المظاهر مرتبط بقوله و کفر ای مثلها فی الترتیب فیعتق اوّلاً فان لم یجد صام شهرین متتابعین فان لم یستطع اطعم ستّین مسکیناً. (رد المحتار ج٢، ص٤١٢، مطلب فی الکفارة) و مثله فی طحطاوی ص٦٦، فصل فی الکفارة و ما یسقطها عن الذمة بعد الوجوب.

## په روژه کښې له خپلې ښځې سره د جماع کولو په صورت کښې قضاء او کفاره دواړه لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو سړی د روژې په میاشت کښې د ورځې له خپلې ښځې سره د روژې په حالت کښې جماع وکړي او پړې پښیمانه هم وي نو نوموړي ته څه کول په کار دي؟ او آیا په ښځې باندې هم کفاره لازمه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان المبارك په مقدسه میاشت کښې د ورځې په جماع کولو سره روژه ماتیږي چه په بدل کښې ئې قضاء او کفاره دواړه په سړي لازمیږي۔ په داسې عمل باندې که چېرته میړه او ښځه دواړه راضي وي نو قضاء او کفاره په دواړو لازمیږي او که نه نو بیا د ښځې د مجبورولو په صورت کښې په ښځې باندې یواځې قضاء او په میړه باندې قضایي او کفاره دواړه واجبیږي۔

قال طاهر بن احمدؒ: اذا جامع امرأته متعمّداً فی نهار رمضان فعلیه القضاء و الکفارة اذا توارت الحشفه انزل او لم انزل. (خلاصة الفتاوی ج١، ص٢٥٩، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الخ)

قال برهان الدینؒ: و من جامع فی احد السبیلین عامداً فعلیه القضاء استدراکاً للمصلحة الفائتة و الکفّارة لتکامل الجنایة. (الهدایة ج١، ص٢٠١، کتاب الصوم) و مثله فی بدائع الصنائع ج٢، ص٩١، کتاب الصوم، فصل رکنه.

## له کفارې څخه د ځان ساتنې حیله

**سوال:** یو سړي د خواهشاتو په لومې کښې د راتلو په صورت کښې له خپلې ښځې سره د جماع د کولو اراده وکړه لیکن په رمضان کښې د کفارې د وجوب ډار هم ورسره وو۔ نو له کفارې څخه د بچ کیدو په خاطر هغه یوه حیله جوړه کړه چه اول به خولې ته کاغذ واچوم تر څو چه روژه مې ماته شي او د روژې له ماتولو وروسته ئې له خپلې بي بي سره جماع وکړه نو آیا په دې صورت کښې په نوموړي سړي باندې کفاره شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې کاغذ خولې ته اچولی وي او تیر کړی ئې وي نو حیله ئې



صحیح ده۔ د روژې په ماتولو سره یواځې قضاء پرې واجبیږي او په جماع سره کفاره پرې نه لازمیږي ځکه چه د جماع په وخت کښې د هغه روژه نه وه۔ بیا هم ګناهګاریږي خو خامخا۔ البته که چېرته ئې کاغذ په خوله کښې اېښی وي او تیر کړی ئې نه وي نو بیا به ئې حیله بې فائدې وي او قضاء او کفاره به دواړه پرې لازم وي ځکه چه د کاغذ یواځې په خوله کښې د اېښودلو په صورت کښې روژه نه ماتیږي۔

قال طاهر بن احمدؒ: و لو اکل حصاة او نواة او حجر او مدراً فعلیه القضاء و لا کفارة و کذا لو اکل القطن او الحشیش او التراب او الکاغذ او السفرجل اذا لم یکن مدرکاً. (خلاصة الفتاوی ج١، ص٢٥٥، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد)

لما قال العلامة قاضی خان رحمه اللّٰه: اذا اکل الصائم ما لا یؤکل عادة کا لحصاة و النواة و کا لقطن و الحشیش و التراب و الکاغذ و البزاق...... فسد صومه. (فتاوی قاضی خان ج١، ص١٠٢، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد) و مثله فی الهندیة ج١، ص٢٠٢، الباب الرابع فیما یفسد، کتاب الصوم.

## د روژې په حالت کښې د خولې د کریم د استعمالولو حکم

**سوال:** د منجن (د خولې د ملهم یا کریم) په استعمال سره روژه ماتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منجن استعمال د روژې په حالت کښې د یوه شي د څکلو غوندې حکم لري کوم چه مکروه دی۔ بیا هم که چېرته عادتاً معدې ته ورسیږي نو روژه ئې پرې ماتیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او ذاق شیئاً بفمه و ان کره لم یفطر. قال ابن عابدینؒ تحت قوله ان کره ای الا لعذر کما یأتی. (رد المحتار ج٢، ص٤٠٠، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد فی حکم الاستمناء با لکف)

قال الحصکفیؒ: و کره مضغ علك ابیض ممضوغ ملتئم و الا فیفطر.

قال ابن عابدینؒ: تحته فان کان مما یصل عادة حکم با لفساد لانه کا لمتیقن. (رد المحتار ج٢، ص٤١٦، مطلب فیما یکره للصائم)

لما قال الامام برهان الدین المرغینانیؒ: و من ذاق شیئاً بفمه لم یفطر لعدم الفطر صورة و معنیً یکره لهٗ ذٰلك لما فیه من تعریض الصوم علی الفساد. قال العلامة بدر الدین العینیؒ تحت قوله من تعریض الصوم علی الفساد لانه لا یؤمن ان یصلی الٰی جوفه...... قال ایضاً تحت قوله و مضغ العلك لا یفطر الصائم لانه لا یصل الٰی جوفه و قیل اذا لم یکن ملتئماً یتقتت فیدخل فی حلقه من ذٰلك شیء فیفسد صومُه. (البنایة شرح الهدایة ج٤، ص٤١٧/٤١٨، باب ما یوجب القضاء و الکفارة) و مثله فی امداد الفتاوی ج٢، ص١٤١، کتاب الصوم.

## په روژه کښې د ناس د څکولو حکم

**سوال:** د ناس په څکولو سره په روژه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ او همدارنګه د ناس حقیقت څه شی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ناس د هندي ژبې لفظ دی۔ په فیروز اللغات کښې ئې معنیٰ نسوار لیکلې ده او استعمال د پوزې په ذریعه سره کیږي۔ چونکه د دغو نسوارو ذرات دومره واړه

دي چه د ساه اخیستلو په ذریعه جوف دماغ او جوف د معدې ته رسیږي کوم چه د روژې فاسدوونکی دی- نو ځکه د ناس په څونولو باندې روژه ماتیږي-

لما قال فی الهندیة: و فی دواء الجائفة و الامة اکثر المشائخ علی ان العبرة للوصول الی الجوف و الدماغ لا لکونه رطباً او یابساً حتی اذا علم ان الیابس وصل یفسد صومه و لو علم ان الرطب لم یصل لم یفسد. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۴، الباب الرابع فیما یفسد و ما لا یفسد)

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و ما وصل الی جوف الراس و البطن من الأذن و الانف و الدُبر فهو مفطر با لاجماع و فیه القضاء. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۵۳، الفصل الثالث فیما یفسد الصَوم و فیما لا یفسد) و مثله فی امداد المفتیین ج۱، ص۴۹۲، المعروف بفتاوی دار العلوم دیوبند.

## د لوګي، ګرد او غبار په روژه باندې اثرات

**سوال:** لوګی، ګرد او غبار که چېرته حلق ته داخل شي نو آیا په روژې باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لوګی، ګرد او غبار که چېرته حلق ته بغیر له قصد څخه تیر شي نو روژه پرې نه متاثره کیږي او که چېرته دا داخلیدل په قصد او عمد سره وي نو روژه پرې فاسدیږي او د قضاء موجب ګرځي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او دخل حلقه غبار او ذباب او دخان و لو ذاکراً استحساناً لعدم امکان التحرز عنه و مفاده انه لو ادخل حلقه الدخان افطر ای دخان کان و لو عوداً او عنبراً لو ذاکراً لامکان التحرز عنه. (الدر المختار ج۲، ص۳۹۵، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده)

لمـــا قال العلامة عبد العلی البحر العلوم: و لو دخل ما لا یستطاع الاَحتراز عنه فی الجوف منه کـــا لدّخان و الغبار لا یضر الصوم لان التکلیف بحسب الوسع و اما لو ادخل الدخان کما یعتاد الیوم فی اکثر الناس فینبغی ان یفسد به الصوم خصوصاً دخـــــان التنباك لانه یورث الفرح و تحصل التسکین للمعتادین و دخول الذباب فی الحق من قبیل الدخان عندنا. (رساء الارکان ص۲۱۱، بیان دخول الدخان الغبار فی الجوف) و مثله فی حاشیة الهدایة ج۱، ص۲۰۰، باب ما یوجب القضاء و الکفارة.

## د روژې د طاقت درلودلو تر څنګ فدیه ورکول بې فائدې دی

**سوال:** د کفارې د وجوب په صورت کښې که چېرته یو څوك د روژې طاقت هم ولري نو آیا د فدیې ورکولو باندې ئې غاړې خلاصیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې د نیولو د طاقت له درلودو سره د فدیې ورکول کومه ګټه نه لري- په داسې حالت کښې روژه نیول ضروري دي- بیا هم که چېرته ئې د روژو د نیولو طاقت نه وي نو فدیه ورکول ورته جائز دي-

قال شمس الدین السرخسیؒ: ولو اکره علی اکل وشرب فعلیه القضاء دون الکفارة.

جلد سوم



قال برهان الدین رحمه اللّٰه: و لو کان مخطیاً او مکرها فعلیه القضاء. (الهدایة ج۱، ص۱۹۹، کتاب الصوم، باب ما یوجب القضاء و الکفارة) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۲۵۵، کتاب الصوم.

## جبراً په چا باندې د روژې په ماتولو سره قضاء لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو څوك په چا باندې ظلم وکړي او روژه ئې په زوره پرې ماته کړي نو آیا قضاء او کفاره به دواړه پرې لازم وي او که یواځې قضاء به پرې لازمه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته څوك په چا باندې په زوره روژه وخوري نو کفاره پرې نه لازمیږي البته د همدې ورځې قضاء به پرې لازمه وي-

قال طاهر بن احمد رحمه اللّٰه: و لو افطر و اکثر رایه ان الشمس لم تغرب فعلیه القضاء و الکفارة لان النهار کان ثابتا و قد انضم الیه اکبر رایه فصار بمنزلة الیقین. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۵۶، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الخ)

قـــال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: (الفجر طالع و الشمس لم تغرب) عملاً با لاصل فیهما. قال ابن عابدین رحمه اللّٰه ای فی الاوّل و الثانی فان الاصل فی الاوّل بقاء اللیل، فلا تجب الکفارة و فی الثانی بقاء النهار فتجب عــــــلی احد الروایتین کما علّمت. (شامی ج۲، ص۴۰۵، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۲۲۵، باب ما یفسد الصوم.

## د لمر له پریوتو څخه مخکښې افطار د قضاء موجب دی

**سوال:** یوه سړي د لمر د ډوبیدو په وخت کښې د اختر میاشت ولیدله دا خیال ئې وکړ چه نن خو د اختر ورځ ده او دا میاشت د تیرې شپې ده نو ځکه زمونږ لپاره د روژې نیول جائز نه دي او بیا ئې فوراً روژه ماته کړه او نورو ته ئې هم د روژې د ماتولو دعوت ورکړ نو د نوموړي سړي د روژې حکم څه دی؟ آیا په نوموړي باندې یواځې قضاء لازمیږي او که کفاره او قضاء دواړه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې او اختر دارو مدار په باقاعده د میاشت په لیدلو باندې دی د حساب او کتاب له مخې اختر جوړول د شریعت له مخې جواز نه لري- په نوموړي صورت کښې یواځې د میاشتې په کمیت او کیفیت سره د روژې ماتول مناسب نه دي- که چېرته د مخکښینۍ ورځې باقاعده رؤیت نه وي شوی نو په نوموړي سړي باندې قضاء او کفاره دواړه واجب دي-

## د زوړ والي له وجهې د روژې د نه نیوونکي حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د کمزورۍ او بوډا والي له وجهې د روژې په نیولو باندې قادر نه وي نو آیا که چېرته فدیه ورکړي نو غاړې ئې پرې خلاصیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې سړی چه د ضعف او زوړوالي له وجهې د روژې د نیولو طاقت و نه لري نو د داسې سړي لپاره د روژې په ځای د فدیې ورکول جائز دي کوم چه د یوې روژې په

بدل کښې به نیم صاع یعني یو سل او څلویښت تولې غنم او یا د هغه مروجه قیمت ادا کوي۔

قال عبد الرحمن جزری: الشیخ الفانی الذی لا یقدر علی الصوم فی جمیع فصول السنة یفطر و تجب من کل یوم فدیة طعام مسکین. (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱، ص۵۷۶، کتاب الصوم)

قال فی الهندیة: فا لشیخ الفانی الذی لا یقدر علی الصیام یفطر و یطعم لکل یوم مسکیناً کما یطعم فی الکفارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، کتاب الصوم، الباب الخامس فی الاعذار التی تبیح للافطار) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۱۰۵، کتاب الصوم، فصل فی حکم الصوم المؤقت.

## د مړي په ذمه باندې د روژې د پاتې کیدو حکم

**سوال:** که چېرته یوه مریض ته له مریضۍ څخه تر جوړېدو وروسته دومره وخت پیدا شوی وي چه قضایي ئې پکښې ګرځولی شوای لیکن له دې سره سره ئې د سُستۍ له وجهې روژې و نه نیولې او مړ شو نو په داسې صورت کښې ئې وارثانو لپاره څه کول په کار دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مذکوره مطابق که چېرته د روژې د نیولو وخت ورته پیدا نه شو نو بیا څه ګناه پرې نشته او نه ئې په وارثانو کومه ذمه واري عائد کیږي۔ البته له جوړوالي وروسته وخت ورته پیدا شوی وي او د قدرت د درلودو سره سره ئې روژه و نه نیوله نو د عدة من ایام اخر د پیدا کیدو له وجهې روژې ئې په غاړه پاتې کیږي۔ که چېرته د مرګ په وخت کښې وصیت وکړي نو وارثان به ئې د ترکې له دریمې حصې څخه د ده د وصیت مطابق فدیه خامخا ادا کوي۔ او د وصیت د نه کولو په صورت کښې به مړی ګنهګار وي۔ بیا هم د تبرع او احسان له مخې ئې وارثان له وصیت پرته هم فدیه ادا کولی شي۔

قال محمد بن اسرائیل: لو افطر المریض یقضی بلا فدیة و لو مات قبل البرء لا شیء علیه اذ لم یدرك عِدّة من ایام اُخر و علیه ان یوصی بفدیة مکان کل یوم نصف صاع من یجوز فیها ما یجوز فی صدقة الفطر ورد النّص فیه و یعتبر ذٰلك من ثلث ماله و لو لم یوص و تبرع عنه ورثة جاز و لا یلزمهم بلا ایصاء عندنا (جامع الفصولین ج۲، ص۱۶۸، کتاب الصوم)

قال ابن نجیم: و لا قضاء ان ماتا علیهما) ای و لا قضاء علی المریض و المسافر اذا ماتا قبل الصحة و الاقامة لانهما لم یدرکا عدّة من ایّام اُخر. فلم یوجد شرط وجوب الاداء فلم یلزم القضاء قید بهٖ لانه لو صح المریض و اقام المسافر و لم یقض حتی مات لزمه الایصاء بقدره و هو مصرح بهٖ فی بعض نسخ المتن لوجود الادراك بهٰذا المقدار. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۳، فصل فی العوارض) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۶۲، کتاب الصوم، الفصل الرابع فی النذر.

## د روژې په حالت کښې غاښ ته د دوایي اچولو حکم

**سوال:** د سخت درد له وجهې که چېرته څوك پخپل غاښ کښې دوایي واچوي او یا د غاښ له ایستلو وروسته ئې تکلیف د برداشت وړ نه وي نو روژه ماتولی شي او که نه؟ او آیا په دې سره یو ائې قضایي لازمیږي او که کفاره هم؟

**...باسم ملهم الصواب:** د غاښ درد که چېرته د برداشت وړ نه وي نو په داسې حالت کښې د



دوایي استعمالول جائز دي او د هغه لپاره د روژې ماتول هم جائز دي چه له دې وجهې یوائې قضاء پرې لازمیږي نه کفاره۔

قال قاضی خان: لا فرق بین الرطب و الیابس اذا وصل الجوف فسد صومه و ان لم یصل لا یفسد و ذکر فی الاصل انهٗ یفسد الصوم مطلقاً بناء علی الغالب و الغالب هو الوصول الی الجوف و ذکر الشرط فی تفسیر المجدد. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۰، الفصل الخامس فیما لا یفسد الصوم)

قال عالم بن العلاء: ان فعل ذٰلك به من غیر اختیاره او باختیاره الا ان به عذر الا تلزمه الکفارة. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۶۵، کتاب الصوم، الفصل الرابع فیما یفسد الخ) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۸۲، فصل فی العوارض.

## په شرمګاه کښې د ګوتې په داخلولو سره د روژې حکم

**سوال:** که چېرته یوه ښځه پخپل قُبُل کښې او یا سړی پخپل دُبر کښې ګوته ننه باسي نو په دې سره ئې روژه خرابیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ګوته د داخلولو په وخت کښې وچه وي نو په روژه کښې ئې کوم فرق نه راځي۔ البته که چېرته ئې خپله ګوته په تیلو او یا اوبه باندې غوړه کړې وي او داخله کړې ئې وي نو په دې سره ئې روژه ماتیږي۔ لیکن یوائې قضاء پرې لازمیږي او کفاره نه۔ بیا هم له دې څخه په هر وخت کښې ځان ساتنه ضروري ده۔

قال فخر الدین الزیلعی: لو ادخلت الصائمة اصبعها فی فرجها او دبرها لا یفسد علی المختار الا ان تکون مبلولة بماء او دهن. (تبیین الحقائق ج۱، ص۳۳۰، باب ما یفسد الصوم)

قال العلامة الحصکفی: (او ادخل اصبعه الیابسة فیه) ای دبره او فرجها و لو مبتلة فسد. (شامی ج۲، ص۳۹۷، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۶۰، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الخ.

## د ښځې لپاره د روژې د کفارې طریقه

**سوال:** که چېرته ښځې ته د کفارې د اداکولو په دوران کښې حیض راشي نو آیا نوموړې به له سره دوباره روژې نیسي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفارې د اداکولو په وخت کښې که چېرته ښځې ته حیض راشي نو د حیض غیر اختیاري والی د روژې په توالیت (پرله پسې والي) باندې کوم اثر نه کوي۔ بیا هم د حیض له ختم کیدو سره فوراً به روژه شروع کوي او ځنډ ترې وشو نو بیا به ئې له سره شروع کوي۔

قال العلامة شمس الدین السرخسی: فان کانت امرأة فافطرت فیما بین ذٰلك للحیض لم یکن علیها استقباله. (مبسوط سرخسی ج۳، ص۸۱، کتاب الصوم)

قال ابن نجیم: و کذا فی کفارة القتل و الظهار للنّص لانها لا تجد شهرین عادة لا تحیض فیهما لٰکنها اذا تطهرت تصل بما مضٰی فان لم تصل استقبلت. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۷، باب ما یفسد الصوم....... الخ) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۶، الفصل الخامس فیما یفسد الصوم.

## په کفاره کښې تداخل ممکن دی

**سوال:** د رمضان په میاشت کښې څو ځله د روژې د ماتولو او یا په ګڼو رمضانونو کښې څو ځله څوك جماع وکړي او یا روژې وخوري نو د دغو ګڼو روژو په کفارې کښې تداخل ممکن دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفارې د تداخل په باره کښې د فقهاء کرامو ګڼ قولونه دي۔ ظاهر الروایت او محتاط قول دا دی چه د هرې روژې به ځانته ځانته کفاره ادا کوي۔ بیا هم اکثره فقهاء کرام په کفاره کښې د تداخل صورت اختیار کړی دی۔ نو ځکه په کفاره کښې تداخل مرخص دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو تکرر فطره و لم یکفر للاوّل یکفیه واحدة و لو فی رَمَضانین عند محمدؒ و علیه الاعتماد بزازیة و مجتبٰی و غیرهما و اختار بعضهم للفتوٰی ان الفطر بغیر الجماع تداخل و الا لا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۱۳، کتاب الصوم، مطلب فی الکفارة)

قال ابن نجیمؒ: و لو جامع مرارا فی ایّام من رمضان واحد و لم یکفر کان علیه کفارة واحدة لانها شرعت للزجر و هو یحصل بواحدة فلو جامع و کفر ثم جامع مرة آخر فعلیه کفارة اخرٰی فی ظاهر الروایة للعلم بان الزجر لم یحصل با لاوّل و لو جامع فی رمضانین فعلیه کفارتان و ان لم یکفر للاولٰی فی ظاهر الروایة و هو الصحیح. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۷، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۱۰۱، کتاب الصوم، فصل فی حکم فساد الصّوم.

## د روژې په حالت کښې د جماع مع حائل حکم

**سوال:** په رمضان کښې که چېرته له ښځې سره د جماع د کولو په وخت کښې څه شی حائل وي نو آیا به دې سره کفاره ساقطیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د یوه شي د حائل والي سره سره حرارت او لذت محسوسیده نو له حائل پرته او له حائل سره د جماع یو حکم دی۔ په داسې کولو سره قضاء او کفاره دواړه لازمیږي۔ بیا هم د حائل په صورت کښې که چېرته حرارت نه محسوسیده نو یوائې قضاء به واجبه وي او کفاره نه۔

قال ابن نجیمؒ: کذا فی المعراج و المراد با للمس اللمس بلا حائل فان مسها وراء الثیاب فامنٰی فان وجد حرارة جلدها فسد و الا فلا. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲/۲۷۳، باب ما یفسد و ما لا یفسد)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قوله و لو بحائل لا یمنع الحرارة. نقیض ما بعد لو و هو عدم الحائل المذکور اولٰی با لحکم و هو وجوب القضاء لکن لا تظهر الاولویة با لنظر الٰی عدم الکفارة مع ان الکلام فیما یوجب القضاء دون الکفارة و قید الحائل بکونه لا یمنع الحرارة لما فی البحر لو مسها وراء الثیاب فامنٰی فان وجد حرارة جلدها فسد و الا فلا. (شامی ج۲، ص۴۰۴، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۴، کتاب الصوم، الباب الرابع فیما یفسد الصوم الخ.



## اغلام بازي (لواطت) د قضاء او کفارې دواړه موجب دی

**سوال:** آیا د لواطت غوندې په قبیح عمل باندې کفاره واجبیږي او که یوائې قضاء کافي ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضاء شهوت د محل مشتهات والی ضروري دی کوم چه احد السبیلین دی۔ داسې ځایونه کله چه په روژه کښې استعمال کړی شي نو کفاره او قضاء دواړه واجبیږي۔ لهذا په نوموړي صورت کښې دواړه لازم دي۔

قال العلامة فخر الدین الزیلعیؒ: و قوله او جومع نص علی انها تجب علی المفعول به و علی المرأة ان کان بطوعها. (تبیین الحقائق ج۱، ص۳۲۷، باب ما یفسد الصوم)

قال العلامة قاضیخانؒ: و ان جامعها فی دبرها او جامع امته فی دبرها متعمداً علیه القضاء و الکفارة انزل او لم انزل. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۲، الفصل الخامس فیما یفسد الصوم) و مثله فی الاشباه و النظائر ج۲، ص۷۹، کتاب الصوم.

## په روژه کښې د زنا په کولو سره د قضاء او کفارې د وجوب حکم

**سوال:** په روژه او غیر روژه کښې په ظاهره سره د زنا په کولو سره په انسان باندې حد جاري کیږي۔ نو آیا د حد د اجراء په وجه د کفارې په وجوب باندې کوم اثر لویږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې په حالت کښې له خپلې ښځې او یا له پردۍ ښځې سره د زنا په کولو سره د قضاء او کفارې په واجب والي کښې کوم فرق نه راځي۔ په داسې حال کښې د حد د اجراء مسئله ځانته ده کومه چه د روژې په قضایي او کفاره کښې هیڅ اثر نه شي اچولی۔ بیا هم د جبر او اکراه په صورت کښې په ښځې باندې کفاره نه واجبیږي۔

قال العلامة طاهر بن احمدؒ: و ان کانت المرأة مکرهة فعلیها القضاء دون الکفارة و لو کان الرجل مکرها علی الجماع فعلیه الکفارة فی قول ابی حنیفةؒ الاوّل ثم رجع و قال علیه القضاء دون الکفارة و هو قولهما و علیه الفتوٰی. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۹، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الصوم)

قال فی الهندیة: و لو مکنت نفسها من صبیّ او مجنون فزنی بها فعلیها الکفارة با لاتفاق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۵، کتاب الصوم، النوع الثانی ما یوجب القضاء و الکفارة) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۳۲۷، باب ما یفسد الصوم.

## له ځناور سره د بد فعلي په کولو سره د روژې حکم

**سوال:** د یوه ځناور په وطی کولو باندې روژه فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ځناورو په وطی کولو باندې روژه یقینا فاسدیږي او قضاء ئې لازمیږي لیکن کفاره نه لازمیږي۔ بیا هم په نفس د خول باندې روژه نه فاسدیږي۔ لیکن دا فعل په هر صورت کښې حرام دی۔

قال العلامة قاضیخانؒ: و کذا اذا جامع بهیمة و لم ینزل او میتة و لم ینزل الخ و ان انزل فی هٰذه الوجوه کان علیه القضاء دون الکفارة. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۰، الفصل الخامس فیما لا یفسد الصوم)

قال عالم بن العلاء رحمه اللّٰه: و لو جامع میتة او بهیمة فلا کفّارة علیه انزل او لم ینزل. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص ۳۷۱، کتاب الصوم، الفصل الرابع فیما یفسد) و مثله فی شامی ج۲، ص۳۹۹، کتاب الصوم، مطلب فی حکم الاستمناء با لکف.

## له جماع نه بغیر په انزال سره یواځې قضاء واجبیږي

**سوال:** د احد السبیلین نه پرته که چېرته په کوم حرکت سره د چا انزال وشي نو آیا قضاء او کفاره دواړه پرې واجبیږي او که یواځې قضاء پرې لازمیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کفاره چونکه یوه عظیمه جرمانه ده او د جرم نوعیت ته به کتل کیږي او حکم به پرې لګول کیږي۔ له احد السبیلین نه پرته په بلې طریقې سره په انزال باندې چونکه شهوت په کامله توګه نه حاصلیږي نو ځکه په دې باندې یواځې قضاء لازمیږي او کفاره نه پرې لازمیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: او جامع فیما دون الفرج و لم ینزل یعنی فی غیر السبیلین کسرة و فخذ و کذا الاستمناء با لکف (او ادخل ذکره فی بهیمة) او میتة من غیر انزال او مسّ فرج بهیمة او قبلها فانزل او افطر فی احلیله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۹۸/۳۹۹، کتاب الصوم، باب ما یفسد الصوم)

قال العلامة الکاسانیؒ: و لو جامع بهیمة فانزل فسد صومه و علیه القضاء و لا کفّارة علیه لانه و ان وجد الجماع صورة و معنی و هو قضاء الشهوة لٰکن علی سبیل القصور لسعة المحل و لو جامعها و لم ینزل لا یفسد الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۹٤، کتاب الصوم، فصل فی رکنه) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسده.

## په غیر رمضان کښې د روژې په ماتولو سره یواځې قضاء لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو څوک د رمضان له روژې نه علاوه پرته له کوم شرعي عذر خپله روژه ماته کړي نو آیا یواځې قضاء پرې لازمیږي او که کفاره هم پرې لازمیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان نه علاوه په نورو میاشتو کښې د روژې په ماتولو سره یواځې قضاء واجبیږي اګر که هغه روژه د فرضي روژې قضایي وي او که نفلي وي یا نذري وي کفاره پرې نه واجبیږي۔ کفاره یواځې د رمضان له میاشتې سره ځانګړې شوې ده۔

و فی الهندیة: و لا کفارة بافساد صوم غیر رمضان کذا فی الکنز. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۵، کتاب الصوم، باب المتفرقات)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: ان الکفارة تعلقت بجنایة الافطار فی رمضان علی وجه الکمال. (الهدایة ج۱، ص۲۱۹، باب ما یفسد الصوم الخ. و مثله فی فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۳، الفصل الخامس فیما یفسد الصوم.

## په سفر کښې د روژې په نه نیولو سره یواځې قضاء واجبیږي

**سوال:** که چېرته یو څوک د سفر په حالت کښې روژې و نه نیسئ نو د اسې سړي لپاره د مقدس شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسافر لپاره د سفر په حالت کښې د روژې نه نیول مرخص دي لهذا که چېرته یو څوک د سفر په حالت کښې روژې و نه نیسي نو یواځې قضاء پرې واجبیږي کفاره نه۔

قال قاضی خان رحمه اللّٰه: لو اصبح المقیم صائماً ثم سافر فافطر بعد ذٰلك لا کفّارة علیه. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰٤، الفصل السابع فیما یسقط الکفارة و ما لا یسقط)

قال عالم بن العلاء رحمه اللّٰه: المسافر قدم مصره و هو صائم فافتی ان صومه لا یجزیه فافطر بعد ذٰلك متعمّداً لا کفارة علیه. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۲، ص۳۷۹، کتاب الصوم، الفصل الخامس وجوب الکفارة) و مثله فی شامی ج۲، ص۴۰۸، کتاب الصوم، مطلب فیما یکره للصائم.

## په استمناء بالید سره د انزال په صورت کښې قضاء لازمیږي

**سوال:** په روژه کښې که چېرته یو څوک استمناء بالید (د موټي په وهلو سره انزال) وکړي نو آیا په نوموړي باندې کفاره هم واجبیږي او که یواځې قضاء پرې واجبه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په استمناء بالید کښې چونکه د شهوت پوره حاصلیدل نه وي نو ځکه کفاره پرې نه واجبیږي۔ بیا هم قضاء به ئې خامخا راګرځوي او که چېرته ئې انزال و نه شي نو قضاء هم نشته۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا الاستمناء با لکف. قال ابن عابدینؒ ای فی کونه لا یفسد لٰکن هٰذا اذا لم ینزل اما اذا انزل فعلیه القضاء کما سیصرح به و هو المختار. (شامی ج۲، ص۳۹۹، کتاب الصو، مطلب فی حکم الاستمناء با لکف)

قال قاضی خانؒ: و کذا اذا جامع بهیمة و لم ینزل او میتة و لم ینزل او ناکح بیده و لم ینزل او جامع فیما دون الفرج و لم ینزل و ان انزل فی هٰذه الوجوه کان علیه القضاء دون الکفارة. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۰، الفصل الخامس فیما لا یفسد الصوم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۵، الباب الرابع فیما یفسد و ما لا یفسد.

## په غلطي سره خوراك او څښاك کفاره نه لازموي

**سوال:** که چېرته په هیره سره څوک خوراك یا څښاك او یا د انزال له سبب څخه پرته ئې وګنله چه اوس مې روژه ماته شوې ده نو ځکه ما ته خوراك او څښاك کوم پروا نه لري نو آیا په د اسې سړي باندې په د اسې قصداً خوراك سره کفاره واجبیږي او که قضاء؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته چا په هیره سره خوراك او څښاك وکړ او یا ئې بغیر له کوم سبب څخه انزال وشو نو روژه ئې باقي پاتې ده۔ البته که چېرته ئې وروسته په دې غلط فهمۍ کښې خوراك وکړ چه زما روژه ماته شوې ده نو محض د غلط فهمۍ له مخې خوراك او څښاك د کفارې موجب نه دی بلکه یواځې به د هغې ورځې قضاء پرې واجبه وي۔ کفاره د اسې سزا ده چه په قصد او عمد سره د کوم جرم په ارتکاب باندې ورکول کیږي۔

قال طاهر ابن احمدؒ: و لو نظر الی محاسن المرأة فانزل فظن ان ذٰلك فطره فاکل بعد ذٰلك فهو کا لقیء و قد ذکرنا حکمه و قال البعض ان کان عالماً علیه القضاء و الکفارة عند الکل و ان کان جاهلاً علیه القضاء دون الکفارة.

(خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۹، کتاب الصوم، الفصل الثالث فیما یفسد الخ)

قال قاضی خانؒ: و لو نظر الی محاسن المرأة فانزل او تفکر فانزل فانزل فظن ان ذٰلك فطره فاكل متعمداً فهو بمنزلة القیء. و قال بعضهم ان کان عالماً علیه القضاء و الکفارة عند الکل و ان کان جاهلاً علیه القضاء دون الکفارة. (فتاوٰی قاضی خان ج۱، ص۱۰۵، الفصل السابع فیما یقسط الکفارة و ما لا یقسط) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۶، کتاب الصوم.

## د سګـــــریټو څکول روژه ماتوي

**سوال:** آیا د سګریټو په څکولو سره روژه ماتیږي او که نه؟ او که چېرته ماتیږي نو یوائې به قضاء لازمیږي او که کفاره هم؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سګریټو لوګی د حلق په ذریعه حلق ته د ننه ځي چه د روژې د فساد سبب ګرځي۔ لهذا د سګریټو څکول د روژې ماتوونکی دی۔ بیا هم په دې صورت کښې قضاء لازمیږي کفاره نه۔

قال علاؤ الدینؒ: و لو دخل الغبار او الدخان او الرائحة فی حلقه لم یفطر و ان ادخله حلقه متعمّداً. روی عن ابی یوسفؒ انه ان تعمد علیه القضاء و لا کفارة علیه. (بدائع الصنائع ج۲، ص۹۰، کتاب الصوم، فصل رکنه)

قال عبد الرحمٰن الجزائریؒ: شرب الدخان المعروف و تناول الافیون و الحشیش و نحو ذٰلك فان الشهوة فیه ظاهرة. (الفقه علی مذاهب الاربعة ج۱، ص۵۶۰، کتاب الصوم) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۴۱۰، کتاب الصوم، باب فیما یفسد الخ.

## د بې خبرۍ په حـــالت کښې د سهار تر ختو وروستـــــه د خوراك او څښاك حکـــــم

**سوال:** که چېرته څوك د رمضان په میاشت کښې په ناخبرۍ سره د صبح صادق له راختو نه وروسته خوراك وکړي او حال دا چه ګمان ئې دا وي چه تر اوسه صبح صادق نه دی راختلی۔ نو په دې صورت کښې د نوموړي د روژې څه حکم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې د نیولو ابتداء د صبح صادق د راختو څخه کیږي۔ چونکه په نوموړي صورت کښې موصوف د غلط فهمۍ له مخې ګهیځ له راختو نه وروسته خوراك کړی دی نو ځکه ئې روژه ماته شوې ده او یوائې به د دې روژې قضاء پرې لازمه وي کفاره نه۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا تسحر و هو یظن ان الفجر لم یطلع فاذا هو قد طلع الخ علیه القضاء...... و لا کفارة علیه لان الجنایة قاصرة لعدم القصد. (الهدایة ج۱، ص۲۰۷، باب ما یوجب القضاء)

و لو قدم مسافرٌ او طهرت حائض او تسحر ظنه لیلاً و الفجر طالع او افطر کذٰلك و الشمس حیّة امسك یومه و قضٰی و لم یکفر کاکله عمداً بعد اکله ناسیاً و نائمة و مجنونة وطئتا. (تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق ج۱، ص۳۴۱، کتاب الصوم)

## چه څوك د فدیې ورکولو وس هم و نه لري نو څه باید وکړي؟

**سوال:** که چېرته یو سړی د فدیې د ورکولو وس و نه لري او له روژې نیولو څخه هم ډاکټر منع کړی وي نو دا سړی به څه کوي؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یو سړی دومره مریض یا ضعیف وي چه د روژې د نیولو طاقت و نه لري او مسلمان ډاکټر د روژې له نیولو څخه هم منع کړی وي نو بیا په نوموړي باندې د فدیې ورکول واجب دي لیکن که چېرته د فدیې د ورکولو وس ئې هم نه وي نو بیا دې په کثرت سره استغفار وایي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و للشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر و یفدی وجوباً...... لو موسراً و الا یستغفر الله. قال ابن عابدینؒ (قوله و الا یستغفر الله) هٰذا ذکره فی الفتح و البحر عقیب مسئلة نذر الأبد اذا اشتغل عن الصوم با لمعیشه فا لظاهر انه راجع الیها دون ما قبلها من مسئلة الشیخ الفانی لانه لا تقصیر منه بوجه. (رد المحتار ج۲، ص۴۲۷، فصل فی العوارض)

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و للشیخ الفانی و هو یفدی فقط. قال ابن نجیمؒ تحته...... و ان لم یقدر علی الاطعام لعسرته یستغفر الله تعالٰی. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۶، کتاب الصوم، فصل فی العوارض)

## مسافر یا مریض ته د روژې د قضاء د وخت نه پیدا کیدو حکم

**سوال:** که چېرته یو مسافر له سفر څخه په واپسي باندې او یا مریض ته له جوړیدو څخه فوراً وروسته د فرض روژې د قضاء موقع پیدا نه شي نو آیا په نوموړي سړي باندې د فدیه ورکول واجب دي او که به معاف وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مرض او سفر کښې د روژې خوړل جائز دي چه قضـــــاء ئې بیا د جوړیدو او کورته راتلو کښې واجب دی۔ اوس که چېرته کوم مریض یا مسافر ته د قضایي د ګرځولو وخت او موقع پیدا نه شي او مړ شي نو په دې ســــړي باندې څه مؤاخذه نشته۔ البته که چېرته د موقع له پیدا کیدو سره سره روژه و نه نیسي نو له مرګ وروسته ئې فدیه ورکول لازم دي۔

و فی الهندیة: و لو فات صوم رمضان بعذر المرض او السّفر و استدام المرض و السفر حتی مات لا قضاء علیه...... و ان بری المریض او قدم المسافر و ادرك من الوقت بقدر ما فاته یلزمه قضاء جمیع ما ادرك فان لم یصم حتٰی ادرکه الموت فعلیه ان یوصی با لفدیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، الباب الخامس فی الاعذار الذی یبیح للافطار)

قال العلامة الحصکفیؒ: فان ماتوا فیه ای فی ذٰلك العذر فلا تجب علیهم الوصیة با لفدیة لعدم ادراکهم عدّة ایام اخر و لو ماتوا بعد زوال العذر وجبت الوصیة بقدر ادراکهم عدة ایام اُخر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۲۴، فصل فی العوارض) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۸۵، فصل فی الاسباب المبیحة للفطر.

## د رمضان نه علاوه روژو په قصداً ماتولو سره یوائې قضاء لازمیږي

**سوال:** که چېرته یو سړی په قصد سره د غیر رمضان د میاشتې روژه وخوري نو آیا په نوموړي سړي باندې کفاره هم واجبه ده او که یوائې قضاء پرې واجبه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قصداً روژې په ماتولو سره د کفارې وجوب یوائې د رمضان له روژې سره خاص دی۔ له دې پرته چه کومه روژه هم په قصد سره ماته کړی شي نو کفاره پرې نشته۔ البته د هم هغې ورځې قضاء لازمه ده۔

قال العلامة ابن الهمامؒ: و لیس فی افساد صوم غیر رمضان کفّارة لان الافطار فی رمضان ابلغ فی الجنایة فلا یلحق به غیره. (فتح القدیر ج۲، ص۲۶۵، باب ما یوجب القضاء و الکفارة)

قال العلامة ابن العلاء الانصاریؒ: و لیس فی افساد الصوم فی غیر رمضان کفارة. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۷۷، الفصل الخامس فی وجوب الکفارة فی افساد الصوم) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۵، باب المتفرقات.

## د سګریټو یا چلم په څکـــــــولو سره د روژې د ماتولو حکم

**سوال:** د سګریټو او یا چلم په څکولو سره د روژې ماتیدل خو معلومه خبره ده۔ اوس پوښتنه دا ده چه کوم سړی د روژې په حالت کښې سګریټ او یا چلم وڅکوي نو په هغه باندې قضاء او کفاره دواړه واجب دي او که یو اځې قضاء پرې لازمه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چلم او سګریټ نوشي دواړه روژه ماتوي چه قضاء پرې لازمي او کفاره نه۔ لیکن که چېرته د چلم څکول د تلذذ او یا د نفس د شهوت او یا د بلې نفعې لپاره وڅکوي نو په دې صورت کښې قضاء او کفاره دواړه پرې لازمیږي۔

لـــــما قال العلامة الحصکفیؒ: انهٗ لو ادخل حلقه الدُّخان افطر...... و یمنع من بیع الدخان. و شاربه فـــــی الصوم لا شك یفطر. و یلزمه التکفیر لو ظن نــــــافعاً. کذا دافعاًشهوات بطن فقرروا. (رد المحتار ج۲، ص۳۹۵، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد)

قال الشیخ المفتی عزیز الرحمٰنؒ: الجواب: د حُقې په څکولو سره روژه ماتیږي او قضاء لازمیږي او په ځینو صورتونو کښې کفاره هم پرې لازمیږي۔ (یعنې که چېرته حُقه ګټمنه وبولي نو کفاره او قضاء دواړه لازمیږي او که نه نو بیا یو اځې قضاء لازمیږي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۴۱۹، مسائل مفسد الصوم)

## د سفر په نیت له کور څخه د وتلو نه لږ وخت وروسته بیرته کورته راتلل او د روژې د خوړلو په صورت کښې د قضاء او کفارې حکم

**سوال:** یوه سړي د سفر په نیت سره له کوره ووت لیکن په لار کښې ئې د کوم ضروري کار ور په یادیدو سره دلږ وخت لپاره کورته راغی او همدلته ئې روژه ماته کړه نو آیا د ده لپاره د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سفر په حالت کښې د روژې خوړل جائز دي اګر که هغه سفر د تکلیف سفر وي او که د راحت او آرام سفر۔ لیکن په صورت مسئوله کښې نوموړي سړي په کور کښې د ننه روژه ماته کړې ده کوم چه د اقامت حالت دی نو ځکه په نوموړي باندې قضاء او کفاره دواړه لازمیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: اذا دخل مصر نیة السفر فافطر فانه یکفر ای قیاساً لانه مقیم عند الاکل حیث رفض سفره با لعود. (ردّ المحتار ج۲، ص۱۳۳، فصل فی العوارض)

قـــــال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو سافر فی نهار رمضان و لم یفطر حتیٰ تذکر شیئاً فی منزلــــــة قد نسیه فرجع الی منزله و اکل شیئاً ثم خرج من المنزل فعلیه القضاء و الکفارة کا لمقیم اذا اکل ثم سافر.



(خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۷، الفصل الثالث فیما یفسد الصوم و ما لا یفسد الخ) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، الباب الخامس فی الاعذار المبیحة للفطر.

## نوي مسلمـــــــان شوي ته د ویرې له وجهې د روژې د خـــــوړلو په صورت کښې د قضـــــاء او کفارې حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی نوی مسلمان شوی وي او له خپلې کورنۍ څخه د دې خوف او ویرې له وجهې روژه و نه نیسي تر څو چه کورنۍ ئې د اسلام له راوړلو څخه خبره نه شي نو آیا په نوموړي باندې قضاء او کفاره دواړه لازم دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کلمه طیبه په ویلو سره یو انسان د اسلام د ائرې ته د اخلیږي چه له مخې ئې په نوموړي باندې د اسلام په ټولو احکاماتو باندې پوره عمل کول لازم ګرځي۔ د صورت مسئوله مطابق نوی مسلمان شوی د اسلام د احکاماتو مکلف دی نو ځکه د روژې د نه نیولو په صورت کښې قضاء او کفاره دواړه پرې لازمیږي۔

لما فی الهندیة: اذا اکل متعمداً ما یتغذی به او یتداوی به یلزمه الکفارة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۵، کتاب الصوم، الباب الرابع)

قال العلامة قاضی خانؒ: اذا اکل متعمداً ما یتغذی به او یتداوی به فا لخبز و الاطعمة او الاشربة او الادهان او البان علیه الکفارة عندنا. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۱۲، الباب فی ما یفسد الصوم الخ) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۵۶، الفصل الثالث فی ما یفسد الصوم الخ.

## د روژې له قصداً ماتولو وروسته د مرض له وجهې چه یو څوك د روژې د نیولو قابل پاتې نه شي نو یو اځې قضاء پرې لازمه ده

**سوال:** که چېرته څوك قصداً او عمداً روژه وخوري او په همدې وخت کښې په د اسې مرض مبتلا شي چه د روژې د نیولو قابل پاتې نه شي نو آیا په د اسې سړي باندې به کفاره واجبه وي او که قضاء؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په قصد سره د روژې ماتولو په صورت کښې کفاره په هغه وخت کښې واجبیږي چه کله د کفارې ساقطوونکی کوم عمل پیدا نه شي۔ په نوموړي صورت کښې مرض کوم چه د کفارې ساقطوونکی دی نو ځکه د مرض په حالت کښې کفاره ساقطیږي۔ البته د همدې ورځې قضاء به پرې لازمه وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: انما یکفر ان نوی لیلاً و لم یکن مکرهاً و لم یطرء مسقط کمرض و حیض. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۱۲/۴۱۳، مطلب فی الکفارة)

و فی الهندیة: و الصحیح اذا افطر ثم مرض مرضاً لا یستطیع معه الصوم تسقط الکفارة عندنا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۵، الفصل السابع فیما یسقط الکفارة و ما لا یسقط) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۴۲۸، مسائل مفسد الصوم.

## باب اعذار المبیحه للافطار

### (باب دی په بیان د هغو عذرونو چه د روژې ماتول جائز گرځوي)

### د ناقابل برداشت تکلیف په وخت کښې د روژې د خوړلو حکم

**سوال:** که چېرته د مرض د شدت له وجهې چا ته د روژې نیول مشکل شي نو آیا خوړل ئې ورته جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم ناقابل برداشت تکلیف له وجهې د روژې خوړل پروا نه لري بلکه په داسې حالت کښې د روژې خوړل بهتر وي تر څو چه د هلاکت یعنې مر کېدو موجب و نه گرځي۔ البته که چېرته د روژې د نیولو طاقت ئې وي نو نیول ئې ورته بهتر دي۔

قال فی الهندیة: المریض اذا خاف علی نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر با لاجماع و ان خاف زیادة العلة و امتداده فکذلك عندنا و علیه القضاء اذا افطر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، کتاب الصوم، الباب الخامس فی الاعذار)

قال ابن عابدین رحمه الله: (تحت قوله و خادمة) اذا اشتدّ الحرّ و خاف الهلاك فله الافطار. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۴۲۲، کتاب الصوم، فصل فی العوارض) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۸۲، فصل فی العوارض.

### د حائضه لپاره امساك ضروري نه دی

**سوال:** د صبح صادق له راختو نه وروسته که چېرته ښځې ته حیض ورشي نو د شریعت له مخې ښځې ته د ورځې د پاتې حصې د امساك حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له صبح صادق نه وروسته چه د ښځې حیض شروع شي نو په دې سره ئې روژه ختمیږي۔ لهذا د داسې ښځې لپاره خوراك او څښاك جائز دي۔ امساك ورته ضروري نه دی۔ بیا هم نوموړې ښځه به له نورو روژتیانو څخه په پټه خوراك او څښاك کوي۔

قال حسن بن عمار بن علی الشرنبلالیؒ: و من له نوبة حمی او عادة حیض لا باس بفطرة علی ظن وجوده. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۵۶۳، کتاب الصوم)

قال العلامة ابی بکر بن علیؒ: و اذا حاضت المرأة افطرت و قضت و کذا اذا انفست و هی تاکل سراً او جهراً و لا یجب علیه التشبه. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۷۷، کتاب الصوم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، کتاب الصوم، الباب الخامس فی الاعذار الخ.

### مسافر باید د افطار په برخه کښې په عزیمت عمل وکړي

**سوال:** د سفر په دوران کښې د مسافر لپاره د روژې خوړل بهتر دي او که نیول؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روژې نیول او نه نیول د مسافر په حالت پورې اړه لري۔ چه په کوم یو کښې د هغه لپاره سهولت وي هغه طریقه دې غوره کړي۔ بیا هم که چېرته شدید ضرورت نه وي نو نیول ئې ورته بهتر دي او د اعزیمت دی۔



قال برهان الدین المرغینانیؒ: و ان کان مسافراً لا یستضرّ با لصوم فصومه افضل و ان افطر جاز لان السفر لا یعری عن المشقّه الخ. (الهدایة ج۱، ص۲۰۱، کتاب الصوم)

قال ابن نجیمؒ: و للمسافر و صومه احب ان لم یضره ای جاز للمسافر الفطر. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۲، کتاب الصوم) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص۴۲۱، کتاب الصوم، فصل فی العوارض.

### د سخت مریض لپاره د روژې خوړل جائز دي

**سوال:** که چېرته څوك د وینې په فشار (بلډ پریشر) او یا د دې غوندې په نورو سختو مرضونو کښې مبتلا وي چه د دوایي استعمال ورته په هر وخت کښې ضروري وي نو په داسې حالت کښې د روژې د نه نیولو اجازه شته او که نه؟ په داسې حال کښې چه د اسې بیماري کله کله د مرگ او هلاکت سبب هم گرځي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه روژه په مریضی کښې د زیاتوالي سبب گرځي نو د کوم دیندار او ماهر حکیم یا ډاکټر په مشوره او یا پخپل غالب گمان باندې د عمل کولو له مخې روژه ماتولی شي۔ بیا هم په معمولي مرض کښې د روژې خوړل ښه نه دي۔

قال العلامة عبد الرحمٰن الجزائریؒ: الاعذار التی تبیح الفطر للصّائم کثیرة. منها المرض، فاذا مرض الصائم و خاف زیادة المرض با لصوم او خاف تاخر البرء من المرض او حصلت لهٗ مشقّه شدیدة با لصوم فانهٗ یجوز له الفطر. (فقه علی مذاهب الاربعة ج۱، ص۵۷۲)

قال العلامة الکاسانیؒ: و اما وجوب الفداء فشرطه العجز عن القضاء عجز الا ترجی معه القدرة فی جمیع عمره. (بدائع الصنائع ج۲، ص۱۰۵، کتاب الصوم، فصل فی حکم الصوم المؤقت) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۸۱، فصل فی العوارض.

### آیا د مریضۍ له وجهې د روژې په خوړلو کفاره لازمیږي او که قضاء؟

**سوال:** که چېرته یو څوك د روژې په حالت کښې ناڅاپه مریض شي نو آیا ده ته د روژې ماتول په کار دي او که نه؟ او د افطار د کولو په صورت کښې به کفاره لازمه وي او که قضاء او که دواړه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سخته بیماري کښې کله چه د نقصان ویره وي نو په دې صورت کښې د روژې خوړل جائز دي او د همدې روژې یوازې قضاء پرې لازمه وي نه کفاره۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و بقی الاکراه و خوف هلاك او نقصان عقل و لو بعطش او جوع شدید الخ الفطر یوم العذر...... و قضوا لزوماً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۲۱، فصل فی العوارض المبیحة)

و فی الهندیة: المریض اذا خاف علی نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر با لاجماع و ان خاف زیادة العلة و امتداده فکذلك عندنا و علیه القضاء اذا افطر کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۰۷، فصل فی العوارض المبیحة) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۳۸۳، فصل فی الاسباب المبیحة للفطر.

## د ډيرې تندې له وجهې د روژې د ماتولو حکم

**سوال:** که چېرته کله ګرمي دومره تيزه شي چه د تندې له وجهې د خلکو د هلاکت او يا د سخت نقصان ويره وي نو آيا په دې صورت کښې د روژې د ماتولو اجازه شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سختې لوږې يا تندې له وجهې چه کله د سخت نقصان خطره وي نو په دې صورت کښې روژه ماتولی شي ليکن د دې روژې به يو اځې قضاء لازمه وي نه کفاره۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و بقى الاكراه و خوف هلاك او نقصان عقل و لو بعطش او جوع شديد او لسعة حية....... الفطر و قضوا لزوماً. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۲۱، فصل فى العوارض المبيحة

و فى الهندية: اذا خيف منهما الهلاك او نقصان العقل كا لامة اذا ضعفت عن العمل و خيفت الهلاك با لصوم و كذا الذى ذهب به....... (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۰۷، فصل فى العوارض المبيحة) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۳۸۷، فصل فى الاسباب المبيحة للفطر.

## حضور ﷺ هم په سفر کښې افطار کړی وو

**سوال:** آيا رسول الله ﷺ په سفر کښې کله افطار کړی وو او که نه يعني روژه ئې ماته کړې وه او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رسول الله ﷺ چونکه د الله تعالى له خوا معلم جوړ شوی وو او دنيا ته راليږل شوی وو نو ځکه ده مبارك د حالاتو او تقاضاوو مطابق روژې نيولې هم او ماتولې ئې هم۔ په ځينو حالاتو کښې ده مبارك په نه افطار کوونکي باندې نکير هم کاوه۔

عن ابن عباسؓ سافر رسول الله ﷺ فى رمضان حتى بلغ عسفان ثم دعا باناء فيه شراب فشربه نهاراً ليراه الناس ثم افطر حتى دخل مكة. قال ابن عباسؓ فصام رسول الله ﷺ و افطر و من شاء صام و من شاء افطر. (صحيح مسلم ج۱، ص۲۵۶، باب جواز الصوم و الفطر فى شهر رمضان للمسافر)

و عن جابر بن عبد اللهؓ: ان رسول الله ﷺ خرج الى مكة عام الفتح فصام حتى بلغ كراع الغميم و صام الناس معه فقيل له ان الناس شق عليهم الصيام و ان الناس ينظرون فيما فعلت فدعا بقدح من ماء بعد العصر فشرب و الناس ينظرون اليه فا فطر بعضهم فصام بعضهم. (ترمذى ج۱، ص۱۵۱، باب ما جاء فى افطار الصوم فى السفر)

## آيا په سفر کښې د روژې خوړل د قصر د لمانځه غوندې لازمي ده

**سوال:** د سفر په حالت کښې خو په لمانځه کښې قصر واجب دی آيا د روژې حکم هم د لمانځه غوندې دی او خامخا به روژه خوري او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مقدس شريعت د سفر په حالت کښې په لمانځه کښې قصر کول يو الهي نعمت ګرځولی او واجب کړی ئې دی ليکن د روژې د نيولو او نه نيولو اختيار پخپله بنده ته ورکړی دی او له دې سره سره ئې د لمانځه برعکس د عافيت او طاقت په حالت کښې د روژې نيول افضل ګڼلی دی نو له دې وجهې په سفر کښې د روژې نيول افضل او بهتر دي۔ بيا هم که چېرته د روژې له نيولو څخه سړي ته تکليف زيات پيښيده نو بيا ئې د روژې نيول مکروه ګرځولی دی۔

قال العلامة ابن نجيمؒ: و انما كان الصوم افضل ان لم يضرّه لقوله تعالى: "وَ اَنْ تَصُوْمُوا خَيْرٌ لَّكُمْ" و لان رمضان



افضل الوقتين فكان فيه الاداء اولى و لا يردّ علينا القصر فى الصلوات الخمس فانهٗ واجب حتى يأثم با لاتمام لان القصر هو العزيمة. (البحر الرائق ج۲، ص۲۸۳، فصل فى العوارض)

و فى الهندية: و يكره للمسافر ان يصوم اذا اجهده الصوم فان لم يكن كذلك فا لصوم افضل. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۰۱، الباب الثالث فيما يكره للصائم و ما لا يكره) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۳۸۳، فصل الاسباب المبيحة للفطر.

## د ميلمه له خوا څخه په مجبورولو باندې د روژې د ماتولو حکم

**سوال:** که چېرته چا نفلي روژه نيولې وي ليکن ميلمه ئې په ماتولو مجبور کړي نو آيا د ميلمه په مجبورولو باندې دی خپله روژه ماتولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ميلمه د ضيافت او عزت په خاطر د نفلي روژې ماتول د شريعت په نزد جائز دي ليکن قضاء به ئې بيا راګرځوي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: الضيافة عذر للضيف و المضيف ان كان صاحبها ممن لا يرضى بمجرد حضوره و يتأذى بترك الافطار فيفطر و الا لا. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۲۹، فصل فى العوارض)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و الصحيح من المذهب ان ينظر فى ذٰلك ان كان صاحب الدعوة ممن يرضى بمجرد حضوره و لا يتأذى بترك الفطر لا يفطر و ان كان يعلم انه يتأذى بترك الافطار يفطر. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۳۸۲، فصل الاسباب المبيحة للفطر) و مثله فى ما لا بد منه ص۱۰۰، كتاب الصوم.

## څوك چه په کوم ملك کښې وي د هم هغه ملك د مياشت په اعتبار سره به روژه نيسي

**سوال:** يو سړی له سعودي عرب څخه پاکستان ته راغی هلته د مياشتې په حساب سره د هغه ديرش ورځې پورې شوې دي او حال دا چه په پاکستان کښې روژه ده نو آيا دا سړی به اوس روژه نيسي او که به افطار کوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سعودي عرب کښې د مياشت په اعتبار سره اګر که د دې سړي فرض روژې پوره شوي دي ليکن د دې ځای له خلکو سره د مشابهت له وجهې به روژه نيسي او افطار کول ورته صحيح نه دي۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: فانه يجب عليه الامساك تشبها. (رد المحتار ج۲، ص۴۰۸، مطلب فى جواز الافطار با لتحرى)

قال العلامة الحصكفیؒ: الاخير ان يمسكان بقية يومهما وجوباً على الاصح لان الفطر قبيح و ترك القبيح شرعاً واجب (كمسافر اقام و حائض و نفساء طهرتا و مجنون افاق و مريض صح)

قال الشيخ احمد الطحطاویؒ: تحت قوله (كمسافر اقام) الاصل فى هٰذا ان كل من صار على حالة فى آخر النهار لو كان عليها او له يلزمه الامساك قضاء الحق الوقت تشبها با لصائمين. (حاشية الطحطاوى على الدر المختار ج۱، ص۴۵۵، باب ما يفسد الصوم و ما لا يفسد)

## د شوګر د مریض لپاره د روژې حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! زما والد صاحب د شوګر مرض لري او ډاکټر له روژې منع کړی دی او ورته ویلي ئې دي چه که چېرته روژه و نیسې نو مرض دې زیاتیږي په داسې حال کښې چه حقیقت هم همداسې دی ځکه چه کله هم هغه روژه نیسي نو تکلیف ئې زیاتیږي- په دې صورت کښې هغه ته شرعا د روژې د نه نیولو اجازه شته او که څنګه؟ او که چېرته ئې نیولی نه شي نو بیا څه باید وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام بې له کومې وجهې چا ته تکلیف نه ورکوي- که چېرته ستا والد صاحب په رښتیا هم د شوګر په مرض کښې مبتلا وي چه د روژې د نیولو طاقت ئې نه وي او که چېرته ئې ونیسي نو مرض ئې زیاتیږي او سره له دې یوه مسلمان ډاکټر هم له ښه تشخیص څخه وروسته د روژې د نه نیولو مشوره ورکړې وي نو شرعا هغه ته اجازه شته چه روژه وخوري- او که چېرته ئې مرض دائمي وي نو د هرې روژې به فدیه ورکوي او د یوې روژې فدیه د سرسایې له مقدار سره برابره ده-

قل العلامة الحصكفیؒ: و للشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر و یفدی وجوباً قال ابن عابدینؒ المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لكل یوم من المرض. (ردّ المحتار ج۲، ص۴۲۷، كتاب الصوم، فصل فی العوارض المبیحة لعدم الصوم)

## د ظن غالب په بناء د مرض د زیاتید و له ویرې د روژې د نه نیولو حکم

**سوال:** یو سړی مریض دی او له ډاکټر څخه ئې د روژې د نیولو او نه نیولو په باره کښې پوښتنه نه ده کړې لیکن د هغه غالب ګمان دا دی چه که چېرته روژه ونیسم نو مرض مې زیاتیږي- نو اوس نوموړي مریض ته پخپل سر د روژې خوړل صحیح دي او که له ډاکټر څخه به خامخا د روژې د نه نیولو پوښتنه کوي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام بې له کومې وجهې چا ته تکلیف نه ورکوي نو شرعا د مرض د شدت او یا د مرض د ویرې له وجهې د روژې ماتول جائز دي خو په دې شرط چه کوم ماهر او مسلمان طبیب ورته ویلي وي- چونکه په نوموړي صورت کښې د مریض غالب ګمان دا دی چه مرض به مې د روژې د نیولو له وجهې زیات شي نو ځکه ورته د خپل غالب ګمان په بناء د روژې نه نیول مرخص دي- له ډاکټر څخه د پوښتنې ضرورت نشته-

لما قا العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: او مریض خاف زیادة مرضه و صحیح خاف المرض المراد با لخوف غلبة الظن. (رد المحتار ج۱، ص۱۵۳، كتاب الصوم)



# باب الاعتکاف

## (د اعتکاف احکام او مسئلې)

## د روژې په ماتید و سره د اعتکاف حکم

**سوال:** که چېرته له معتکف څخه په غلطۍ سره روژه فاسده شي نو آیا اعتکاف ئې باقي پاتې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسنون او واجب اعتکاف لپاره چونکه د روژې نیول شرط دی نو ځکه که چېرته د کوم عذر له وجهې روژه ماته شي نو اعتکاف هم باقي نه پاتې کیږي- البته که چېرته له روژې بغیر په اعتکاف کښې کښیني نو اعتکاف به ئې نفلي اعتکاف وي-

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و شرط الصوم لصحة الاول اتفاقاً علی المذهب. قال العلامة ابن عابدینؒ قلتُ و مقتضی ذٰلك ان الصوم شرط ایضاً فی الاعتكاف المسنون لانهٗ مقدر با لعشر الاخیر حتی لو اعتكفه بلا صوم لمرض او سفر ینبغی ان لا یصح عنه بل یكون نفلاً. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۲، باب الاعتكاف)

لما قال برهان الدین المرغینانیؒ: قال الاعتكاف مستحب و الصحیح انه سُنّة مؤكدة لان النبی ﷺ واظب علیه فی العشر الاواخر من رمضان و المواظبة دلیل السنة و هو اللبث فی المسجد مع الصّوم........ و الصّوم من شرطه........ ثم الصوم شرط لصحة الواجب منه. (الهدایة ج۱، ص۲۱۱، باب الاعتكاف) و مثله فی البنایة شرح الهدایة ج۴، ص۳۸۴/۳۸۲، باب الاعتكاف.

## د اعتکاف په فاسدید و باندې د اعتکاف قضائي نشته

**سوال:** که چېرته په یوه وجه د چا اعتکاف فاسد شي نو آیا قضاء ئې پرې واجبه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له اقوالو څخه معلومیږي چه د مسنون او نفلي اعتکاف په فاسدید و باندې ئې قضائي نشته- بیا هم چه په کومه شپه او ورځ اعتکاف مات شي او د همغې ورځې او شپې د اعتکاف قضایي وراوړي نو د ځینو په قول باندې هم عمل کیږي کوم چه د بهترۍ درجه لري لیکن ضروري نه ده-

قال العلامة عالم بن العلاءؒ: و لو شرع فیه ثم قطع لا یلزمه القضاء فی روایة الاصل و فی روایة الحسن یلزمه. و فی الظهیریة عن ابی حنیفةؒ انه یلزمه یوماً. (فتاوی تاتارخانیة ج۲، ص۴۱۴، الفصل الثانی عشر فی الاعتكاف)

قال ابن عابدینؒ: فلو شرع فی نفله ثم قطعه لا یلزمه قضائه لانه لا یشترط له الصوم علی الظاهر من المذهب و ما فی بعض المعتبرات انه یلزمه با لشروع مفرع علی الضعیف قاله المصنف وغیره. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۴، باب الاعتكاف) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۲۱۱، باب الاعتكاف.

## د اعتکاف د اهتمام نه کولو اثرات

**سوال:** که چېرته کوم کلي وال د اعتکاف اهتمام و نه کړي نو په دې عمل سره د دوی ذمه واري تر کومه ځایه پورې متاثر کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اعتکاف د ټولو کلیوالو لپاره سنت مؤکد کفایه دی۔ که چېرته د ټولو کلیوالو له خوا څخه یو کس په اعتکاف کښېني کښېنیني نو د ټولو کلیوالو غاړې پرې خلاصیږي۔ لیکن که چېرته په ټولو کلیوالو کښې یو کس هم په اعتکاف کښې ناست نه وي نو ټول کلیوال به ګنهګار وي۔

قال ابن عابدینؒ: (و سنّ مؤکداً) ای استنانا مؤکدا. بمعنی انه طلب طلبا. مؤکداً زیادة علی بقیة النوافل. و لهذا کانت السنة المؤکدة قریبة من الواجب فی لحوق الاثم، کما فی البحر و یستوجب تارکها التضلیل و اللوم کما فی التحریر. (رد المحتار ج۲، ص۱۲، باب الوتر، مطلب فی السنن و النوافل)

قال العلامة محمد عبد الحیؒ: و الصحیح الذی علیه جمهور الفقهاء هو انه سنة مؤکدة فی العشر الاواخر من رمضان علی سبیل الاستیعاب کفایة علی اهل کل بلدة. (حاشیة هدایة ج۱، ص۲۱۱، باب النوافل) و مثله فی حاشیة مستخلص الحقائق ج۱، ص۴۰۹، باب النوافل.

## د معتکف بل جومات ته د تلاوت د اورېدو یا د تلاوت د کولو لپاره د تللو حکم

**سوال:** که چېرته د قرآن یو حافظ معتکف لپاره په تراویحو کښې د قرآن د اورولو پخپل جومات کښې انتظام نه وي شوی نو آیا نوموړی یو ځای د قرآن کریم د اورولو لپاره بل جومات ته تلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تراویحو کښې د قرآن کریم ختم بې له شکه سنت دی۔ البته د استثناء په صورت کښې (په اعتکاف کښې د څو کارونو په نیت سره) له جومات څخه وتل جائز دي لیکن بهتر نه وتل دي تر څو چه د اعتکاف په تقدس کښې کوم فرق رانه شي۔

و فی الهندیة: و لو شرط وقت النذر و الالتزام ان یخرج الی عیادة المریض و صلوٰة الجنازة و حضور مجلس العلم یجوز له ذلک. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۲، الباب السابع فی الاعتکاف)

قال علام بن علاءؒ: و لو شرط وقت النذر و الالتزام ان یخرج علی عیادة المریض و صلوٰة الجنازة و حضور مجلس العلم یجوز لهٗ ذلک. (فتاوی تاتارخانیة ج۲، ص۴۱۲، الفصل الثانی عشر فی الاعتکاف) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۴۴۸، باب الاعتکاف.

## د اعتکاف په دوران کښې له بې فائدې خبرو څخه د اجتناب حکم

**سوال:** آیا د اعتکاف په دوران کښې بې فائدې خبرې جائزې دي او که څنګه؟ ځکه چه ډېر ځله انسان په غیر اختیاري توګه د اسې خبرې کوي چه هیڅ مقصد ترې نه حاصلیږي؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اعتکاف بنیادي مقصد دا دی چه د الله تعالی عبادت په کثرت سره وشي۔ لهذا د اعتکاف په دوران کښې له دنیاوي خبرو څخه تر خپله وسه پورې باید چه اجتناب وشي۔ لیکن بیا هم په دیني مسائلو باندې خبرې کول او د ژوند د ضروریاتو په اړه خبرې ترې مستثنٰی دي۔ البته په دنیاوي خبرو باندې اعتکاف نه باطلیږي۔

قال العلامة عبد الرحمٰن جزریؒ: و من آدابه فمنها الا یتکلم الا بخیر. (الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱، ص۵۸۹، باب الاعتکاف)

قال عالم بن العلاءؒ: و لا یتکلم بفضول کلام الدنیا.......... او لا یتکلم بما فیه اثم فان النبی ﷺ کان یحدث مع الناس فی اعتکافه. (فتاوی تاتارخانیة ج۲، ص۴۱۰ تا ۴۱۴، الفصل الثانی عشر فی الاعتکاف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۰۴، باب الاعتکاف.

## د معتکف په مرګ سره د اعتکاف د تکمیل حکم

**سوال:** که چېرته کوم معتکف په اعتکاف کښې مړ شي نو آیا په ځای ئې د بل سړي کښېناستل ضروري دي او که نه؟ د دې لپاره چه تر څو اعتکاف ئې مکمل شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان المبارك په آخري عشره یعني لسو ورځو کښې پوره لس ورځې په اعتکاف کښې کښېناستل سنت دي۔ د څو ورځو په اعتکاف سره سنت نه اداکیږي۔ د معتکف د مړینې په صورت کښې اعتکاف پوره نه شو ځکه چه د اعتکاف تر لسو ورځو پورې پاتې نه شو۔ نو که چېرته ئې په ځای بل سړی نه کښېناست نو په پوره کلي باندې دا ذمه واري پاتې شوه۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله ای سنة کفایة) نظیرها اقامة التراویح با لجماعة فاذا قام بها البعض سقط الطلب عن الباقین فلم یأثموا با لمواظبة علی الترک بلا عذر و لو کان سنة عین لاثموا بترک السنة المؤکدة اثما دون اثم ترک الواجب. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۲، باب الاعتکاف)

قال العلامة محمد عبد الحی رحمه الله: هو سنة مؤکدة کفایة اذا قام بها البعض سقط عن الآخرین. (عمدة الرعایة علی هامش شرح الوقایة ج۱، ص۳۲۱، باب الاعتکاف) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۱۷، کتاب الطهارة.

## آیا د معتکف لپاره د جنازې د لمانځه لپاره تلل جواز لري؟

**سوال:** د معتکف لپاره شرعاً د جنازې د لمانځه اداکول جائز دي او که نه؟ او که چېرته ووځي نو آیا په اعتکاف کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وجوبي او مسنون اعتکاف څخه بې له ضرورته په وتلو باندې اعتکاف فاسدیږي۔ البته که چېرته ئې په ابتداء کښې د جنازې او د اسې نورو کارونو لپاره شرط لګولی وي نو بیا د جنازې د لمانځه امامت کول او یا د جنازې د لمانځه اداکول اعتکاف نه فاسدوي۔ لیکن پرته له شرط څخه د جنازې د لمانځه د اداکولو لپاره وتل د اعتکاف د

فاسدیدلو ذریعه ده. بیا هم په نفلي اعتکاف کښې د توسع په بناء له کومې استثناء پرته په وتلو باندې اعتکاف نه فاسد یږي.

لما قال العلامة عالم بن العلاءؒ: و لا یخرج لاکله و شربه و لا لعیادة المریض و لا لصلٰوة الجنازة..... ولو شرط وقت النذر و الالتزام ان یخرج الی عیادة المریض و صلٰوة الجنازة و حضور مجلس العلم یجوز لهٗ ذٰلك..... و اما فی الاعتکاف النفل فلا بأس بان یخرج بعُذر او بغیر عُذر. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۴۱۲/۴۱۳، کتاب الصوم، باب الاعتکاف)

لما قال العلامة السید محمد یوسف البنوریؒ: لا یخرج المعکتف من معتکفه الا لحاجة شرعیة او طبعیة..... و اما اذا خرج من المسجد بغیر حاجة شرعیة او طبعیة فیفسد الاعتکاف..... لو شرط وقت النذر ان یخرج لعیادة مریض و صلٰوة الجنازة و حضور مجلس علم جاز ذٰلك...... و ما روی عنه ﷺ من الرخصة فی عیادة المریض و صلٰوة جنازة فقال ابو یوسفؒ ذٰلك محمول علی اعتکاف التطوع. (معارف السنن ج۵، ص۵۳۹/۵۴۰، المعتکف یخرج لحاجته ام لا)

## معتکف ته د جماعت د لمانځه لپاره له جومات څخه د وتلو حکم

**سوال:** که چېرته په کوم جومات کښې په پابندۍ سره د جمع لمونځ نه ادا کیده نو د معتکف لپاره بل جومات ته د جمع د لمانځه لپاره تلل د شریعت له مخې څنګه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سړي په اعتکاف کښې د کښېناستو لپاره د اسې جومات ضروري دی چه پنځه وخته د جمع لمونځ پکښې کیږي. البته که چېرته د کوم عذر له وجهې په جومات کښې د جمع لپاره کوم صورت ممکن نه وي نو د معتکف لپاره بل جومات ته د جمع د لمانځه لپاره تلل صحیح دي. البته که چېرته لاړ نه شي نو په اعتکاف کښې ئې کوم فرق نه راځي.

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: فی مسجد جماعة هو ما له امام و مؤذن ادیت فیه الخمس ام لا، و عن الامام اشترط اداء الخمس فیه صححه بعضهم و قال لا یصح فی کل مسجد و صححه السروجی و اما الجامع فیصح فیه مطلقاً اتفاقاً. قال ابن عابدینؒ: ای و ان لم یصلوا فیه الصلٰوة کلها.......

ایضاً قال العلامة الحصکفیؒ: حرم علیه الخروج الا لحاجة الانسان) طبیعة کبول و غائط و غسل...... او شرعیة کعید و آذان لو مؤذنا و باب المنارة خارج المسجد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۴۰، باب الاعتکاف)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: ثم المسجد الجامع و یجوز الاعتکاف فی الجامع و ان لم یصلوا فیه با لجماعة......... و لا یخرج المعتکف من المسجد الا لحاجة لازمة شرعیة کا لجمعة او لحاجة طبعیة کا لبول و الغائط. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۶۷، الفصل السادس فی الاعتکاف) و مثله فی الکفایة فی ذیل فتح القدیر ج۲، ص۳۰۸، باب الاعتکاف.

## معتکف ته د جُمعې د غسل لپاره له جومات څخه د وتلو حکم

**سوال:** د اعتکاف په دوران کښې د جُمعې د ورځې د غسل کولو لپاره له جومات څخه وتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له اقوالو څخه معلومیږي چه معتکف د جُمعې د ورځې د غسل لپاره له جومات څخه وتل جائز دي. په ځینې جزئیاتو کښې سنت مؤکده اعتکاف په نفلي اعتکاف کښې شمار کړی شوی دی. او همدا رنګه د برودت (یخوالي) د حاصلولو لپاره د غسل په خاطر له جومات څخه د وتلو په صورعت کښې اعتکاف نه ماتیږي. بیا هم اجتناب ترې بهتر دی.

قال العلامة الحصکفیؒ: و اما النفل فله الخروج لانه منه لهٗ لا مبطل کما امر قال ابن عابدینؒ (و اما النفل) ای الشامل للسنة المؤکدة. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۳، باب الاعتکاف)

قال العلامة عالم بن العلاءؒ: و اما فی الاعتکاف النفل فلا باس بان یخرج بعذر او بغیر عذر. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۴۱۲، الفصل الثانی عشر فی الاعتکاف) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۱۳، الباب السابع فی الاعتکاف.

## معتکف د جُمعې د لمانځه د ادا کولو لپاره تر څومره ځایه پورې تلی شي؟

**سوال:** که چېرته د کلي په جومات کښې د جُمعې لمونځ نه کیده نو معتکف د جُمعې د لمانځه لپاره تر کومه ځایه پورې تللی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د معتکف لپاره شرعا د جُمعې د لمانځه د ادا کولو لپاره بنار ته د تللو اجازه شته. که چېرته بنار لرې وي نو له زواله مخکښې د خپل جومات څخه د جُمعې د لمانځه لپاره کولی شي چه روان شي. بیا هم په داسې وخت کښې روانیدل په کار دي چه هلته په رسیدو سره ډاډه زړه سنتونه او فرض لمونځ ادا کولی شي. او د فرضو له ادا کولو به فوراً وروسته خپل جومات ته راځي. لیکن که چېرته له فرضو وروسته سنتونو د ادا کولو لپاره که هم هلته وځنډیږي نو اعتکاف ئې نه فاسد یږي.

قال فی الهندیة: و یخرج للجمعة حین تزول الشمس ان کان معتکفه قریباً من الجامع بحیث لو انتظر زوال الشمس لا تفوته الخطبة و الجمعة و اذا کان بحیث تفوته لم ینتظر زوال الشمس لکنه یخرج فی وقت یمکنه ان یأتی الجامع فیصلی اربع رکعات قبل الآذان عند المنبر و بعد الجمعة یمکث بقدر ما یصلی اربع رکعات او ستا علی حسب اختلافهم فی سنة الجمعة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۲، الباب السابع فی الاعتکاف)

قال العلامة طاهر ابن احمد ابن عبد الرشیدؒ: و عن محمدؒ انهٗ انّ کان منزله بعیداً من الجامع یخرج حین ترٰی انهٗ یبلغ الجامع عند النداء و ان کان خروجه قبل الزوال هو الصحیح. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۶۷، الفصل السادس فی الاعتکاف) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۰۱، باب الاعتکاف.

## د اعتکـــــاف په حالت کښې د تعلیم لپاره وتل

**سوال:** که چېرته د اعتکاف په دوران کښې د تعلیم ضرورت پیدا شي نو معتکف ته له جومات څخه د وتلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوک په اعتکاف کښې له کښېناستلو څخه مخکښې د

ځینو کارونو د کولو شرط ولګوي نو د اعتکاف په دوران کښې د هغه لپاره هم هغه عمل جائز وي او اعتکاف ئې پرې نه ماتیږي.

قال العلامة عالم بن العلاءؒ: و لو شرط وقت النذر و الالتزام ان یخرج الٰی عیادة المریض و صلٰوة الجنازة و حضور العلم یجوز لهٗ ذٰلك. (فتاویٰ تاتارخانیة ج۲، ص۴۱۲، الفصل الثانی عشر فی الاعتکاف)

قال العلامة الحصکفیؒ: لو شرط وقت النذر و الالتزام ان یخرج الٰی عیادة المریض و صلٰوة الجنازة و حضور مجلس علم یجوز لهٗ ذٰلك فلیحفظ. (الدر المختار ج۲، ص۱۴۶، باب الاعتکاف) و مثله فی حاشیة طحطاوی ج۱، ص۴۸۴.

## د ضرورت له وجې له اعتکاف ځخه د وتلو حکم

**سوال:** د اهل و عیال د مریضۍ یا د کومې لویې واقعې له وجهې د اعتکاف پریښودل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ځان او مال یا د اهل او عیال د کوم ممکنه یقیني خطرې په وجه د اعتکاف پریښودل جائز دي. په داسې حالت کښې د سخت ضرورت له مخې که چېرته معتکف د باندې ووځي نو اعتکاف ئې فاسدیږي لیکن ګنهګاریږي نه. بیا هم که چېرته د جومات د ړنګولو په وجه او یا له جومات ځخه د په زوره ایستلو په صورت کښې فوراً بل جومات ته داخل شي نو اعتکاف ئې باقي پاتې کیږي.

لما قال العلامة فخر الدین الزیلعیؒ: و کذا لو خرج للجنازة یفسد اعتکافه و کذا لصلٰوتها و لو تعینت علیه او لانجاء الغریق او الحریق او الجهاد اذا کان النفیر عاماً او لاداء الشهادة کل ذٰلك مفسد بخلاف الخروج لحاجة الانسان لانها معلومة الوقوع فتکون مستثناه و لهٰذا لو انهدم المسجد الذی هو فیه فا نتقل الٰی مسجد آخر لم یفسد اعتکافه للضرورة لانه لم یبق مسجداً بعد ذٰلك ففات شرطه و کذا لو تغرق اهله لعدم الصلوات الخمس فیه و لو اخرجه ظالم کرها او خاف علی نفسه او ماله من المکابرین فخرج لا یفسد اعتکافه. (تبیین الحقائق ج۱، ص۳۵۱، باب الاعتکاف)

قال العلامة الحصکفیؒ: و اما ما لا یغلب کانجاء غریق و انهدام مسجد فمسقط للاثم لا للبطلان و الا لکان النسیان اولی بعدم الفساد کما حققه الکمال خلافاً لما فصله الزیلعی و غیره. قال ابن عابدینؒ تحت قوله خلافا لما فصله الزیلعیؒ حیث جعل الخروج لعیادة المریض و الجنازة و صلٰوتها و انجاء الغریق و الحریق و الجهاد اذا کان النفیر عاماً و اداء الشهادة مفسداً بخلاف خروجه الٰی مسجد آخر بانهدام المسجد او تغرق اهله لعدم صلٰوة الخمس فیه و اخراج ظالم کرها و خوفه علی نفسه او ماله من المکابرین. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۹، باب الاعتکاف)

## د ریح یعنې هوا د اخراج لپاره د معتکف له جومات ځخه د وتلو حکم

**سوال:** ظاهره خبره ده چه په جومات کښې د بادو خارجول مناسب نه دي. آیا معتکف د دې لپاره له جومات ځخه وتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د ریح اخراج اګر که په اتفاق سره مکروه دی. لیکن د طبعي تقاضاوو لپاره د معتکف په باره کښې د فقهاء کرامو مختلف اقوال دي. ځینې فقهاء



کرامؒ د ریح د اخراج لپاره له جومات ځخه وتل افضل ګڼي او حال دا چه ځینې فقهاء کرامؒ بیا له جومات ځخه وتل منع بولي. اګر که د ټولو په نزد په جومات کښې د بادو پریښودل مرخص دي لیکن بهتره دا ده چه د ریح د اخراج لپاره له جومات ځخه د باندې ووځي.

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لا البول و الفصد فیه) و کذا لا یخرج فیه الریح من الدّبر کما فی الاشباه و اختلف فیه السلف فقیل لا بأس و قیل یخرج اذ احتاج الیه و هو الاصح حموی عن شرح الجامع الصغیر للتمرتاشی. (رد المحتار ج۱، ص۴۸۶، مطلب فی احکام المسجد)

لما فی الهندیة: سئل ابو حنیفةؒ من المعتکف اذا احتاج الی الفصد او الحجامة هل یخرج فقال لا و فی اللآلی و اختلف فی الذی یفسو فی المسجد فلم یر بعضهم بأسا و بعضهم قالوا لا یفسو و یخرج اذا احتاج الیه و هو الاصح کذا فی التمرتاشی. (الفتاویٰ الهندیة ج۵، ص۳۲۱، کتاب الکراهیة، الباب الخامس فی آداب المسجد) و مثله فی امداد الفتاویٰ ج۲، ص۵۱۶، باب الاعتکاف.

## پـــــه هیره سره له اعتکاف ځخه د وتلو حکـــــم

**سوال:** د کوم سړي په هیره سره له جومات ځخه د وتلو په وجه ئې د اعتکاف څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هیره سره د اعتکاف په دوران کښې له جومات ځخه وتل د صاحبینوؒ په نزد د اعتکاف فاسدوونکی نه دی. لیکن د امام صاحبؒ په نزد ئې اعتکاف نه پاتې کیږي. او احتیاط هم په همدې کښې دی.

قال برهان الدینؒ: و لو خرج من المسجد ساعة بغیر عذر فسد اعتکافه عند ابی حنیفة رحمه الله تعالٰی لوجود المنافی و هو القیاس و قالا لا یفسد. (الهدایة ج۱، ص۲۱۲، باب الاعتکاف)

قال العلامة شیخ الاسلام ابی بکر بن علی رحمه اللّٰه: و کذا اذا خرج من المسجد ساعة بغیر عذر فسد اعتکافه عند ابی حنیفة لوجود المنافی و عندهما لا یفسد. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۸۰، باب الاعتکاف) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۳۱۰، باب الاعتکاف.

## د چلم د څکولو لپاره له جومات ځخه وتل مرخص نه دي

**سوال:** که چېرته معتکف د چلم د څکولو لپاره عادي وي نو آیا د داسې معتکف لپاره د چلم د څکولو لپاره له جومات ځخه وتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چلم کوم داسې شی نه دی چه د معتکف له طبعي حوائجو ځخه وګڼل شي کوم چه له جومات ځخه وتل ورته جائز شي. که چېرته د جومات په احاطه کښې ودریږي او لوګی ئې د باندې ایستل ممکن وي نو د تطبیق صورت ئې پیدا کیدلی شي. او که نه نو له جومات ځخه محض د دې لپاره وتل او یا په جومات کښې د چلم څکول له معتکف سره نه ښایي. بیا هم د اعتکاف په دوران کښې د داسې شیانو استعمال له ازمیښت ځخه خالي نه دی.

لما قال العلامة الحصكفيؒ: (الخروج الا لحاجة الانسان) طبيعة كبول و غائط و غسل لو احتلم و لا يمكنه الاغتسال فى المسجد او شرعية كعيد و اذان لو مؤذنا و باب المنارة خارج المسجد......... فلو خرج و لو ناسياً ساعة زمانية لا رملية كما مر بلا عذر فسد. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۴۸، باب الاعتكاف)

لما قال العلامة عماد بن حسن الشرنبلاليؒ: و لا يخرج منه) من معتكفه فيشمل المرأة. الا لحاجة شرعية كا لجمعة....... او حاجة طبعية كا لبول و الغائط و ازالة النجاسة....... فان خرج ساعة بلا عذر فسد الواجب. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۵۷۹، باب الاعتكاف) و مثله فى كفاية المفتى ج۴، ض۲۳۲، باب الاعتكاف.

## د معتكف له جومات څخه د باندې د خبرې كولو حكم

**سوال:** كه چېرته معتكف د ضرورت د تكميل لپاره له جومات څخه د باندې ووځي نو په لار كښې ورته د خبرې كول څه حكم لري؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته يو معتكف د كوم ضرورت په بناء له جومات څخه د باندې ووځي او خبرې وكړي نو په دې سره ئې په اعتكاف كښې كوم فرق نه راځي۔ البته كه چېرته له ضرورت پرته د خبرو لپاره ودرېږي ن اعتكاف ئې فاسدېږي۔ بيا هم بهتره دا ده چه له بې ضرورته خبرو څخه اجتناب وكړي۔

قال ابن نجيمؒ: و اما التكلم بغير خير فانه يكره لغير المعتكف فما ظنك للمعتكف. (البحر الرائق ج۲، ص۳۰۴، باب الاعتكاف)

قال طاهر بن احمد بن عبد الرشيدؒ: و اذا خرج لبول او غائط لا يمكث فى منزله بعد الفراغ من الطهور. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۶۷، باب الاعتكاف) و مثله فى الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۸۱، باب الاعتكاف.

## د اعتكاف په حالت كښې ښځې ته د غېږ وركولو حكم

**سوال:** آيا د اعتكاف په دوران كښې په جومات كښې خپلې ښځې ته د غېږ په وركولو سره اعتكاف فاسدېږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جماع د اعتكاف فاسدوونكى دى۔ البته د داعي جماع (غېږ وركول او د اسې نور) اعتكاف نه فاسدوي۔ ليكن د داسې اعمالو ارتكاب حرام دى۔ بيا هم كه چېرته په دغو اعمالو سره ئې انزال وشي نو بيا ئې اعتكاف ختم كيږي۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و بطل بوطىء فى فرج انزل ام لا و لو كان و طؤة خارج المسجد ليلا و نهاراً عامداً او ناسياً فى الاصح لان حالته مذكرة و بطل بانزال بقُبلة او لمس او تفخيذ و لو لم ينزل لم يبطل و ان هرم الكل لعدم الحرج. قال ابن عابدينؒ تحت قوله (و ان حرم الكل) اى كل ما ذكر من دواعى الوطىء اذ لا يلزم من عدم البطلان بها حلها. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۴۵۰، باب الاعتكاف)

و فى الهندية: (و منها الجماع و دواعيه) فيحرم على المعتكف الجماع و دواعيه نحو المباشرة و التقبيل و اللمس و المعانقة و الجماع فيما دون الفرج و الليل و النها فى ذٰلك سواء و الجماع عامداً او ناسياً ليلاً او نهاراً يفسد



الاعتكاف انزل او لم ينزل و ما سواه يفسد اذا انزل و ان لم ينزل لا يفسد. (الفتاوىٰ الهندية ج۱، ص۲۱۳، الباب السابع فى الاعتكاف) و مثله فى بدائع الصنائع ج۲، ص۱۱۶، كتاب الاعتكاف.

## د اعتكاف په حالت كښې له خپلې ښځې سره د خبرې كولو حكم

**سوال:** آيا د اعتكاف په حالت كښې له خپلې ښځې سره خبرې كول جائز دي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه معكتف په جومات كښې وي او ښځه ئې په كور كښې وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اعتكاف په حالت كښې بالكل غلى اوسيدل مكروه دي۔ د خير او ښيګړې خبرې كول له هر چا سره جائز دي كه ښځه وي او كه نر۔ بيا هم له ښځې سره د مينې او محبت له خبرې كولو څخه بايد اجتناب وشي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: و يكره تحريماً صحت ان اعتقده قربة و الا لا تكلم الاّ بخير و هو ما لا اثم فيه و منه المباح عند الحاجة اليه لا عند عدمها الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۴۹، باب الاعتكاف)

## آيا د كلي په هر جومات كښې اعتكاف ضروري دى؟

**سوال:** آيا په رمضان المبارك كښې په هر جومات كښې په اعتكاف كښې كښيناستل ضروري دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان المبارك په مياشت كښې اعتكاف سنت كفايه دى۔ ليكن په فقهي ذخائرو كښې د دې خبرې تصريح مو تر نظر لاندې نه دي تير شوي چه د هر كلي په هر جومات كښې دې اعتكاف ضروري وي۔ البته علامه شامي رحمه الله له يوې تشبيه څخه كوم چه اعتكاف هغوى له تراويحو سره وركړى دى معلومېږي چه د تراويحو غوندې اعتكاف هم د هر كلي په هر جومات كښې سنت دي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (قوله سنة على الكفاية) نظيرها اقامة التراويح با لجماعة فاذا قام بها البعض سقط الطالب عن الباقين فلم يأثموا با لمواظبة على الترك بلا عذر و لو كان سُنة عين لاثموا بترك السنّة المؤكدة اثما دون اثم ترك الواجب. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۲، فصل فى الاعتكاف)

و قال ايضاً: (تحت قوله و الجماعة فيها سنة على الكفاية) افاد ان اصل التراويح سنة عين (الى ان قال) و هل المراد انها سنة كفاية لاهل كل مسجد من البلدة او مسجد واحد منها و من المحلة ظاهر كلام الشارح الاوّل و استظهر الثانى و يظهر لى الثالث لقول المنية حتىٰ لو ترك اهل محلة كلهم الجماعة فقد تركوا السنة و اساؤا. (رد المحتار ج۲، ص۴۳، فصل فى التراويح)

قال العلامة ابن همامؒ: و صعود المئذنة ان كان بابها من خارج المسجد لا يفسد فى ظاهر الرواية و قال بعضهم هٰذا فى حق المؤذن لان خروج للآذان معلوم فيكون مستثنىٰ اما غيره فيفسد اعتكافه و صحح قاضيخان انه قول الكل فى حق الكل. (فتح القدير ج۲، ص۳۱۱، باب الاعتكاف) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۲۶۹، الباب السادس فى الاعتكاف.

## د آذان لپاره د معتکف له جومات څخه آذان خانې ته د وتلو حکم

**سوال:** که چېرته آذان خانه له جومات څخه د باندې وي نو آیا معتکف مؤذن د اذان لپاره له جومات څخه د باندې وتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي او طبعي ضرورت څخه پرته د معتکف لپاره له جومات څخه وتل جائز نه دي۔ چونکه د آذان کول یو شرعي امر دی نو ځکه د آذان لپاره له جومات څخه د باندې آذان خانې ته متعکف وتلی شي او په دې سره ئې په اعتکاف کښې کوم فرق نه راځي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او شرعیة ای خرج لحاجة شرعیة کعید و اذان لو مؤذنا و باب المنارة خارج المسجد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۸، باب الاعکتاف)

## د ښځو لپاره د اعتکاف حکم

**سوال:** د ښځو لپاره اعتکاف کول شرعا جائز دي او که نه؟ د احنافو علماووؒ په دې باره کښې څه رأیه ده؟ زمونږ د علاقې په کورونو کښې د ښځو د لمانځه د ادا کولو لپاره خاص خاص ځایونه مقرر نه وي او هغوی په هر هغه ځای کښې چه پرده وي خپل لمونځونه ادا کوي۔ نو آیا هغوی په خپلو کورونو کښې چه په کومو ځایونو کښې لمونځونه ادا کوي هلته اعتکاف هم کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښځو لره پخپلو کورونو کښې د احنافو علماووؒ په نزد اعتکاف کول جائز دي۔ په دې کښې څه اِختلاف نشته۔ ښځې د کور په هر کُنج د پردې په اچولو سره اعتکاف کولی شي۔ بله دا چه ښځو لره په کور کښې د خاص ځای مقررول ضروري نه دي۔ چېرته چه هم ممکن وي هلته خپل لمونځ له کراهیت پرته ادا کولی شيؒ بیا هم چه څومره ئې په وس کښې وي په پرده کښې د لمانځه ادا کول ورته بهتر دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: او لبث امرأة فی مسجد بیتها. قال العلامة ابن عابدینؒ قوله فی مسجد بیتها و هو المعد لصلاتها الذی یندب لها و لکل واحد اتخاذه. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۱، باب الاعتکاف)

و فی الهندیة: المرأة تعتکف فی مسجد بیتها اذا اعتکف فی مسجد بیتها فتلك البقعة فی حقها کمسجد الجماعة فی حق الرجل لا تخرج منه الاّ لحاجة الانسان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۱، الباب السابع فی الاعتکاف)

## د اعتکاف په حالت کښې د اخبار او د اسې نورو د لوستلو حکم

**سوال:** معتکف د اعتکاف په دوران کښې اخبار او رسالې لوستلی شي او که نه؟ او همدارنګه د خبرونو د اوریدلو لپاره ریډیو له ځان سره ساتلی شي او که نه؟ ځکه چه په اخبارونو کښې اکثره لوڅ لغړ تصویرونه وي او په داسې حال کښې چه په راډیو کښې یواځې آواز اوریدل کیږي۔ نو آیا د خبرونو اوریدل د عباداتو په ضمن کښې راځي او که د معاملاتو په ضمن کښې؟ د دې



افعالو مرتکب ته بار بار ویل شوي دي چه د دغو اعمالو ارتکاب د معتکف لپاره مناسب نه دي۔ معتکف چونکه یو تقاعدي معلم دی نو ځکه د خپل د دې فعل د پرېښودو لپاره د یوه مجتهد په حیث تیار نه دی۔ مهرباني وکړی د جومات د تقدس او د اعتکاف له آدابو څخه مو په تفصیل سره خبر کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اعتکاف بنیادي مقصد د خدای رضا ده۔ د دې لپاره د اعتکاف په دوران کښې په هغو عبادتونو کښې مشغولیدل په کار دي چه د خدای د رضا سبب جوړیږي۔ فقهاء کرامو د معتکف لپاره د قرآن کریم تلاوت، د مبارکو حدیثونو د کتابونو مطالعه، ذکر او اذکار او د زیاتو نفلونو ادا کول تجویز کړي دي۔ لهذا د یوه معتکف لپاره په دې امورو کښې مشغولیدل په کار دي نه د اخبارونو په لوستلو او د خبرونو په اوریدلو۔ او نه دې په دغو شیانو باندې خپل قیمتي وخت ضائع کوي۔ هسې هم جومات ته د تصویرونو او لهو لعب د آلاتو وړل شرعا جائز نه دي نو ځکه یوه معتکف ته له راډیو څخه د خبرونو اوریدل او د اخبارونو مطالعه کول صحیح نه دي۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: تکلم الا بخیر و هو ما لا اثم فیه و منه المباح عند الحاجة الیه لا عند عدمها......... کقرأة قرآن وحدیث و علم و تدریس فی سیر الرسول علیه الصلٰوة و السلام و قصص الانبیاء علیهم السلام و حکایة الصالحین و کتابة امور الدین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۴۹/۴۵۰، باب الاعتکاف)

و فی الهندیة: و یلازم التلاوة و الحدیث و العلم و تدریسه و سیر النبی ﷺ و الانبیاء علیهم السلام و اخبار الصالحین و کتابة امور الدین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۲، الباب السابع فی الاعتکاف)

## د اعتکاف په حالت کښې د ځای د بدلولو حکم

**سوال:** په عمومي توګه داسې معلومیږي چه خلك د اعتکاف لپاره یو ځای ټاکي۔ نو آیا د ځای له متعین کولو څخه وروسته د اعتکاف په حالت کښې یو معتکف خپل ځای بدلولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اعتکاف لپاره جومات ضروري دی۔ معتکف په جومات کښې د ننه چه چېرته غواړي کښېناستلی شي۔ د اعتکاف په حالت کښې د جومات د ننه د ځای په بدلولو کښې شرعا کوم حرج نشته۔

لما قال الشیخ عزیز الرحمٰنؒ: په ټول جومات کښې د معتکف لپاره چه چېرته غواړي کښېناستل څه پروا نه لري۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۵۰۲، باب الاعتکاف)

## معتکف د ځان د ګرمولو لپاره د جومات په صحن کښې کښیناستلی شي

**سوال:** آیا د ژمي په موسم کښې معتکف له خپل مخصوص ځـای څخه د وتلو په صورت کښې د بـاندې د جومات په صحن کښې د ګرمۍ د حاصلولو لپاره کښیناستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اعتکاف په حالت کښې په جومات کښې د ننه اوسیدل ضروري دي۔ ټولو جومات د معتکف لپاره معتکف دی۔ له دې وجهې معتکف په جومات کښې د ننه چېرته وغواړي کښیناستلی شي اګر که له مخصوص ځای بلې خوا ته هم وي۔

لما قال الشیخ عزیز الرحمٰنؒ: معتکف چه په کوم جومات کښې معتکف وي په ټول جومات کښې چه په کوم ځای کښې وغواړي اوسیدلی او څملاستلی شي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۵۰۳، باب الاعتکاف)

قـال العلامه ظفر احمد العثمانيؒ: هر وخت په کُنج کښې اوسیدل هم ضروري نه دي بلکه د نفلي عباداتو او ذکرونو لپاره په کُنج کښې اوسیدل بهتر دي۔ په بـاقي اوقاتو کښې د جومات د ننه چېرته چـه غواړي هلته دې کښېني او ځګیږي دې۔ (امداد الحکام ج۲، ص۱۴۵، باب الاعتکاف)

## د اعتکـاف په حالت کښې د خوراك د راوړلو لپـاره کور ته تلل او هلتـه د ډیروخت په تیرولو سره د اعتکاف حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو سړی د رمضان المبارك په آخري لسو شپو کښې د اعتکاف لپاره په یوه جومات کښې کښیناست۔ چونکه د هغه د پیشلمي او روژه ماتي د راوړلو انتظام نه وو نو ځکه هغه پخپله د پیشلمي او روژه ماتي لپاره ډوډۍ پخپله له کوره راوړله۔ یوه ورځ پیشلمی د ډوډۍ د راوړلو لپاره کور ته لاړ او له ضرورت څخه ئې زیات وخت تیر کړ او خپله ښځه ئې هم ښکل کړه لیکن جماع ئې ورسره و نه کړ۔ په دې باندې د جومات امام ورته وویل چه ستا اعتکاف مات شوی دی له دې وجهې تاسو د دې اعتکاف قضایي وګرځوی۔ نو له تاسو څخه هیله کوو چه آیا دا سړی به د ټولو ورځو د اعتکاف قضایي را ګرځوي او که یواځې د همدې ورځې؟ همدا رنګه دا هم واضحه کړی چه د دې اعتکاف قضایي په غیر رمضان کښې هم جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه د خدای د رضا په خاطر د اعتکاف په نیت سره په جومات کښې کښیني نو هغه به له شرعي او دنیوي ضرورت پرته له جومات څخه نه وځي۔ بهتره دا ده چه له کور څخه د پیشلمي او افطاري لپاره د ډوډۍ راوړلو کوم بل انتظام وکړي۔ او



که چېرته کوم بل انتظام موجود او ممکن نه وي نو بیا پخپله هم تلی شي لیکن د ضرورت په اندازه به هلته پاتې کیږي یعني ډوډۍ به را اخلي او بیرته به جومات ته راځي۔

كما قال العلامة المرغينانيؒ: و لا يخرج من المسجد الا لحاجة الانسان و الجمعة. (الهداية ج۱، ص۲۱۰، كتاب الصوم، باب الاعتكاف)

او له ضرورت څخه زیات به ځنډ نه کوي او نه به هغه کارونه کوي کوم چه د شریعت له مخې د اعتکاف په دوران کښې ممنوع وي لکه د ښځې سره جماع کول او د جماع دواعي او داسې نور۔ لهذا په نوموړي صورت کښې چونکه دغه سړي د دوو منهیاتو ارتکاب کړی دی۔ یو دا چه د پیشلمي په وخت کښې له ضرورت څخه ئې زیات وخت په کور کښې تیر کړی دی۔ او بله دا چه خپله ښځه ئې ښکُل کړې ده۔ نو له دغو دوو منهیاتو له وجهې د ده د هم هغې ورځې اعتکاف ختم شوی دی۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و خص المعتكف با كل و شرب و نوم و قعد احتاج اليه... فلو خرج لاجلها فسد لعدم الضرورة. (رد المحتار ج۲، ص۱۸۴، باب الاعتكاف)

نو ځکه په نوموړي باندې یواځې د هغې ورځې د اعتکاف قضایي لازمه ده۔

كما قال العلامة ابن عابدينؒ: اى على قول ابى حنيفة و محمد رحمهما الله فيقضى اليوم الذى افسده لاستقلال كل يوم بنفسه. (رد المحتار ج۲، ص۱۴۳، كتاب الصوم، باب الاعتكاف)

قضاء که په رمضان کښې ګرځوي او که په غیر رمضان کښې ګرځوي دواړه صحیح دي۔ لیکن په غیر رمضان کښې د اعتکاف د قضایي را ګرځولو لپاره ضروري ده چه په هغې ورځې کښې به روژه هم نیسي۔

# کتاب الحج

## باب شرائط الحج و ارکانه

## (د حج د شرائطو او ارکانو احکام او مسئلې)

### د حج د فرضیت وخت

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یوه سړي ته د رمضان په میاشت کښې له خپل نیکه څخه په میراث کښې په کافي اندازې سره مال پاتې شو او د محرم تر میاشتې پورې دا مال ورسره باقي پاتې وو۔ وروسته بیا هغه مال ترې مصرف شو نو آیا په نوموړي سړي باندې حج فرض دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د فرضیت لپاره د حج په میاشتو کښې د ډیر مال مالك جوړیدل ضروري دي۔ چونکه نوموړی په میاشتو د حج کښې د مال مالك ګرځیدلی وو نو ځکه حج پرې فرض شوی دی۔ البته که چېرته دا سړی په داسې لرې ملك کښې اوسیده چه له هغه ځایه څخه د حج له میاشتو څخه مخکښې حاجیان روانیدل نو د حجاجو د قافلې د روانیدو وخت به معتبر وي۔

قال الامام ابن همامؒ: و الاولی ان یقال اذا کان قادراً وقت خروج اهل بلده ان کانوا یخرجون قبل اشهر الحج لبعد المسافة او قادراً فی اشهر الحج ان کانوا یخرجون فیها و لم یحج حتی افتقر تقرر دیناً. (فتح القدیر ج۲، ص۳۲۱، کتاب الحج)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله علی مسلم الاوّل شروط الوجوب و الوقت ای القدرة فی اشهر الحج او فی وقت خروج اهل بلدة علی ما یأتی. (رد المحتار ج۲، ص۴۵۸، کتاب الحج، مطلب فیمن حج بمال الحرام) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۱۹، کتاب المناسك، الباب الاوّل.

### له ضرورت څخه د زیاتې زمکې د درلودو په وجه د حج د فرضیت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د یوه سړي زمکه د هغه له ضروریاتو څخه زیاته ده نو آیا په داسې سړي باندې حج فرض کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د مصارفو له اداکولو نه وروسته چه دومره زمکه پاتې شي چه د اهل و عیال او ژوند تیرولو لپاره ئې کافي وي نو په داسې سړي باندې حج فرض او لازمي دی۔

و فی الهندیة: ان کان لهٗ من الضیاع لو باع مقدار ما یکفی لزاد و راحلة ذاهب و جائیاً و نفقة عیاله و اولاده و یبقی لهٗ من الصنیعة قدر ما یعیش بغلّة الباقی یفترض علیه الحج و الا فلا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۸، الباب الاول فی تفسیر الحج)



و قال قاضیخانؒ: و ان کان صاحب صنیعة ان کان له من الضیاع لو باع مقدار ما یکفی لزاد و الراحلة ذاهباً و جائیاً و نفقة عیاله و اولاده و یبقی له من الصنیعة قدر ما یعیش بغلّة الباقی یفترض علیه الحج و الا فلا. (الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندی ج۱، ص۲۸۱، کتاب الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۱٤، کتاب الحج.

### د زمکې په حاصلاتو باندې د حج د فرضیت حکم

**سوال:** زما څه زمکه ده او له هغې څخه چه کوم کلني حاصلات لاس ته راځي یواځې زما د کال مصارف پوره کوي۔ بیا هم که چېرته د زمکې قیمت ولګول شي نو په نتیجه کښې ئې ښه ډیر مال یا پیسې لاس ته راځي۔ نو آیا د زمکې د قیمت له وجهې په ما باندې حج فرض کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د فرضیت لپاره سړی باید دومره مال خامخا ولري چه پرې تلل او راتلل شي او تر راتګ پورې ئې د کور خرڅ کیږي۔ یواځې د زمکې په قیمت باندې حج نه فرض کیږي۔ البته که چېرته د زمکې حاصل او آمدني دومره وي چه اهل او عیال خرڅ او حج ته د تګ او راتګ خرڅ پوره کیده نو بیا حج پرې فرض دی او که نه پوره کیده نو نه دی فرض۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا قدر علی الزاد و الراحلة فاضلة عن المسکن ما لا بد منه و عن نفقة عیاله الی حین عوده. (الهدایة ج۱، ص۲۱۲، کتاب الحج)

قال العلامة التمرتاشیؒ: و راحلة فضلة عما لا بد منه و فضلا عن نفقة عیاله الی حین عوده. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤٦۲، کتاب الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۱۱، کتاب الحج.

### یواځې د تصرف په اختیار سره حج نه فرض کیږي

**سوال:** علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې څه فرمايي چه د یوې کونډې ښځې اولاد ښه پوره مالدار دي او مور ئې د خپل اولاد په مال کښې د تصرف کولو ښه پوره اختیار لري۔ نو آیا د دې اختیار له وجهې په نوموړې کونډې ښځې باندې حج فرض دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کومې ښځې سره مال د مِلك په توګه موجود وي یعني خپل مِلك او خپلې پیسې ورسره وي او د حج شرائط هم پوره کیده نو په هغې باندې حج فرض دی۔ او یواځې په مال باندې د اختیار د لرلو له مخې شرعاً حج په چا نه فرض کیږي۔

و اما شرائط الوجوب منها الاسلام و منها العقل و منها القدرة علی الزاد و الراحلة بطریق الملك. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۷، کتاب الحج، الباب الاول فی تفسیر الحج)

قال العلامة التمرتاشیؒ: علی مسلم ذی زاد و راحلة و فضلاً عن نفقة عیالهٖ الی حین عوده. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤٦۱، کتاب الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۱۱، کتاب الحج.

## له مشترك مال څخه د حج د فرضيت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه مونږ څلور ورونه په شـــريکه کاروبار کوو. نو آيا لـــــه دغه کاروبار څخه چه کومه نفع حاصليږي په هغې باندې يو ورور حج کولی شي او که نه؟ او د مشترك مال د موجوديت له وجهې حج په سړي فرض کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د مشترکه کاروبار د ا منافع په څلورو حصو باندې له تقسيم نه وروسته هر يوه ته دومره روپۍ ور رسيدلې چه د حج ټول اخراجات پرې پوره کيده نو په هر يوه حصه لرونکي ورور باندې حج فرض دی او که نه پوره کيده نو په يوه باندې هم فرض نه دی. او همد ارنګه د مشترك مال په ټولې نفعې باندې په مجموعي توګه په يوه ورور حج نه فرض کيږي.

قال العلامة الحصكفیؒ: علی مسلم ذی زاد الخ. و راحلة فضلا عما لا بد منه و فضلاً عن نفقة عياله الخ الی حين عوده. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۵۸، کتاب الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: شرائط وجوب الحج العقل و البلوغ و الحرية و الاستطاعة و تكلموا فی تفسير الاستطاعة. قال ابو حنيفةؒ فی ظاهر رواية تفسيرها سلامة البدن و ملك الزاد و الراحلة. (فتاوی تاتارخانية ج۲، ص۴۲۹، كتاب الحج، الفصل الاول فی شرائط الوجوب) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۱۷، الباب الاول فی تفسير الحج.

## د حکومت په مصرف باندې د حج په کولو سره د حج فريضه ساقطيږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړی سرکاري نوکر دی او دی يو په څلورمه برخه روپۍ جمع کوي او د حج نورې روپۍ حکومت پرې کوي. نو آيا د نوموړي سړي حج به فرضي حج ګڼل کيږي او که نفلي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې سفر سره د ده فرضي حج ادا کيږي او د فرضو غاړې ئې پرې خلاصيږي. ځکه چه حکومت کومې پيسې چه ورکړي دي د حج بدل لپاره نه بلکه د کومك په توګه ئې ورکړي دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: بخلاف ما لو خرج ليحج عن نفسه و فقير جاز عنه وصوله الی الميقات صار قادراً لقدرة نفسه و فيه ايضاً الا فاتی اذا وصل الی الميقات فهو كالمكی. (الدر المختار علی رد المحتار ج۲، ص۴۶۰، كتاب الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و الفقير اذا حج ما شاء ثم ايسر لا حج عليه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۱۷، كتاب المناسك، الباب الاول.

## په حـــــرام مال سره د حج کولو حيلـــــه

**سوال:** د يوه سړي په مال کښې حرام مال ګډ دی او اوس د حج اراده لري او د دې لپاره څه پيسې له چا څخه په پور اخلي ليکن کله چه پور ادا کوي نو خپل هغه حرام مال پکښې ورکوي نو آيا د نوموړي سړي حج صحيح ده او که غلط؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د وجوب لپاره حلال مال يا د مخلوط مال شته والی ضروري دی. نو چونکه نوموړي سړي حلالې روپۍ په قرض اخيستي دي نو ځکه حج ئې صحيح دی اګر که وروسته خپل قرض په حرام مال سره ادا هم کړي. بيا هم له د اسې حيلو څخه اجتناب او پرهيز په کار دی.

اذا اراد الرجل ان يحجّ بمال الحلال فيه شبهة فانه يستدين للحج و يقضی دينه من ماله كذا فی فتاوی قاضيخان. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۰، الباب الاول فی الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا اراد ان يحج بمال الحلال فيه شبهة فانه يستدين للحج و يقضی دينه من ماله. (الفتاوی التاتارخانية ج۲، ص۵۷۶، كتاب الحج، الفصل العشرون فی المتفرقات) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۰۹، كتاب الحج.

## د غلا د مال د مخلوط والي په صورت کښې د حج حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړی د غلا مال له خپل مال سره ګډ کړي او تجارت وکړي او دومره روپۍ وګټي چه حج پرې فرض شي نو آيا نوموړی له دغې ګټې څخه حج کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غلا مال له خپل مال سره د ګډولو په صورت کښې ټول مال د هغه په ملك کښې داخل شوی دی. نو ځکه د وجوب د شرائطو د شته والي په صورت کښې په هغه باندې حج فرض دی. نو له حج څخه د بچ کيدو په خاطر د مال د حراموالي بهانه يا پلمه دې نه کوي بلکه حج دې وکړي او خپلې غاړه دې خلاصه کړي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: كالحج بمال حرام ليس الحرام بل حرام هو الانفاق للمال الحرام و لا للازم بينهما. (رد المحتار ج۲، ص۴۵۶، كتاب الحج، مطلب فيمن حج بمال حرام)

و فی الهندية: و يجتهد فی تحصيل نفقة حلال فانه لا يقبل الحج با لنفقة الحرام مع انه يسقط القرض معها. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۰، الباب الاوّل فی تفسير الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۰۹، كتاب الحج.

## د حج تر فرض کيدو وروسته د غريبۍ له وجهې حج نه ساقطيږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په يوې ښځې باندې حج فرض وو ليکن د ځينو عوارضو له وجهې هغې حج و نه کړ ای شو او حال دا چه اوس غريبه شوې ده. نو آيا د دې غربت له وجهې له هغې څخه حج ساقط شوی دی او که نه؟ او که چېرته يو سړی د حج د فرض کيدو سره سره عمره وکړي نو آيا په دې سره حج ترې ساقطيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له يوې ښځې سره دومره روپۍ موجودې وي چه د ځان او محرم مصرف ئې برداشتولی شو ای نو په هغې باندې حج فرض دی. په غريبۍ سره او يا د عمرې په کولو سره ئې له حج څخه غاړه نه خلاصيږي. په ژوند کښې ورته حج کول ضروري

دي. او که چېرته ئې حج و نه کړ نو بيا له مرګ څخه دې مخکښې د حج وصيت وکړي او په وصيت باندې به ئې عمل خامخا کيږي.

و منها المحرم للمرأة شابة كانت او عجوزاً اذا كانت بينها و بين مكة ثلاثة ايام، هكذا فى المحيط. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، كتاب الحج)

و قال ايضاً: و اما شرائط وجوبه منها الاسلام حتى لو ملك به الاستطاعة حال كفره ثم اسلم بعد ما افتقر لا يجب عليه شيء بتلك الاستطاعة بخلاف ما لو ملكه مسلماً فلم يحج حتى افتقر حيث يتقرر الحج فى ذمته ديناً عليه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۷، كتاب المناسك، الباب الاول)

قال العلامة ابن همامؒ: بخلاف ما لو ملكه مسلماً فلم يحج حتى افتقر حيث يتقرر الحج فى ذمته ديناً عليه. (فتح القدير ج۲، ص۳۲۰، كتاب الحج) و مثله فى رد المحتار ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج.

## که يو څوك له اصلي حوائجو څخه زيات کورونه ولري نو حج پرې فرض دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د يو سړي له زمکې برسيره کورونه هم لري کوم چه له اصلي حوائجو څخه ئې زيات دي نو آيا په د اسې سړي باندې حج فرض دی او که نه؟ او که چېرته نوموړي حج و نه کړي نو ګنهګار به وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د چا زرعي زمکه، کورونه، جائداد او د اسې نور که چېرته له اصلي حوائجو څخه زيات وي نو په هغه باندې حج فرض دی. نو د دې لپاره په نوموړي سړي باندې هم حج فرض دی. او که چېرته ئې حج و نه کړ نو ګنهګار به وي.

قال العلامة التمرتاشيؒ: و راحلة فضلة عما لا بد منه و فضلا عن نفقة عياله الخ الى حين عوده. (تنوير الابصار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۶۲، كتاب الحج)

قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه الله: اذا قدر على الزاد و الراحلة فاضلة عن المسكن و ما لا بد منه و عن نفقة عياله الى حين عوده. (الهداية ج۱، ص۲۱۲، كتاب الحج) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۳۱۱، كتاب الحج.

## د لور ودول د حج مانع نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په زيد باندې حج فرض شوی دی ليکن د هغه په کور کښې يوه بالغه پيغله لور ده. نو آيا زيد په کور کښې د پيغلې لور په موجودوالي کښې حج کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ناواده شوي اولاد شته والی د والدينو په عدالت باندې کوم اثر نه اچوي. د اولاد په ودولو کښې نه د ډير مال لګول کومه ضروري خبره ده او نه د حج لپاره شرعي موانعو څخه ګڼل کيږي. لهذا کله چه په زيد باندې شرعا حج فرض شوی دی نو د حج کول ورته ضروري دي.

قال فى الهندية: و منها القدرة على الزاد و الراحلة بطريق الملك و الاجارة الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۷، الباب الاول فى تفسير الحج)



قال العلامة ابن عابدينؒ: (على مسلم) تحت هذه العبارة الاوّل شروط و الوجوب اذا وجبت بتمامها وجب الحج و الا فلا. (رد المحتار ج۲، ص۴۵۹، كتاب الحج) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۳۱۱، كتاب الحج.

## د استطاعت د خاوند لپاره د کور نه درلودل د حج مانع نه دی

**سوال:** له ما سره دوه مره روپۍ شته چه حج پرې وکړم. که چېرته په د غو روپو باندې کور جوړ کړم نو د حج لپاره پيسې نه پاتې کيږي نو آيا ما ته د کور جوړول ضروري دي او که د حج کول؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کور د اسې ضرورت نه دی کوم چه شرعا د حج د فريضې لپاره مانع وګرځي. نو کله چه يو څوك د حج د ادا کولو لپاره پيسې ولري نو په هغه باندې حج فرض دی او د کور جوړول کومه ضروري خبره نه ده.

قال العلامة ابن نجيم المصريؒ: هو فرض بشرط حرية و بلوغ و عقل و صحة و قدرة و زاد و راحلة و فضلت عن مسكنه. و فى قوله و ما لا بد منه اشارة الى ان المسكن لا بد ان يكون محتاجاً اليه لمسكن فلا يثبت الاستطاعة بدار يسكنها و عبد يستخدمه و ثيابه يلبسها و متاع يحتاج اليه و ثبت الاستطاعة بدار يسكنها و عبد لا يستخدمه فعليه ان يحج. (البحر الرائق ج۲، ص۳۱۳، كتاب الحج)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و ان لم يكن لهٗ مسكن و لا شيء من ذلك و عنده دارا هم تبلغ الشمس مسكنها و خادم و طعام و قوت عليه الحج و جعلها فى غيره. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۲، كتاب الحج قبل مطلب فى قولهم يقدم حق العبد) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۴۳۳، كتاب الحج، الفصل الاوّل فى شرائط الوجوب.

## د اولاد د واده نه درلودل د حج د وجوب مانع نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه ما سږ کال سره د خپلې بي بي د حج اراده کړې ده ليکن په دې حال کښې زما يو بالغ زوی واده نه لري نو آيا د زوی واده نه درلودل شرعي عذر ګڼل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زوی واده نه درلودل کوم شرعي عذر نه دی چه د حج لپاره مانع جوړ شي. لهذا کله چه په تاسو باندې حج فرض شوی دی او بل کوم شرعي مانع موجود نه وي نو څومره زر چه کېدلی شي بايد حج وکړي.

قال العلامة الحصكفيؒ: و فى الاشباه و مع الف و خاف الضروبة ان كان قبل خروج اهل بلدة فله للتزوج و لو وقته لزم الحج. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۶۲، كتاب الحج)

و فى الهندية: اذا وجد ما يحج به و قد قصد التزوّج يحج به و لا يتزوج لان الحج فريضة اوجبها الله تعالى على عبده كذا فى التبيين. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۷، كتاب المناسك، الباب الاوّل فى تفسير الحج) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۴۳۳، كتاب الحج، الفصل الاول فى شرائط الوجوب.

## په سعودي عرب كښې د اوسيدو په صورت كښې كه چېرته څوك حج و نه كړي نو آيا اوس پرې فرض دى او كه څنګه؟

**سوال:** يو سړى د كاروبار په غرض په سعودي عربستان كښې اوسيده او څو عمرې ئې هم كړي دي. ليكن په كومه وجه سعودي حكومت ونيوو او وطن ته ئې ولېږه نو آيا اوس پرې حج فرض دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د فرضيت لپاره د حج استطاعت ضروري دى. يو ائې سعودي عرب ته په تللو سره حج نه فرضيږي. چونكه نوموړي نه د حج احرام تړلى دى او نه د حج تر ورځو پورې هلته پاتې شوى دى. له دې وجهې په نوموړي باندې حج فرض نه دى.

كما هو فى الهندية: ثم ذكر من شرائط الوجوب الحج عن الزاد و الراحلة و غير ذلك يعتبر وجودها وقت خروج اهل بلده الى مكة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، الباب الاوّل فى تفسير الحج)

قال العلامة الحصكفىؒ: وقت خروج اهل بلدها و كذا سائر الشرائط. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴٦۵، كتاب الحج) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۳۱۱، كتاب الحج.

## كه په ښځې باندې حج فرض شي نو د مېړه اجازه ورته شرط نه دى

**سوال:** په يوې ښځې باندې حج فرض دى. نو آيا د خپل مېړه له اجازې پرته له خپل ورور سره چه حج وكړي نو آيا حج ئې صحيح كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته په دغې ښځې باندې شرعا حج فرض وي نو د خپل مېړه له اجازې پرته ورته له خپل ورور سره حج ته تلل صحيح دي ليكن كه چېرته نفلي حج ته تلله نو له مېړه څخه ورته د اجازې اخيستل ضروري دي.

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و اذا وجدت محرماً و لا يأذن لها زوجها ان تخرج فلها ان تخرج بغير اذنه فى حجة الاسلام دون التطوع. (الفتاوى التاتارخانية ج۱، ص۴۳۵، كتاب الحج، الفصل الاول فى شرائط الوجوب)

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و اشار بعدم اشتراط رضا الزوج الى انه ليس لهٗ منعها عن حجة الاسلام و اذا وجدت محرما لانه حقه لا يظهر فى الفرائض بخلاف التطوع. (البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج) و مثله فى الهندية ج۲، ص۲۱۹، كتاب الحج، الباب الاول فى تفسير الحج.

## د ښځې له كراچۍ څخه تر جدې پورې له محرم پرته سفر كول او حج له محرم سره د ادا كولو حكم

**سوال:** كه چېرته يو سړى له سعودي عرب څخه د خپلې والدې لپاره د حج داخله وكړي او والده ئې له كراچۍ څخه تر جدې پورې له محرم پرته يوائې سفر وكړي او حج له خپل زوى سره ادا كړي نو آيا شرعا حج ئې ادا كيږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق د ښځې د حج د ادا كولو په غرض



له كراچۍ څخه تر جدې پورې له محرم پرته سفر كول ناجائز دي. بيا هم له دې سره سره ئې حج ادا كيږي اګر كه مكروه خو خامخا دى.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و لو حجت بلا محرم جاز مع الكراهة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴٦۵، كتاب الحج)

و فى الهندية: و وجود المحرم للمرأة شرط لوجوب الحج ام لادائه بعضهم اجعلوها شرط للوجوب وبعضهم شرط لادائه و هو الصحيح. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، الباب الاول فى تفسير الحج) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج.

## د ښځې لپاره خپل اخشى (د خور مېړه) محرم نه دى

**سوال:** زما مېړه مريض دى نو آيا زه حج ته د خپلې خور له مېړه سره تللې شم او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج د فريضې د ادا كولو لپاره له ښځې سره د محرم شتون ضروري دى. اخشى (د خور مېړه) چونكه شرعي محرم نه دى نو له دې وجهې د خور له مېړه سره د حج د فريضې د ادا كولو لپاره تلل صحيح نه دي. البته كه چېرته كومه ښځه له محرم پرته حج ته لاړه شي نو غاړې ئې پرې خلاصيږي ليكن له كراهيت څخه خالي نه دى.

و منها المحرم للمرأة شابة كانت عجوز اذا كانت بينها و بين مكة ثلاثة ايّام هكذا فى المحيط و ان كان اقل من ذٰلك حجت بغير محرم و المحرم الزوج و من لا يجوز مناكحتها على التابيد بقرابة او رضاع او مصاهرة كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، الباب الاوّل فى تفسير الحج)

قال العلامة الحصكفىؒ: و مع زوج او محرم و فى رد المحتار و المحرم من لا يجوز له مناكحتها على التابيد بقرابة او رضاع او صهرية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴٦۴، كتاب الحج، مطلب فى قولهم يقدم حق العبد) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج.

## د ښځې لپاره د مېړه له ورور سره يعنې ليور يا د مېړه له وراره سره د حج د كولو حكم

**سوال:** د يوې ښځې خاوند مړ شوى دى او د خاوند په ژوند كښې ئې يو حج كړى دى ليكن اوس بيا حج كول غواړي نو آيا د خپل خاوند له ورور يا وراره سره حج ته تللې شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې لپاره حج ته د تللو لپاره د محرم موجود والى ضروري دى. د خاوند ورور يعنې ليور او يا د خاوند وراره چونكه محرم نه دي نو ځكه د ښځې لپاره له هغوى سره حج ته تلل صحيح نه دي.

و منها المحرم للمرأة شابة كانت او عجوزاً اذا كانت بينها و بين مكة ثلاثة ايام. هٰكذا فى المحيط. و ان كان اقل من ذٰلك حجت بغير محرم و المحرم الزوج و من لا يجوز مناكحتها على التابيد بقرابة او رضاع و مصاهرة كذا فى

الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، الباب الاول فى تفسير الحج)

قال العلامة الحصكفیؒ: و مع زوج او محرم. و فی رد المحتار و المحرم من لا یجوز له مناکحتها علی التابید لقرابة او رضاع او صهرية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴٦٤، كتاب الحج، مطلب فی قولهم یقدم حق العبد) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج.

## ښځه د نامحرم ګاونډي سره حج ته نه شي تللې

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د دې مسئلې په باره کښې چه يوه ښځه غواړي چه حج وکړي ليکن خاوند يا ورور نه لري. نو آيا له خپل نامحرم ګاونډي سره حج ته تللې شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه له دې ښځې سره محرم نه وي تر هغو پورې په دې باندې حج فرض نه دی. او دا ښځه د نامحرم ګاونډي سره حج ته نه شي تللې.

قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه الله: و يعتبر فی المرأة ان يكون لها محرم تحج به او زوج و لا يجوز لها ان تحج بغيرهما اذا كان بينها و بين مكة مسيرة ثلاثة ايام. (الهداية ج۱، ص۲۱۳، كتاب الحج)

قال العلامة الحصكفیؒ: و مع زوج او محرم مع وجوب النفقة لمحرمها عليها الخ. لا امرأة (و فی حاشية) و المحرم من لا يجوز له مناكحتها على التابيد بقرابة او رضاع او صهرية. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص٤٦٤، كتاب الحج) و مثله البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، كتاب الحج.

## ښځې ته له خپل ليور يا د خاوند له تره سره حج ته د تللو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د دې مسئلې په باره کښې چه ښځه د خپلې لور او د خاوند له تره سره حج ته تللې شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې لپاره د سفر په حالت کښې د محرم او يا خاوند وجود ضروري دی. ليور او د ميړه تره چونکه محارم نه دي نو له دې وجهې ښځه شرعاً له دوی سره سفر نه شي کولی. نو ځکه يوې ښځې ته هم له خپل ليور يا د خاوند له تره سره حج ته تلل صحيح نه دي.

قال ابن عابدينؒ: و يؤيده حديث صحيحين لا يحل لامرأة تؤمن با لله و اليوم الآخر ان تسافر مسيرة يوم و ليلة الا مع ذی محرم عليها. (رد المحتار ج۲، ص٤٦٥، كتاب الحج)

قال ابن نجيم المصرى رحمه الله: (تحت هذه العبارة) و محرم او زوج لا مرأة فی سفر ایّ و بشرط محرم الى آخره. كما فی الصحيحين لا تسافر امرأة الا و معها محرم و زاد مسلم فی رواية او زوج. (البحر الرائق ج۲، ص۳۱٤، كتاب الحج) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۱۸/۲۱۹، الفصل الاوّل فی تفسير الحج.

## د رهن (ګروي) په پيسو باندې د حج کولو حکم

**سوال:** يوه سړي خپله زمکه په رهن (ګروي) باندې چا ته ورکړه او په بدل کښې چه کومې پيسې لاس ته راوړې دي غواړي چه حج پرې وکړي. نو آيا په دغو روپو باندې ئې حج ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** له رهن (ګروي) څخه د انتفاع اخيستل جائز نه دي. البته حج د حج د ارکانو ادا کولو ته وايي اګر که په هر ډول مال سره هم وي. بهتره دا ده چه په حلالو روپو باندې حج وکړی شي اګر که په حرام مال سره هم د حج په کولو سره فرض له سره ساقطيږي. نو له دې وجهې د رهن په روپو باندې حج کول جائز دي.

و فی الهندية: و يجتهد فی تحصيل نفقة حلال فانه لا يقبل الحج با لنفقة الحرام مع انه يسقط الفرض معها و ان كان مغصوبة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۲۰، كتاب المناسك، الباب الاوّل)

قال ابن نجيم المصریؒ: و يجتهد فی تحصيل نفقة حلال فانهٗ لا يقبل با لنفقة الحرام كما ورد فی الحديث مع انه يسقط الفرض. (البحر الرائق ج۲، ص۳۰۹، كتاب الحج) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص٤٥٦، كتاب الحج، مطلب فيمن حج بمال الحرام.

## يواځې په نيت سره حج نه فرض کيږي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د دې مسئلې په باره کښې چه څو کسانو زيد ته وويل چه ته د حج نيت وکړه مونږ تا حج ته ليږو. زيد د حج نيت وکړ ليکن هغو حج ته و نه ليږه. نو اوس پوښتنه دا ده چه آيا يواځې د نيت په کولو سره حج په سړي فرضيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يواځې د نيت په کولو سره حج نه فرضيږي تر څو پورې ئې چه تلبيه نه وي ويلی. لهذا په زيد باندې صرف د حج په نيت باندې حج نه دی فرض شوی.

و فی الهندية: و لا يصير شارعاً بمجرد النية ما لم يأت با لتلبية او ما يقوم مقامها. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۲۲، كتاب المناسك، الباب الاوّل فی تفسير الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لا يصير داخلاً فی الاحرام بمجرد النية ما لم يضم اليه التلبية او يسوق هدياً. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص٤۳۹، الفصل الثالث فی تعليم اعمال الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۲۳، كتاب الحج، باب الاحرام.

## د خاوند له اجازې پرته د حج کولو حکم

**سوال:** په ښځې باندې د حج له فرض کيدو نه وروسته له خپل ميړه څخه د اجازې اخيستل ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حج يو عبادت دی کوم چه په مالدار يـــا غني مسلمان باندې فرض دی. د الله تعالـــــی له طرفه د هغه د ادا کولو لپاره له هيچا څخه د اجازې اخيستل ضروري نه دي. نو له دې وجهې ښځه د خاوند له اجازې پرته هم حج کولی شي خو په دې شرط چه محرم ورسره وي.

و فی الهندية: و عند وجود المحرم كان عليها ان يحج حجة الاسلام و ان لم يأذن لها زوجها. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۱۹، الباب الاوّل فی تفسير الحج)

قال الشیخ ابن عابدینؒ: و لیس لزوجها منعها عن حجة الاسلام ای اذا کان معها محرم و الا فله منعها. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۵، کتاب الحج، مطلب فی قولهم یقدم حق العبد) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، کتاب الحج.

## د والده (مور) له اجازې پرته د نفلي حج کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زيد د نفلي حج لپاره سعودي عربستان ته تلل غواړي ليکن مور اجازه نه ورکوي۔ نو آيا زيد د مور له اجازې پرته د نفلي حج لپاره تللی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت مقدسه د والدينو په اطاعت او فرمانبرداري باندې ډير تاکيد کړی دی۔ لهذا زيد ته د نفلي حج د اداکولو لپاره له مور څخه د اجازې اخيستل ضروري دي۔ او له اجازې پرته هغه ته د نفلي حج لپاره تلل له کراهيت څخه خالي نه دی۔ البته د فرض حج لپاره د مور او د اسې نورو اجازه ضروري نه ده۔

و فی الهندية: و يکره الخروج الی الحج اذا کره احد ابويه ان کان الوالد محتاجاً الی خدمة الولد و ان کان مستغنياً عن خدمته فی الملتقط حج الفرض اولٰی من طاعة الوالدين و طاعتهما اولٰی من حج النفل. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۱، الباب الاوّل فی تفسير الحج)

قال الشيخ ابن عابدينؒ: (تحت هٰذه العبارة) ممن يجب استيذانه کاحد ابويه المحتاج الی خدمته. مخکښې فرمايي: و هٰذا کلهم فی حج الفرض اما حج النفل و طاعة الوالدين اولٰی مطلقاً. (رد المحتار ج۲، ص۴۵۲، کتاب الحج، مطلب فيمن حج بمالٍ حرام) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۰۸، کتاب الحج.

## د نفلي حج لپاره د خاوند اجازه ضروري ده

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يوې ښځې فرض حج ادا کړی وي اوس غواړي چه نفلي حج ادا کړي نو آيا دې ښځې ته له خاوند څخه اجازه اخيستل ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرض حج د اداکولو لپاره له چا څخه د اجازې ضرورت نشته ليکن د نفلو حکم بيل دی۔ د ښځې لپاره د نفلي حج د اداکولو په خاطر له خپل خاوند څخه د اجازې اخيستل ضروري دي۔ خو په دې شرط چه محرم ورسره وي۔ د خاوند له اجازې پرته د ښځې لپاره نفلي حج ته تلل صحيح نه دي۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا وجدت محرما و لا يأذن لها زوجها ان تخرج فلها ان تخرج بغير اذنه فی حجة الاسلام دون التطوع. (فتاوٰی تاتارخانية ج۲، ص۴۳۵، کتاب الحج، الفصل الاول فی شرائط الوجوب)

قال العلامة ابن نجيمؒ: او اشار بعدم اشتراط رضا الزوج الی انه ليس له منعها عن حجة الاسلام و اذا وجدت محرماً لانه حقه لا يظهر فی الفرائض بخلاف حج التطوع. (البحر الرائق ج۲، ص۳۱۵، کتاب الحج) و مثله فی الهندية ج۱، ص۴۱۹، الباب الاول فی تفسير الحج.



## نفلي حج افضل دی او که صدقه

**سوال:** د فرض حج د اداکولو نه وروسته نفلي حج کول افضل دي او که د هغه په ځای هغه روپۍ غريبانو ته په صدقه کښې ورکول افضل دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرض حج له اداکولو نه وروسته په فقيرانو او مسکينانو باندې د صدقې په توګه مال مصرف کول له نفلي حج څخه بهتر او افضل دي۔ په خاصه توګه چه فقيرانو ته ئې ضرورت هم زيات وي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و فی البزازية افضلية الحج و حيث قال الصدقة افضل من الحج التطوّع و اذا کان الفقير مضطراً الخ. (رد المحتار ج۲، ص۶۶۱، کتاب الحج، مطلب فی تفضيل الحج عن الصدقة)

قال العلامة ابن عابدينؒ: قد يقال ان صدقة التطوّع فی زماننا افضل لما يلزم الحاج غالباً من ارتکاب المحظورات. (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۳۱۰، کتاب الحج) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۵۷۶، کتاب الحج، الفصل العشرون فی المتفرقات.

## حائضه ښځه چه طوافِ زيارت پرېږدي نو حکم ئې څه دی؟

**سوال:** که چېرته يوه ښځه د حيض په وجه طواف زيارت و نه کړي نو آيا دم پرې لازمېږي او که نه؟ او آيا دا ښځه اوس حلاله ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طواف زيارت د حج له ارکانو څخه يو رکن دی۔ که چېرته حائضه ښځه د حيض په حالت کښې چه طواف زيارت وکړي نو يوه بدنه (اوښ) دم پرې اوړي۔ او که چېرته د طواف زيارت له کولو پرته کورته واپس راشي نو دا ښځه به حلاله نه وي بلکه دوباره به مکې مکرمې ته ځي او طواف زيارت به کوي۔

قال العلامة ابن العلاء الانصاریؒ: اذا ترکها جميعا ان کان بمکة فانه يعيدها و ان رجع الی اهله فهو محرم من النساء ابداً فيعود الی مکّة بذٰلك الاحرام. (الفتاوی التاتارخانية ج۲، ص۵۱۸/۵۱۹، الفصل السابع فی الطواف و السعی)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و يمتد الوقت الی آخر العمر فان اخره عنها ای ايام النحر و لياليها منها کره تحريما و وجب الدم و لو لم يطف اصلاً لا يحل له النساء و ان طال و مضت سنون باجماع. (رد المحتار ج۲، ص۵۱۸، مطلب فی طواف الزيارة) و مثله فی الهندية ج۱، ص۳۴۵، الباب الثامن فی الجنايات، الفصل الرابع.

## د حِل په زمکه کښې د اوسېدونکو لپاره د طواف قدوم حکم

**سوال:** که چېرته يو سړی د حِل په زمکې کښې اوسېږي نو هغه به طواف قدوم کوي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طوافِ قدوم چه طواف تحية الکعبه هم ورته وايي په هر هغه سړي باندې واجب دی چه د حرم له حدودو څخه د باندې اوسېږي۔ چونکه دا سړی د حِل په زمکو

کنبې اوسيږي کوم چه د حرم شريف له حدودو څخه د باندې ده نو ځکه په نوموړي سړي باندې دوباره طواف قدوم ضروري دی۔

و فی الهندية: و هذا الطواف يسمّى طواف قدوم و التحية و اللقاء و ليس على اهل مكة طواف القدوم كذا فی الكافی. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۶، الباب الخامس فی كيفية اداء الحج)

قال ابن عابدينؒ: للآفاقی ای لا غير فتح فلا يسن للمكی و لا لاهل المواقيت و من دونها الی المكة. (رد المحتار ج۲، ص۴۹۴، كتاب الحج، مطلب فی دخول مكة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۳۲، باب الاحرام.

## په ميقات کنبې د ننه اوسيدونکو لپاره د طوافِ وداع حکم

**سوال:** کوم خلك چه په ميقات کنبې د ننه اوسيږي د هغو لپاره طواف وداع واجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** طوافِ وداع د هغو خلکو په حق کنبې واجب دی چه د حج لپاره له باهر څخه راځي او کوم خلك چه په ميقات کنبې د ننه اوسيږي په هغو باندې د وداع طواف واجب نه دی۔

قال ابن نجيم المصریؒ: و اراد باهل مكة من اتخذ مكة و ادخل المواقيت دار فلا طواف صدر علی من كان داخل المواقيت. (البحر الرائق ج۲، ص۳۵۱، باب الاحرام)

قال ابن عابدينؒ: ثم طواف الصدر الی الوداع سبعة اشواط بلا رمل و سعی و هو واجب الا علی اهل مكة و من فی حكمهم. (در المختار ج۲، ص۵۲۳، مطلب فی طواف الصدر) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۳۵، الباب الخامس فی كيفية اداء الحج.

## د سهار او مازديګر تر لمانځه وروسته د احرام د لمانځه حکم

**سوال:** آيا د فجر او عصر د لمانځه نه وروسته د احرام د دوو رکعتونو د لمانځه اداکول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار او مازديګر د لمانځه نه وروسته مطلقاً نفل کول جائز نه دي۔ نو ځکه د ذوات الاسبابو نوافل لکه د احرام، طواف او د اسې نورو لمونځونه هم ممنوع دي۔

و فی الهندية: و يصلّی ركعتی الطواف فی وقت يباح له اداء التطوع فيه. كذا فی شرح الطحاوی. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۶، الباب الخامس فی كيفيّة اداء الحج)

قال العلامة ابن عابدينؒ: ثم صلّی شفعا فی وقت مباح. قال ابن عابدينؒ تحت هٰذه العبارة و فی اطلاقه نظر لما مد فی اوقات الصلوٰة من ان الواجب و لو لغيره كركعتی الطواف و النذر لا تنعقد فی ثلاثة من الاوقات المنهية. (رد المحتار ج۲، ص۴۹۹، مطلب فی طواف القدوم) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳۲، كتاب الحج، باب الاحرام.

## په مکروه وختونو کنبې د احرام د دوو رکعتونو د اداکولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کنبې چه په کومو وختونو کنبې د احنافوؒ په نزد د نفل کول جائز نه دي نو د احرام لمونځ په همدغو وختونو کنبې کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد په کومو اوقاتو کنبې چه مطلقا د نفل د لمانځه کول جائز نه دي نو په همدغو وختونو کنبې د ذوات الاسباب نفل (لکه د احرام يا طواف او د اسې نورو لمونځونو) اداکول هم جائز نه دي۔

قال ابن عابدينؒ: ثم صلی شفعا فی وقت المباح. قال ابن عابدينؒ تحت هذه العبارة و فی اطلاقه نظر كما مر فی اوقات الصلوة من ان الواجب و لو لغيره كركعتی الطواف و النذر لا تنعقد فی ثلاثة من الاوقات المنهية. (رد المحتار ج۲، ص۴۹۹، مطلب فی طواف القدوم)

لما فی الهندية: و يصلی ركعتی الطواف فی وقت مباح له اداء التطوع فيه كذا فی شرح الطحاوی. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۶، الباب الخامس فی كيفية اداء الحج) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۳۱، باب الاحرام.

## د احرام له تړلو نه مخکنبې د غسل کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کنبې چه زيد حج ته د روانيدو په وخت کنبې د تېبې له وجهې د احرام له تړلو څخه مخکنبې غسل و نه کړی او اودس ئې وکړ او احرام ئې وتړلو۔ نو په دې سره د زيد په حج کنبې خو به فرق نه وي راغلی؟ او که چېرته راغلی وي نو زيد بايد څه وکړي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احرام له تړلو څخه مخکنبې غسل کول فرض او واجب نه دي بلکه يو مستحب عمل دی۔ که چېرته له غسل نه بغير يو اځې اودس وکړي او احرام وتړي نو د سړي په حج کنبې کوم فرق نه راځي۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و يستحب لمن اراد الاحرام ان يقص شاربه و اظفاره و فی الينابيع و يحلق عانته. ثم يغتسل او يتوضاء و فی الكافی فيقوم الوضوء مقام الغسل كما فی العيدين و الجمعة. و الغسل افضل و هذا الاغتسال النظافة و ليس بواجب. (الفتاوی التاتارخانية ج۲، ص۴۴۱، الفصل الثالث فی اعمال الحج)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و اخرج ايضا عن ابن عمر رضی الله تعالی عنه قال من السنة ان يغتسل اذا اراد ان يحرم. (فتح القدير ج۲، ص۴۲۹، باب الاحرام) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۲۲، الباب الثالث فی الاحرام.

## د احرام د څادرونو د رنګ مسئله

**سوال:** آيا د احرام د څادرونو رنګ بايد خامخا سپين وي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احرام د څادرونو رنګ که هر ډول وي صحيح دي۔ البته مستحبه دا ده چه رنګ ئې سپين وي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و لبس ازار و رداء جديدين او غسيلين طاهرين. قال العلامة ابن عابدينؒ ابيض ككفن الكفاية و هذا بيان النسة و الا فساتر العورة كاف. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۸۱، كتاب الحج، فصل فی الاحرام)

قال ابن نجيمؒ: و ما فی الكتاب بيان السنة و الا فساتر العورة كما فی المجمع و اشاره بتقديم الجديد الی

(البحر الرائق ج۲، ص۳۲۱، باب الاحرام) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۲۲، الباب الثالث فی الاحرام.
افضلیة و کونه ابیض افضل.

## په تبلیغ باندې حج مقدم دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په ما باندې حج فرض دی ليکن زما اراده داده چه يو کال له تبليغي جماعت سره لاړ شم. نو آيا اول حج کول بهتر دي او که په تبليغ کښې يو کال لګول؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه په تا باندې حج فرض شوی دی نو له هر شي څخه مخکښې حج مقدم وکړه. تبليغ شرعي عذر نه دی. البته د اسې کولی شې چه د داسې جماعت سره وخت ولګوې چه حج پکښې کولی شې. نو په داسې کولو سره ستاسو په يوه سفر کښې دواړه مقاصده پوره کيږي.

خطبنا رسول اللهﷺ فقال يا ايها الناس قد فرض عليكم الحج فحجوا. (مشکٰوة ج۱، ص۲۲۰، کتاب الحج)

قال ابن عابدينؒ: الاول شرط الوجوب و هی التی اذا وجدت بتمامها وجب الحج و الا فلا و هی سبعة الاسلام و العلم با لوجوب لمن فی دار الحرب و البلوغ و العقل و الحرية. (رد المحتار ج۲، ص۴۵۸، مطلب فيمن حج بمال حرام) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۱۶، کتاب المناسك، الباب الاول فی تفسير الحج.

## تر بالغيدو وروسته د حج د دوباره فرض کيدو مسئله

**سوال:** ما د پنځو کلونو په عمر کښې له خپلو والدينو سره حج کړی دی په داسې حال کښې چه زه اوس بالغ او د استطاعت او طاقت خاوند يم نو آيا اوس په ما باندې دوباره حج فرض دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له بلوغ څخه مخکښې د حج په ادا کولو سره فرض حج نه ادا کيږي ځکه چه د فرض حج لپاره بلوغ شرط دی نو ځکه د په تاسو باندې له بلوغ نه وروسته دوباره حج کول فرض دي.

عن ابی ظبيان عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول اللهﷺ ايما صبیٍ حج ثم بلغ الحنث فعليه ان يحج حجة اخرٰی. (فتح القدير ج۲، ص۳۲۵، کتاب الحج)

لما فی الهندية: و لو ان الصبی اذا حج قبل البلوع فلا يکون ذٰلك حجة الاسلام و يکون تطوعاً. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۱۷، الباب الاوّل فی تفسير الحج) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۴۳۶، الفصل الحادی عشر فی الاحصار.



## د فقـــــر په حالت کښې د حج له کولو نه وروسته د غنـــــي توب په صورت کښې دوباره حج فـــرض نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زيد د بلوغ او فقر په حالت کښې د خپل پلار په مال باندې حج کړی دی په داسې حال کښې چه زيد اوس پخپله غني شوی دی نو آيا په نوموړي باندې دوباره حج فرض دی او که د فقر په حالت کښې د حج په ادا کولو سره فرض حج ترې ساقط شوی دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرض حج د ادا کولو لپاره غنا شرط نه دی. د بلوغ نه وروسته چه کله او يا څرنګه هم حج ادا کړي نو فرض ترې ساقطيږي. لهذا زيد چه کوم حج د فقر په حالت کښې کړی دی له هغه څخه فرض حج ادا شوی دی. او اوس د غناء په صورت کښې دوباره حج کول پرې لازم نه دي.

قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله للآفاقی لا لمکی) ان الفقير الآفاقی اذا وصل الی الميقات فهو کا لمکی فی انه ان قدر علی المشی لزمه الحج و لا ينوی النفل علی زعمه انه فقير. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۰، کتاب الحج، مطلب فيمن حج به‌ال حرام)

و فی الهندية: الفقير اذا حج ماشيا ثم ايسر لا حج عليه هکذا فی فتاوی قاضی خان. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۱۷، الباب الاول فی تفسير الحج) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۴۳۷، الفصل الثانی عشر فی بيان رکن الحج.

## په حج کښې د تجارت له وجهې د حج ثواب نه کميږي

**سوال:** يو سړی د حج لپاره ځي ليکن له ځان سره د تجارت څه سامان هم وړي نو آيا د داسې سړي حج صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حج په مخصوص نيت سره په خاصو وختونو کښې له مخصوصو ارکانو سره د مخصوصو مقاماتو زيارت کولو ته وايي کوم چه نوموړي سړي تول ادا کړي دي. لهذا حج ئې صحيح دی بيا هم د حج لپاره په تللو کښې به د تجارت نيت نه کوي.

قال ابن نجيمؒ: و تجريد السفر عن التجارة احسن و لو اتجر لا ينقص ثوابه. (البحر الرائق ج۲، ص۳۰۹، کتاب الحج)

لما فی الهندية: و تجريد السفر عن التجارة احسن و لو اتجر لا ينقص ثوابه کذا فی البحر الرائق. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۰، کتاب المناسك، الباب الاوّل) و مثله فی احکام القرآن ج۲، ص۳۰۹.

## د ذی الحجې تر لسم وروسته د راتلونکي شپې حکم

**سوال:** په عامه توګه له قربانۍ څخه چه فارغيږي نو په منٰی کښې ماښام کيږي. نو اوس که چېرته له ماسخوتن نه وروسته يو سړی د طواف زيارت لپاره مکې مکرمې ته لاړ شي نو په واپس کيدو سره ګهيځ کيږي او د شپې اکثره حصه له منٰی څخه د باندې تيريږي. نو آيا که چېرته څوك په لسم د ذی الحجې طواف زيارت و نه کړي يا په لسم د ذی الحجې طوافِ زيارت

وکړي او د شپې اکثره حصه له منی څخه د باندې تیره کړي نو که څوك د اسې وکړي حکم ئې څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د ذی الحجې له لسمې ورځې څخه وروسته راتلونکې شپه د لسمې په حکم کښې ګڼلې ده۔ او د عامو فقهاء کرامو تعبیر هم همدغه دی چه د طواف زیارت نه وروسته دې منی ته بیرته لاړ شي۔ همدارنګه دا مخکښې تګ د رمی جمار لپاره دی او د رمی مرتبه له طواف څخه وروسته ده۔

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لیالیها منها) و المراد بلیلة کل یوم من ایام النحر اللیلة التی تعقب ذلك الیوم کما ان لیلة عرفة اللیلة تعقب الوجود قلت و هذا علی اطلاقه طاهر فی حق الرمی فانهٗ اذا لم یرم نهاراً من النحر یرمی اللیلة التی تعقب فی ذلك. (رد المحتار ج٢، ص٥١٨، فصل فی الاحرام، مطلب فی طواف الزیارة)

لما قال السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و لیالیها منها)........ و المراد بلیلة کل یوم من ایام النحر اللیلة التی تعقب ذلك الیوم فی الوجود کما ان لیلة یوم عرفة اللیلة التی تعقبه فی الوجود اه. (الطحطاوی حاشیة رد المحتار ج١، ص٥٠٨، کتاب الحج، فصل فی الاحرام)

## د حائضه ښځې لپاره د حج د کولو طریقه

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چیرته یوه ښځه حج ته لاړه شي او د حج په دوران کښې هغې ته حیض ورشي نو د دې ښځې لپاره څه حکم دی او د حج ارکان به څنګه ادا کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج په دوران کښې چه کله د یوې ښځې حیض شروع شي نو د هغې لپاره شرعي حکم دا دی چه د طواف او سعی بین الصفا و المروه نه پرته به د حج ټول ارکان ادا کوي لکه وقوف د عرفې او مزدلفې، رمی جمار، ذبح او د اسې نور۔ او کله چه پاکه شي نو بیا به طواف زیارت او د اسې نور کوي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: اذا حاضت المرأة عند الاحرام اغتسلت و احرمت و صنعت کما یصنع الحاج غیر انها لا تطوف با لبیت حتی تطهر لحدیث عائشه رضی الله عنها. (الهدایة ج١، ص٢٤٥، کتاب الحج)

قال ابن العلاءؒ: و المرأة اذا حاضت فی الحج ان حاضت قبل ان تحرم و انتهت الی المیقات فانها تغسل فتحرم فاذا قدمت مکة و هی حائضة تصنع کما یصنع الحاج غیر انها لا تطوف با لبیت و تسعٰی بین الصفاء و المروة و تشهد جمیع المناسك (الفتاوی التاتارخانیة ج٢، ص٤٧١، کتاب الحج) و مثله فی رد المحتار ج٢، ص٥٢٨، قبل باب القران)

## د حائضه ښځې لپاره طوافِ صدر ضروري نه دی

**سوال:** د زید ښځه د حج په دوران کښې د حیض له وجهې طوافِ صدر پرېښود نو آیا حج ئې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض په حالت کښې د ښځې لپاره شرعاً د کعبې طواف ممنوع



دی۔ که چیرته حائضه ښځه طوافِ صدر پرېږدي نو شرعاً په دې کښې څه حرج نشته۔

قال ابن عابدینؒ: فلا یجب علی المکی و لا علی المعتمر مطلقا و فائت الحج و المحصر و المجنون و الصبی و الحائض و النفساء کما فی اللباب و غیره. (ردّ المحتار ج٢، ص٥٢٣، مطلب فی طواف الصّدر)

قال ابن العلاء الانصاریؒ: و کذلك لیس علی الحائض و النفساء طواف الصّدر. (الفتاوی التاتارخانیة ج٢، ص٥٢٢، الفصل السابع فی الطواف و السّعی) و مثله فی البحر الرائق ج٢، ص٣٥١، باب الاحرام.

## په حج کښې د ګرمۍ له وجهې یوازې په تهبند باندې اکتفاء کول

**سوال:** که چیرته د حج په ورځو کښې سخته ګرمي وي او یو حاجي د ګرمۍ د شدت له وجهې احرام څادر لرې کړي او یوازې په تهبند باندې اکتفا وکړي نو آیا په حج کښې ئې څه فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په احرام کښې د عورت د پټولو لپاره تهبند تړل فرض دي۔ لهذا که چیرته د کوم عذر له وجهې یو څوك څادر لرې کړي او یوازې په تهبند باندې اکتفا وکړي نو په حج کښې ئې څه فرق نه راځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا یستحب لمرید الاحرام......... لبس ازار و رداء علی ظهره...... و هذا بیان السنة و الا فستر العورة کاف. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٢، ص٤٨١، کتاب الحج، فصل فی الاحرام)

قال العلامة مفتی عزیز الرحمٰنؒ: هر وخت د څان پیچلو ضرورت نشته۔ د خولو او د اسې نورو د ضرورت په خاطر ئې له څان لرې کولی هم شی۔ (فتاوی دار العلوم دیوبند ج٦، ص٥٥٢، دریم باب د احرام په باره کښې)

## د ښځې له خوا څخه د سړي د شیطان ویشتلو حکم

**سوال:** په حج کښې د رمی جمار په وخت کښې ډیره ګڼه ګونه وي چه له وجهې ئې ښځې رمی جمار نه شي ویشتلی نو که چیرته سړی د هغې له خوا څخه رمی جمار ادا کړي (شیطان وولي) نو آیا په دې عمل سره په ښځې باندې دم لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رمی جمار د حج له واجباتو څخه دی۔ که چیرته د کوم شرعي عذر له وجهې واجب پرېښودل شي نو په ترك کوونکي باندې دم نه لازمیږي۔ له دې وجهې په صورت مسئوله کښې په ښځې باندې دم واجب نه اوړي۔

لما قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: اما اذا ترك واجب لعذر فانه لا شیء علیه. (البحر الرائق ج٢، ص٢٣، فصل فی الجنایات)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لو ترك شیئا من الواجبات بعذر لا شیء علیه. (ردّ المحتار ج٢، ص٢٧٥، کتاب الحج، باب الجنایات) و مثله فی بدائع الصنائع ج١، ص١٣٤، فصل فی بیان واجبات الحج.

## د جمراتو د رمی لپاره ډبرې باید له کوم ځای څخه ټولې شي؟

**سوال:** که چېرته یو څوك د شیطانانو د ویشتلو لپاره ډبرې له هغه ځای څخه کوم چه شیطان ویشتل کیږي و اخلي نو د دې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه د رمی جمار یعنې د شیطانانو د ویشتلو لپاره ډبرې له مزدلفې او یا له لارې څخه ټولې کړي او له ځان سره دې یوسي۔ او له کوم ځای څخه چه شیطانان ویشتل کیږي له هغه ځای څخه دې ډبرې نه اخلي۔ بیا هم که یو څوك له هم هغه ځای څخه ډبرې و اخلي او رمی جمار پرې ادا کړي نو مکروه تنزیهي دی۔

و فی الهندیة: و یستحب ان یأخذ هی الجمار من المزدلفة من الطریق و لا یرمی بحصاة اخذها من عند الجمرة فان رمی بها جاز و قد اساء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۱۸، کتاب الحج)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یستحب اخذ الجمار من المزدلفة او من الطریق و یکره من الذی عند الجمرة. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۶۰۵، فصل فی کیفیة افعال الحج)

## په عرفات کښې د ماښام د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په عرفات کښې د ماښام لمونځ وکړي او مزدلفې ته لاړ شي او د ماسخوتن لمونځ هلته ادا کړي نو آیا لمونځ ئې صحیح دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج کښې له عرفات نه وروسته د ماښام او ماسخوتن د لمونځونو ادا کول په مزدلفه کښې لازمي خبره ده۔ که چېرته یو څوك د ماښام لمونځ د عرفات د میدان په لار کښې ادا کړي نو د لمانځه راګرځول پرې ضروري دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو صلی المغرب و العشاء فی الطریق او فی عرفات اعاده. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۲، ص۵۰۹، کتاب الحج، مطلب فی اجابة الدعاء)

و فی الهندیة: و لو صلّی المغرب بعد غروب الشمس قبل ان یأتی المزدلفة فعلیه ان یعیدها اذا اتٰی بمزدلفة فی قول ابی حنیفةؒ و محمدؒ الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۳۰، فصل فی کیفیة اداء الحج)

## په عـــرفات کښې د جمع د تاخیر په صورت کښې د مـــاسپښین او مازدیګـــر په یوه ځای د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته په عرفات کښې د حج د امام د لمانځه له ادا کولو نه وروسته څو کسان سره یو ځای شي۔ جمع تقدیم یعنې د ماسپښین او مازدیګر لمونځ په جمع سره ادا کول وغواړي نو آیا داسې کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد د عرفات په میدان کښې د جمع تقدیم لپاره د څو شرائطو موجودوالی ضروري دی۔ (۱) احرام۔ (۲) د عرفات میدان۔ (۳) د عرفات ورځ۔ (۴) امام اعظم او یا د هغه نائب۔ په دغو شرائطو کښې که چېرته یو شرط موجود نه وي نو لمونځ نه



صحیح کیږي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې لمونځ صحیح نه دی۔ البته که چېرته ئې پخپلو خپلو وختونو کښې ادا کړي نو څه حرج پکښې نشته۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: و شرط لصحة هذا الجمع الامام الاعظم او نائبه و الا صلوا وحداناً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۰۴، کتاب الحج، مطلب فی شروط الجمع بین الصلوٰتین)

و فی الهندیة: و منها ان یکون الامام هو الامام الاعظم او نائبه و هو شرط عند ابی حنیفةؒ فلو صلی الظهر بجماعة لا مع الامام و العصر مع الامام لم یجز العصر عند ابی حنیفةؒ و الصحیح قوله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۲۸، فصل فی کیفیة اداء الحج)

## په مزدلفه کښې د مـــاښام او ماسخوتن لمونځونه په جمع تاخـــیر سره د ادا کولو حکـــم

**سوال:** له عرفات څخه مزدلفې ته له تللو نه وروسته که چېرته یو څو کسه سره یو ځای شي او د ماښام او ماسخوتن لمونځونه د جمع تاخیر په صورت کښې ادا کړي نو آیا د هغو دا جمع بین الصلوٰتین صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد په عرفات کښې د جمع تقدیم په صورت کښې د امام موجودوالی ضروري دی۔ لیکن په مزدلفه کښې دا شرط نشته۔ نو ځکه که چېرته څو کسان سره یو ځای شي او په مزدلفه کښې جمع بین الصلوٰتین یعنې د ماښام او ماسخوتن لمونځونه په یوه وخت کښې سره ادا کړي نو جائز او صحیح دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: کما لا احتیاج هٰهنا للامام. قال ابن عابدینؒ و شرائط هذا الجمع لاحرام با لحج و تقدیم الوقوف علیه الزمان و المکان و الوقف الخ. (رد المحتار ج۲، ص۵۰۹، کتاب الحج، مطلب فی اجابة الدعاء)

قال الشیخ اشرف علی التهانویؒ: له دې څخه څرګنده شوه چه په جمعې کښې د حج امام شرط نه دی۔ پس که چېرته یو ائې لمونځ وکړي یا څو کسان سره یو ځای شي او په جمعې سره لمونځ وکړي نو هم صحیح دی۔ (امداد الفتاویٰ، ج۲، ص۱۷۰، کتاب الحج)

## د خیرن احرام د بدلولو حکم

**سوال:** که چېرته د یوه سړي احرام ډیر خیرن شي نو آیا خپل احرام بدلولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج کښې د احرام تړل یوه ضروري خبره ده۔ که چېرته یو احرام وتړي او په همدې یو احرام کښې ټول حج ادا کړي او که ئې بدل کړي دواړه صحیح دي۔ د احرام بدلول په حج باندې کوم اثر نه کوي۔

## تلبیه جهراً ویل کیږي او که سراً، آیا په دې کښې ښځې او نر سره برابر دي؟

**سوال:** آیا د عمرې او حج د نیت په کولو او احرام له تړلو نه وروسته تلبیه په جګ آواز ویل کیږي او که په ټیټ آواز؟ او آیا په تلبیه ویلو کښې ښځې او نر سره برابر دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج او عمرې د نیت له کولو او د احرام له تړلو نه وروسته تلبیه په

روره ویل کیږي۔ لیکن د ډیر شور او چیغو وهلو څخه په درمیانه آواز باندې باید تلبیه وویل شي۔ البته ښځې به په داسې آواز سره تلبیه وایي چه پخپله ئې اوریدلی شي نه بل څوک۔

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و يرفع صوته با لتلبية لقوله عليه السلام افضل الحجّ الحجّ و الثج فا لعج رفع الصّوت با لتلبية. قال ابن همام قوله و يرفع صوته با لتلبية و هو سنة فان تركه كان مسيئا و لا شيء عليه و لا يبالغ فيه فيجهد نفسه. (فتح القدير ج۲، ص ۳۵۰، باب الاحرام)

قال العلامة عثمان الزيلعي رحمه الله: قال النخعي كان السّلف يستحبون التلبية فى هٰذه الاحوال و لان التلبية فى الحج بمنزلة التكبير فى الصّلٰوة اوّلها شرط و باقيها سُنّةٌ فيأتى بها عند الانتقال من حال الى حال و يرفع بها صوته آه.
(تبيين الحقائق ج۲، ص ۱٤، باب الاحرام)

## تر احرام تړلو مخکښې د نوکانو او د اسې نورو د پرې کولو حکم

**سوال:** آیا د احرام له تړلو نه مخکښې د نوکانو پرې کول، د بریتونو او د اسې نورو غیر ضروري ویښتانو صفا کول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوکانو او د اسې نورو پرې کول ضروري خو نه دي البته مستحبه دا ده چه د احرام له تړلو نه مخکښې دې نوکان پرې کړي، بریتونه او د اسې نور غیر ضروري ویښتان دې صفا کړي او له دې نه وروسته دې اودس یا غسل وکړي او بیا دې احرام وتړي۔

قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلى رحمه الله: و اذا اراد ان يحرم يستحبّ له ان يقلم اظفاره و يقص شاربه و يحلق عانته و هو المتوارث لانه انظف للبدن فكان احسن ثم يتوضأ او يغسل و هو افضل. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص۱٤۳، كتاب الحج)

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه الله: و كذا يستحب لمريد الاحرام ازالة ظفره و شاربه و عانته و حلق رأسه ان اعتاده و الا فيسرحه آه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص ۱۸۱، كتاب الحج)

## د قصر (د سر د ویښتانو د لنډولو) د مقدار مسئله

**سوال:** د حج په دوران کښې د سر د ویښتانو د پرې کولو مقدار څومره دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج او عمرې له احرام څخه د وتلو لپاره حلق او قصر دواړه جائز دي۔ البته حلق افضل دی او د ښځې لپاره حلق نشته۔ بلکه د ښځې او د سړو لپاره د ګوتې د یوه بند په اندازه د ټول سر څخه د ویښتانو پرې کول ضروري دي۔ او دې طریقې ته قصر ویل کیږي۔

قال العلامة ابن العلاء الانصارى: اما المرأة فلا عليها و لٰكنها تقصر باخذ شيء من اطراف الشعر مقدار انمله و الافضل لها ان تقصر من كل شعرة مقدار انمله و ان قصرت بعض رأسها و تركت البعض اجزاها اذا كانت ما قصرت مقدار ربع رأس فصاعدا و ان كان اقل من ذلك لا يجزيها اعتباراً لتقصير فى حقها با لحلق و فى حق الرجال. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵٤۳، الفصل الرابع عشر فى الحلق و القصر)

قال صاحب البحر: و المراد با لتقصير يأخذ الرجل او المرأة من رؤس الشعر ربع رأس مقدار انمله. (البحر الرائق ج۲، ص۳٤٦، باب الاحرام) و مثله فى الهندية ج۱، ص ۲۳۱، الباب الثالث فى الاحرام.



## په حج او نکاح کښې د تقدیم او تاخیر مسئله

**سوال:** د یوه سړي سره دومره مال دی چه حج ته پرې تلی شي لیکن د واده خواهش هم لري نو آیا نوموړی دې اول واده وکړي او که حج ته لاړ شي۔ شرعاً ئې حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نوموړی سړی خپل خواهشات تر خپلې قابو باندې راوستلی شي او په زنا کښې د مبتلا کیدو خطره نه وي نو بیا دې د واده له کولو څخه مخکښې حج وکړي۔ او که چېرته په فتنې کښې د مبتلا کیدو خطره قوي وي نو بیا دې د حج له کولو څخه باید مخکښې واده وکړي۔

قال العلامة ابن عابدين: (قوله فى الاشباه) المسئلة منقولة عن ابى حنيفةؒ فى تقديم الحج على التزويج...... و لذا اعترضه ابن كمال باشا فى شرحه الهداية بانه حال التوقان مقدم على الحج اتفاقا لان فى تركه امرين ترك الفرض و الوقوع على الزنا و جواب ابى حنيفةؒ فى غير حال التوقان. (رد المحتار ج۲، ص۱۹۷، كتاب الحج)

استفتاء

## د حج په اړه ځو پوښتنې او د هغو ځوابونه

مونږ د حرم شریف خادمان د ځو پوښتنو په اړه کافي تشویش لرو. امید دی چه تاسو جناب د دغو سوالونو ځوابونه په تفصیل سره راولیږی.

﴿۱﴾ تقریبا اوه سوه کسان (کوم چه سعودي عربستان ته تلل) له اسلام آباد څخه ئې احرامونه و نه تړل ځکه چه د کمپنۍ خاوندانو د احرام د تړلو اجازه نه وه ورکړې. د کمپنۍ خاوندانو په دریمه ورځ مونږ ته د عمرې اجازه راکړه. چونکه په دې کښې زمونږ خپل اختیار نه وو نو آیا په مونږ باندې دم واجب دی او که نه؟

﴿۲﴾ د کمپنۍ خاوندانو مونږ مدینې منورې ته د زیارت د کول لپاره بوتلو. په بیرته راتلو باندې مونږ احرامونه وتړل او عمره مو ادا کړه. دا حج افراد شو او که حج تمتع؟ او عمره مو د شوال په میاشت کښې ادا شوه؟

﴿۳﴾ ځینې افرادو احرامونه و نه تړل او له مدینې منورې څخه په شوال کښې د بیرته راتلو په صورت کښې عمره ادا نه کړه ځکه چه د هغو دا خیال وو چه که چیرته مونږ احرامونه وتړو نو په مونږ باندې قرباني واجبیږي. نو آیا په دغو افرادو باندې دم واجب شوی دی او که نه؟

﴿۴﴾ کوم خلک چه له مدینې منورې څخه د بیرته تلو په صورت کښې عمرې وکړې نو د هغوی حج به کوم حج وي؟

﴿۵﴾ آیا په مونږ د حرم شریف خادمانو باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ ځکه چه مونږ دلته یوائې د څلور میاشتو لپاره راغلي یو؟

﴿۶﴾ که چیرته په چا باندې دم واجب شي او هغه غریب وي نو د هغه په اړه کومه متبادله مسئله شته او که نه؟

﴿۷﴾ د "اې" (A) ډله د سهار له شپږو بجو څخه تر دوو نیمو بجو پورې په حرم شریف کښې خپلې وظیفې ترسره کوي.

او د "بي" (B) ډله د ورځې له دوو نیمو بجو څخه د شپې تر لس نیمو بجو پورې خپلې وظیفې ترسره کوي.

او د "سي" (C) ډله د شپې له لس نیمو بجو څخه د سهار تر شپږو بجو پورې خپلې وظیفې ترسره کوي. نو دغه درې واړه ډلې به خپل حجونه په کومې کومې طریقې سره ادا کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ له احرام څخه پرته حرم شریف ته داخلیدل سخته گناه ده او په دا سې صورت کښې توبه او د آفاقو یوه میقات ته بیرته تلل او د حج یا عمرې لپاره احرام [illegible] دي. او که چیرته بیرته رانه غی او له هغه ځای څخه ئې احرام و تړلو نو گنهگار به



وي او دم به پرې واجب وي. البته که چیرته په همدې کال کښې د آفاقو هر یو میقات ته چه لاړ شي د حج یا عمرې احرام وتړي یا په حرم شریف کښې احرام وتړي لیکن د طواف د یوه شوط (گردش) له پوره کولو مخکښې کوم میقات ته لاړ شي او تلبیه ووایي او حج یا عمره وکړي نو دم بیا ساقطیږي. په دې حج او یا عمرې کښې له احرام پرته د تجاوز له وجهې د واجب د ادا کولو نیت ضروري نه دی بلکه حج یا عمره، نفل یا نذر یا فرض حج کوم نیت چه کوي په دې سره له احرام پرته د تجاوز واجب ادا کیږي. او که چیرته په همدې کال کښې د آفاقو له هیڅ یوه میقات څخه حج یا عمره و نه کړي بلکه په بل کال کښې ئې وکړي نو دم نه ساقطیږي. البته د تجاوز له وجهې چه کوم نُسُک واجب شوی وو هغه ادا کیږي. اگر که ئې د نفلو یا نذر او یا د فرضو نیت کړی وي.

په فتاوی قاضي خان کښې راغلي دي چه: و لو دخل آفاقی مکة بغیر احرام ثم رجع الی المیقات فی تلک السنة و احرم بحجة الاسلام سقط عنه ما کان واجباً بالمجاوزة و دخول مکة بغیر احرام عندنا و ان لم یخرج من مکة حتی مضت السنة ثم خرج الی المیقات فی السنة الثانیة و احرم بحجة الاسلام و حج یجزیه حجة الاسلام و لا یسقط عنه الدم الذی کان واجباً علیه فی العام الاول. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۲۸۷)

او په هدایه کښې دي چه: و اذا اتی الکوفی بستان بنی عامر فاحرم بعمرة فان رجع الی ذات عرق و لبّیٰ بطل عنه دم الوقت. و فی هامشه قوله الی ذات عرق التخصیص به بالنظر الی حال الکوفی و الا فالرجوع الیه و الی غیره من مواقیت الآفاقین سواء فی سقوط الدم فی ظاهر الروایة. (ج۱، ص۲۶۸، باب مجاوزة الوقت بغیر احرام)

او مواقیت الآفاق دا دي: (۱) ذو الحلیفه (۲) ذات عرق (۳) جحفه (۴) قرن یلملم او د میقاتي میقات د حِل زمکه ده چه د حرم او د میقات تر منځه واقع دی. او د مکي لپاره میقات د حج لپاره حرم دی او د عمرې لپاره د حِل زمکه. (فتاوی علائیه ج۲، ص۱۶۵ تا ۱۶۹)

او د بندگانو له خوا عذر د دم ساقطوونکی نه دی.

او په "مسائل د حج" لسیدي مولانا مفتي محمد فرید صاحب مد ظله کښې دي چه:

**مسئله:** که چیرته یو محرم له میقات څخه د احرام نیت و نه کړي نو او له هغه څخه مخکښې بل میقات وي نو د بل میقات څخه به احرام تړي. او که چیرته بل میقات ئې مخته نه وي او احرام وتړي نو د طواف له شروع کولو نه مخکښې به یوه میقات ته بیرته راگرځي. که چیرته بیرته را و نه گرځي نو دم پرې واجب دی. (شرح لباب وغیره، مسائل حج پښتو ص۹۳)

**فائده:** دا سې موټروان او ملازم چه د میقات له خارج څخه حرم یا مکې مکرمې ته په کثرت سره ځي نو د هغه لپاره هر ځل عمره کول ضروري دي. او ځومره وارې چه له احرام پرته د حرم زمکې یا مکې مکرمې ته داخل شي همدومره ځلې دم او عمره پرې واجبیږي.

صدر شریعت او صاحب دُرر او صاحب ایضاح فرمایي چه د کوم سړي د حج او عُمرې اراده نه وي نو هغه د حرم زمکې او مکې معظمې ته له احرام پرته تگ راتگ کولی شي لیکن

استفتاء

## د حج په اړه څو پوښتنې او د هغو ځوابونه

مونږ د حرم شریف خادمان د څو پوښتنو په اړه کافي تشویش لرو۔ امید دی چه تاسو جناب د دغو سوالونو ځوابونه په تفصیل سره را ولیږئ۔

﴿۱﴾ تقریبا اوه سوه کسان (کوم چه سعودي عربستان ته تلل) له اسلام آباد څخه ئې احرامونه و نه تړل ځکه چه د کمپنۍ خاوندانو د احرام د تړلو اجازه نه وه ورکړې۔ د کمپنۍ خاوندانو په دریمه ورځ مونږ ته د عمرې اجازه راکړه۔ چونکه په دې کښې زمونږ خپل اختیار نه وو نو آیا په مونږ باندې دم واجب دی او که نه؟

﴿۲﴾ د کمپنۍ خاوندانو مونږ مدینې منورې ته د زیارت د کول لپاره بوتلو۔ په بیرته راتلو باندې مونږ احرامونه وتړل او عمره مو ادا کړه۔ دا حج افراد شو او که حج تمتع؟ او عمره مو د شوال په میاشت کښې ادا شوه؟

﴿۳﴾ ځینې افرادو احرامون و نه تړل او له مدینې منورې څخه په شوال کښې د بیرته راتلو په صورت کښې عمره ادا نه کړه ځکه چه د هغو دا خیال وو چه که چیرته مونږ احرامونه وتړو نو په مونږ باندې قرباني واجبیږي۔ نو آیا په دغو افرادو باندې دم واجب شوی دی او که نه؟

﴿۴﴾ کوم خلک چه له مدینې منورې څخه د بیرته تلو په صورت کښې عمرې وکړې نو د هغوی حج به کوم حج وي؟

﴿۵﴾ آیا په مونږ د حرم شریف خادمانو باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ ځکه چه مونږ دلته یوائې د څلور میاشتو لپاره راغلي یو؟

﴿۶﴾ که چیرته په چا باندې دم واجب شي او هغه غریب وي نو د هغه په اړه کومه متبادله مسئله شته او که نه؟

﴿۷﴾ د "اې" (A) ډله د سهار له شپږو بجو څخه تر دوو نیمو بجو پورې په حرم شریف کښې خپلې وظیفې ترسره کوي۔

او د "بي" (B) ډله د ورځې له دوو نیمو بجو څخه د شپې تر لس نیمو بجو پورې خپلې وظیفې ترسره کوي۔

او د "سي" (C) ډله د شپې له لس نیمو بجو څخه د سهـــار تر شپږو بجو پورې خپلې وظیفې ترسره کوي۔ نو دغـــه درې واړه ډلې به خپل حجونه په کومې کومې طریقې سره ادا کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ له احرام څخه پرته حرم شریف ته د اخیدل سخته ګناه ده او په داسې صورت کښې توبه او د آفاقو یوه میقات ته بیرته تلل او د حج یا عمرې لپاره احـــرام تړل واجب دي۔ او که چیرته بیرته را نه غی او له هغه ځای څخه ئې احرام و تړلو نو ګنهګار به



وي او دم به پرې واجب وي۔ البته که چیرته په همدې کال کښې د آفاقو هر یو میقات ته چه لاړ شي د حج یا عمرې احرام وتړي یا په حرم شریف کښې احرام وتړي لیکن د طواف د یوه شوط (ګردش) له پوره کولو مخکښې کوم میقات ته لاړ شي او تلبیه ووایي او حج یا عمـــره وکړي نو دم بیا ســـاقطیږي۔ په دې حج او یا عمرې کښې له احرام پرته د تجاوز له وجهې د واجب د ادا کولو نیت ضروري نه دی بلکه حج یا عمره، نفل یا نذر یا فرض حج کوم نیت چه کوي په دې سره له احرام پرته د تجاوز واجب ادا کیږي۔ او کـــه چیرته په همدې کال کښې د آفاقو له هیڅ یوه میقات څخه حج یا عمره و نه کړي بلکه په بل کال کښې ئې وکړي نو دم نه ساقطیږي۔ البته د تجاوز له وجهې چه کوم نُسُک واجب شوی وو هغه ادا کیږي۔ اګر که ئې د نفلو یا نذر او یا د فرضو نیت کړی وي۔

په فتاوی قاضي خان کښې راغلي دي چه: و لو دخل آفاقي مكة بغير احرام ثم رجع الى الميقات في تلك السنة و احرم بحجة الاسلام سقط عنه ما كان واجباً بالمجاوزة و دخول مكة بغير احرام عندنا و ان لم يخرج من مكة حتى مضت السنة ثم خرج الى الميقات في السنة الثانية و احرم بحجة الاسلام و حج يجزيه حجة الاسلام و لا يسقط عنه الدم الذي كان واجباً عليه في العام الاول. (فتاوى قاضي خان على هامش الهندية ج ۱، ص ۲۸۷)

او په هدایه کښې دي چه: و اذا اتى الكوفي بستان بني عامر فاحرم بعمرة فان رجع الى ذات عرق و لبىّ بطل عنه دم الوقت. و في هامشه قوله الى ذات عرق التخصيص به بالنظر الى حال الكوفي و الا فالرجوع اليه و الى غيره من مواقيت الآفاقين سواء في سقوط الدم في ظاهر الرواية. (ج ۱، ص ۲۶۸، باب مجاوزة الوقت بغير احرام)

او مواقیت الآفاق دا دي: (۱) ذو الحلیفه (۲) ذات عرق (۳) جحفه (۴) قرن یلملم او د میقاتي میقات د حِل زمکه ده چه د حرم او د میقات تر منځه واقع دی۔ او د مکې لپاره میقات د حج لپاره حرم دی او د عمرې لپاره د حِل زمکه۔ (فتاوی علائیه ج ۲، ص ۱۶۵ تا ۱۶۹)

او د بندګانو له خوا عذر د دم ساقطوونکی نه دی۔

او په "مسائل د حج" لسیدي مولانا مفتي محمد فرید صاحب مد ظله کښې دي چه:

**مسئله:** که چیرته یو محرم له میقات څخه د احرام نیت و نه کړي نو او له هغه څخه مخکښې بل میقات وي نو د بل میقات څخه به احرام تړي۔ او که چیرته بل میقات ئې مخته نه وي او احرام وتړي نو د طواف له شروع کولو نه مخکښې به یوه میقات ته بیرته را ګرځي۔ که چیرته بیرته را و نه ګرځي نو دم پرې واجب دی۔ (شرح لباب و غیره، مسائل حج پښتو ص ۹۳)

**فائده:** داسې موټروان او ملازم چه د میقات له خارج څخه حرم یا مکې مکرمې ته په کثرت سره ځي نو د هغه لپاره هر ځل عمره کول ضروري دي۔ او ځومره واړې چه له احرام پرته د حرم زمکې یا مکې مکرمې ته داخل شي همدومره ځلې دم او عمره پرې واجبیږي۔

صدر شریعت او صاحب دُرر او صاحب ایضاح فرمایي چه د کوم سړي د حج او عمرې اراده نه وي نو هغه د حرم زمکې او مکې معظمې ته له احرام پرته راتګ کولی شي لیکن

محققینو احنافو دا خبره غلطه ګڼلې ده. (شرح لباب وغيره)

﴿۲﴾ په فتاوی هندیه کښې دي چه: و لو احرم لعمرة قبل اشهر الحج فقضاها و تحلل بمكة فاحرم بعمرة ثم حج من عامه ذلك لم يكن متمتعا فان كان حين فرغ الاولى خرج فجاوز الميقات قبل اشهر الحج فاهل منه لعمرة فى اشهر الحج و حج من عامه فهو متمتع و ان كان اشهر الحج لم يكن متمتعاً الا اذا خرج الى اهله ثم اعتمر ثم حج فى عامه عند ابى حنيفةؒ و عندهما هو متمتع جاوز الميقات قبل اشهر الحج او بعد هكذا فى محيط سرخسیؒ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۰، باب العمرة، کتاب الحج)

له دې عبارت څخه معلومه شوه چه په تاسو خادمانو په مکه مکرمه کښې د پاتې کیدو او د عمرې د اداکولو په صورت کښې که چېرته مدینې منورې ته له شوال څخه مخکښې تللي وی او په شوال (اشهر حج) کښې مو له مدینې منورې څخه عمره اداکړې وي او بیا په همدې کال کښې حج هم اداکړی نو بیا به ستاسو حج حج تمتع وي. او که چېرته تاسو په همدې کال کښې په شوال کښې له مکې مکرمې څخه مدینې منورې ته تللي وی او له مدینې منورې څخه مو په شوال کښې عمره کړې وي او بیا حج هم وکړی نو تاسو به د امام ابوحنیفةؒ د مذهب مطابق متمتع حاجیان نه یی او د امام محمدؒ او امام ابویوسفؒ د مذهب مطابق به متمتع یی.

﴿۳﴾ کومو حضراتو چه په شوال کښې له مدینې منورې څخه عمره کړې وي هغوی دې دوهم ځواب مطالعه کړي او کومو خلکو چه له مدینې منورې څخه عمره نه وي اداکړې او له احرام پرته مکې مکرمې ته راغلي وي نو هغوی دې د اول سوال ځواب مطالعه کړي.

﴿۴﴾ کوم خلکو چه له شوال څخه مخکښې مدینې منورې ته لاړ شي او له هغه ځای څخه ئې په شوال یعنې اشهُر حج کښې عمره وکړي او په همدې کال کښې حج هم وکړي نو د هغوی حج په اتفاق سره حج تمتع دی. او په شوال یعنې اشهُر حج کښې چه څوک مدینې منورې ته لاړ شي او له مدینه طیبه څخه په اشهُر د حج کښې عمره اداکړي او بیا حج وکړي نو دا حج به حج تمتع نه وي. او دا د امام اعظم ابو حنیفةؒ مسلك او مذهب دی. او د امام محمد او امام ابو یوسف رحمهما الله په نزد دا حج هم حج تمتع دی. او کوم خلك چه له مدینې منورې څخه له احرام پرته مکې مکرمې ته راغلي دي د هغوی حج حج تمتع نه دی. البته د دوی په ذمه باندې د مخکښیني تفصیل مطابق له میقات څخه له احرام پرته د تیریدلو په وجه دم لازمیږي. او په دې صورت کښې هم که چېرته له اشهُر حج څخه مخکښې د آفاقو له یوه میقات څخه تجاوز وکړی شي او بیا له دې میقات څخه په اشهُر حج کښې عمره وکړی شي نو دا به هم په اتفاق سره حج تمتع وي. او که چېرته په اشهُر حج کښې تجاوز شوی وي او له همدې میقات څخه عمره وکړی شي او په همدې کال کښې حج هم وشي نو دا حج د امام اعظمؒ په نزد حج تمتع نه دی او د صاحبینوؒ په نزد تمتع دی. اوس د هندیه



هغه عبارت مطالعه کړی چه د دوهم ځواب په ابتداء کښې درج شوی دی او د متمتع تعریف هم مطالعه کړی کوم چه په لاندې ډول دی.

و المتمتع من یاتی بافعال العمرة فی اشهر الحج او یطوف اکثر طوافها فی اشهر الحج و یحج من عامه ذلك قبل ان هلم باهله بینهما اتماماً صحیحاً سواء حل من احرامه الاوّل او لا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۳۸)

همدارنګه د غنیه المناسك دا عبارت مطالعه کړی: التاسع ان لا یدخل علیه اشهر الحج و هو حلا بمکة او ما حولها او محرم طاف لعمرته اکثره قبلها حتی لو احرم بعمرة اخری و حج من عامه لا یکون متمتعا الا ان یعود الی اهله فیحرم بها فیکون متمتعا اتفاقاً او الی خارج المیقات فیکون متمتعاً عندهما. (غنیة المناسك ص۱۱۴)

﴿۵﴾ په فتاوی هندیه کښې دي چه: و لا تجب علی المسافر و لا علی الحاج اذا کان محرماً و ان کان من اهل مکة کذا فی شرح الطحاوی. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۲۹۳)

له دې روایت څخه معلومه شوه چه حاجي چه د حج په احرام کښې وي په هغه باندې قرباني نه ده واجبه اګر که په مك مکرمه کښې مقیم وي او دوهم قول د دې مذکوره مسئلې په مخالفت کښې دی او هغه دا چه په مکه مکرمه کښې په مقیم باندې قرباني واجبه ده اګر که هغه د حج په احرام کښې هم وي.

په فتاوی علائیه کښې دي چه: (فتجب ای التضحیة) علی حر مقیم فلا تجب علی حاج مسافر فاما اهل مکة فتلزمهم و ان حجوا و قیل لا تلزم المحرم. سراج و فی رد المحتار قوله و قیل لا تلزم المحرم و ان کان من اهل مکة جوهرة عن الخجندی و حمله فی الشرنبلالیة علی المسافر و فیه نظر ظاهر. (فتاوی علائیة ج۵، ص۲۲۲)

﴿۶﴾ لیکن زما شیخ او مربي سیدي مفتي محمد فرید صاحب دامت برکاتهم العالیه اول قول غوره کړی دی.

﴿۷﴾ په رد المحتار کښې دي چه: تحت شرح قول صاحب الدر المختار. الواجب دم علی محرم بالغ الخ. (تنبیه) فی شرح النقایة للقاری ثم الکفارات کلها واجبة علی التراخی فیکون مؤدیا فی ای وقت و انما یتضیق علیه الوجوب فی آخر عمره فی وقت یغلب علی ظنه انه لو لم یؤده لفات فان لم یود فیه حتی مات اثم و علیه الوصیة و لو لم یوص لم یجب علی الورثة و لو تبرعوا عنه جاز الا الصوم. و فیه ایضاً (قوله و لو ناسیا) او عائداً ذاکراً او ناسیاً عالماً او جاهلاً طایعا او مکرها نائما او منتبهاً سکرانا او صاحیا مغمی علیه او مفیقا موسراً او معسراً بمباشرته او مباشرة غیره بامره. (ج۲، ص۲۱۷، باب الجنایات، کتاب الحج)

له دغو عباراتو څخه معلومه شوه چه د غریب لپاره هم دم اداکول ضروري دي. البته په دم اداکولو کښې دومره سهولت شته چه علی الفور ضروري نه دی بلکه که چېرته له مرګ څخه مخکښې مخکښې ئې ورکړي نو بیا ئې هم غاړې خلاصیږي.

﴿۸﴾ دا ستاسو د کمپنۍ په خاوندانو پورې منحصره ده چه د کمپنۍ خاوندان تاسو ته دومره رعایت درکړي چه تاسو خو کم تر کمه د حج ضروریات او فرضیات اداکولی شی. هو الموفق.

# بـــــاب التمتع و القِران

## (د حج قِران او حج تمتع احـــــکام او مسائل)

### په حج تمتع کښـــــې د قربانۍ د نه کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زيد د حج تمتع په اراده سفر وکړ ليکن د ځينو عذرونو له مخې ئې قرباني و نه کړې شو. اوس دا نقصان په مکه مکرمه کښې د قربانۍ په کولو سره پوره کيږي او که په خپل وطن کښې هم قرباني کولی شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په متمتع باندې چونکه قرباني کول واجب دي او که چېرته يو سړی د عذر په بناء باندې قرباني و نه کړې شي نو له حج نه وروسته په هغه باندې دوه قربانۍ لازمې وي. او دواړه قربانۍ به په مکه مکرمه کښې کوي که اصالتاً وي يا وکالتاً او که په کومو ورځو کښې چه وي.

قال ابن نجيم المصريؒ: فلو لم يقدر على الهدى تحلل و عليه دمان دم التمتع و دم التحلل قبل الهدى. (البحر الرائق ج۲، ص۳۶۱، باب القران)

قال العلامة الحصكفيؒ: فلو لم يقدر تحلل و عليه دمان. قال ابن عابدينؒ فی قوله دمان دم التمتع و دم التحلل قبل اوانه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۳٤، کتاب الحج، باب القِران) و مثله فی الهداية ج۲، ص۴۲۰، باب القِران.

### د متمتع او د قارن له قربانۍ څخه مخکښې د حلق (د سر د خريلو) مسئله

**سوال:** متمتع يا قارن که چېرته له قربانۍ څخه مخکښې حلق وکړي نو شرعي حکم ئې څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته مفرد بالحج وي نو دم نه دی پرې واجب ځکه چه جنايت و نه شو او که چېرته متمتع او قارن وي نو له قربانۍ څخه د حلق په کولو سره دم واجبيږي. او په نوموړي باندې د حرم په زمکه کښې قرباني لازمه ده.

قال ابن نجيمؒ: فان حلق القارن قبل ان يذبح فعليه دمان عند ابی حنيفةؒ دم بالحلق فی غير اوانه لان اوانه بعد الذبح و دم بتاخير الذبح عن الحلق و عندهما يجب على دم واحد هو الاقل. (البحر الرائق ج۲، ص۳۶۱، باب القرآن)

لما قال العلامة ابن همامؒ: قال محمدؒ فی الرواية دم للقران و دم للحلق قبل ان يذبح الا ترى ان المفرد لو حلق قبل ان يذبح لم يلزمه شیء بالاتفاق لعدم استلزامه لتاخير الواجب. (فتح القدير ج۲، ص۴۷۳، باب الجنايات) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۵۵۵، باب الجنايات.



### د حج قِران او حج تمتع تعريف

**سوال:** زيد که چېرته د حج په سفر کښې د عمر له طرف څخه عمره ادا کړي نو آيا دا صحيح ده او که نه؟ او که چېرته صحيح وي نو زيد د حج تر ادا کولو پورې به په احرام کښې پاتې کيږي او که له دې څخه مخکښې هم حلاليدلی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زيد که چېرته د عمرې ثواب عمر ته وبخښي نو صحيح دی او د حج په مياشتو کښې د عمرې په کولو سره له احرام څخه د وتلو نه وروسته د حج لپاره دوباره احرام وتړي نو د شريعت په اصطلاح کښې دا سړی متمتع بلل کيږي او که چېرته دواړه په يوه احرام ادا کړي نو قارن بلل کيږي او په ده باندې د شکر دم واجبيږي.

کما فی الهندية: هو ان يجمع بين احرامی الحج و العُمرة من الميقات او قبله فی اشهر الحج او قبلها. هٰكذا فی معراج الدراية و المتمتع من يأتی باعمال العُمرة فی اشهر الحج او يطوف اكثر طوافها فی اشهر الحج ثم يحرم بالحج و يحج من عامه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۳۷، الباب السابع فی القِران و التمتع)

قال العلامة ابن العلاء الانصاریؒ: و القارن هو الجامع بين الحج و العرة سواء احرم بهما معاً او احرم بالحجة و اضاف اليها العمرة و عليه دم الشكر لما انعم الله عليه من التوفيق للحج بين العبادتين سفر واحد. (الفتاوی التاتارخانية ج۱، ص۵۲۶، الفصل التاسع فی القارن) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۵۷، باب القِران.

### د حج تمتع لپاره د عمرې له کولو نه وروسته د حج د احرام د تړلو ځای

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه متمتع له عمرې څخه د فارغيدو نه وروسته به د حج احرام له کوم ځای څخه تړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** متمتع چه کله له عمرې څخه فارغ شي او حلال شي نو کله چه د حج لپاره د احرام د تړلو اراده وکړي نو د مکې مکرمې او د حرم د ټولې زمکې څخه ئې تړلی شي.

قال العلامة الحصكفیؒ: قال فی اللباب و الافضل ان يحرم من المسجد يجوز من جميع الحرم و من مكّة افضل من خارجها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۳۷، باب التمتع)

قال الشيخ ابن الهمامؒ: فاذا كان يوم التروية احرم بالحج من المسجد. هداية و فی فتح القدير و المسجد ليس بلازم بل هو افضل و مكة افضل من غيرها من الحرم. (فتح القدير ج۲، ص۴۲۳، باب التمتع) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۶۳، باب التمتع.

### د متمتع لپاره له عمرې نه وروسته د احرام د خلاصولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له پاکستان څخه ځينې حجاج کرام د حج تمتع په اراده په شعبان کښې مکې مکرمې ته ځي او د عمرې له کولو نه وروسته ئې ځانونه حلال کړي وي. او د رمضان مياشت هغوی په بيت الله شريف کښې تيره کړه او د شوال په مياشت کښې د زيارت نبويﷺ په اراده مدينې منورې ته لاړل او په بيرته راتلو باندې ئې بيا

احرامونه وتړل۔ نو اوس د عمرې له کولو نه وروسته دوی ته د احرام د خلاصولو اجازه شته اوکه نه او که تر حج پورې به دوی په همدې احرام کښې پاتې کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مدینې منورې څخه په بیرته راتلو باندې که چېرته چا د حج تمتع اراده درلوده نو هغه به له ذو الحلیفه څخه احرام تړي او د عمرې له ادا کولو نه وروسته دې احرام خلاص کړي او بیا دې د حج لپاره احرام وتړي کوم چه واجب دی۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و لم یقید احرامها باشهر الحج لانه لیس بشرط لکن اداء اکثر طوافها فیها شرط فلو طاف الاقل فی رمضان مثلاً ثم طاف الباقی فی الشوال ثم حج من عامه کان متمتعاً۔ (البحر الرائق ج۲، ص۲۶۲، کتاب الحج)

و فی الهندیة: و لیس من شرائط التمتع وجود الاحرام با لعُمرة فی اشهر الحج بل اداؤها فیها او اداء اکثر طوافها۔ (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۳۸، الباب السابع فی القِران و التمتع) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۳۱، الفصل العاشر فی التمتع

## په میقات کښې د اوسیدونکو لپاره د حج تمتع او قِران حکم

**سوال:** کوم خلك چه په میقات کښې د ننه اوسیږي هغوی حج تمتع او حج قِران کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تمتع او قِران د هغو خلکو لپاره دي کوم چه له میقات څخه د باندې اوسیږي۔ لهذا کوم خلك چه په میقات کښې د ننه اوسیږي هغه تمتع او قران نه شي کولی هغه به یواځې حج افراد یا عمره کوي۔

قال العلامة التمرتاشیؒ: و المکی و من فی حکمه ای من اهل داخل المواقیت یفرد فقط و لو قران او تمتع جاز و اساء و علیه دم جبر. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۳۹، باب التمتع)

و فی الهندیة: و لیس لاهل مکة تمتع و لا قِران و انما لهم الافراد خاصة. کذا فی الهدایة و کذلك اهل المواقیت. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۳۹، الباب السابع فی القِران و التمتع) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۱۴۳، باب القران و التمتع

## د حج تمتع له نیت نه وروسته د حج قِران نیت کول

**سوال:** که چېرته یو سړی له پاکستان څخه د حج تمتع په نیت مکې مکرمې ته لاړ لیکن هلته چه ورسیده نو د عمرې له کولو نه وروسته مدینې منورې ته لاړ او هلته ئې د حج قران نیت وکړ نو آیا د اسې حج قِران کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صاحبینو په نزد کله چه محرم د حرم له حدودو څخه ووځي نو حیثیت ئې د آفاقي ګرځي۔ اوس که چېرته د تمتع په ځای باندې د قِران نیت وکړي نو جائز دی او وجه ئې دا ده چه د دوی په نزد د حرم له حدودو څخه په وتلو باندې د تمتع نیت باطلیږي او د



امام صاحبؒ په نزد د حرم له حدودو څخه د وتلو له وجهې د تمتع نیت نه باطلیږي. نو ځکه د صورت مسئوله مطابق د حج قران نیت کول جائز نه دي۔ البته موجوده حالاتو ته په نظر کولو سره د صاحبینو رایه مفتی به ګرځول په کار دي۔

لما قال العلامة ظفر احمد العثمانیؒ: و هو متمتع ان حج من عامه و کذا لو خرج الی الآفاق لحاجة فقرن لا یکون قارناً عند ابی حنیفةؒ و علیه رفض احدهما و لا یبطل تمتعه لان الاصل عندهٗ ان الخروج فی اشهر الحج الی غیر اهله کا لاقامة بمکّة فکانه لم یخرج و قرن من مکة اما عندهما فکا لرجوع الی اهله فاذا خرج بطل تمتعه ثم اذا قرن من المیقات کان قارناً. (امداد الاحکام ج۲، ص۱۸۱، کتاب الحج)

## حج تمتع افضل دی او که حج قِران

**سوال:** په حج تمتع او حج قِران کښې د احنافوؒ په نزد کوم یو افضل دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حج په درې قسمه دی۔ (۱) حج افراد (۲)حج تمتع (۳)حج قِران۔ د احنافوؒ په نزد په دغو دریواړو کښې حج قران افضل دی او له قِران نه وروسته حج تمتع بهتر دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: باب القران و هو افضل لحدیث اتانی اللیلة من ربی و انا با لعقیق فقال یا آل محمد اهلوا بحجة و عمرة معا....... ثم التمتع ثم الافراد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۳۰، باب القران، کتاب الحج)

# باب الحج عن الغیر
## (د حج بدل مسائل او احکام)

### په نفلي حج کښې د حج بدل نیت کول ضروري نه دي

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زما په والد صاحب باندې حج فرض نه وو او نه هغه کوم وصیت کړی وو. آیا زه اوس د هغه لپاره د ایصال ثواب په خاطر د نفلي حج نیت وکړم او که د حج بدل نیت؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه په چا باندې حج فرض نه وي نو د هغه له خوا څخه حج بدل هم نه کیږي. لهذا په دې صورت کښې تاسو نفلي حج ادا کړی او ثواب ئې خپل والد صاحب ته وبخښی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (بعبادة ماله جعل ثوابه لغیره) ای سواء کانت صلوٰة او صوما او صدقة او قرأة قرآن او ذکرا او طوافا او حجا او عمرة او غیر ذلك. (رد المحتار ج۲، ص۵۹۵، باب الحج عن الغیر، مطلب فی اهداء ثواب الاعمال الخ)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: فان صام او صلی او تصدق و جعل ثوابه لغیره من الاموات و الاحیاء جاز و یصل ثوابها الیهم عند اهل السنة و الجماعة کذا فی البدائع. (البحر الرائق ج۳، ص۵۹، باب الحج عن الغیر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر.

### د مړي لپاره د نفلي حج ثواب

**سوال:** که چېرته یو سړی د خپل وفات شوي پلار پسې د ایصال ثواب په نیت نفلي حج وکړي نو آیا هغه ته د دې د نفلي حج ثواب ور رسیږي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هر نفلي عبات که هغه مالي او که ځاني په کولو سره ئې ثواب مړي ته بخښل شرعا صحیح او ثابت دي او همدا د اهل السنت و الجماعت عقیده ده. لهذا که چېرته یو څوك پخپل وفات شوي پلار پسې نفلي حج وکړي او ثواب ئې ور وبخښي نو ثواب ئې ور رسیږي۔

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: فان صام او صلی او تصدق و جعل ثوابه لغیره من الاموات و الاحیاء جاز و یصل ثوابها الیهم عند اهل السنة و الجماعة کذا فی البدائع. (البحر الرائق ج۳، ص۵۹، باب الحج عن الغیر)

ان الانسان ان یجعل ثواب عمله لغیره صلوٰة کان او صوما او صدقة او غیرها کا لحج الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل یحج عن الغیر.

### د نفلي حج لپاره له مور څخه د اجازې د اخیستلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو سړی په سعودي عرب کښې اوسیږي. هغه د خپلې بوډۍ مور لپاره غواړي چه نفلي حج وکړي کوم چه په پاکستان کښې



ده. نو آیا هغه دې له خپلې والدې څخه د اجازې اخیستلو په غرض به له پاکستان څخه د حج سفر اختیاروي او که له هم هغه ځای یعنې سعودي عربستان څخه دې د خپلې والدې لپاره حج ادا کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج بدل فرضي لپاره له هغه ځای څخه د حج په نیت سره تلل ضروري دي کوم ځای کښې چه اوسیږي. البته که چېرته یو څوك د چا له طرفه د نفلي حج کولو اراده وکړي نو په دې کښې د اجازې اخیستل ضروري نه دي او نه د صورت مسئوله مطابق پاکستان ته د راتلو ضرورت شته. لهذا تاسو د خپلې مور له خوا څخه د هغې له اجازې پرته له سعودي عرب څخه هم نفلي حج ورته کولی شي۔

و فی الهندیة: الامر با لحج فلا یجوز حج الغیر عنه بغیر امره الا الوارث هندیة. ففی الحج النفل تجوز النیابة حالة القدرة لان باب النفل اوسع کما فی سراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الخامس عشر فی الوصیّة با لحج)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و انما شرط غیر المنوب للحج الفرض لا النفل لجواز الانابة مع القدرة فی حج النفل لان المقصود منه الثواب. (البحر الرائق ج۳، ص۶۲، باب الحج عن الغیر) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل یحج عن الغیر.

### د نفلي حج لپاره پاکستان ته راتلل ضروري نه دي

**سوال:** که چېرته یو څوك د خپل وفات شوي والدینو او یا د کوم خپل لپاره نفلي حج کوي او پخپله په ابو ظهبي کښې نوکري لري. نو آیا د نفلي حج لپاره له ابو ظهبي څخه تللی شي او که پاکستان ته راتلل ورته ضروري دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم مړي ته د ایصال ثواب په خاطر نفلي حج کول ممنوع نه دي او نه د هغه لپاره د صورت مسئوله مطابق له ابو ظهبي څخه پاکستان ته راتلل ضروري دي خو په دې شرط چه وفات شوي سړي وصیت نه وي کړی. خلاصه دا چه د وفات شوي سړي له خوا څخه نفلي حج چه په کوم ځای کښې وي له هم هغه ځای څخه ئې کولی شي ځکه چه د نفلي حج په صورت کښې توسیع دی. البته د حج بدل د وصیت په صورت کښې چه وي نو بیا پاکستان ته راتلل ضروري دي۔

و فی الهندیة: ففی الحج النفل تجوز نیابة حال القدرة لان باب النفل اوسع کما فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و انما شرط عجز المنوب للحج الفرض لجواز الانابة مع القدرة فی حج النفل لان المقصود منه الثواب. (البحر الرائق ج۳، ص۶۲، باب الحج عن الغیر) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل یحج عن الغیر.

## د غریب سړي په واسطه د حج بدل د کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړی غريب او نادار دی کوم چه يو مالدار ئې د حج بدل لپاره بيت الله شريف ته ليږي. آيا يو غريب سړی چه پخپله ئې حج نه وي کړی د حج بدل لپاره ليږل جائز دي او که يو داسې سړی غوره کول ضروري دي چه پخپله ئې حج کړی وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه د حج بدل لپاره يو داسې سړی وليږل شي چه پخپله ئې حج کړی وي ليکن سره له دې که چېرته کوم غريب سړی د حج بدل لپاره وليږل شي نو بيا هم حج بدل ادا کيږي او په نوموړي سړي باندې د دې په وجه حج نه فرض کيږي.

و فی الهندية: و الافضل للانسان اذا اراد عن نفسه ان يحج رجلاً قد حج عن نفسه و مع هذا لو احج رجلاً لم يحج عن نفسه حجة الاسلام يجوز عندنا و سقط الحج من الآمر كذا فی المحيط. (الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغير)

قال ابن عابدينؒ: (ثم فرع عليه) على ان الشرط هو الاهلية دون اشتراط ان يكون المامور قد حج عن نفسه. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۳، باب الحج عن الغير قبل مطلب فی حج الضرورة) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، الفصل الخامس عشر فی الرجل يحج عن الغير.

## په حج بدل کښې د آمر د اطاعت حکم

**سوال:** زيد عمر لره د حج بدل لپاره وليږه. عمر له ميقات څخه د عمرې نيت وکړ او کله چه د حج پېخه ورځې پاتې شوې نو عمر د زيد له خوا څخه د حج بدل لپاره احرام وتاړه او د حج افعال ئې ادا کړه نو آيا شرعاً د زيد حج بدل وشو او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج بدل کوونکي لپاره د آمر د حکم اطاعت ضروري دی. د صورت مسئوله مطابق چونکه عمر د زيد مخالفت کړی دی نو ځکه په دې صورت کښې د زيد له خوا څخه حج بدل و نه شو. راتلونکي کال ته به عمر د زيد لپاره بل حج کوي.

قال ابن عابدينؒ: الثانی عشر ان يحرم من الميقات فلو اعتمر و قد امره با لحج ثم حج من مكة لا يجوز و يضمن. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۰، باب الحج عن الغير)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو امره با لحج فاعتمر ثم حج من مكة فهو مخالف فی قولهم. (الفتاوی التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، الفصل الخامس عشر فی الرجل يحج عن الغير) و مثله فی الهندية ج۲، ص۱۵۸، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغير.

## په حج بدل کښې د عمرې د نيت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په حج بدل کښې د عمرې نيت صحيح دی او که نه؟ او که چېرته يو سړی په حج بدل کښې د عمرې نيت وکړي نو له هغه څخه حج بدل صحيح کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل کښې د حج نيت کول په هغه وخت کښې ضروري دي چه کله آمر مامور لره په حج افراد باندې مامور کړی وي. چونکه زمونږ په ښارونو کښې حج قران، حج تمتع او حج افراد درې واړو ته حج ويل کيږي او د آمر له طرفه د دريواړو اجازت وي. لهذا تمتع کړی شي. بهتره دا ده چه آمر ته ئې څرګندونه وشي.

و فی الهندية: و اذا امر غيره با لافراد بحجة او عمرة فقرن فهو ضامنٌ فی قول ابی حنيفةؒ. و قال ابی يوسفؒ و محمدؒ يجزئ عن الآمر استحساناً. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۵۸، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغير)

قال ابن عابدينؒ: فلو امره الافراد فقرن او تمتع و لو للميّت لم يقع عنه و يضمن النفقة. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۰، باب الحج عن الغير، مطلب فی شروط الحج عن الغير عشرون) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، الفصل الخامس عشر فی الرجل يحج عن الغير.

## د ذيابيطس يعنې زيړي د مريض لپاره د حج بدل حکم

**سوال:** يو سړی د زيړي په مرض کښې مبتلا دی او ډاکټرانو هغه ته د سفر اجازه نه ورکوي نو آيا داسې سړی د خپل ځان له خوا څخه يو څوک د حج بدل لپاره ليږلی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زيړي مريض که چېرته چېرته په دوايي او يا په بلې ذريعې سره پخپل مرض باندې په وختي توګه قابو راوستلی شوای او يا ئې دا اميد وي چه نژدې وخت کښې به له دې مرض څخه ښه کيږم نو بيا د ځان له خوا څخه په چا باندې حج بدل نه شي کولی او که چېرته دا ممکن نه وي نو بيائې کولی شي.

و فی الهندية: و منها ان يكون المحجوج عنه عاجزاً عن الاداء. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغير)

قال العلامة الحصكفیؒ: لكن بشرط دوام العجز الى الموت و نية الحج عنه هذا اذا كان المرض يرجى زواله. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۹۸، باب الحج عن الغير) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل يحج عن الغير.

## په حج بدل کښې به خرڅه په محجوج عنه باندې وي

**سوال:** آيا حج بدل د محجوج عنه (چا ته چه حج کيږي) په مال باندې کول ضروري وي او که څوک ئې پخپل مال باندې هم کولی شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل کښې دا شرط دی چه د مامو حج به د محجوج عنه په مال باندې کيږي. پس که چېرته د حج بدل خاوند پخپل مال سره حج وکړ نو د محجوج عنه له خوا څخه نه کيږي.

كما فی الهندية: و منها ان يكون حج المامور بمال المحجوج عنه فان تطوع الحاج عنه بمال نفسه لم يجز عنه حتى يحج بماله. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغير)

قال العلامة الحصكفیؒ: و بقی من الشرائط النفقة من مال الآمر كلها او اكثرها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۶۰۰، باب الحج عن الغير) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل يحج عن الغير.

## د میقات په ځای له حرم څخه د حج بدل د احرام تړلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو سړی په حج بدل کښې له میقات څخه د حج احرام و نه تاړه بلکه د عمرې احرام ئې وتاړه نو آیا له حرم شریف څخه دوباره د احرام په تړلو سره حج بدل ادا کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مامور لپاره د آمر د حکم په اطاعت سره د حج افعال ادا کول په کار دي نو ځکه که چیرته آمر مامور ته د حج تمتع اجازه ورکړې وي نو بناء پر دې تحقیق د آمر حج ادا کیږي او که نه وي نو نه ادا کیږي۔

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفيؒ: ان اذن له الامر با لقران و التمتع و الا فيصير مخالفاً. (الدر المختار ج۲، ص۶۱۱، باب الحج عن الغير)

قال العلامة الانصاريؒ: و لو امره با لحج فاعتمر ثم حج من مكة فهو مخالف فى قولهم. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، الفصل الخامس عشر فى الحج عن الغير.

## په حج بدل کښې مصرف په آمر باندې دی

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په یوې ښځې باندې حج فرض دی او دا ښځه د ضعف له وجهې خپل زوی ته پیسې ورکړې او د حج بدل لپاره ئې ولیږه نو آیا مامور ته د آمر له مال څخه حج کول ضروري دي او که د ځان له خوا څخه هم څه خرڅه کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل کښې ضروري دا ده چه خرڅه به د آمر له خوا څخه وي۔ د صورت مسئوله مطابق د هغې د زوی لپاره ضروري دي چه مصرف د خپلې مور له مال څخه وکړي۔ بیا هم که چیرته فرضي حج نه وي نو په نفلي حج کښې د خپل ځان له خوا څخه د خرڅې د کولو ګنجائش هم شته۔

و فى الهندية: و منها ان يكون الحج بمال المحجوج عنه فان تطوّع الحاج عنه بمال نفسه لم يجز عنه حتى يحج بماله. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فى الحج عن الغير)

قال ابن عابدينؒ: (فتطوع رجل) اطلق الرجل المتطوع فشمل الوارث. و به صرح قاضيخانؒ بقوله الميّت اذا اوصى بان يحج عنه بماله فتبرع عنه الوارث او الاجنبى لا يجوز قلت يعنى لا يجوز عن فرض الميّت و الا فله ثواب ذٰلك الحج. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۶، باب الحج عن الغير، مطلب العمل على القياس دُون الاستحسان هٰذا) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۶۲، باب الحج عن الغير.



## په حج بدل کښې د خپل ځان له خوا څخه حج کول او بل څوك د حج بدل لپاره د تاکلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زید عمر لره د خپلې مور له خوا څخه د حج بدل لپاره وویل۔ نو عمر ورته وویل چه تاسو ما ته د ټکټ او راتګ خرڅه راکړی زه په مکه مکرمه کښې یو بل سړی د حج بدل لپاره ټاکم او په دغو روپو باندې زه د خپل ځان له خوا څخه حج کوم نو آیا دا طریقه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل کښې له وطن څخه د آمر تلل ضروري دي۔ نو ځکه په صورت مسئوله کښې په نوموړې طریقې سره حج کول روا نه دي او نه په دې طریقې سره حج بدل ادا کیږي او د زید د والدې غاړه هم په دې ډول حج بدل سره نه خلاصیږي۔

قال العلامة محمد امين الشهير بابن عابدين رحمه الله: الحادى عشر ان يحج عنه من وطنه ان اتسع الثلث و الا فمن حيث يبلغ. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۰، باب الحج عن الغير، مطلب شروط الحج عن الغير)

رجل اوصٰى ان يحج عنه فاحج عنه رَجُلاً فلما بلغ الكوفة مات او سرقت نفقة و قد انفق النصف فانه يحج عن الميّت منزله بثلث ما بقى. (جامع الصغير ص۱۳۵، كتاب الحج) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۵۲، الفصل السادس عشر فى الوصيّة با لحج.

## د سفر د ستړیو له وجهې حج بدل ادا کول صحیح نه دي

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په یوه سړي باندې حج فرض شوی دی لیکن د سفر د ستړیو او تکالیفو له وجهې غواړي چه د ځان له طرفه په بل چا باندې حج بدل وکړي نو آیا دا حج به ئې صحیح وي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته په چا باندې حج فرض وي نو د حج ادا کول په نوموړي سړي باندې پخپله فرض دي۔ محض له ستړیو څخه د بچ کیدو په خاطر په چا باندې حج بدل نه شي کولی ځکه چه د حج بدل لپاره فقهاء کرامو کوم شرائط ذکر کړي دي په هغو کښې ځینې دا دي۔ (۱) چه محجوج عنه پخپله د حج له ادا کولو څخه عاجزه وي۔ (۲) دا چه دا عجز تر مرګه پورې پکښې وي او د اسې نور۔ چونکه په صورت مسئوله کښې دا شرائط نشته نو ځکه په بل چا باندې حج بدل نه شي کولی بلکه پخپله به حج کوي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: لكن بشرط دوام العجز الى الموت و نية الحج عنه هٰذا اذا كان المرض يرجى زواله الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۹۸، باب الحج عن الغير)

و فى الهندية: و منها ان يكون المحجوج عنه عاجز عن الاداء و منها استدامة العجز من وقت الاحجاج الٰى وقت الموت. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فى الحج عن الغير) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فى الرجل يحج عن الغير.

## د حج بــــدل شرائط

**یو سړی غواړي چه حج بدل وکړي نو د هغه لپاره شرعا کوم شرائط دي؟**

**سوال:** یو سړی غواړي چه حج بدل وکړي نو د هغه لپاره شرعا کوم شرائط دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسلام فقهاوو د دې مسئلې د وضاحت لپاره د فقهې په کتابونو کښې یو مستقل باب (باب فی الحج عن الغیر) قائم کړی دی چه په هغه کښې ئې د حج بدل شرائط ذکر کړی دی۔ که چېرته د نوموړي شرائطو لاندې حج بدل وشي نو صحیح دی او که نه وشي نو نه دی صحیح۔ او هغه شرائط په لاندې ډول دي۔

﴿۱﴾ دا چه محجوج عنه پخپله د حج له ادا کولو څخه عاجز وي

﴿۲﴾ او دا عجز ئې تر مرګه پورې قائم وي۔

﴿۳﴾ آمر بالحج وي

﴿۴﴾ د احرام په وخت کښې نیت د محجوج عنه له خوا څخه وي۔

﴿۵﴾ د مامور حج د محجوج عنه له مال څخه وي۔

کما فی الهندیة: و منها ان یکون المحجوج عنه عاجزاً عن الاداء و منها استدامة العجز من وقت الاحجاج الی وقت الموت و منها الامر با لحج و منها نیة المحجوج عنه عند الاحرام و منها ان یکون المامور بماله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لکن بشرط دوام العجز الی الموت و نیة الحج عنه هذا اذا کان المرض یرجی زواله الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۹۸، باب الحج عن الغیر) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۵، الفصل الخامس عشر فی الرجل یحج عن الغیر.

## له وصیت پرته د حج بدل حکم

**سوال:** په یوه سړي باندې حج فرض وو او هغه پخپل ژوند کښې حج ادا نه کړ او نه ئې د مرګ په وخت کښې وصیت وکړ نود هغه لپاره حج بدل کیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو سړی مړ شي او په هغه باندې حج فرض شوی وو لیکن هغه پخپل ژوند کښې نه وو ادا کړی او د مرګ په وخت کښې ئې وصیت هم نه وو کړی نو اوس که چېرته د هغه وارثان په خپلې خوښې سره حج بدل وکړي جائز دی او هیله ده چه الله تعالی ئې د مړي له خوا څخه قبول کړي لیکن د مړي وصیت ضروري دی۔

کما فی الهندیة: من علیه الحج اذا مات قبل ادائه من غیر وصیة یأثم بلا خلاف و ان احبّ الوارث ان یحج عنه یجزئه ذلک ان شاء الله تعالی کذا ذکر ابو حنیفة رحمة الله علیه و ان مات عن وصیّة لا یسقط الحج عنه و اذا حج عنه یجوز عندنا باستجماع شرائط الجواز. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۸، الباب الخامس عشر فی الوصیة با لحج)

قال الشیخ ابن العلاء الانصاریؒ: و من مات و علیه فرض الحج و لم یوصی به لم یلزم الوارث ان یحج عنه و ان احبّ ان یحج عنه و ارجوا ان یجزیه ان شاء الله. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۵۶۴، الفصل السابع عشر فی احرام ... مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۶۱، باب الحج عن الغیر.



## د ښځې لپاره د سړي له خوا د حج بدل حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د سړي له خوا څخه ښځه حج بدل کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج بدل لپاره ضروري ده چه مسلمان، عاقل او بالغ وي اګر که ښځه وي یا سړی۔ البته که چېرته ښځه حج بدل وکړي نو د فقهاووّ د تصریح مطابق مکروه دی لیکن بیا هم حج بدل ادا کیږي۔

و فی الهندیة: و لو احج عنه امرأة او عبداً او امة باذن السیّد جاز و یکره هٰکذا فی محیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

قال العلامة ابن الهمامؒ: و یجوز حجاج الحر و الامة و الحرة و فی الاصل نص علیٰ کراهة المرأة. (فتح القدیر ج۳، ص۱۵۱، باب الحج عن الغیر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۶۲، باب الحج عن الغیر.

## د غیر وصي لپاره د حج بدل د ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو سړی د مرګ په حالت کښې خلورو کسانو ته وصیت وکړ چه په ما باندې حج فرض دی تاسو زما له خوا څخه حج بدل ادا کړی۔ نو آیا حج بدل یوائې اوصیاء وارثانو ته ادا کول ضروري دي او که غیر وصي هم حج بدل ادا کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حج بدل یوائې اوصیاء و ارثانو ته ادا کول ضروري دي او همدا رنګه غیر وصي هم حج بدل کولی شي۔

یکون الاوصیاء مطلقاً و یدل علیه ما فی الهندیة. و لو اوصٰی المیّت ان یحج عنه و لم یزد کان للوصی ان یحج عنه فان کان الوصی وارث المیت او دفع المال الی وارث المیت لیحج عن المیّت. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۹، الباب الخامس عشر فی الوصیة با لحج)

قال العلامة ابن العلاء الانصاریؒ: و فی الکبریٰ اوصی بان یحج عنه و لم یوص الی احد فاجتمعت الورثة لیحجوا عنه رجلاً جاز. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۵۵۶، الفصل السادس عشر فی الوصیة با لحج) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۵۹۹، باب الحج عن الغیر.

## له یو کال نه وروسته حج بدل ادا کول

**سوال:** تیر کال د رمضان په میاشت کښې زید له عمر سره وعده وکړه چه ته زما د وړور بکر مرحوم له خوا څخه حج بدل ادا کړه زه تا ته د شوال په میاشت کښې پنځه سوه روپۍ درلیږم۔ عمر د روپو انتظار وکړ لیکن زید په شوال کښې پیسې ور و نه لیږلې او کله چه لس ورځې حج بدل ته پاتې شوې نو عمر د خپلې مور له طرفه حج بدل ادا کړ او بیا درې میاشتې وروسته زید عمر ته پنځه سوه روپۍ ولیږلې او عمر یو کال په مکه مکرمه کښې پاتې شو او په ۱۳۸۴ش

کښېنې ئې د بکر مرحوم له خوا څخه حج بدل ادا کړ نو آیا حج بدل ادا شو او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د بکر مرحوم لپاره نفلي حج د ایصال ثواب په خاطر وي نو له هر سړي څخه په هر وخت کښې له هر ځای څخه حج بدل صحیح دی. که چېرته فرض حج بدل وي نو د مړي د مال له دریمې او یا د وصي وصیت به معتبر وي. که چېرته د مړي د مال له دریمې حصې څخه له وطن څخه حج بدل کېده نو د مړي له وطن څخه د حج لپاره سفر کول ضروري دي او که چېرته نه کېده نو له کوم ځای څخه چه کېدلی شي او ممکن وي له هغه ځایه دې وکړي.

قال العلامة الحصکفیؒ: الاصل ان کل من اتی بعبادة ما جعل ثوابها لغیره و ان نواها عند الفعل لنفسه. قال ابن عابدینؒ بعبادة ما ای سواء کانت صلٰوة او صوما الخ. (رد المحتار ج۲، ص۵۹۵، باب الحج عن الغیر)

قال ابن عابدینؒ: الحادی عشر ان یحج عنه من وطنه ان اتسع الثلث و الا فمن حیث یبلغ کما سیأتی بیانه. (ردّ المحتار ج۲، ص۷۰۰، باب الحج عن الغیر، مطلب شروط الحج عن الغیر)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: اذا أوصی بان یحج عنه و هو فی منزله ان بین مکاناً یحج عنه من ذٰلک المکان با لاجماع، فان لم یبین مکاناً یحج عنه من وطنه عند علمائنا و هٰذا اذا کان ثلث ماله یکفی للحج من وطنه فامّا اذا کان لا یکفی لذلک فان یحج عنه من حیث یمکن الاحجاج عنه بثلثه. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۵۵۲، الفصل السادس عشر فی الوصیّة با لحج)

و فی الهندیة: الاصل فی هذا الباب ان الانسان له ان یجعل ثواب عمله لغیره صلٰوة کان او صوماً او صدقة او غیرها کالحج و قراۃ القرآن. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

## د معذور د عذر تر ختمیدو وروسته د حج بدل حکم

**سوال:** که چېرته یو معذور سړی کوم چه حج پرې فرض وي حج بدل ئې وکړ او د حج بدل له کولو وروسته ئې عذر په یو وخت کښې لرې شي نو په پاتې ژوند کښې هغه ته دوباره حج کول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج بدل لپاره د عجز (مرض) همیشه والی ضروري دی. که چېرته ئې مرض دائمي نه وي نو د هغه له خوا څخه حج بدل نه ادا کیږي. چونکه په صورت مسئوله کښې د نوموړي مرض تر مرګه پورې دائمي نه وو بلکه له مرګ نه مخکښې ئې عذر لرې شو نو په هغه باندې دوباره حج کول لازمي دي او په حج بدل سره ئې غاړې نه خلاصیږي.

و فی الهندیة: و منها استدامة العجز من وقت الاحجاج الی وقت الموت هکذا فی البدائع حتی لو احج عن نفسه و هو مریض یکون مراعی فان مات اجزئه و ان تعافی بطل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

قال ابن نجیمؒ: و ان کان مرضاً یرجی زواله فاحج فالامر مراعی فان استمر العجز الی الموت سقط الفرض و الا لا. (البحر الرائق ج۳، ص۶۱، باب الحج عن الغیر) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۹۸، باب الحج عن الغیر.



## له حج بدل څخه وروسته د نذر شوې عُمرې د ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زید د عمرې نذر منلی دی او په دې وخت کښې زید د یو چا لپاره د حج بدل د ادا کولو لپاره لاړ. نو د حج بدل له ادا کولو نه وروسته زید خپله منذوره عمره ادا کړه نو آیا د زید دا عمره صحیح شوه او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ښکاره سره هغه اداء کما التزام کړې دی ځکه چه هغه اول حج بدل ادا کړی دی او د آمر د حکم څه مخالفت ئې نه دی کړی نو ځکه د زید د دې عمرې ادا کول صحیح دي او په دې سره د زید غاړې خلاصیږي.

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: ابن سماعة عن محمدؒ: المامور با لحج اذا حج عن الآمر ثم احرم بعمرة ینفق من مال نفسه ما دام معتمرا فاذا انفق من مال الآمر. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۷، الفصل الخامس عشر فی الرجل یحج عن الغیر)

قال ابن عابدینؒ: (تحت هٰذه العبارة فیصر مخالفاً) و لو امره با لعمرة فاعتمر ثم حج عن نفسه لم یکن مخالفاً بخلاف ما اذا حج اوّلاً ثم اعتمر. (رد المحتار ج۲، ص۱۱۱، باب الحج عن الغیر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۶۳، باب الحج عن الغیر.

## د والدینو له خوا څخه د حج په کولو کښې ډیر ثواب دی

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د فرضو له ادا کولو نه وروسته د خپل ځان لپاره نفلي حج کول افضل دي او که د والدینو له خوا څخه حج کول افضل دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په والدینو باندې حج فرض نه وو نو د خپل ځان لپاره د نفلي حج کولو په ځای د والدینو له خوا څخه حج کول افضل او اولی دي او ځینو احادیثو کښې د ثواب لس چنده زیاتوالی راغلی دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: بخلاف ما لو اهل عن ابویه او غیرهما من الاجانب حال کونه متبرعا فعین بعد ذٰلک جاز لانه متبرع با لثواب فله جعله لاحدهما اولهما و فی الحدیث من حج عن ابویه فقد قضی عنه حجته و کان لهٗ فضل عشر حجج و بعث من الابرار. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۸، باب الحج عن الغیر)

قال النبی ﷺ من حج عن ابیه و أمه فقد قضی عنه حجته و کان له فضل عشر حجج. (فتح القدیر ج۲، ص۷۸، باب الحج عن الغیر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۶۹، باب الحج عن الغیر.

## دم تمتع او دم قِران په آمر باندې دی او که په مامور؟

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې که چېرته د کوم مړي له خوا څخه په حج بدل کښې د تمتع او یا د قِران نیت وکړي نو آیا د ده حج ادا کیږي او که نه؟ او دم په چا باندې واجب وي په آمر باندې او که په مامور باندې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته آمر د حج تمتع او حج قران اجازه نه وي ورکړې نو د هغه حج به نه ادا کيږي او که چېرته ئې اجازه ورکړې وي نو حج ادا کيږي ليکن دم تمتع او دم قران په مامور باندې وي نه په آمر باندې۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و دم القِران و التمتع و الجناية على الحاج ان اذن له الآمر با لقِران و التمتع و الا فيصير مخالفاً فيضمن. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۶۱۱، باب الحج عن الغير)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و دم الحصار على الآمر و دم القِران و دم الجناية على المامور. قال ابن نجيمؒ و انما وجب دم القِران على المامور باعتبار انه وجب الشكر لما وفقه الله تعالىٰ من الجمع بين النسكين. (البحر الرائق ج۳، ص۶۵، باب الحج عن الغير) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۸، الفصل الخامس عشر فى الرجل يحج عن الغير.

## د محرم د نه پيدا کيدو په صورت کښې ښځه حج بدل هم نه شي کولی

**سوال:** که چېرته د کومې پرده دارې ښځې سره دومره مال وي چه د خپل ځان او محرم حج ته د تلو خرڅه پرې کولی شي ليکن هغې ته د اسې محرم نه پيدا کيده چه له هغې سره د حج د ادا کولو لپاره لاړ شي نو آيا دا ښځه د ځان له خوا څخه په بل چا باندې حج بدل کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ښځې باندې د حج د فرضيت لپاره د محرم شتون ضروري دی۔ له محرم نه بغير په ښځې باندې حج هم نه فرض کيږي اګر که له هغې سره زيات مال هم وي۔ نو ځکه په نومورې ښځې باندې د حج بدل ادا کول هم ضروري نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و مع زوج او محرم و لو عبداً او ذمياً او برضاع بالغ قيد لهما. قال ابن عابدينؒ تحت (قوله و مع زوج او محرم) هٰذا و قوله و مع عدم عدة عليها شرطان مختصان با لمرأة الخ. (رد المحتار ج۲، ص۴۶۴، كتاب الحج)

قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلیؒ: و لا تحج المرأة الا بزوج او محرم اذا كان سفر او نفقة المحرم عليها. و فى شرحه و لا بد من العقل و البلوغ لعجز الصبى و المجنون عن الحفظ. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص۱۴۱، كتاب الحج)

## د حـــج بدل تر ادا کولو وروسته د مامور وطن ته د نـــه راتګ له وجهې د حـــج حکم

**سوال:** که چېرته يو سړی د چا له خوا څخه د حج بدل د ادا کولو لپاره مکې مکرمې ته لاړ شي او د حج د ادا کولو څخه وروسته واپس وطن ته را نه شي بلکه هم هلته پاتې شي نو آيا د اسې حج بدل ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل کښې د آمر له ملك يا ښار څخه تلل ضروري او شرط دی۔ د حج له ادا کولو څخه وروسته وطن ته واپس راتلل ضروري نه دي۔ له دې وجهې که چېرته يو



څوك د حج له کولو وروسته هم هلته پاتې شي نو حج بدل ادا کيږي۔ د اقامت په غوره کولو سره حج نه خرابيږي۔ البته بهتره دا ده چه واپس راشي۔

لما فى الهندية: و لو احج رجلاً يؤدى الحج و يقيم بمكة جاز و الافضل ان يحج و يرجع و اذا فرغ المامور من الحج و نوى الاقامة خمسة عشر يوماً فصاعداً انفق من مال نفسه و لو انفق من مال الآمر يضمن الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۵۸، الباب الرابع عشر فى الحج عن الغير)

قال العلامة الكاسانیؒ: و لو احج رجلاً يؤدى الحج و يقيم بمكة جاز لانه فرض الحج صار مؤديا با لفراغ عن افعاله و الافضل ان يحج ثم يعود اليه لان الحاصل للآمر ثواب النفقة فمهما كانت النفقة اكثر كان الثواب اكثر. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۱۵، كتاب الحج، فصل فى الذى يرجع الى النيات)

## په حج افراد باندې مامور سړی د خپل ځان لپاره عمره کولی شي

**سوال:** که چېرته يو سړی د حج افراد د ادا کولو لپاره يو څوك خپل نائب مقرر کړي او مامور د خپل ځان لپاره عمره وکړي نو آيا د اسې حج بدل جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اصل کښې په حج بدل کښې دا ضروري ده چه مامور به د خپل آمر د حکم خلاف ورزي نه کوي۔ په صورت مسئوله کښې مامور چونکه د آمر حکم اول پوره کړی دی او وروسته ئې د خپل ځان لپاره عمره کړې ده نو په د اسې کولو سره د آمر په حج باندې کوم اثر نه پريووزي بلکه حج او عمره دواړه صحيح کيږي۔ بيا هم د عمرې مصرف به د مامور په غاړه وي۔

لما قال العلامة شيخ عبد الرحمٰن الجزائرى رحمه الله: اما لو امره با لعمرة فنفذ امره و اعتمر عنه ثم حج عن نفسه او امره با لحج فحج عنه ثم اعتمر عن نفسه فان ذٰلك يجوز و تجزى العمرة فى الصورة الاولىٰ و الحج فى الصورة الثانية عن المستنيب الا ان نفقة اقامته للحج عن نفسه فى الاولىٰ و العمرة عن نفسه فى الثانية فلزمه فى ماله. (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱، ص۷۰۸، كتاب الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو امره با لعمرة فا عتمر اوّلا ثم حج عن نفسه لم يكن مخالفاً......
(الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، فى الحج عن الغير)

## د کوم بد عمـــل له وجې د حج د فـــاسيدو په صورت کښې د حـــج مصرف به په چا باندې وي؟

**سوال:** که چېرته له مامور څخه يو د اسې عمل وشي چه حج پرې فاسديده نو د حج خرڅه په آمر باندې وي او که مامور باندې؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په حج کښې فساد له وقوف عرفې څخه مخکښې راغلی وي نو مامور به د آمر د مصرف ضامن وي ځکه چه مامور د دې فساد سبب جوړ شوی دی او که چېرته له وقوف عرفې نه وروسته فساد راغلی وي نو مامور به ضامن نه وي ځکه چه د حج

اعظم يعني لوی رکن ئې ادا کړی دی۔

لما قال العلامة عبد الرحمن الجزائری رحمه الله: و اذا فعل المامور ما يفسد الحج فان كان ذلك قبل الوقوف بعرفة فانه يضمن المال للمنيب و ان كان ذلك بعد الوقوف فلا يضمن لانه ادى الركن الاعظم و هو الوقوف و كل كفارة جناية تجب على المامور لانه سببها. (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱، ص۷۰۸، كتاب الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: قال ابو يوسف الحاج عن الغير اذا افسد حجه قبل الوقوف عليه ضمان النفقة و عليه الحج الذى افسده و عمرته و حجته للآمر و لو فاته الحج لا يضمن لانه امين و عليه قضاء الفائت و حج عن الآمر. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۹، الحج عن الغير) و مثله فى الهداية ج۱، ص۲۷۹، الحج عن الغير.

## آيا په حج افراد باندې مامور سړی حج تمتمع يا حج قِران کولی شي؟

**سوال:** که چېرته آمر چا ته د حج افراد حکم کړی وي او مامور حج تمتع او قرآن وکړي نو د اسې حج بدل څه حکم دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مامور هر وخت په حج کښې د آمر د حکم تابع وي۔ که چېرته آمر د حج افراد حکم ورکړی وي نو مامور ته په کار دي چه يوازې حج افراد وکړي۔ که چېرته هغه د آمر د حکم په خلاف حج تمتع او يا حج قِران وکړي نو حج د مامور له خوا څخه ادا نه شو او مامور به د آمر د پيسو ذمه وار وي. بيا هم که چېرته د آمر له خوا څخه کُلي اختيار وي چه مامور څه ډول حج وغواړي ادا دې کړي نو په دې صورت کښې چه مامور کوم ډول حج ادا کوي هغه به د مامور له خوا څخه وي۔

قال العلامة عبد الرحمٰن الجزائری رحمه الله: و منها عدم مخالفة ما شرطه المستنيب فلو امر با لافراد فحجّ عنه الغائب قارنا او متمتعا لم يقع عنه و يضمن النفقة التى صرفت له. (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱، ص۷۰۸، كتاب الحج)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا امر غيره با لافراد بحجة او عمرة فقرن فهو مخالف ضامن. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۶، الحج عن الغير) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلتُه ج۳، ص۵۱، النيابة فى الحج.

## د مامور مدينې منورې تــــــه د تللو لپاره د آمر لــــه پيسو څخه د مصرف د کولو حکم

**سوال:** په حج بدل کښې چه مامور مدينې منورې ته ځي نو دا مصرف به په چا باندې واجب وي؟ په مامور باندې او که په آمر باندې؟ آيا مامور د آمر له مال څخه د دې سفر لپاره مصرف کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له حج څخه مخکښې او وروسته مدينې منورې ته تلل چونکه فرض نه دي او نه واجب دي۔ نو له دې وجهې د آمر له اجازې څخه پرته مامور د آمر له مال څخه مصرف نه شي کولی بلکه دا خرڅه او مصرف به مامور په ځان اخلي۔ هو که چېرته د آمر اجازه وي نو بيا د هغه له مال څخه مصرف کول جائز دي۔



قال الشيخ وهبة الزحيلى رحمه الله: و لو امره ان يعتمر فاحرم با لعُمرة و اعتمر ثم احرم با لحج عن نفسه لم يكن مخالفاً لانه فعل ما امر به او هو اداء العمرة و حجة عن نفسه بعد اذنه كاشتغاله بعمل آخر من التجارة و غيرها لكن النفقة فى حجه تكون من ماله لانه عمل لنفسه. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۳، ص۵۷، كتاب الحج)

قال الكرمانى رحمه الله: ثم عندنا المحرم الذى يحجّ عن الميّت او عن غيره من العاجزين على ما ذكرنا فى الفصول المتقدّمة يحج عنه بنفقةٍ وسط من غير تقتير و لا اسراف ذاهباً و جائياً راكباً غير ماش...... (حاشية الجلبى على تبيين الحقائق ج۲، ص۸۸، باب الحج عن الغير)

## په حج بدل کښې به نيت د آمر له خوا څخه وي

**سوال:** د حج بدل نيت مامور له خپلې خوا څخه کوي او که د آمر له خوا څخه به ئې کوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه يو څوک د بل چا له خوا څخه حج کول غواړي نو احرام دې وتړي او د هغه له خوا څخه دې نيت وکړي او د تلبيه د ويلو په وخت کښې به د آمر نوم اخلي او تلبيه به وايي۔

لما قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلى رحمه الله: و من حج عن غيره و يستوى الحج عنه و يقول لبيك بحجة عن فلان. (المختار علٰى صدر الاختيار ج۱، ص۱۷۰/۱۷۱، باب الحج عن الغير)

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه الله: و بشرط نية الحج عنه اى عن الآمر فيقول احرمتُ عن فلان و لبيت عن فلان و نسى اسمه فتوىٰ عن الآمر صح و تكفى نية القلب. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۹۹، باب الحج عن الغير)

## باب الجنایات

## (په حج کښې د غلطۍ د کولو احکام او مسئلې)

### د رمی د پرېښودو له وجهې د دم د واجبېدو حکم

**سوال:** د حج په ورځو کښې له یوه سړي سره خپله ښځه هم وه او هغې د رمی جمار طاقت نه درلود. نو که چېرته دا ښځه خپل خاوند په رمی جمرات کښې وکیل مقرر کړي نو آیا دا جائزه ده او که نه؟ او آیا په نوموړې ښځې باندې دم واجب دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج په ورځو کښې د شپې وختې د شیطان په ویشتلو کښې دقت او تنګوالی نه وي نو ځکه له شرعي عذر نه بغیر د رمی پرېښودل او یوه چا لره وکیل مقررول د دم موجب دی. لهذا د نوموړې صورت مطابق په دې ښځې باندې دم واجب دی.

و فی الهندیة: و لو ترك الجمار کلها او رمی واحدة او جمرة العقبة یوم النحر فعلیه شاة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲٤۷، الباب الثامن فی الجنایات، الفصل الخامس)

قال العلامة المرغینانیؒ: و من ترك رمی الجمار فی الایام کلها فعلیه دم لتحقق ترك الواجب. (الهدایة ج۱، ص۲۵۵، باب الجنایات) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص٥٥٤، باب الجنایات.

### د لوی شیطان ویشتل له شرعي عذر څخه پرته د پرېښودلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو څوك د حج په ورځو کښې له شرعي عذر پرته د جمرۀ عقبه (لوی شیطا) ویشتل پرېږدي نو آیا دم پرې واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شیطانانو ویشتل د حج له واجباتو څخه دی چه په پرېښودو سره ئې دم واجبېږي. لهذا چا چه د جمره عقبه ویشتل پرېښوده نو دم پرې لازمېږي.

و فی الهندیة: و لو ترك الجمار کلها او رمی واحدة او جمرة العقبة یوم النحر فعلیه شاة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲٤۷، الباب الثامن فی الجنایات، الفصل الخامس)

قال العلامة الحصکفیؒ: او الرمی کله او فی یوم واحد. قال ابن عابدینؒ انما وجب بترکه کله دم واحد. (ردّ المحتار ج۲، ص٥٥٤، کتاب الحج، باب الجنایات) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۳، باب الجنایات.

### د یوولسم ذی الحجې د رمی د پرېښودو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د ذی الحجې د یوولسمې شیطان ویشتل بلا عذره پرېږدي نو آیا دم پرې واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذی الحجې د یوولسمې او دولسمې د جمراتو ویشتل واجب دي که چېرته یو څوك په دغو دوو ورځو کښې رمی و نه کړي نو دم پرې واجبېږي چه په ارض حرم



کښې به ئې پخپله او یا په بل چا باندې ذبح کوي.

و فی الهندیة: و لو ترك الجمار او رمی واحد او جمرة العقبة یوم النحر فعلیه شاة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲٤۷، الباب الثامن فی الجنایات، الفصل الخامس)

قال العلامة الحصکفیؒ: او الرمی کله او فی یوم واحد. قال ابن عابدینؒ انما وجب بترکه کله دم واحد. (ردّ المحتار ج۲، ص٥٥٤، کتاب الحج، باب الجنایات) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۲۵۵، باب الجنایات.

### د سُنتو د پرېښودو له وجهې دم نه لازمېږي

**سوال:** که چېرته یو څوك د رمی جمار نه وروسته په منی کښې پاتې نه شي بلکه په مکه معظمه کښې پاتې شي نو آیا په هغه باندې دم لازمېږي او که نه؟

**الجواب:** تر رمی جمار وروسته پاتې کېدل سُنت دي واجب نه دي. او د سُنتو په ترك سره دم نه لازمېږي. اګر که داسې کول د سُنتو خلاف هم دی.

قال الشیخ ابن عابدینؒ: فیبیت بها للرمی ای لیالی ایام الرمی هو السنة فلو بات بغیرها کره و لا یلزمه شیء آه. (رد المحتار ج۲، ص٥۲۰، فصل فی الاحرام، مطلب فی حکم صلٰوة العید و الجمعة فی منٰی)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: (تحت ثم الی منٰی الخ) ثم الٰی منٰی فارم الجمار اقتدأ برسول اللّٰه ﷺ و لم یذکر البیتوتة بمنی لانها لیست بواجبة لان المقصود الرمی لکن هی السنة. (البحر الرائق ج۲، ص۳٤۸، باب الاحرام) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۱۹، الباب الاوّل فی تفسیر الحج.

### په حاجي مفرد باندې دم شکر لازم نه دی

**سوال:** آیا د حج افراد په کوونکي باندې د شکر دم واجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حج افراد په کوونکي باندې دم شکر واجب نه دی لیکن افضل خو خامخا دی. بیا هم د حج تمتع او حج قِران په کوونکي باندې دمِ شکر واجب دی.

کما قال العلامة الحصکفیؒ: ثم بعد الرمی ذبح ان شاء لانه مفرد. علامه شامي د دې عبارت لاندې لیکي: و الذبح لهٗ افضل و یجب علی القارن و المتمتع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٥۱٥، فصل فی الاحرام و صفة المفرد، مطلب فی رمی جمرة العقبة)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لم یذکر الذبح هٰذا الرمی قبل الحلق لانهٗ مفرد فلا یلزم الذبح و الاضحیة علیه لانه مسافر و ان کان قارنِ او متمتع یذبح. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص٤٦٤، الفصل الثالث فی تعلیم اعمال الحج) و مثله فی الهدایة ج۱، ص۲۱۳، کتاب الحج.

### د احرام په حالت کښې د ګنډل شویو جامو د اغوستلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته یو سړی د حج په دوران کښې ګنډل شوي کالي واغوندي او په ځینو ګنډل شویو کالیو کښې درې ورځې او په ځینو کښې اته ورځې تېرې کړي نو دم پرې واجبېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوې شپې ورځې نه کم وخت د ګنډل شوي کالي په اغوستلو باندې صدقه واجبيږي او د يوې شپې ورځې څخه تر زياتو شپو پورې اغوستل ئې د دم موجب دی.

قال العلامة الحصكفيؒ: او لبس مخيطا او ستر رأسه يوماً كاملاً. قال فى شرح التنوير فى الاقل صدقة. (الدر المختار على صدر ردّ المحتار ج۲، ص۵۴۷، كتاب الحج، فصل فى الجنايات)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و كذا قوله و الا تصدق اى و ان كان لبس المخيط و تغطية الرأس اقل من يوم لزمه صدقة. (البحر الرائق ج۳، ص۶، باب الجنايات) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲۴۲، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الثانى فى اللبس.

## د احرام په حالت کښې د سر د پټولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړې د ماشو نه تنګ شوی وي او توله شپه ئې خپل سر په احرام کښې پټ کړی وي نو دم پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احرام په حالت کښې د سړيو لپاره د سر پټول جائز نه دي. البته که چېرته يو څوک توله شپه خپل سر پټ وساتي نو دم پرې واجبيږي. او که چېرته له دې څخه ئې کم وخت خپل سر پټ کړی وو نو بيا صدقه پرې واجبيږي.

و فى الهندية: و لو غطى المحرم رأسه او وجهه يوماً فعليه دم و ان كان اقل من ذلك فعليه صدقة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۲، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الثانى فى اللبس)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاريؒ: و كذا اذا غطى اربع رأسه يوماً فصاعد فعليه دم. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۴۹۵، الفصل الخامس فيما يحرم على المحرم، نوع منه فى لبس المخيط) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۶، باب الجنايات.

## د احرام په حالت کښې د مخ د پټولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړې د کوم شرعي عذر څخه پرته پوره يوه ورځ خپل مخ پټ کړی وي نو آيا دم پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احرام په حالت کښې له کوم عذر څخه بغير د مخ پټول جائز نه دي. که چېرته له عذر نه پرته د مخ او يا سر له څلورمې حصې څخه زيات يوه شپه او يا يوه ورځ چاپټ کړی وي نو دم پرې واجبيږي.

قال ابن عابدينؒ: فى تغطية كل الوجه او الرأس يوماً او ليلة دم و الربع منهما كا لكل الخ. (رد المحتار ج۲، ص۴۸۸، كتاب الحج، مطلب فى يحرم با لاحرام و لا يحرم)

و فى الهندية: و لو غطى المحرم رأسه او وجهه يوماً فعليه دم و ان كان اقل من ذلك فعليه صدقة. كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۲، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الثانى فى اللبس) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۴۹۴، الفصل الخامس، نوع منه فى لبس المخيط.



## د احرام په حالت کښې د عطار (عطر خرڅوونکي) په دوکان کښې د کښيناستلو حکم

**سوال:** د احرام په حالت کښې له عطار سره مصافحه کول او يا د هغه په دوکان کښې په کښيناستلو سره دم واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عطار په دوکان کښې کښيناستل او له هغه سره مصافحه کول جائز دي خو په دې شرط چه د هغه په بدن کښې د عطرو ذات و نه لګيږي. او که چېرته له هغه سره د مصافحې او يا کښيناستو له وجهې د عطرو او د اسې نورو ذات ئې په بدن ولګيږي نو د زيات عطر په لګيدو سره دم او د کم عطر په لګيدو سره صدقه واجبيږي.

قال ابن نجيمؒ: و لا بأس ان يجلس فى حانوت عطّار و لا فرق ايضاً بين ان يقصده او لا و لذا قال فى المبسوط و ان استلم الركن فاصاب فمه او يده خلوف كثير فعليه دم و ان كان قليلاً فصدقة. (البحر الرائق ج۳، ص۳، باب الجنايات)

و فى الهندية: و لا بأس ان يقعد فى دوكان عطار او موضع يتبخر فيه قبر الا انه يكره. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۲، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الاول) و مثله فى الفتاوى الهندية ج۲، ص۵۰۶، الفصل الخامس فيما يحرم على المحرم، نوع منه فى الدهن و التطيب و الخضاب.

## په ذبح او حلق کښې ترتيب

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د عربستان حکومت د قربانۍ د غوښو د ساتنې لپاره يوه نوې قرباني ګاه قائمه کړې ده. څينې حاجي صاحبان د آسانتيا لپاره خپلې قربانۍ بل ته حواله کوي او يا د قربانۍ قيمت په بانک کښې جمع کوي نو د قربانۍ وخت په کامله توګه معلوم نه وي چه څه وخت ذبح کيږي. اوس که چېرته يو سړې حلق وکړي او دا حلق ئې تر قربانۍ مقدم واقع شي نو آيا د دې تقديم له وجهې دم پرې واجبيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد د ذبح تقديم په حلق باندې واجب دی. په تاخير سره ئې دم واجبيږي. له دې وجهې که چېرته د بانک خاوندانو ذبح وروسته کړې وي او حاجي صاحب حلق مخکښې کړی وي نو دم لازميږي. نو ځکه بهتره دا ده چه خپله قرباني پخپله ذبح کړي او بيا حلق وکړي.

قال ابن نجيمؒ: فان حلق القارن قبل ان يذبح فعليه دمان عند ابى حنيفةؒ دم با لحلق فى غير اوانه لان اوانه بعد الذبح و دم بتاخير الذبح عن الحلق. (البحر الرائق ج۲، ص۳۶۱، باب القران)

قال العلامة الحصكفيؒ: ثم بعد الرمى ذبح ثم قصر و فى ردّ المحتار اى او حلق كما دل عليه قوله و حلقه افضل. (رد المحتار ج۲، ص۵۱۵، فصل فى الاحرام و صفة الحج، مطلب فى رمى العقبة) و مثله فى فتح القدير ج۲، ص۴۷۳، باب الجنايات.

## د سعی د پرېښودلو دم له ایام نحر سره مخصوص نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته له يوه سړي څخه سعی پاتې شي نو شرعائې څه حکم دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج او عمره کښې سعی بين الصفا و المروه واجبه ده او د پرېښودو په صورت کښې ئې دم واجبيږي او د اذبح هر وخت جائزه ده او د نحر له ورځو سره مخصوصه نه ده هر چاته چه پيسې ورکړي په مکه مکرمه کښې ذبح کولی شي۔

قال العلامة المرغيناني: و من ترك السعي بين الصفا و المروة فعليه دم و حجة تام و فيها ايضاً يجوز ذبح بقية الايام فى اى وقت شاء. (الهداية ج۱، ص۲۵۵، باب الجنايات)

قال فى الهندية: من ترك السعي بين الصفا و المروة فعليه دم و حجة تامٌ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۷، الباب الثامن الجنايات، فصل خامس فى الطواف و السعي) و مثله فى فتح القدير ج۳، ص۸۱، باب الهدى.

## د طواف صدر د پرېښودلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د طواف صدر په پرېښودو سره دم واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طواف صدر په پرېښودو سره دم واجبيږي۔ البته طواف صدر اوس هم کيدای شي يعنې د عمرې نيت چه وکړي او عمره ادا کړي نو په دې طواف سره طواف صدر ادا کيږي۔

و فى الهندية: و لو ترك طواف صدر او اكثر تجب عليه الشاة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۴۶، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الخامس)

قال العلامة ابن نجيم المصري: و لما كان طواف الصدر واجباً وجب بترك كلّه او اكثر دم. (البحر الرائق ج۳، ص۲۱، باب الجنايات) و مثله فى رد المحتار ج۲، ص۵۵۵، باب الجنايات.

## د ښځې لپاره د وقوف مزدلفې دم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د ځينو عذرونو له وجهې که چېرته يوه ښځه وقوف مزدلفه او رمی و نه کړي نو دم پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پرته له کوم شرعي عذر څخه د مزدلفه وقوف او رمی پرېښودل صحيح نه دي۔ د پرېښودو په صورت کښې ئې دم لازميږي۔ البته د کوم شرعي عذر له وجهې د مزدلفې وقوف او د رمی په پاتې کيدو سره دم نه واجبيږي۔

قال العلامة شامی رحمه اللّٰه: ثم وقف بمزدلفة و وقته من طلوع الفجر الى طلوع الشمس و لو ماراً كما فى عرفة لكن لو تركه بعذر كزحمة بمزدلفة فلا شيء عليه. قال ابن عابدين الا اذا كانت لعلة او ضعف او يكون امرأة تخاف الزحام فلا شيء عليه. (رد المحتار ج۲، ص۵۱۱، كتاب الحج، مطلب فى الوقوف با لمزدلفة)



قال العلامة ابن نجيم: اراد با لترك الترك لغير عذر اما اذا ترك واجباً لعذر فانه لا شيء عليه. (البحر الرائق ج۳، ص۲۳، باب الجنايات) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲۴۷، الباب الثامن فى الجنايات، الفصل الخامس

## د جنايت دم د حرم له زمکې سره خاص دی

**سوال:** په يوه سړي باندې د رمی د پرېښودو له وجهې دم واجب شو نو ذبح کول ئې چېرته ضروري دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنايت دم د حرم له زمکې سره خاص دی۔ که په منٰی کښې ئې ذبح کوي او که په مکه مکرمه کښې ليکن د حرم زمکه ورته ضروري ده۔

قال العلامة برهان الدين المرغيناني: و لا يجوز ذبح الهدايا الا فى الحرم لقوله تعالٰى فى جزاء الصيد هدياً بَالِغَ الْكَعْبَةِ فصار اصلا فى كل دم. (الهداية ج۱، ص۲۸۱، باب الهدى)

و فى الهندية: و لا يجوز ذبح الهدايا الا فى الحرم. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۶۱، الباب السادس عشر فى الهدى) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۳۶، الفصل الحادى عشر فى الاحصار.

## له احرام پرته له ميقات څخه په تېرېدو او د بېرته ورګرځېدلو حکم

**سوال:** يو سړی کوم چه آفاقي دی۔ د شوال په مياشت کښې د حج لپاره راغی او له ميقات څخه ئې احرام و نه تاړه او په مکه مکرمه کښې د اقامت نيت وکړ۔ له دې نه وروسته مدينې منورې ته لاړ او بيا مکې مکرمې ته له احرام پرته داخل شو نو آيا په نوموړي سړي باندې دم واجب دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړيَ آفاقي باندې په دواړو صورتونو کښې دم واجب نه دی۔ په اول صورت کښې په دې وجه چه په ابتداء کښې هغه د عمرې احرام له ميقات څخه تړلی دی۔ نو له احرام پرته له ميقات څخه تجاوز نه دی شوی۔ او مدينې منورې ته په تللو کښې له ميقات څخه پرته له احرامه د تجاوز صورت موجود شوی دی ليکن بيا راګرځېدلی دی او مکې مکرمې ته داخل شوی دی او د حج احرام ئې د حرم له زمکې څخه تړلی دی نو له دې وجهې دم ترې ساقط شوی دی۔

و فى الهندية: فان عاد حلالاً ثم احرم سقط عنه الدم. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۵۳، الباب العاشر فى مجاوزة الميقات بغير احرام)

قال العلامة ابن نجيم المصري: من جاوز آخر المواقيت بغير احرام ثم عاد اليه و هو محرم ولبى فيه فقد سقط عنه الدم لزمه با لمجاوزة بغير احرام. (البحر الرائق ج۳، ص۴۸، باب مجاوزة الميقات بغير احرام) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۴۷۶، الفصل الرابع فى بيان مواقيت الاحرام.

## د آفاقي سړي لپاره نبوي ﷺ زيارت ته له احرام پرته د تللو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو آفاقي سړی مکې مکرمې ته راغی او هلته ئې د اقامت نيت وکړ او په شوال کښې مدينې منورې ته د نبي ﷺ د روضې زيارت ته لاړ او بيا ئې د ذو الحليفې څخه احرام وتاړه مکې مکرمې ته راغی نو آيا دم پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مواقيتو څخه له احرام پرته په تجاوز کولو سره د حج او عمرې لپاره تلل جائز نه دي چونکه نوموړي سړي تجاوز له ميقات څخه د حج او عمرې لپاره نه دی کړی بلکه د زيارت نبوي ﷺ لپاره ئې کړی دی نو څکه په د اسې کولو سره په ده باندې دم او د اسې نور نه لازميږي.

قال ابن عابدين: (تحت قوله کمکی يريد الحج) اما لو خرج الى الحل لحاجة فاحرم منه و وقف بعرفة فلا شیء عليه کا لآفاقی اذا جاوز الميقات قاصدا بستان ثم احرم منه. (رد المحتار ج۲، ص۵۸۱، باب الجنايات، مطلب لا يجب الضمان بکسر آلات اللهو)

قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: لانه خرج الى الحل لحاجة فاحرم منه و وقف بعرفة فلا شیء عليه کا لآفاقی اذا جاوز الميقات قاصداً للبستان ثم احرم منه...... التمتع بما اذا خرج لحاجة الى الحل ثم احرم با لحج منه لا يجب عليه شیء کا لمکی. (فتح القدير ج۳، ص۴٤، باب مجاوزة المقيات بغير احرام) و مثله فی التاتارخانية ج۲، ص۴۷٦، الفصل الرابع فيما يلزم لمجاوزة الميقات بغير احرام.

## جدې ته د تلونکو لپاره له ميقات څخه له احرام پرته د تيريدلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو سړی جدې ته د تللو قصد کړي وي نو آيا له ميقات څخه له احرام پرته تيريدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته يو سړی په هوايي جهاز کښې يواځې تر جدې پورې د سفر قصد کړی وي نو له ميقات څخه پرته له احرامه تجاوز کولی شي- دم او د اسې نور هيڅ پرې نه لازميږي-

قال العلامة الحصکفی: اما لو قصد موضعا من الحل کخليص و جدة حل له مجاوزته بلا احرام. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۷۷، مطلب فی المواقيت)

قال ابن العلاء الانصاری: رجل دخل بستان بنی عامر و فی التجريد و بستان بنی عامر لحاجة فله ان يدخلها مکة بغير احرام. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۴۷۷، الفصل الرابع ما يخرج على المحرم)

## په ميقات کښې د تلبيه په هيريدلو سره د دم وجوب

**سوال:** يوه سړي له ميقات څخه د حج او عمرې لپاره احرام وتاړه او تلبيه ترې هيره شوه او په ميقات کښې د ا خليدو نه وروسته ئې تلبيه شروع کړه نو آيا دم پرې واجبيږي او که نه؟ بينوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي قواعدو له مخې په نوموړي سړي باندې دم واجب دی څکه چه يواځې نيت کول او بغير له تلبيې نه په احرام کښې داخليدل غير ظاهر روايت دی. پس په نوموړي سړي باندې ضروري دي چه د بل چا په ذريعه د حرم په حدودو کښې ذبح وکړي.

قال العلامة الحصکفی: (و جاوز وقته) ظاهر ما فی النهر عن البدائع اعتبار الارادة عند المجاوزة (ثم احرم) لزمه دم کما اذا لم يحرم. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۷۹، باب الجنايات)

لما فی الهندية: اذا دخل الآفاقی مکة بغير احرام و هو لا يريد الحج و العمرة فعليه لدخول مکة اما حجة او عمرة فان احرم با لحج او العمرة من غير ان يرجع الى الميقات فعليه دم لترك حق الميقات. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۵۳، الباب العاشر فی مجاوزة الميقات بغير احرام) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۴۸، باب مجاوزة الميقات بغير احرام.

## له طواف زيارت څخه مخکښې له خپلې ښځې سره جماع کول حرام دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته له چا څخه طواف پاتې شي نو د طواف زيارت د ادا کولو څخه مخکښې له خپلې ښځې سره جماع کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طواف زيارت له ادا کولو نه مخکښې له ښځې سره جماع کول حرام دي- که چېرته د حلق د طواف څخه مخکښې جماع وکړي نو دم پرې لازميږي او که چېرته د حلق او طواف د دواړو څخه مخکښې او د عرفې له وقوف څخه وروسته جماع وکړي نو د بدنې (اوښ) ذبح کول پرې واجب دي-

لما قال العلامة الحصکفی: وطؤه بعد وقوفه لم يفسد حجه و تجب بُدنة و بعد الحلق قبل الطواف شاة لخفة الجناية. قال ابن عابدين بعد وقوفه ای قبل الحلق و الطواف. (رد المحتار ج۲، ص۵٦۰، باب الجنايات، کتاب الحج)

لما قال العلامة برهان الدين المرغينانی: و من جامع بعد الوقوف بعرفة لم يفسد حجه و عليه بُدنة...... و ان جامع بعد الحلق فعليه شاة لبقاء احرامه فی حق النساء دون لبس المخيط...... (الهداية ج۱، ص۲۵۱/۲۵۲، کتاب الحج، باب الجنايات) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۴۵، الباب الثامن فی الجنايات، الفصل الرابع فی الجماع.

## له چشمو (عينکو) سره د حج د کولو حکم

**سوال:** که چېرته د چا سترگې خرابې وي نو آيا له عينکو سره حج کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احرام په حالت کښې د تول مخ پټول منع دي او په عينکو سره چونکه تول مخ نه پټيږي نو له دې وجهې له عينکو سره حج کول جائز دي-

لما قال العلامة ظفر احمد العثمانی: لگولی ئې شي- (امداد الاحکام ج۲، ص۱۸۰)

لما قال العلامة المفتی عزيز الرحمن: سوال: چشمې لگولی شي او که نه؟ ځواب: هو! لگولی ئې شي- (فتاوى دار العلوم ديوبند ج٦، ص۵۵۴، مسائل جنايات)

## د احرام په حالت کښې د خوشبو لرونکي پان د خوړلو مسئله

**سوال:** که چېرته یو سړی د پان د خوړلو عادي وي او د احرام په حالت کښې خوشبو لرونکی پان وخوري نو آیا دم پرې لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خوشبو لرونکی شی یا د اسې نور خوراکي شیان چه پوخ شي او خوړل شي او یا له پخولو پرته وخوړل شي که چېرته د خوراکي شیانو اجزاء پکښې ډېر وي او خوشبو لرونکي اجزاء پکښې کم وي نو په خوراك سره ئې دم نه لازمیږي لیکن له کراهیت څخه خالي هم نه وي۔ او که چېرته خوشبو لرونکي اجزاء پرې غالب وي نو دم خامخا لازمیږي۔ لهذا په پان کښې خوشبو لرونکي اجزاء کم دي له دې وجهې د پان له خوړلو څخه دم نه لازمیږي لیکن مکروه خو خامخا دی۔ او بهتره دا ده چه د احرام په حالت کښې په پان کښې خوشبو لرونکي شیان استعمال نه کړي۔

و فی الهندیة: و لو کان الطیب فی طعام طبخ و تغیر فلا شیء علی المحرم فی اکله سواء یوجد رائحة او لا کذا فی البدائع و ان خلطه بما یوکل بلا طبخ فان کان مغلوباً فلا شیء علیه غیر انه ان وجدت معه الرائحة کره و ان کان غالبا وجب الجزاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲٤۱، الباب الثامن فی الجنایات)

قال العلامة شیخ اشرف العلی التهانویؒ: پان لکه څرنګه چه د خوشبویي کښې داخل نه دی بلکه د زینت (بنائست) موجب دی نو ځکه د احرام منافي نه دی۔ او الائچي او د اسې نور خو خامخا خوشبویي لري لیکن چونکه په پان او تمباکو کښې مغلوب دي له دې وجهې هغه هم جنایت نه دی. ګواکه له کراهت څخه خالي هم نه دي آه. (امداد الفتاوی ج۲، ص۱٦۲، باب الاحرام)

## د حج په دوران کښې د اخیستلو او پلورلو حکم

**سوال:** کوم سړی چه د حج کولو لپاره مکې مکرمې ته لاړ شي نو آیا هلته د حج په دوران کښې تجارت یعني اخیستل او پلورل کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صحابهٔ کرامو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین په زمانه کښې د منی په بازار او نورو بازارونو کښې شیان لګېدلي وي۔ نو کوم خلك چه حج ته راتلل هغو به له حج سره سره اخیستل او پلورل هم کول۔ او قرآن کریم ئې هم د جواز حکم ورکړی دی۔ دلته یوه خبره په ذهن کښې وساتی چه د حج په سفر کښې یو اځې باید د حج نیت وکړی او که چېرته د اسفر د تجارت په غرض سره وي نو حج نه ادا کیږي۔

قال الله تبارك و تعالیٰ: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلاً مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاِذَا اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ. (سورة البقرة، آیت ۹۸)

قال ابو بکر الجصاص الحنفی رحمه الله: حتی قال فی جوازه بعد ذکر الدلائل و جمیع ذٰلك یدل علی ان الحج لا یمنع التجارة و علی هٰذا امر الناس من عصر النبی علیه السلام الی یومنا هٰذا فی مراسم منیٰ و مکة فی ایّام الحج. و الله



اعلم. و کذا قال محمد بن احمد الانصار القرطبی فی تفسیره احکام القرآن ج۳، ص۴۱۳. (احکام القرآن ج۱، ص۳٤٥، باب التجارة فی الحج)

## د حــــرم له حدودو څخه د باندې حلق یا قصر کول او لــــه احرام څخـــه د وتلو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د عمرې احرام وتړي او د طواف او سعی نه وروسته حلق و نه کړي او د حرم له حدودو څخه د باندې لاړ شي او هلته له یادید و سره حلق وکړي او احرام خلاص کړي نو آیا دم پرې لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له احرام څخه د وتلو لپاره دا ضروري ده چه حلق او یا قصر د حرم په حدودو کښې د ننه وکړي او که چېرته یو محرم د احرام په حالت کښې د حرم له حدودو څخه د باندې لاړ شي حلق یا قصر وکړي او له احرام څخه ووځي نو دم پرې لازمیږي او دم به د حرم په حدودو کښې د ننه ذبح کوي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و اعتمر فخرج من الحرم و قصر فعلیه دم عندهما. (رد المحتار ج۲، ص۲۲٥، کتاب الحج)

# باب الهدی

## (د قربانۍ احکام او مسئلې)

## د قارن او یا متمتع له خپلې قربانۍ څخه د غوښې د خوړلو حکم

**سوال:** آیا متمتع او قارن د خپلې قربانۍ غوښه خوړلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد دم تمتع او دم قِران دم شکر دی او د غوښې د خوړلو حکم ئې د عامې قربانۍ غوندې دی. یعنې لکه څرنګه چه له اضحیه څخه مالك پخپله خوراك کولی شي نو همدا رنګه له دم قران او دم تمتع څخه هم خوراك کولی شي بلکه نورو ته ئې هم ورکولی شي.

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و یری الحنفیة انه یجوز الاکل من هدی التطوع و التمتع و القِران اذا بلغ الهدی محله لانه دم نسك فیجوز الاکل منه بمنزلة الاضحیة و ما جاز لصاحبه الاکل منه جاز للغنی الاکل منه. (الفقه الاسلامی و ادلّته ج۳، ص۳۰۳، باب الهدی رابعا الاکل من الهدی)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: یجوز الاکل من هدی التطوع و المتعة و القِران و یستحب له ان یأکل منها. (الهدایة ج۱، ص۲۸۰، کتاب الحج) و مثله فی تبیین الحقائق ج۲، ص۸۹، باب الهدی.

## د جنایت له دم څخه پخپله خوراك کول جائز نه دي

**سوال:** د جنایاتو په دم کښې جنایت کوونکی حاجي پخپله غوښه ترې خوړلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هره هغه قرباني (دم) چه د کوم جنایت له وجهې په حاجي باندې لازم شي او یا هغه پخپله دم په ځان باندې لازم کړي نو د هغې قربانۍ استعمال یعنې خوړل او د اسې نور پخپله د همدغه حاجي او اغنیاوو لپاره حرام دي بلکه یوائې فقیران به ئې خوري.

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و لا یجوز الاکل من بقیة الهدایا کدماء الکفارات و النذور و هدی الاحصار و التطوع اذا لم یبلغ محله و محله منی او مکة. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۳، ص۳۰۳، باب الهدی رابعا الاکل من الهدی)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا یجوز الاکل من بقیة الهدایا لانها دماء کفارات. (الهدایة ج۱، ص۲۸۰، کتاب الحج، باب الهدی) و مثله فی تبیین الحقائق ج۲، ص۸۹، کتاب الحج، باب الهدی.

## د حرم په حدودو کښې د تحلیل لپاره د یوم النحر څخه مخکښې د ذبحه کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د احرام له تړلو نه وروسته د شرعي عذر له وجهې د حج لپاره نه شوای تللی او د خپل ځان د تحلیل لپاره د حرم په حدودو کښې د نحر (قربانۍ) له ورځې څخه مخکښې کوم څناور ذبح کړي نو آیا دا سړی په د اسې کولو سره حلالیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د دم احصار لپاره یعنې د احصار د دم د ذبح کولو لپاره یوائې د حرم په حدودو کښې موجودګي ضروري دی اګر که د نحر له ورځې څخه مخکښې وي نو ځکه په صورت مسئوله کښې د دې محصر له احرام څخه حلال والی صحیح دی.

قال الشیخ وهبة الزحیلی: فیجوز عند ابی حنیفةؒ ذبح الهدی قبل یوم النحر لاطلاق النص و لانه لتعجیل التحلل. و قال الصاحبان لا یجوز الذبح للمحصر با لحج الا فی یوم النحر کدم التمتع و القِران و علی الرای الاوّل هو الراجح یکون زمان ذبح الهدی مطلق الوقت لا یتوقف بیوم النحر سواء کان الاحصار من الحج ام عن العمرة. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۳، ص۲۹۲، باب الهدی، اما زمان ذبح الهدی)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا یجوز دم الاحصار الا فی الحرم و یجوز ذبحه قبل یوم النحر عند ابی حنیفةؒ و قالا لا یجوز الذبح للمحصر با لحج الا فی یوم النحر. (الهدایة علی صدر فتح القدیر ج۳، ص۵۵، باب الاحصار) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۵۶، الباب الثانی عشر فی الاحصار.

## له حج څخه تر بیرته راتلو وروسته پخپل وطن کښې د دم د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته په یوه سړي باندې دم لازم شي نو که چېرته دم ذبح کړي نو د قربانۍ روپۍ ورسره نه پاتې کیږي نو آیا چه وطن ته واپس راشي پخپل وطن کښې دم ادا کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه قرباني (دم) چه د حج په ورځو کښې د حج له وجهې او یا د جنایاتو له وجهې په حاجي باندې لازم شي نو د حرم په حدودو کښې ئې ذبح کول ضروري دي. له حرم څخه د باندې ئې ذبح کول جائز نه دي. له دې وجهې نوموړی حاجي دې پخپل وطن کښې د ذبح کولو په ځای په حرم کښې ذبح وکړي.

قال الشیخ وهبة الزحیلی: و لا یجوز ذبح الهدایا الا فی الحرم لان الهدی اسم لما یهدی الی مکان و مکانه الحرم. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۳، ص۳۰۷، خامسا مکان ذبح الهدی)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: لا یجوز ذبح الهدایا الا فی الحرم. لقوله تعالی فی جزاء الصید هَدْیًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ...... و لان الهدی اسم لما یهدی الی مکان و مکانه الحرم. (الهدایة ج۱، ص۲۸۱، باب الهدی) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۹۰، باب الهدی.

## د جنایاتو د دم لپاره د وخت او د ورځې د مشروط کیدلو حکم

**سوال:** آیا د جنایاتو د دم لپاره څه وخت او ورځ شرعاً ټاکل شوې ده او که نه؟ او که په کوم وخت او ځای کښې ئې چه سړی وغواړي ادا کولی ئې شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج کښې د نقصان د پټې کولو لپاره کوم دم چه لازمیږي شرعا د هغه د ادا کولو لپاره کومه نیټه نه ده ټاکل شوې بلکه حاجي ئې چه کله او په کوم ځای کښې وغواړي ادا کولی ئې شي.

قال الشيخ وهبة الزحيلى: و يجوز ذبح بقية الهدايا اى وقت شاء لانها دماء كفارات فلا يختص بيوم النحر لانها وجبت لجبر النقصان. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۳، ص۳۰۷، خامساً مكان ذبح الهدى و زمانه)

قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: و يجوز ذبح بقية الهدايا فى اى وقت شاء و لنا ان هٰذه دماء كفارات و لا يختص بيوم النحر لانها لما وجبت جبر النقصان كان التعجيل بها اولى لارتفاع النقصان من غير تاخير بخلاف دم المتعة و القران لانه دم نسك. (الهداية ج۱، ص۲۸۱، كتاب الحج، فصل فى الهدى) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲٦۱، الباب السادس عشر فى الهدى.

## پـــــــه منیٰ کښې په قرباني باندې د عدم قـــــــدرت په صورت کښې حاجي بايد څه وکـــــــړي؟

**سوال:** که چېرته حاجي په منیٰ کښې د قربانۍ په کولو باندې قادر نه وي نو بايد څه وکړي آيا شرعائې کوم بدل شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په منیٰ کښې د قربانۍ په کولو باندې د نه قدرت له وجهې د قربانۍ په بدل کښې د حج په ورځو کښې درې روژې په حج کښې او له حج څخه د فارغيدو او کور ته تر راتلو وروسته اوه ورځې روژې نيول لازمي دي ليکن ياد ولرى چه دلته د نه قدرت څخه مراد په منیٰ کښې په قربانۍ باندې نه قادريدل مراد دي اګر که پخپل وطن کښې پرې قادر هم وي۔

قال الشيخ وهبة الزحيلى: فان لم يجد المتمتع الهدى ينتقل الى صيام ثلاثة ايّام فى الحج و سبعة اذا رجع الى وطنه و تعتبر القدرة على الهدى فى موضعه فمتى عدمه فى موضعه جاز له الانتقال الى الصيام و ان كان قادراً عليه فى بلده. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۳، ص۳۰۲، باب الهدى)

قال اللّٰه تبارك و تعالىٰ: فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِى الْحَجِّ وَ سَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ. (سورة البقرة، آيت ۱۹٦) و مثله فى الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۳۸، كتاب الحج، تفسير الهدى.

## د بانك په ذريعه د قربانۍ د کولو حکم

**سوال:** نن صبا ځينې حاجيان صاحبان په حکومتي بانکونو کښې د قربانۍ لپاره پيسې جمع کوي بلکه په دې طريقه کښې د قربانۍ او حلق تقديم او تاخير او د نه کولو خطره هم وي نو آيا د دغو شبهاتو سره سره د بانك په ذريعه قرباني جائزه ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قرباني يو داسې عمل دی چه نيابت پکښې صحيح دی۔ له دې وجهې د بانك په ذريعې د قربانۍ په کولو سره د قربانۍ فريضه ادا کيږي ليکن په دې کښې د دې خبرې خيال ساتل ضروري دي چه په حلق او قرباني کښې تقديم او تاخير (وړاندې والی او وروسته والی) و نه شي او نه ئې خطره وي۔ او که نه نو د حنفيه وو په نزد د جنايت دم لازميږي۔ لهذا د نوموړي شبهاتو د موجود والي له وجهې د بانك په ذريعه قرباني مه کوی بلکه پخپله قرباني وکړی او ځانونه حلال کړی۔



قال الشيخ وهبة الزحيلى: و الاولى با لاتفاق ان يتولى الانسان ذبح الهدى بنفسه ان كان يحسن ذٰلك لانهٗ قربة و العمل بنفسه فى القربات اولى لما فيه من زيادة الخشوع..... و ان ذبح الهدى غير صاحبه اجزاه و المستحب ان يشهد ذبحه. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۳، ص۳۰۹، باب الهدى، سادساً ذبح الهدى)

قال العلامة برهان الدين المرغينانیؒ: و الاولى ان يتولى ذبحها بنفسه اذا كان يحسن ذٰلك...... الا ان الانسان قد لا يهتدى لذٰلك و لا يحسنه فجوزناه تولية غيره. (الهداية ج۱، ص۲۸۱، باب الهدى) و مثله فى تبيين الحقائق ج۲، ص۹۰، باب الهدى.

# باب العمره

## (د عُمرې مسائل او احکام)

## له عمرې نه وروسته د سر د خریلو حکم

**سوال:** د عمرې له ادا کولو نه وروسته د سر خریل ضروري دي او که نه؟ او که چېرته څوک سر و نه خریي نو آیا ګنهګار به وي او که نه؟ بینوا توجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: په عُمره کښې باقاعده حلق او یا قصر واجب دی او ترک کول یا له حرم څخه د باندې وتل او حلق کول د دم موجب دی.

کما فی الهندیة: اما واجباتها فالسعی بین الصفا و المروة و الحلق او التقصیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۳۷)

و قال ایضا: و تجب شاة بتاخیر النسك عن مکانه کما اذا خرج من الحرم و حلق رأسه سواء کان الحلق للحج او للعمرة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۴۷، الباب الثامن فی الجنایات، الفصل الخامس)

قال العلامة الحصکفیؒ: و غیرهما واجب و فی ردّ المحتار اراد بالغیر من المذکورات هٰنا و ذلك اقل اشواط الطواف و السعی و الحلق او التقصیر. (رد المحتار ج۲، ص۴۷۳، کتاب الحج، مطلب فی احکام العمرة) و مثله فی التاتارخانیة ج۲، ص۵۲۶، الفصل الثامن فی بیان وقت الحج و العمرة.

## د ګنو عمرو په صورت کښې د حلق طریقه

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه یو سړي د عُمرې له کولو نه وروسته چه کله حلق وکړي او بیا دوهمه عمره وکړي نو چونکه سر ئې له مخکښې څخه خریلی دی اوس دې دی څه کوي؟ آیا چاړه دې پرې تیره کړي او که همد اسې دې پرېږدي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د یوې عُمرې د ادا کولو نه وروسته یو څوك حلق وکړي نو د دوهمې او دریمې عمرې د ادا کولو نه وروسته دې یو اځې په سر باندې چاړه یا پترۍ تیره کړي. دا ورته د حلق قائم مقام ګرځي.

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا جاء وقت الحلق و لم یکن علیٰ رأسه شعر بان کان حلق قبل ذٰلك او سبب آخر ذکر فی الاصل انه یجری موسی علی رأسه. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۵۴۳، الفصل الرابع عشر فی الحلق و القصر)

قال فی الهندیة: و اذا جاء وقت الحلق و لم یکن علی رأسه شعر بان کان حلق قبل ذٰلك او سبب آخر ذکر فی الاصل انه یجری علی موسیٰ علی رأسه. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲۳۱، الباب الثالث فی الاحرام)

## عمـــره او مـــــزدوري

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زید د عمرې په ویزه سعودي ته عرب ته تلل غواړي نو له عمرې نه وروسته که چېرته هلته مزدوري وکړي نو آیا په اسلام کښې به د اسې اقدام جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا طریقه قانوني جرم دی لیکن اسلامي جرم نه دی لکه څرنګه چه د حج او عمرې لپاره د تللو په وخت کښې د تجارت اراده اسلامي جرم نه دی. نو له دې وجهې که چېرته زید د عمرې په ویزې باندې عربستان ته لاړ شي او له عمرې نه وروسته هلته مزدوري وکړي نو دا ورته صحیح دي.

کما فی قوله تعالیٰ: لَیْسَ عَلَیْکُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلاً مِّنْ رَّبِّکُمْ. قال ابن العربی ای فی مواسم الحج المسئلة الثانیة فی هٰذا دلیل علی جواز التجارة فی الحج للحاج مع اداء العبادة. (احکام القرآن ج۱، ص۱۳۶، سورة البقرة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و تجرید السفر عن التجارة احسن و لو اتجر لا ینقص ثوابه کالغازی. (البحر الرائق ج۲، ص۳۰۹، کتاب الحج) و مثله فی الهندیة ج۱، ۲۲۰، کتاب المناسك، الباب الاوّل فی تفسیر الحج.

## د مزدورۍ په سلسلـــــه کښې جدې ته په تلونکو خلکو بـــــاندې عمره واجبه نه ده

**سوال:** یو سړی په جدې کښې د مزدورۍ لپاره اوسیږي نو آیا عمره پرې واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جده چونکه د کعبې د حرم له حدودو څخه خارجه ده او د حرم خارج ته په تګ سره عمره نه واجبیږي. له دې وجهې جدې ته په تلونکي باندې عمره نه واجبیږي.

قال ابن عابدینؒ: اما لو قصد موضعا من الحل کخلیص و جدة حل له مجاوزة بلا احرام. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۷۷، کتاب الحج، مطلب فی المواقیت)

قال العلامة ابن العلاء الانصاریؒ: رجل دخل بستان بنی عامر و فی التجرید و غیره لحاجته فلهٗ ان یدخل مکة بغیر احرام. (الفتاوی التاتارخانیة ج۲، ص۴۷۷، الفصل الرابع فی ما یحرم علی المحرم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۲۱، الباب الثانی فی المواقیت.

## د حج په ځای د عمرې د کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په یوه سړي باندې حج فرض دی لیکن هغه د حج په ځای عمره وکړه نو آیا د حج فریضه ترې ساقطیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حج د اسلام له رکنونو څخه یو اهم رکن دی کوم چه په خاص وخت کښې د مخصوصو مقاماتو زیارت او مخصوصو افعالو ته وایي نو له دې وجهې د عمرې په ادا کولو سره د حج فریضه نه ساقطیږي بلکه چه څوك د اسې کوي چه د حج په ځای عمره کوي نو د حج فریضه ئې په ذمه باندې پاتې کیږي او که وئې نه کړي نو د وعید او عذاب مستحق دی.

عن علیؓ قال قال رسول الله ﷺ من ملك زادا و راحلة تبلغه الی بیت الله و لم یحج فلا علیه ان یموت یهودیا او نصرانیاً. (مشکوٰة ج۱، ص۲۲۲، کتاب الحج)

قال ابن الهمامؒ: بشرائط نوعان ولو ملکه مسلماً فلم یحج حتیٰ افتقر حیث یتقرر الحج فی ذمته دینا علیه. (فتح القدیر ج۲، ص۳۲۰، کتاب الحج) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۱۷، الباب الاوّل فی تفسیر الحج.

## په ورخ كښې د ګڼو عمرو د ادا كولو حكم

**سوال:** آيا په يوه ورځ كښې د ګڼو عمرو ادا كول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عمرې د ادا كولو لپاره مقدس شريعت د څه وخت او تعداد تعين نه دى كړى بلكه يو سړى په ورځ كښې څومره عمرې چه ادا كولوى شي ادا دې كړي په دې باندې هيڅ ډول پابندي نشته۔

و فى الهندية: و وقتها جميع السنة الا فى خمسة ايام تكره فيها العمرة قارن و اما ركنها فا لطواف و اما واجبتها فا لسعى بين الصفا و المروة و الحلق او التقصير. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۳۷، الباب السادس فى العمرة)

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و هى احرام و طواف و سعى و حلق او تقصيرٌ فا لاحرام شرط...... و جازت فى كل سنة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۲۷۳/۲۷۲، مطلب فى احكام العمرة) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۲۵، الفصل الثامن فى بيان وقت الحج و العمرة.

## په شوال او ذى القعده كښې د عمرې د ادا كولو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د دې مسئلې په باره كښې چه د حج په مياشتو كښې د عمرې ادا كول جائز دي او كه نه؟ او كه چېرته يو څوك عمره ادا كړي نو دم پرې واجبيږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ايام تشريق، عرفې او د اختر له ورځې پرته په ټول كال كښې د عمرې ادا كول جائز دي كه د حج په مياشتو كښې وي يا په نورو مياشتو كښې۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و وقت العُمرة السنة كلها. و فى الهداية و العُمرة لا تفوت. و لكن تكره فى يوم عرفة و ايام التشريق. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۲۵، الفصل الثامن فى بيان وقت الحج و العمرة)

قال العلامة الحصكفىؒ: (و جازت كل سنة) و ندبت فى رمضان ( و كرهت) تحريما يوم عرفة و اربعة بعدها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۷۳، مطلب احكام العُمرة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲۳۷، الباب السادس فى العُمرة.

## حضور صلى الله عليه وسلم په روژه كښې يوه عمره هم نه ده كړې

**سوال:** آيا حضور صلى الله عليه وسلم په روژه كښې عمره ادا كړې ده او كه نه؟ او كه ئې ادا كړې وي نو د رمضان په كوم تاريخ ئې ادا كړې ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حضور صلى الله عليه وسلم په روژه كښې يوه عمره هم نه ده ادا كړې۔ البته په رمضان شريف كښې ئې د عمرې د ادا كولو فضيلت بيان كړى دى۔

قال البراء بن العازب: اعتمر النبى صلى الله عليه وسلم عمرتين قبل ان يحج فلم يحتسب بعمرة الحديبية كذا فى الصحيحين و كلّهن فى ذيقعدة على ما هو الحق. (فتح القدير ج۳، ص۱۳۷، باب العمرة)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و ندب فى رمضان و قد اعتمر النبى صلى الله عليه وسلم اربع عمرات كلّهن بعد الهجرة فى ذيقعدة على ما هو الحق و تمام فيه. (رد المحتار ج۲، ص۴۷۳، مطلب احكام العمرة) و مثله فى التاتارخانية ج۲، ص۵۲۶، كتاب الحج، باب العمرة.



## د ژوندي سړي لپاره طواف او د عمرې ادا كولو حكم

**سوال:** د عمرې او طواف ثواب كه چېرته په كوم ژوندي سړي پسې وبخښل شي نو آيا شرعا جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ژوندي سړي پسې د طواف او عمرې ثواب بخښل جائز دي۔ د دې په مشروعيت كښې هيڅ خلاف نشته۔

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة بعبادة ماله جعل ثوابها لغيره اى سواء كانت صلٰوة او صوماً او صدقة او قرأة او ذكر او طوافاً او حجا او عمرة او غير ذٰلك. (رد المحتار ج۲، ص۵۹۵، مطلب فى اهداء ثواب الاعمال للغير)

قال ابن نجيمؒ: فان من صام او صلّى او تصدق و جعل ثوابه لغيره من الاموات و الاحياء جاز و يصل ثوابها اليهم عند اهل السنة و الجماعة كذا فى البدائع. (البحر الرائق ج۳، ص۵۹، باب الحج عن الغير) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فى الحج عن الغير.

## د حج بدل نه وروسته د ايصال ثواب لپاره د عمرې د كولو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د دې مسئلې په باره كښې چه يو سړى د حج بدل لپاره لاړ او د حج بدل له ادا كولو نه وروسته ئې خپل مرحوم والد ته د ايصال ثواب لپاره عمره وكړه نو آيا دا عمره ئې صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حج بدل كوونكي باندې د حج تر ادا كولو پورې د خپل آمر د فرمان مطابق د حج د اركانو ادا كول لازمي دي تر څو چه د آمر د حكم خلاف ورزي و نه شي۔ په صورت مسئوله كښې چونكه هغه له ټولو مخكښې حج بدل ادا كړى دى او بيا ئې د ايصال ثواب لپاره عمره كړې ده نو ده د آمر د حكم خلاف ورزي نه ده كړې له دې وجهې ئې عمره صحيح ده۔

قال عالم بن العلاء الانصارىؒ: ابن سماعة عن محمدؒ الا المامور با لحج اذا حج عن الآمر ثم احرم بعمرة ينفق من مال نفسه ما دام معتمراً فاذا انصرف من مال آمر. (الفتاوى التاتارخانية ج۲، ص۵۴۷، الفصل الخامس عشر فى الرجل يحج عن الغير)

قال ابن عابدينؒ: و لو امره با لعُمرة فاعتمر ثم حج عن نفسه لم يكن مخالفاً بخلاف ما اذا حج اوّلا ثم اعتمر. (رد المحتار ج۲، ص۶۰۰، مطلب شروط الحج عن الغير عشرون) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۶۳، باب الحج عن الغير.

## د ښځې له خوا څخه د عمرې د ادا كولو حكم

**سوال:** آيا د روغ سړي لپاره عمره كيدلى شي او كه نه او همدا رنګه د ښځې له خوا څخه د عمرې ادا كول څنګه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عمره او نفلي حج د هر سړي له خوا څخه كه روغ وي او كه ناروغ او كه خپله ښځه وي او كه پردۍ مطلب د هر چا له خوا څخه ئې په ادا كولو كښې څه قباحت نشته۔

قال ابن عابدين: بعبادة ماله جعل ثوابها لغير (اى سواء كانت صلوة او صوما او صدقة او قرأة او ذكراً او طوافاً او عُمرة و غير ذلك. (رد المحتار ج۲، ص۵۹۵، مطلب فی اهداء ثواب الاعمال للغیر)

قال ابن نجيمؒ: فان من صام او صلى او تصدق و جعل ثوابه لغيره من الاموات و الاحياء جاز و يصل ثوابها اليهم عند اهل السنة و الجماعة كذا فى البدائع (البحر الرائق ج۳، ص۵۹، باب الحج عن الغیر) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۵۷، الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر.

## د عمرې د احرام له تړلو نه وروسته څو ځله د تلبیې لوستل ضروري دي؟

**سوال:** د عمرې لپاره د احرام له تړلو نه وروسته یو څوك باید څو ځله تلبیه ولولي آیا شرعا د تلبیې لپاره کوم تاکلی مقدار شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عمرې یا د حج لپاره د احرام له تړلو او نیت د کولو نه وروسته یو ځل تلبیه لوستل شرط دي او درې ځله لوستل ئې مستحب دي۔

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفيؒ: ثم لبى دبر صلوته ناوياً بها الحج و هى لبّيك اللّهمّ لبّيك لا شريك لك لبّيك، انّ الحمد و النّعمة لك و الملك لا شريك لك. و زاد فيها و لا تنقص. قال شارح التنوير (و لا تنقص) اى منها فانها مكروه اى تحريما لقولهم انها مرة شرط و الزيادة سنة و يكون مسيئا بتركها و بترك رفع الصوت بها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۸۲، فصل فی الاحرام)

لما فی الهندية: و له ركن و شرط (فالركن) ان يوجد منه فعل من خصائص الحج و هو نوعان (احدهما قول) بان يقول لبّيك اللّهم لبّيك لا شريك لك..... الخ و هى مرّة شرط و الزيادة سُنة الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۲۱/۲۲۲، کتاب المناسك، باب الثالث فی الاحرام)

## عمره فرض ده، که واجب او که سنت؟

**سوال:** عمره پخپل ذات کښې څه حکم لري آیا فرض ده او که واجب او که سنت؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد عمره په ټول ژوند کښې یو ځل سنت مؤکد دی۔ نه فرض دی او نه واجب۔

قال العلامة عبد الرحمن الجزائریؒ: المالكية و الحنفية قالوا لعمرة سُنة مؤكدة فى العمر مرّة لا فرض لقولهﷺ الحج مكتوب و العمرة تطوع. (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱، ص۶۸۴، مبحث العمرة)

و فی الهندية: ايّام و تكره فيها العمرة لغير القارن كذا فى فتاوىٰ قاضى خان و هى يوم عرفة و يوم النحر و ايّام التشريق و الاظهر من المذهب ما ذكرنا و لكن مع هذا لو ادّاها فى هٰذه الايام صح و يبقى محرما بها فيها كذا فى الهداية. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۳۷، الباب السادس فی العمرة) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۱۵۱، مطلب احكام العمرة.

## په کومو ورځو کښې د عمرې ادا کول منع دي

**سوال:** د کال په کومو ورځو کښې د عمرې ادا کول جائز نه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد په ټول کال کښې یواځې پنځه ورځې د عمرې کول



مکروه دي۔ (۱) د عرفې په ورځ (۲) د نحر (قربانی) په ورځ (۳) د لوی اختر څخه وروسته درې ورځې۔

قال الشيخ عبد الرحمن الجزائریؒ: قال الحنفية يكره الاحرام با لعمرة تحريما فى يوم عرفة قبل الزوال و بعده على الراجح و كذٰلك يكره الاحرام بها فى يوم عيد النحر و ثلاثة ايام بعده. (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱، ص۶۸۵، کتاب الحج، ارکان العمرة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالى رحمه اللّٰه: العمرة سنة و تصح فى جميع السّنة و تكره يوم عرفة و يوم النحر و ايّام التّشريق. (مراقى الفلاح على نور الايضاح ص۶۰۸. كتاب الحج فى فضل العمرة) ومثله فی شرح الوقاية ج۱، ص۲۵، كتاب الحج.

## د عمرې رکنونه څو دي؟

**سوال:** که چېرته یو څوك د عمرې ادا کول وغواړي نو د هغه لپاره د کومو شیانو کول ضروري دي یعنې د عمرې ارکان څو دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد د عمرې لپاره یو رکن دی چه هغه طواف دی او یو شرط دی چه هغه احرام دی او سعی بین الصفا و المروه او حلق یا قصر ئې په واجباتو کښې شامل دي۔ او د عمرې کوونکي لپاره د دې امورو خیال ساتل ضروري دي۔

قال الشيخ عبد الرحمن الجزائریؒ: الحنفية قالوا للعمرة ركن واحد هو معظم الطواف اربعة اشواط اما الاحرام فهو شرط لها و اما السعى بين الصفا و المروة فهو واجب كما تقدم فى الحج و مثل السعى الحلق او التقصير فهو واجب. (كتاب الفقه على مذاهب الاربعة ج۱، ص۶۸۵، کتاب الحج، ارکان العمرة)

لما قال العلامة قاضى خان رحمه اللّٰه: و ركن العمرة شيئان الاحرام و الطواف با لبيت و واجبها شيئان السعى بين الصفا و المروة و الحلق و ليس عليه ما سوىٰ ذلك من رمى الجمار. (فتاوى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۳۰۱، فصل فی العمرة) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۳۷، الباب السادس فی العمرة.

## د تشریق په ورځو کښې د عمرې د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د تشریق په ورځو کښې عمره ادا کړي نو آیا عمره ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د لوی اختر په ورځ او د تشریق په ورځو کښې د عمرې ادا کول شرعا ممنوع یعنې مکروه تحریمي ده۔ بیا هم که چېرته یو څوك د نحر او تشریق په ورځو کښې عمره ادا کړي نو له مکروه تحریمي سره سره ئې عمره ادا کیږي۔

قال العلامة عبد اللّٰه بن مودود الموصلیؒ: تكره يوم عرفة و النحر و ايّام التّشريق....... و لو اداها فيها جاز مع الكراهية كصلوة التطوع فى الاوقات الخمسة المكروهة. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص۱۵۷، فصل فی العمرة)

و فی الهندية: جميع السنة الا خمسة ايام تكره فيها العمرة لغير الفارق و هى يوم عرفة و النحر و ايام التشريق

و الاظهر من المذهب ما ذكرنا و لكن مع هذا لو اداها فى هذه الايام صح. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۲۳۷، الباب السادس فى العمرة)

## د عمرې په ارکانو کښې د تقديم او تاخير حکم

**سوال:** که چېرته يو سړی د عمرې د طواف او سعی نه وروسته د حلق په ځای اول د نامه لاندې د ويښتانو صفايي وکړي او بيا حلق وکړي نو آيا دم پرې لازمېږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه د حج په ارکانو او واجباتو کښې د ترتيب مراعات کول ضروري دي او د تقديم او تاخير له وجهې دم لازمېږي نو همدارنګه په عمره کښې هم د ترتيب خيال ساتل ضروري دي او که چېرته ترتيب ساقط شي نو دم واجبېږي.

لما قال المفتي عبد الرحيم لاجپوري: هو! دم پرې واجبېږي. اول به سر خريي او بيا بريتونه او بيا بايد د نورو ځايونو ويښتان لرې کړي او برعکس په خريلو باندې دم لازمېږي.

او په فتاوٰی اسعديه کښې دي چه: (سوال) فى رجل اهل بعمرة و طاف و سعى و حلق احد ابطيه ثم حلق رأسه و حلق ابطيه الآخر ما ذا يجب عليه افترنا. (الجواب) يجب عليه دم و الصورة ما شرح. (فتاوٰى رحيمية ج ۲، ص ۵۲، كتاب الحج)



# باب في زيارة قبر النبي ﷺ

## (د روضۀ اقدس د زيارت احکام او مسئلې)

## په حج او يا عمره کښې د مبارکې روضې د زيارت لپاره تلل لازمي دي

**سوال:** کوم سړی چه د حج يا عمرې لپاره مکې مکرمې ته لاړ شي نو آيا په هغه باندې د نبي ﷺ د مبارکې روضې د زيارت لپاره مدينې منورې ته تلل لازمي دي او که نه؟ شرعائې حکم څنګه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روضۀ اقدس ﷺ د زيارت په باره کښې د فقهاء کرامو درې قولونه راغلي دي. ځينې مستحب ورته وايي او ځينې واجب او ځينې ئې بيا وجوب ته د نژدې والي قائل دي. علامه شامي او مولانا اشرف علي تهانويؒ دريم قول ته ترجيح ورکړې دی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و شرح المختار انها قريبة من الوجوب لمن له سعة. (رد المحتار ج ۲، ص ۳۵۲، باب الهدى)

قال العلامة عبد الله بن مودود الموصليؒ: اذ هى من افضل المندوبات و المستحبات بل تقرب من درجة الواجبات فانه ﷺ حرص عليها و بالغ فى الندب اليها. (الاختيار لتعليل المختار ج ۱، ص ۱۷۵، فصل فى زيارة النبى ﷺ) و مثله فى امداد الفتاوٰى ج ۲، ص ۱۶۹، كتاب الحج.

## د نبي کريم ﷺ د روضې د زيارت په وخت کښې بايد کوم اعمال ترسره شي؟

**سوال:** کوم سړی چه د رسول الله ﷺ د روضې د زيارت لپاره تلل وغواړي نو مدينې منورې ته له داخليدو څخه مخکښې هغه بايد څه وکړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه د نبي ﷺ د روضې د زيارت اراده وکړي نو هغه بايد په کثرت سره درود شريف ولولي. او کله چه د مدينې طيبې حدود يعنې د ښار د يوالونه ووينې نو د درود شريف د ويلو تر څنګ دې دا دُعا ووايي چه: اللّٰهم هٰذا حرم نبيّك فاجعله وقاية لى من النار و امانا من العذاب و سوء الحساب. او مدينې منورې ته له داخليدو څخه مخکښې دې بايد غسل وکړي، ښه لباس دې واغوندي، خوشبويي دې ولګوي او په تواضع (عاجزی) او وقار سره دې داخل شي او دا دعا دې وغواړي. بسم الله و على ملّة رسول الله رَبِّ اَدْخِلْنِىْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّ اَخْرِجْنِىْ مُخْرَجَ صِدْقٍ الخ.

لما قال العلامة عبد الله بن مودود الموصليؒ: ينبغى لمن قصد زيارة قبر النبى ﷺ ان يكثر الصلوٰة عليه فقد جاء فى الحديث انه يبلغه و يصلّ عليه فاذا عاين حيطان المدينة يصلى عليه و يقول اللّٰهم هٰذا حرم نبيّك فاجعله وقاية لى من النار و امانا من العذاب و سوء الحساب و يغتسل قبل الدخول او بعده ان امكنه و يتطيب و يلبس احسن ثيابه فهو اقرب الى التعظيم و يدخلها متواضعا عليه السكينة و الوقار و يقول بسم الله و على ملّة رسول الله رَبِّ اَدْخِلْنِىْ مُدْخَلَ صِدْقٍ...... الى آخر الآية. (الاختيار لتعليل المختار ج ۱، ص ۱۷۵، فصل فى زيارة قبر النبى ﷺ)

و فى الهندية: اذا توجه الى الزيارة يكثر من الصلوٰة و السلام على النبى ﷺ مدة الطريق...... و اذا عاين حيطان المدينة يصلى عليه و يقول اللّٰهم هٰذا حرم نبيّك فاجعله وقاية لى من النار و امانا من العذاب و سوء الحساب و

یغتسل قبل الدخول او بعده ان امکنه و یتطیب و یلبس احسن ثیابه و یدخلها متواضعاً علیه السکینة و الوقار. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۵، کتاب الحج، خاتمة فی زیارة قبر النبیﷺ)

## د رسول اللهﷺ د روضې د زیارت لپاره مسجد نبويﷺ ته د داخليدو په وخت کښې د دوو رکعتونو د اداکولو حکم

**سوال:** چه کله یو څوك د رسول اللهﷺ د روضې د زیارت لپاره مسجد نبويﷺ ته داخل شي نو آیا دوه رکعته لمونځ به کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله یو څوك د زیارت لپاره مسجد نبوي ته داخليږي نو که چېرته ممکن وي د جناب رسول کریمﷺ له منبر سره دوه رکعته لمونځ په داسې توګه اداکړي چه د منبر ستن ئې ښي طرف ته شي۔ او که چېرته په دې طریقې سره ممکن نه وي نو چه چېرته موقع ورته پیدا کیږي هم هلته دې لمونځ اداکړي او بیا دې د سلام لپاره پاکې او مبارکې روضې ته حاضر شي۔

لما قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلیؒ: ثم یدخل المسجد فیصلی عند منبرهﷺ رکعتین یقف بحیث یکون عمود المنبر بحذاء منکبه الایمن فهو موقفهﷺ و هو بین قبره و منبره. (الاختیار لتعلیل المختار ج۱، ص۱۷۵، فصل فی زیارة النبیﷺ)

و فی الهندیة: و یصلّی عند منبره رکعتین یقف بحیث یکون عمود المنبر بحذاء منکبه الایمن و هو موقفه علیه السلام وهو بین قبره و منبره ثم یسجد شکراً لله تعالٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۵، کتاب الحج، خاتمة فی زیارة قبر النبیؐ)

## د حرم نبوي د زیارت په وخت کښې څه کول په کار دي؟

**سوال:** چه کله یو څوك د روضۀ اقدس د زیارت لپاره مسجد نبوي ته داخل شي نو څه باید وکړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دوو رکعتونو له اداکولو نه دې وروسته چه کله د قبر مبارك زیارت ته لاړ شي نو د حضورﷺ د سر په طرف د قبلې له خوا د مواجهه شریف څخه دې درې یا څلور ګزه لرې په آرام ودریږي او دا تصور دې وکړي چه حضورﷺ آرام فرما دی او دی مبارك دا کلام اوري او بیا دې په تسلي سره سلام وړاندې کړي۔

لما قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلیؒ: ثم ینهض فیتوجه الٰی قبرهﷺ فیقف عند رأسهﷺ مستقبلا للقبلة یدنو منه قدر ثلاثة اذرع او اربعة و لا یدنو منه اکثر من ذٰلك....... و یقف کما یقف فی الصلٰوة و یمثل صورته الکریمة البهیةﷺ کانه نائم فی لحده عالم به یسمع کلامه. قال النبیﷺ من صلی عن قبری سمعته و فی الخبر انه وکل بقبره ملك یبلغه سلام من سلم علیه من اُمته........ و یقول السلام علیك یا رسول الله الخ. (الاختیار لتعلیل المختار ج۱، ص۱۷۵، فصل فی زیارة النبیﷺ)

و فی الهندیة: ثمّ ینهضّ فیتوجه الٰی قبرهﷺ فیقف عند رأسه مستقبل القبلة ثم یدنو منه ثلاثة اذرع او اربعة و



لا یدنو منه اکثر من ذٰلك و لا یضع یده علی جدار التربة فهو اهیب و اعظم للحرمة و یقف کما یقف فی الصلٰوة و یمثل صورته الکریمة البهیة کانه نائم فی لحده عالم به یسمع کلامه ثم یقول السلام علیك یا نبی الله الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۵، کتاب الحج، خاتمة فی زیارة قبر النبیؐ)

## قانوناً په حجاز کښې د قیام د مودې د کموالي له وجهې حاجي چه مدینې منورې ته لاړ نه شي نو آیا په حج کښې ئې کوم فرق راځي او که نه؟

**سوال:** که چېرته د ملکي قانون له مخې د حج په ویزه کښې د وخت د کموالي له وجهې یو حاجي مدینې منورې ته لاړ نه شي نو آیا په حج کښې ئې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څوك چه د روضۀ اقدس د زیارت کولو طاقت ولري نو په هغه باندې روضۀ اقدس ته تلل وجوب ته نژدې دی یعنې حکماً واجب دی۔ البته که چېرته د کوم قانوني عذر له وجهې یو څوك له تللو څخه پاتې شي نو حج ئې صحیح او کامل دی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و زیارة قبرهﷺ مندوبة بل قیل واجبة لمن لهٗ سعة و یبدأ بالحج لو فرضاً و یخیر لو نفلاً ما لم یمر به. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۵۲، باب الهدی)

قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلیؒ: اذ هی من افضل المندوبات و المستحبات بل تقرب من درجة الواجبات فانهﷺ حرص علیها و بالغ فی الندب الیها فقال من وجد سعة و لم یزرنی فقد جفانی. (الاختیار لتعلیل المختار ج۱، ص۱۷۵، فصل فی زیارة قبر النبیﷺ) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۶، ص۵۸۱، مسائل حج.

## د اسطوانه ابو لبابه په خوا کښې د دوو رکعتونو د اداکولو حکم

**سوال:** آیا د اسطوانه ابو لبابه په خوا کښې د دوو رکعتونو لمانځه اداکول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د رسول اللهﷺ د روضې له زیارت څخه فارغ شي نو مستحبه دا ده چه د اسطوانه ابو لبابه خوا ته نژدې دوه رکعته لمونځ اداکړي او د خپل ځان لپاره د مغفرت دعا وکړي۔

قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلی رحمه الله: ثم یأتی اُسطوانة ابی لبابة اَلّتی ربط نفسه فیها حتٰی تاب الله علیه و هی بین القبر و المنبر و یصلی رکعتین و یتوب الی الله تعالٰی و یدعو بما شاء. (الاختیار لتعلیل المختار ج۱، ص۱۷۷، فصل فی زیارة قبر النبیﷺ)

و فی الهندیة: ثم یأتی اُسطوانة ابی لبابة التی ربط نفسه فیها حتٰی تاب الله علیه و هی بین القبر و المنبر فیصلی رکعتین و یتوب الی الله و یدعو بما شاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۶، کتاب الحج، خاتمة فی زیارة قبر النبیﷺ)

## د روضۂ اقدس د زیارت په وخت کښې د صلوٰة و سلام طریقه

**سوال:** کله چه یو سړی د حضورﷺ د روضۂ اقدس د زیارت لپاره مدینې منورې ته حاضر شي نو په کومو الفاظو سره دې په نبيﷺ باندې صلوٰه و سلام وړاندې کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** الله تعالی چه کله چا ته د حضورﷺ د مبارکې روضې د زیارت توفیق ورکړي نو باید چه په روضۂ اطهر باندې د مواجهه شریفې په وړاندې نهایت په ادب او احترام سره ودریږي او دا تصور دې وکړي چه حضورﷺ پخپلې مبارکې روضې کښې آرام فرما دی او دا خیال او تصور دې هم وکړي چه حضورﷺ په دې باندې پوهیږي چه فلانی د فلاني زوی حاضر شوی دی او صلوٰه و سلام دې وړاندې کوي۔ له دې نه وروسته دې په درمیاني آواز سره په مؤدبانه لهجې باندې په دې الفاظو سره دې صلوٰه و سلام وړاندې کړي۔

السلام علیك ایها النبی و رحمة الله. السلام علیك یا خیر خلق الله، السلام علیك یا خیرة الله من خلق الله، السلام علیك یا حبیب الله، السلام علیك یا سیّد وُلد آدم، السلام علیك ایّها النبی و رحمة الله و برکاته. یا رسول الله انی اشهد ان لا اله الا الله وحدهٗ لا شریك له و اشهد انك عبده و رسوله. اشهد انك بلغت الرسالة و ادیت الامانة و نصحت الامة و کشفت الغمة فجزاك الله خیرا جزاك الله عنا افضل ما جزی نبیًا عن اُمته. اللّٰهمّ اعط لسیّدنا عبدك و رسولك محمد ن الوسیلة و الفضیلة و الدرجة الرفیعة و ابعثه مقاماً محمود ن الذی وعدته انك لا تخلف المیعاد و انزله المنزل المقرب عندك انك سبحانك ذو الفضل العظیم. (قرة العین الشهیر بفتاوی حرمین ص ٤٠٤)

# کتاب النکاح

قال الله تعالىٰ

هو الذى خلقكم من نفس واحدة و جعل

منها زوجها ليسكن اليها



# کتاب النکاح

## باب آداب النکاح و شرائطه

## (د نکاح آداب او شرطونه)

### خطبه باید له نکاح څخه مخکښې ولوستل شي

**سوال:** په ځینو علاقو کښې داسې معلومیږي چه له نکاح (ایجاب او قبول) نه وروسته خطبه لوستل کیږي۔ آیا له ایجاب و قبول نه وروسته د خطبې ویل صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح پخپل منځ کښې په رضاء سره ایجاب او قبول ته وایي۔ او له نکاح څخه مخکښې د خطبې لوستل یو مستحب عمل دی نو له دې وجهې له نکاح څخه مخکښې خطبه ولولی وروسته لوستل ئې صحیح نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یندب اعلانه و تقدیم خطبة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۸، کتاب النکاح)

قال ابن نجیمؒ: و فی المجتبٰی یستحب ان یکون النکاح ظاهراً و ان یکون قبله خطبة. (البحر الرائق ج۳، ص۸۱، کتاب النکاح) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۱۲۲، المبحث الخامس، مندوبات عقد النکاح.

### د نکاح د لفظ په ځای د بیع د لفظ په استعمالولو سره د نکاح حکم

**سوال:** که چېرته د نکاح په وخت کښې د نکاح د لفظ په ځای د بیع او داسې نور الفاظ وویل شي نو آیا نکاح منعقد کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اخیستلو او پلورلو او داسې نورو الفاظ چه کله د نکاح په نیت سره استعمال کړی شي نو نکاح بغیر له اختلافه صحیح ده۔

قال ابن نجیمؒ: فینقد النکاح بلفظ الهبة و العطیة و الصدقة و الملك و التملیك و الجعل و البیع و الشراء علی الاصح. (البحر الرائق ج۳، ص۸۵، کتاب النکاح)

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و کل ما تملك به الرقاب) کا لجعل و البیع و الشراء فانهٗ ینعقد بها...... ثم قال هٰذا حاصل ما فی الفتح و ملخصه انه لا بد فی کنایات النکاح من النیة مع قرینة او تصدیق القابل للموجب و فهم الشهود المراد اعلامهم به. (رد المحتار ج۳، ص۱۸، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۷۱، الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح و ما لا ینعقد به)

### د نکاح لپاره د ښځې په ژبه باندې د اعتماد کولو حکم

**سوال:** یوه نجلۍ دا بیان وکړ چه زه بالغه شوې یم او تر دې مخکښې مې نکاح له چا سره نه ده شوې نو آیا د دې په دا اقرار باندې نکاح ورسره کیدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ښځې بیان د غلبۀ ظن لپاره مفید وي نو د هغې په قول

باندې اعتماد کیدلی شي او نکاح ورسره صحیح کیږي خو په دې شرط چه عاقله او بالغه وي.

قال ابن عابدینؒ: قالت ارتدت زوجی بعد النکاح وسعه ان یعتمد علی خبرها و یتزوّجها و ان اخبرت با لحرمة بامر عارض بعد النکاح من رضاع طاری او نحو ذٰلك فان کانت ثقة او نحو ذٰلك فان کانت ثقة او لم تکن و وقع فی قلبه صدقها فلا بأس بان یتزوجها. (رد المحتار ج۲، ص۶۲۹)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حاصله انه متی اخبرت بامر محتمل فان ثقة او وقع فی قلبه صدقها لا بأس بتزوّجها و ان بأمر مستنکر لا. ما هم یستفسرها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۵، ص۲۹۸) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۰۹، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## د "رشته منظوره ده" په ویلو سره د نکاح د انعقاد حکم

**سوال:** د نجلۍ پلار د هلك د لیدلو په وخت کښې وویل چه ما ته دا رشته منظوره ده نو آیا د دې الفاظو په ویلو سره نکاح منعقد کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د نجلۍ پلار د ایجاب او قبول په مجلس کښې باقاعده د ګواهانو په وړاندې دا الفاظ ویلي وي نو شرعا نکاح منعقد شوې ده او که چیرته نجلۍ نا بالغه وي نو خیار فسخ هم حاصله نه ده. او که چیرته بالغه وي نو نکاح د هغې تر اجازې پورې موقوفه ده او که چیرته له دې الفاظو څخه یواځې د نکاح وعده مقصود وي نو بیا شرعا نکاح نه ده منعقده شوې.

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله اذا لم ینو الاستقبال) قال فی شرح الطحاوی لو قال هل اعطتنیها فقال اعطیت ان کان المجلس للوعد فوعد و ان کان للعقد فنکاح. (رد المحتار ج۳، ص۱۱، کتاب النکاح)

قال الحصکفی رحمه اللّٰه: و ینعقد تلبسا بایجاب من احدهما و قبول من الاخر. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۹، کتاب النکاح) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۸۳، کتاب النکاح.

## له ګواهانو پرته په ایجاب او قبول سره نکاح نه منعقده کیږي

**سوال:** که چیرته د یوې بالغې نجلۍ او یا بالغ هلك تر منځ له ګواهانو پرته ایجاب او قبول وشي نو آیا د دوی دا ایجاب او قبول به شرعي نکاح ګڼل کیږي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح د انعقاد لپاره باقاعده د دوو ګواهانو وجود شرط دی نو ځکه که چیرته د نکاح په مجلس کښې له ګواهانو پرته ایجاب او قبول وشي نو دا نکاح نه ده شرعا د نکاح د اسې معاهدې ته نکاح نه ویل کیږي.

قال ابن نجیم المصریؒ: و هو الاشهاد فلم یصح بغیر شهود لحدیث الترمذی البغایا اللاتی ینکحن انفسهن من غیر بیّنة. (البحر الرائق ج۳، ص۸۸، کتاب النکاح)

و هو حدیث صحیح روی مرفوعاً و موقوفاً قاله العثمانیؒ. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۱۷)

قال فی الهندیة: و منها الشهادة. قال عامة العلماء انها شرط جواز النکاح هٰکذا فی البدائع. (الفتاوی الهندیة



ج۱، ص۲۶۷، کتاب النکاح، الباب الاوّل فی تفسیره شرعاً) و مثله فی فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۳۱/۳۳۲، فصل فی شرائط النکاح.

## د نکاح د اثبات لپاره شهادت بالتسامع کافي دی

**سوال:** آیا د نکاح د ثبوت لپاره د هغو خلکو ګواهي قبلیدلی شي چه د نکاح په وخت کښې حاضر نه وي بلکه له نورو څخه ئې د نکاح خبر اوریدلی وي او ګواهي ورکوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح د اثبات لپاره چه کومه ګواهي ورکول کیږي د هغې لپاره د ګواهانو حاضري د نکاح په مجلس کښې ضروري نه ده بلکه د نکاح د ثبوت لپاره شهادت بالتسامع هم کافي دی خو په دې شرط سره چه له دومره خلکو څخه د نکاح د انعقاد خبره اوریدلې وي چه د هغوی په دروغو باندې د اتفاق تصور نه شي کیدلی.

قال فی الهندیة: الشهادة بالشهرة و التسامع تقبل فی اربعة اشیاء بالاجماع و هی النکاح و النسب و الموت و القضاء کذا فی المحیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۳، ص۴۵۷)

قال العلامة الکاسانیؒ: فلا تطلق الشهادة بالتسامع الا فی اشیاء مخصوصة و هی النکاح و النسب و الموت فلهٗ تحمل الشهادة فیها بالتسامع من الناس و ان لم یعاین بنفسه. (بدائع الصنائع ج۶، ص۲۶۶) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۸۹، کتاب النکاح.

## د نکاح د اجازې د اخیستلو په وخت کښې ګواه جوړول مستحب دي

**سوال:** له ښځې څخه د نکاح د اجازې د اخیستلو په وخت کښې د ګواهانو موجودوالی ضروري دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له ښځې څخه د نکاح د اجازې د غوښتنې په وخت کښې د دوو ګواهانو موجودوالی مستحب دی. البته د نکاح د لوستلو په وخت کښې د دوو ګواهانو وجود ضروري دی.

قال ابن نجیم المصریؒ: و لا یشترط الاشهاد علی التوکیل. (البحر الرائق ج۳، ص۸۹، کتاب النکاح)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و اعلم انه لا تشترط الشهادة علی الوکالة بالنکاح بل علی عقد الوکیل و انما ینبغی ان یشهد علی الوکالة اذا خیف حجد المؤکل ایاها. (رد المحتار ج۳، ص۹۵، باب الاکفاء، مطلب فی الوکیل و الفضول فی النکاح) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۵۶، کتاب النکاح، فصل و منها العذر.

## د دُف په ذریعه د نکاح د اعلان کولو حکم

**سوال:** د نکاح اعلان د دُف په ذریعه جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح تشهیر او اعلان کول سنت دي او د شریعت د نورو ممنوعاتو د نه موجود والي په صورت کښې یواځې په دُف سره د نکاح اعلان کول جائز دي.

روی عن النبیﷺ اعلنوا هٰذا النکاح........ الخ. (مشکٰوة المصابیح ج۲، ص۲۷۲، کتاب النکاح)

قال الشیخ الطوریؒ: و عن الحسن بن زیاد لا بأس بان یکون فی العرس دف یضرب به یشتهر و یعلن النکاح...... و فی الذخیرة لا بأس بضرب الدف فی العرس و الولیمة و الاعیاد. (تکملة البحر الرائق ج۸، ص۱۸۹، کتاب الکراهیة قبل فصل فی اللبس)

## بغیر له کوم شرعي عذر څخه پیغلې لونړې په نکاح کښې د نه ورکولو حکم

**سوال:** آیا د پیغلې په کور کښې د ساتلو او له کوم شرعي عذر پرته د هغې په نکاح کښې د خنډ په پیدا کولو سره د سرپرست یا والد شرعي حیثیت متاثر کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفو د پیدا کیدو په صورت کښې پیغلې لونړې زر تر زره په نکاح ورکول ضروري دي۔ د موزونې خپلولۍ د پلټنې په صورت کښې ځنډ ممنوع نه دی او په دې سره د سرپرست او یا والد شرعي حیثیت نه متاثر کیږي۔ البته د موزون او مناسبې خپلولۍ د پیدا کیدو په صورت کښې د حالاتو د سم والي سره سره لونړې د رسمي غیرت له وجهې له نکاح څخه محروم ساتل په شریعت کښې له زیاتوالي سره برابره ده۔

قال الله تبارك و تعالی: وَ اَنْکِحُوا الْاَیَامٰی مِنْکُمْ. (سورة النور، آیت ۳۲)

قال ابن عابدینؒ: و یزوجها کفواً فان خطبها الکفو لا یؤخرها و هو کل مسلم تقی. (رد المحتار ج۲، ص۲۸۵، کتاب النکاح)

و علی رضی الله عنه مرفوعاً: ثلاث لا تؤخر الصلٰوة اذا اتت و الجنازة اذا حضرت و الایم اذا وجدت لها کفواً. اخرجه الترمذی و الحاکم باسناد ضعیف. قلت حسنه السیوطی فی الجامع الصغیر و صححه الحاکم و الذهبی کلاهما فی المستدرك. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۷۶، فصل فی الکفاءة، باب مراعاة الکفاءة و جواز النکاح)

و عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه و انس بن مالك رضی الله عنه عن رسول الله ﷺ قال فی التوراة مکتوب من بلغت ابنته اثنتی عشرة سنة و لم یزوجها فاصابت اثما فاثم ذٰلك علیه. رواه البیهقی فی الشعب. (مشکٰوة المصابیح ج۲، ص۲۷۱، کتاب النکاح)

## د رخصتي (ودیدلو) په وخت کښې د دوباره نکاح د لوستلو حکم

**سوال:** یوه سړي خپله بالغه لور چا ته په نکاح ورکړې وه او نکاح ئې هم تړلې وه نو آیا د رخصتۍ په وخت کښې ئې دوباره نکاح تړل جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بالغې ښځې د نکاح حکم دا دی چه کله یو بل سړی (سرپرست یا والد) چا ته په نکاح ورکړې وي او هغې ته د خبر په رسیدو سره هغه خبره رد نه کړي بلکه رضا او رغبت ښکاره کړي نو نکاح صحیح دی۔ بیا هم د رخصتۍ په وخت کښې د دوباره نکاح لوستل جائز او ښه کار دی۔

قال فی الهندیة: لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب و سلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیباً فان فعل ذلك فالنکاح موقوف علی اجازتها فان اجازته جاز. و ان ردّته بطل کذا فی السراج الوهاج و لو ضحکت البکر عند الاستئمار او بعد ما بلغها الخبر فهو رضا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۷، الباب الرابع فی الاولیاء)



قال العلامة الحصکفیؒ: فان استأذنها هو ای الولی و هو السنة او وکیله او رسوله او زوجها و لیها و اخبرها رسوله او فضولی عدل فسکتت عن ردّه مختارة او ضحکت غیر مستهزئة او تبسمت او بکت بلا صوت...... فهو اذن. (ثمّ قال بعد اسطر) و لذا استحسنوا. التجدید عند الزفاف لان الغالب اظهار النفرة عند فجاة السماع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۶۰، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۶۷، کتاب النکاح، الباب الاوّل فی تفسیره شرعاً الخ.

## د کوزدې د تر سره کیدو وروسته د نجلۍ بل چا ته په نکاح کولو حکم

**سوال:** د یوې نجلۍ باقاعده غوښتنه شوې ده او حال دا چه د هغې له کوم بل یوه سره نکاح شوې ده نو آیا دا دوهمه نکاح صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د غوښتنې په مجلس کښې د باقاعده ګواهانو په مخکښې ایجاب او قبول نه وي شوی نو دا فقط د نکاح وعده ده او نکاح نه ده۔ لهذا د دې نجلۍ له بل سړي سره نکاح جائز دی۔ البته د وعدې خلاف ورزي کول د مروت او سړیتوب تقاضا نه ده کوم چه له مخې ئې ګناه خامخا لازمیږي۔

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله اذا لم ینو الاستقبال) قال فی شرح الطحاوی لو قال هل اعطیتها فقال اعطیت ان کان المجلس للوعد فوعد و ان کان للعقد فنکاح. (ردّ المحتار ج۳، ص۱۱، کتاب النکاح)

قال العلامة الحصکفیؒ: و ینعقد ملتبسا بایجاب من احدهما و قبول من الآخر. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۹، کتاب النکاح) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۸۳، کتاب النکاح.

## یوائې د نکاح په وعدې سره نکاح نه منعقده کیږي

**سوال:** په ځینو علاقو کښې د غوښتنې په رسوماتو کښې کافي مالي اخراجات کیږي لیکن باقاعده ایجاب او قبول نه کیږي نو آیا د داسې رسوماتو ادا کولو ته نکاح ویل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح د باقاعده ګواهانو په مخکښې ایجاب او قبول ته وایي چونکه د غوښتنې په تولو رسوماتو کښې په باقاعده توګه سره د ایجاب او قبول اهتمام نه وي شوی یوائې د رشتې ورکولو او یا اخیستلو وعده وي نو له دې وجهې یوائې د دغو رسوماتو په ادا کولو سره نکاح نه منعقده کیږي او نه په دغو باندې شرعي ازدواجي احکام جاري کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله اذا لم ینو الاستقبال) قال فی شرح الطحاوی لو قال هل اعطیتنیها فقال اعطیت ان کان المجلس للوعد فوعد و ان کان للعقد فنکاح. (رد المحتار ج۳، ص۱۱، کتاب النکاح)

قال ابن نجیمؒ: لو قال هل اعطیتنیها فقال اعطیتك ان کان المجلس للوعد فوعد و ان کان للعقد فنکاح. (البحر الرائق ج۳، ص۸۳، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۶۷، کتاب النکاح، الباب الاوّل فی تفسیره شرعاً الخ.

## له بالغې ښځې سره په زوره د شوې نکاح حکم

**سوال:** که چېرته په يوې ښځې باندې په زوره ايجاب او قبول وشي نو آيا د جبر و اکراه په صورت کښې په ايجاب او قبول باندې شرعا نکاح منعقده کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د عاقلې بالغې ښځې سره په زوره ايجاب او قبول وشي نو د شريعت له مخې نکاح منعقد کيږي ځکه چه په دې کښې له يوې وجهې څخه د ښځې رضاء شامله ده۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله ليتحقق رضاهما) ای ليصدر منهما ما من شأنه ان يدل على الرضاء اذ حقيقة الرضاء غير مشروطة فی النکاح لصحته مع الاکراه و الهزل. (رد المحتار ج۳، ص ۲۱، کتاب النکاح)

و قال الطوریؒ: و فی المبسوط فکل تصرف يصح مع الهزل کا لطلاق و العتاق و النکاح يصح مع الاکراه. (البحر الرائق ج۸، ص ۷۵، کتاب النکاح) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۷۹، کتاب النکاح.

## بالغه ښځه په نکاح باندې د مجبورولو حکم

**سوال:** آيا يوه عاقله او بالغه ښځه په نکاح باندې څوک مجبورولی شي او که نه؟ که چېرته يو څوک په زوره سره د دې نکاح له کوم سړي سره وکړي کوم چه ښځه ترې انکاري وي نو د اسې نکاح به منعقد وي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح د مسلمان سړي او مسلمانې ښځې پخپل منځي رضامندۍ سره منعقد کيږي۔ په نکاح کښې څوک کومه بالغه ښځه نه شي مجبوره کولی بلکه په نکاح کښې د ښځې رضا ضروري ده پرته د هغې له رضا څخه که چېرته نکاح وکړی شي نو د اسې نکاح به شرعا منعقده نه وي۔

قال ابن نجيمؒ: (تحت قوله صاحب الکنز) و لا تجبر بکر بالغة على النکاح ای لا ينفذ عقد الولی عليها بغير رضاها عندنا. انتهٰی. (البحر الرائق ج۳، ص ۱۱۰، کتاب النکاح، باب الاولياء و الاکفاء)

قال فی الهندية: لا يجوز نکاح احد على بالغة صحيحة العقل من اب او سلطان بغير اذنها بکراً کانت او ثيباً. (الفتاوی الهندية ج۱، ص ۲۸۷، کتاب النکاح)

و قال العلامة العثمانی رحمه اللّٰه: روی عن ابن عباس رضی اللّٰه عنهما ان جارية بکراً اتت النبیﷺ فذکرت ان اباها زوجها و هی کارهة فخيرها النبیﷺ. (رواه الامام احمد و رجاله ثقات) و قال ابن القطان صحيح. (دراية ص۲۲۱). (اعلاء السنن ج۱۱، ص۶۷، کتاب النکاح)

## د بالغې نجلۍ پـــه اجازې سره د والد له خوا څخه شوې نکـــاح د فسخ قابل نـــه دی

**سوال:** يوه سړي خپله لور چا ته د هغې له اجازې پرته يوه نابالغ هلك ته په نکاح ورکړه او له نکاح نه وروسته ئې خپله لور خبره کړه چه ته مې فلاني هلك ته په نکاح ورکړې يې۔ په دې باندې ئې لور يو ائې دومره وويل چه کم تر کمه دې له ما څخه خو پوښتنه کړې وای۔ له دې نه وروسته



نجلۍ د ميره کره لاړه۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آيا دا نکاح نافذه ده او که نه او آيا نوموړې نجلۍ له بل چا سره نکاح کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بالغې لور د نکاح لپاره پلار ته له لور څخه د اجازې اخيستل ضروري دي۔ که چېرته په ناخبرۍ کښې پلار خپله لور چا ته په نکاح ورکړي او بيا پلار خپلې لور ته د دې نکاح خبر ورکړي او هغه ئې رد نه کړي نو دا نکاح لازم او منعقده ده او لور ئې له بل چا سره نکاح نه شي کولی۔ بيا هم که چېرته هغې له اول نه رده کړې وي نو بيا هغې ته دا حق حاصل دی۔

قال صاحب الکنز: فان استاذنها الولی فسکتت او ضحکت او زوّجها فبلغها الخبر فسکتت فهو اذن. (کنز الدقائق ج۲، ص ۱۱۱، کتاب النکاح)

قال ابن نجيمؒ: و السنة ان يستأمر البکر وليها قبل النکاح....... و ان زوجها بغير استئمار فقد اخطأ السنة و توقف على رضاها انتهٰی و هو محمل النهی فی حديث مسلم لا تنکح الأيم حتٰی تستأمرو لا تنکح البکر حتٰی تستأذن قالوا يا رسول اللّٰه و کيف اذنها قال ان تسکت فهو لبيان السنة للاتفاق على انها لو حرمت با لرضاء بعد العقد نطقاً فانه يجوز. (البحر الرائق ج۳، ص۲۸۳، کتاب النکاح، باب الاولياء والاکفاء) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۸۷، الباب الرابع فی الاولياء.

## د نکاح شـــــرعي حکـــم

**سوال:** په مقدس شريعت کښې د نکاح د کولو څه حکم دی؟ فرض دی که واجب او که سنت؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح کول د ټولو انبياوو کرامو عليهم السلام سنت دی۔ کوم سړی چه د نکاح ټول حقوق ادا کولی شي نو هغه بايد نکاح وکړي او که چېرته د شهوت غلبه وي نو واجب دی او په زنا کښې د واقع کيدو د خوف په وخت کښې فرض کيږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و يکون ای النکاح واجب عند التوقان فان تيقن الزناء الا به فرض نهاية، و هذا ان ملك المهر و النفقة و الا فلا اثمٌ بترکه. بدائع، و يکون سنة مؤکدة فی الاصح. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۵۷ تا ۳۵۹، کتاب النکاح)

و قال فی الهندية: و اما صفة فهو انه فی حالة الاعتدال سُنة مؤکدة و حالة التوقان واجب و حالة خوف الجور مکروه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۶۷، کتاب النکاح، فصل اول)

## نکاح له نفلي عبادت څخه بهتر دی

**سوال:** آيا د احنافوؒ په نزد نکاح بهتر دی او که نفلي عبادت؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد کوم سړی چه د ښځې د نفقې توان او طاقت ولري نو د هغه لپاره د نکاح کول تر نفلي عبادت افضل دی۔ البته د شافعيه ووؒ په نزد نفلي عبادت له نکاح څخه بهتر دی۔

قال العلامة ابن عابدین: قالوا ان الاشتغال به ای با لنکاح افضل من التخلی لنوافل العبادات ای الاشتغال به و ما یشتمل علیه من القیام بمصالحه و لعفاف النفس عن الحرام و تربیة الولد و نحو ذلك. (ردّ المحتار ج۲، ص۳۵۵، کتاب النکاح)

قال العلامة ابو بکر الکاسانی: و علی هذا الاصل بنی اصحابنا من قال منهم ان النکاح فرض او واجب لان الاشتغال به مع اداء الفرائض و السنن اولی من التخلی لنوافل العبادات مع ترك النکاح و هو قول اصحاب الظواهر. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۲۹، کتاب النکاح)

## په اسلام کښې په یو وخت له څو ښځو سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** په اسلام کښې د یوه سړي لپاره په یوه وخت کښې په نکاح کښې د څو ښځو د جمع کولو اجازه شته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د یوه سړي لپاره د عدل او مساوات په شرط په یو وخت کښې د څلورو ښځو د جمع کولو اجازه ورکړې ده او په یو وخت کښې له څلورو ښځو نه د زیاتو ښځو جمع کول حرام او ناجائز ګرځولي دي۔

قال الله تبارك و تعالی: فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ ای تزوجوا ما بمعنی من النساء مثنی و ثلث و رُبع (و لا تزیدوا علی ذلك) (تفسیر جلالین ص۶۹، سورة البقرة)

قال العلامة الحصکفی: و صح نکاح اربع من الحرائر و الاماء فقط للحر لا اکثر و له التّسری بما شاء ما الاماء. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۰، فصل فی المحرمات) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۷، کتاب النکاح.

## د دوهم واده لپاره له اولې ښځې څخه د اجازې مسئله

**سوال:** آیا د دوهم واده لپاره له اولې واده ښځه شرعا د اجازې اخیستل ضروري دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې یوه سړي ته تر څلورو ودونو پورې اجازه شته خو په دې شرط سره چه عدل او مساوات ئې تر منځ قائمولی شي او له هیڅ یوه واده څخه د بل واده د کولو لپاره شرعا د اجازې اخیستل ضروري نه دي۔

قال العلامة الحصکفی: و صح نکاح اربع من الحرائر و الاماء فقط للحر لا اکثر. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۰، باب المحرمات)

قال العلامة المرغینانی: و للحر ان یتزوج اربعاً من الحرائر و الاماء و لیس له ان یتزوج اکثر من ذلك لقوله تعالی فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰی وَ ثُلٰثَ وَ رُبٰعَ. (الهدایة ج۲، ص۷، کتاب النکاح) و مثله فی تفسیر جلالین ص۶۹، سورة البقرة.

## د نکـــاح د خطبې په وخت کښې د خبرې د کولو حکـــم

**سوال:** که چېرته قاضي د نکاح خطبه لوستله او خپلوان پخپل منځ کښې په خبرو مشغول وي نو آیا د خطبې په وخت کښې د خبرې کولو په صورت کښې خلك ګنهګارېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** هره خطبه که د نکاح وي او که د جُمعې او یا عیدینو اوریدل ئې واجب دي او کوم سړی چه په قصد سره واجب ترك کړي نو ګنهګار به وي۔ همدارنګه د نکاح د خطبې په وخت کښې خبرې کوونکي خلك به هم ګنهګار وي۔

قال العلامة الحصکفی: و کذا یجب الاستماع لسائر الخطب کخطبة نکاح و خطبة عید و ضم علی المعتمد. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۷۶۹، کتاب النکاح)

قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: و هذه فروع تتعلق با لمحل و قدمناها فی باب صفة الصلوٰة و یتعین ان لا یخلی عنها مظنتها یحرم فی الخطبة الکلام و ان کان امراً بمعروف او تسبیحاً و الاکل و الشرب و الکتابة. (فتح القدیر ج۲، ص۳۷، کتاب النکاح)

## د نکاح د محکمې (کورټ میرج) شرعي حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د لاندینۍ مسئلې په باره کښې چه یوه نجلۍ او یو هلك د خپلو وارثانو او اولیاوو څخه پټ عدالت ته لاړ شي او کورټ میرج (عدالتي نکاح) وکړي او حال دا چه په محکمه کښې له سرکاري خطیب څخه پرته یوائې دوه نور سړي د ګواهانو په توګه موجود وي۔ اوس پوښتنه دا ده چه داسې نکاح شرعا جائز دی او که نه؟ او په دې نکاح سره دوی یوه او بل ته سره حلال دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې راغلي دي چه د نکاح عقد ښه ظاهر کړي او علی الاعلان دې نکاح سره تړي۔ په پټه سره له ګواهانو پرته نکاح مقدس شریعت باطل ګرځولی دی۔ چونکه د صورت مسئوله مطابق په دې نکاح کښې له سرکاري خطیب څخه پورته دوه نور ګواهان هم ناست دي نو ځکه دا نکاح صحیح او درست دی لیکن له کراهیت څخه خالي نه ده۔ بیا هم له دې نکاح څخه وروسته دواړه د یوه او بل لپاره حلال دي۔

کما قال العلامه ظفر احمد عثماني: (الجواب) نکاح سر که ممنوع و باطل است آن است که دو شاهدین علاوه ناکح و منکوحه نباشد و اگر شاهدین یا شهود حاضر باشند این چنین نکاح سر که باطل نباشد اما خالی از کراهت نباشد. لان السنة فی النکاح الاعلان و لذا شرع له الدف و نحوه و فی الحدیث الفرق بین الحلال و الحرام الدف و لان فیه القاء نفسه فی التهمة و یتمهد با لزنا من لم یعلم با لنکاح و الحدیث اتقوا مواضع التهم. (امداد الاحکام ج۲، ص۲۳۷)

## د بالغ اولاد نکاح د والدینو ذمه واري ده

**سوال:** په عوامو کښې دا خبره مشهوره ده چه کله د چا اولاد بالغ شي نو په والدینو ئې فرض دي چه د هغوی د نکاح بندوبست وکړي نو آیا دا خبره په رښتیا هم صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مبارکو احادیثو څخه معلومېږي چه کله زوی او لور بالغ شي نو د والدینو دا ذمه واري ده چه د هغوی د واده انتظام وکړي۔ او که چېرته پرته له کوم شرعي عذر څخه د هغوی د واده انتظام ونه کړي او هغوی په معصیت کښې مبتلا شي نو والدین به هم له

دوی سره په دې ګناه کښې برابر شریك وي نو له دې وجهې د عوامو دا خبره صحیح او بې بنیاده نه ده.

عن ابی سعید و ابن عباس قالا قال رسول اللهﷺ من ولد له فلیحسن اسمه و ادّبه فاذا بلغ فلیزوّجه فان بلغ و لم یزوّجه فاصاب اثماً فانما اثمه علی ابیه. (مشکوٰۃ ج۲، ص۲۷۷، کتاب النکاح، باب الولی)

و عن عمر بن الخطاب و انس بن مالك رضی الله عنهما عن رسول اللهﷺ قال فی التوراة مکتوب من بلغت ابنته عشرة سنة و لم یزوجها فاصابت اثماً فاثم ذلك علیه رواهما البیهقی فی شعب الایمان. (مشکوٰۃ ج۲، ص۲۷۱، کتاب النکاح، باب الولی)

## د کونډې د دوهمې نکاح حکم

**سوال:** په پښتنو کښې دا رواج دی چه د کومې کونډې چه وړوکی بچي وي نو د هغې لپاره دوهمه نکاح بد او معیوب معلومیږي نو آیا د کونډې ښځې د وړوکي بچي په وجه د دوهمې نکاح نه کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح کول یا نه کول د یوه انسان ذاتي عمل دی. کونډې ته د وفات له عدت نه وروسته د بل نکاح شرعا اجازه شته. هغه دې د رسم او رواج له مخې له بل نکاح څخه نه منع کیږي. بیا هم که چېرته یوه کونډه ښځه د خپل اولاد د پرورش او ساتنې لپاره بل نکاح و نه کړي نو څه حرج پکښې نشته.

ان امرأة قالت یا رسول اللهﷺ ان ابنی هذا کان بطنی له وعاء و ثدی له سقاء و حجری له حواء و ان اباه طلقنی و اراد ان ینزعه منی فقال علیه السلام انت احق به ما لم تنکحی. رواه احمد و ابو داؤد. (مشکوٰۃ ج۲، ص۲۹۳، کتاب النکاح)

و فی الهندیة: و لو تزوجت الام بزوج آخر و تمسك الصغیرة معها ام الام فی بیت الراب فللاب ان یاخذها منها صغیرة عند جدّة تخون حقها فلعماتها ان تأخذها منها اذا ظهرت خیانتها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۴۱، الباب السادس عشر فی الحضانة)

## د لوڼو په نکاح کښې پرته له کومې وجهې ځنډ کول ګناه دی

**سوال:** ځینې خلك د مالدار یا دولت مند زوم د نه پیدا کیدو په وجه د خپلو نجونو په نکاح او ودولو کښې ځنډ کوي نو آیا د اسې کول شرعا جائز دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې په نکاح کښې د تعجیل ترغیب ورکړ شوی دی چه له مخې ئې باید هر مسلمان زر تر زره خپل بالغ هلکان او نجونه په نکاح ورکړي. محض د دنیاوي اغراضو او رسم و رواج له وجهې پکښې ځنډ کول د ګناه موجب دی.

قال علیه السلام: من ولد له فلیحسن اسمه و ادّبه فاذا بلغ فلیزوّجه فان بلغ و لم یزوّجه فاصاب اثماً فانما اثمه علی ابیه. (مشکوٰۃ ج۲، ص۲۷۷، کتاب النکاح، باب الولی)

قال علیه السلام: من بلغت ابنته عشرة سنة و لم یزوجها فاصابت اثماً فاثم ذلك علیه. (مشکوٰۃ ج۲، ص۲۷۱، کتاب النکاح)



## آیا نجلۍ پخپله له چا سره د نکاح کولو حق لري؟

**سوال:** که چېرته والدین د دې خبرې وصیت کړی وي چه زما لور فلاني سړي ته په نکاح ورکړی لیکن له کومې وجهې نوموړې نجلۍ له ذکر شوي هلك سره نکاح کول نه غوښت نو آیا نجلۍ ته د داسې کولو حق حاصل دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بالغه ښځه او بالغ سړی د خپل نفس پخپله حقدار وي. په نوموړي صورت کښې که چېرته له کومې وجهې نجلۍ د والدینو په وصیت باندې عمل و نه کړ نو هغې ته دا حق حاصل دی. دا خبره دې لره په بل ځای کښې د نکاح له کولو څخه نه منع کوي او که چېرته نجلۍ نابالغه وي نو دا حق ئې بیا وارثانو ته حاصل دی.

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ الثیّب احق بنفسها من ولیها و البکر یستاذنها ابوها فی نفسها و اذنها صماتها. (مسلم بحواله مشکوٰۃ ج۲، ص۲۷۰، باب الولی فی النکاح و استیذان المرأة)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (فنفذ نکاح حرة مطلقة بلا) رضا (ولی) و الاصل ان کل من تصرف فی ماله تصرف فی نفسه و ما لا فلا (و له اذا کان عصبة الاعتراض فی غیر الکفؤ)....... (و یفتی) فی غیر الکفؤ (لعدم جوازه اصلا) و هو المختار للفتویٰ (لفساد الزمان) فلا تحل مطلقة ثلاثاً نکحت غیر کفؤ الخ. (الدر المختار مع ردّ المحتار ج۲، ص۳۲۲، کتاب النکاح، باب الولی) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۹۳، باب الاولیاء و الاکفاء.

## د نکاح په مجلس کښې د نجلۍ د نوم اخیستلو حکم

**سوال:** آیا د نکاح د انعقاد په وخت کښې د نجلۍ نوم د مجلس په مخکښې اخیستل ضروري دي او که د نامه له اخیستلو پرته ئې هم نکاح صحیح کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح د انعقاد لپاره د نجلۍ امتیاز ضروري دی. دا امتیاز که د نوم په اخیستلو سره راځي او یا په اشارې سره او یا په کومو نورو صفاتو سره څکه چه بیا وروسته هیڅ شبهه پاتې نه شي او یوازې د نامه اخیستل ئې ضروري نه دي.

قال العلامة ابن عابدینؒ: قلتُ و ظاهره انها لو جرت المقدمات علی معیّنة و تمیزت عند الشهود ایضاً یصح العقد و هی واقعة الفتویٰ لان المقصود نفی الجهالة و ذلك حاصل بتعینها عند العاقدین و الشهود و ان لم یصرح باسمها. (رد المحتار ج۲، ص۴۳۷، کتاب النکاح)

قال العلامة ابن نجیمؒ: لا بد من تمییز المنکوحة عند الشاهدین لتنتفی الجهالة فان کانت حاضرة متنقبة کفی الاشارة الیها.... ان کانت المرأة فی البیت وحدها جاز النکاح لزوال الجهالة. (البحر الرائق ج۳، ص۸۸، کتاب النکاح)

## په نکاح کښې درې ځله د ایجاب او قبول د تکرار حکم

**سوال:** زمونږ د علاقې نکاح تړونکي حضرات د نکاح د تړلو په وخت کښې د ایجاب او قبول الفاظ درې ځله تکراروي آیا دا غه کار مستحب دی او که یوه ضروري خبره ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح انعقاد یواځې په یو ځل ایجاب او قبول سره کیږي۔ درې واري تکرارول ئي ضروري نه دي البته مستحب دي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و ینعقد بلفظین یعبر باحدهما عن الماضی و با لآخر عن المستقبل ان یقول زوّجنی فیقول زوجتك...... الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۸۵، کتاب النکاح)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و ینعقد بایجاب و قبول وضعا للمعنی او احدهما الخ. (کنز الدقائق علی هامش بحر الرائق ج۳، ص ۸۱، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۲۷۰، کتاب النکاح، الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح الخ.

## د ثیبې (مطلقې) ښځې سره د دوهمې نکاح لپاره د اجازه بالقبول حکم

**سوال:** که چېرته د یوې ښځې له مخکښې څخه نکاح شوې وي او بیا میړه هغې ته طلاق ورکړي وي نو آیا د دوهم نکاح لپاره له هغې څخه اجازه د سکوت په صورت کښې صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ثیبه ښځه که چېرته وغواړي چه دوهمه نکاح وکړي نو د اجازې د اخیستلو په وخت کښې ئې په ژبه باندې اقرار ضروري دی۔ د هغې سکوت او د اسې نور د اجازې قائم مقام نه دی۔ دا حکم یواځې د باکرې یعني پیغلې سره خاص دی۔

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الثیّب احق بنفسها من ولیها و البکر یستاذنها ابوها فی نفسها و اذنها صماتها. (مسلم بحواله مشکٰوة ج۲، ص ۲۷۰، باب الولی فی النکاح و استیذان المرأة)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (فنفذ نکاح حرة مطلقة بلا) رضا (ولی) و الاصل ان کل من تصرف فی ماله تصرف فی نفسه و ما لا فلا (و له اذا کان عصبة الاعتراض فی غیر الکفؤ)...... (و یفتی) فی غیر الکفؤ (بعدم جوازه اصلا) و هو المختار للفتوی (لفساد الزمان) فلا تحل مطلقة ثلاثاً نکحت غیر کفؤ الخ. (الدر المختار مع ردّ المحتار ج۲، ص۳۲۲، کتاب النکاح، باب الولی) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۹۳، باب الاولیاء و الاکفاء.

## د زفاف (اول ملاقات) په وخت کښې د دعا د لوستلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د زفاف په وخت سړي باید کومه دعا ولولي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه څوک واده وکړي نو په اول یو ځای کیدو کښې سنت دا دی چه د خپلې ښځې د تندي ویښتان ونیسي او له الله تعالی څخه دې برکت دعا وغواړي او بیا بسم الله ولولي او دا دعا وغواړي چه: اللّٰهمّ انی اسئلك خیرها و خیراً ما جبلت علیه و اعوذ بك من شرّها و شر ما جبلت علیه. او کله چه ئې د جماع اراده وي نو دا دعا دې ولولي: بسم الله اللّٰهم جنبنا الشیطٰن و جنب الشیطٰن ما رزقتنا.

عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال النبی ﷺ اما لو احدهم یقول حین یأتی اهله بسم الله اللّٰهمّ جنبنی الشیطٰن و جنب الشیطٰن ما رزقتنا ثم قدر بینهما فی ذٰلك او قضی ولدٌ لم یضرّه شیطنٌ ابداً. (صحیح البخاری ج۲، ص۷۷۶، کتاب النکاح، باب ما یقول الرجل اذا اتی اهله)

اخرج امام الترمذی رحمه الله: عن ابن عباسؓ قال قال رسول الله ﷺ لو ان احدکم اذا اتی اهله قال بسم الله



اللّٰهمّ جنبنا الشیطٰن و جنب الشیطٰن ما رزقتنا فان قضی الله بینهما ولداً لم یضرّه الشیطان. (الجامع الترمذی ج۱، ص ۲۰۷، ابواب النکاح باب ما جاء فیما یقول اذا دخل اهله)

## د نکاح په وخت کښې په غلطۍ سره د بلې ښځې د نوم اخیستلو حکم

**سوال:** د نکاح د انعقاد په وخت کښې وکیل په غلطۍ سره د اصلي نجلۍ د نوم په ځای د هغې د خور نوم واخیست نو اوس پوښتنه دا ده چه نکاح د کومې یوې منعقده شوه۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح په مجلس کښې چه کله ممیز اشاره او د اسې نور نه وي چه له وجهې ئې اصلي نجلۍ له نورو څخه بیله شي۔ په صورت مسئوله کښې چه وکیل د کومې نجلۍ نوم اخیستی دی نکاح د هم هغې سره شوې دی۔ نو له دې وجهې دې اوس د اصلي نجلۍ خور ته طلاق ورکړي او بیا دې د اصلي نجلۍ سره نکاح وکړي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: غلط وکیلها با لنکاح فی اسم ابیها بغیر حضورها لم یصح للجهالة و کذا لو غلط فی اسم ابنته الا اذا کانت حاضرة و اشار الیها فیصح و لو له بنتان اراد تزویج الکبرٰی فغلط فسماها باسم الصغرٰی صح للصغرٰی خانیة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۴۵۰، کتاب النکاح)

قال العلامة قاضی خانؒ: امرأة وکلت رجلا بان یزوّجها فزوّجها و غلط فی اسم ابیها لا ینعقد النکاح اذا کانت غائبة. رجل له ابنة واحدة و اسمها عائشه فقال الابُ وقت العقد زوجت منك ابنتی فاطمة لا ینعقد النکاح بینهما و لو کانت المرأة حاضرة فقال الاب زوجتك ابنتی فاطمة هذه و اشار الی عائشه و غلط فی اسمها و قال الزوج قبلتُ جاز النکاح) و مثله فی امداد الاحکام ج۲، ص۲۲۶، کتاب النکاح.

## ښځــه خپل میړه ته له تلو څخه د بندولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما له واده نه لږ وخت وروسته مې خسرګنۍ زما ښځه پخپل کور کښې ساتلې ده او زما کور ته ئې نه را پریږدي نو آیا دوی ته د اسې کول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یو ځل د نجلۍ او هلك نکاح سره وتړل شي نو نجلۍ د خپل خاوند تابع وي۔ والدین شرعا دا حق نه لري چه خپله لور پرته له کومې وجهې له خپل خاوند څخه منع کړي۔ بیا هم خاوند ته هم د ښځې د حقوقو خیال ساتل ضروري وي۔

مولانا مفتي عزیز الرحمٰن رحمه الله په فتاوٰی دار العلوم دیوبند کښې لیکي:

(الجواب) والدین خپله لور د میړه کور ته پرته له کومې وجهې د نه لیږلو حق نه لري۔ د نجلۍ والدین د دې منع په سبب ګنهګار دي۔ هغوی ته لازم دي چه له دې کار څخه توبه وباسي او خپله لور خپل میړه ته ورسوي۔ او نجلۍ ته هم لازمه ده چه په دې باره کښې د والدینو اطاعت ونه کړي او د میړه تابعداري وکړي ځکه چه دې ته د والدینو تر اطاعت د میړه اطاعت مقدم دی فقط۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ص۳۵۷، کتاب النکاح)

قال ابن عابدینؒ: قالوا للزوج ان یسکنها حیث احبّ و لٰکن بین جیران صالحین. (رد المحتار ج۲، ص ۹۱۴، باب النفقة

## په یو ځای والي کښې د تاخیر یا ځنډ حکم

**سوال:** د یوې نجلۍ نکاح په وړوکوالي کښې شوې ده او اوس ئې عمر دیارلسو کالو ته رسیدلی دی لیکن د هغې والدین تر اوسه پورې له یو ځای والي څخه انکار کوي نو آیا شرعا دوی دا حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رخصتۍ لپاره د عمر هیڅ قید نشته لیکن چه کله نجلۍ د جماع قابله شي نو میړه هغې له خپل کور ته راوستلی شي او والدین د منع کولو هیڅ حق نه لري۔ او که چېرته نجلۍ د جماع قابله نه وي نو په دې صورت کښې ئې له یو ځای والي څخه منع کول صحیح دي۔

قال ابن عابدینؒ: و قد صرحوا عنه بان الزوجة اذا کانت صغیرة لا تطیق الوطیء لا تسلم الی الزوج حتی تطیقه و الصحیح انه غیر مقدر با لسن بل یفوض الی القاضی با لنظر الیها من سمنٍ او هزال. (رد المحتار ج۲، ص۵٤۹، باب القسم)

و فی الهندیة: و اذا نقد الزوج المهر و طلب من القاضی ان یأمر ابا المرأة بتسلیم المرأة فقال ابوها انها صغیرة لا تصلح للرجال و لا تطیق الجماع و قال الزوج بل هی تصلح و تطیق ینظر ان کانت ممن تخرج اخرجها و اقفرها و ینظر الیها و ان صلحت للرجال امر بدفعها الی الزوج و ان لم تصلح لم یأمره. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۷، الباب الرابع فی الاولیاء) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۱۹، کتاب النکاح، باب الاولیاء و الاکفاء.

## ښځه له ځان سره د سفر وطن ته د بیولو مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د روزګار په سلسله کښې په لندن کښې اوسیږم او واده مې په پاکستان کښې کړی دی۔ اوس زه غواړم چه خپله ښځه له ځان سره لندن ته بوځم لیکن زما خسر ئې له ما سره لندن ته نه پرېږدي نو آیا شرعا زه خپله ښځه له ځان سره لندن ته بوولی شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ستا ښځه له تا سره تلل غواړي نو والدین او نور خپلوان ئې هیڅ حق نه لري چه منع ئې کړي۔ او که چېرته ښځه له تا سره تلل نه غواړي نو د مفتٰی به قول مطابق ئې له ځان سره په بوولو باندې نه شې مجبورولی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: لکن فی النهر و الذی علیه العمل فی دیارنا انه لا یسافر بها جبراً علیها و جزم به البزازی و غیره و فی المختار و علیه الفتوٰی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۹۵، باب المهر)

قال العلامة المرغینانیؒ: و قیل لا یخرجها الٰی بلد غیر بلدها لان الغریب یؤذی و فی قری المصر القریبة لا تتحقق الغربة. و قال ابن الهمامؒ: فی شرح هٰذه العبارة و افتی کثیر من المشائخ بقول الفقیه لان النّص مقید بعدم المضارة بقوله تعالٰی: وَلَا تُضَارُّوْهُنَّ بعد اسکنوهن و النقل الٰی غیر بلدها مضارة الخ. (فتح القدیر ج۳، ص۲۵۰، باب المهر)



## د مفقود الخبر د موت (مرګ) د خبر مسئله

**سوال:** یو سړی له ډیرو کلونو راهیسې ورک وو او له ډیر وخت نه وروسته چا اطلاع وکړه چه فلانی مړ شوی دی او زه ئې په جنازې کښې هم شریک وم په داسې حال کښې چه په حقیقت کښې هغه ژوندی وي۔ له دې اطلاع نه وروسته ئې ښځې د وفات د عدت له تیرولو وروسته دوهمه نکاح وکړه۔ اوس نوموړی سړی ژوندی بیرته راغلی دی نو دا ښځه به اوس د چا په نکاح کښې وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه سړي تر ډیره وخته پورې په ورکیدلو سره نکاح نه خرابیږي او نه د وفات د خبر د شهرت په وجه سره ئې نکاح ختم کیږي۔ په دې صورت کښې نوموړې ښځه بدستور د اول میړه ښځه ده او د نکاح د تجدید ضرورت ئې نشته۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و لو ان امرأة اخبرها ثقة ان زوجها الغائب مات عنها او طلقها ثلاثاً او کان غیر ثقة و اتاها بکتاب من زوجها با لطلاق الخ فلا بأس بان تعتد ثم تتزوج. (الهدایة ج٤، ص٤٥۳، کتاب الکراهیة)

و فی الهندیة: امرأة غاب زوجها فاتاها مسلم غیر ثقة بکتاب الطلاق من زوجها و لا تدری انه کتابه ام لا الا ان اکبر رأیها انه حق فلا بأس ان تعتد ثم تتزوج. کذا فی محیط السرخسی. اذا غاب الرجل عن امرأته فاتاها مسلم عدل فاخبرها ان زوجها طلّقها ثلاثاً او مات عنها فلها ان تعتد و تتزوّج بزوج آخر. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۱۲، الفصل الثانی فی العمل بخبر الواحد فی المعاملات) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۸، ص۵۰۶، کتاب النکاح.

## په نکاح کښې د ډوډۍ او نفقې د نه ورکولو د شرط لګولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی د نکاح په وخت کښې دا شرط ولګوي چه زه د ښځې د خرڅ او خوراك ذمه وار نه یم نو آیا شرعا دا شرط صحیح دی او که ځنګه؟ او که چېرته په دې شرط باندې نکاح وشي نو میړه به د ښځې له نفقې څخه مبراء وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې هر هغه شرط چه د عقد د مقتضـــاء خلاف وي نـــــاقابل عمل او باطل دی او په داسې شرط باندې شوې نکاح پخپل ذات کښې جائز او درست دی او د شرط کالعدم والي په وجه سره په میړه باندې د ښځې ټول حقوق لکه نفقه او داسې نور لازم دي۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: (تحت قوله و النکاح) کتزوجتكِ علی ان لا یکون لك مهر فیصح النکاح و یبطل الشرط. (رد المحتار ج۲، ص۳۱٦/۳۱۷، کتاب النکاح)

قال الشیخ مولانا محمد زکریا کاندهلویؒ: ما یبطل الشرط و یصح العقد مثل ان یشترط ان لا مهر لها و ان لا ینفق علیها و ان لا یطاها او شرط علی المرأة ان تنفق علیه او تعطیه شیئاً فهٰذه الشروط کلها باطلة و العقد صحیح. (اوجز المسالك ج۲، ص۲٦۵، کتاب النکاح) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۳۱، فصل فی النکاح علی الشرط.

## په ټیلیفون سره د نکاح حکم

**سوال:** که چېرته د نکاح په مجلس کښې ایجاب او قبول د ټیلیفون په ذریعه وشي په د اسې حال کښې چه د نکاح ګواهان او د مجلس نکاح حاضرین د ا ایجاب او قبول هم واوري نو آیا د ا ډول نکاح صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نن صبا د ټیلیفونونو ډیر قسمونه دي۔ (۱) هغه ټیلیفون چه یوائې آواز ترې اوریدل کیږي۔ (۲) هغه ټیلیفون چه د آواز له اوریدو سره سره د یو بل تصویر یعنې عکس هم پکښې لیدل کیږي۔ (۳) هغه ټیلیفونونه چه د خبرې کوونکي آوازونه د مجلس حاضرین هم اوریدلی شي۔ د اول ډول ټیلیفون په ذریعه نکاح نه منعقده کیږي ځکه چه د ګواهانو لپاره د ایجاب او قبول په یو ځای اوریدل ضروري دي کوم چه دلته مفقود دی۔ او د دوو آخرینیو ډولونو په ذریعه چونکه د شهادت ټولې تقاضاوې پکښې پوره کیږي له دې وجهې نکاح پرې صحیح کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و شرط حضور شاهدین حرین او حر و حرتین مکلّفین سامعین قولهما معاً علی الاصح.
(الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۷۲، کتاب النکاح)

و فی الهندیة: و منها سماع الشاهدین کلامهما معاً هٰکذا فی فتح القدیر فلا ینعقد بشهادة نائمین اذا لم یسمعا کلام العاقدین الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۸، کتاب النکاح، الفصل الاوّل)

## د بالغ اولاد نکاح د والدینو فریضه ده

**سوال:** زمونږ په پښتنو کښې د ا رواج دی چه کله نجلۍ یا هلك بالغ شي نو وایي چه د ا د پلار له فرائضو څخه ده چه د دوی د واده انتظام وکړي آیا د ا خبره صحیح ده او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه اولاد بالغ شي او کفو ئې پیدا شي نو د ا د پلار له منصبي فرائضو څخه ده چه د هغو د واده بندو بست وکړي او په دې کار کښې ځنډ او تاخیر کول مناسب نه دي۔

عن ابی سعید و ابن عباس رضی الله عنهما قالا قال رسول اللهﷺ من ولد لهٗ فیحسن اسمه و ادّبه فاذا بلغ فلیزوّجه فان بلغ و لم یزوّجه فاصاب اثماً فانما اثمه علٰی ابیه. (مشکٰوة ج۲، ص۲۷۷، کتاب النکاح، باب الولی)

و عن عمر بن الخطاب و انس بن مالك رضی الله عنهما عن رسول اللهﷺ قال فی التوراة مکتوب من بلغت ابنته عشرة سنة و لم یزوجها فاصابت اثماً فاثم ذٰلك علیه رواهما البیهقی فی شعب الایمان. (مشکٰوة ج۲، ص۲۷۱، کتاب النکاح، باب الولی)

## د ګونګ سړي د نکاح حکم

**سوال:** آیا د ګونګ سړي نکاح په اشارې سره منعقده کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ډیرو احکاماتو کښې اشاره د تلفظ قائم مقام ګرځي نو ځکه که چېرته د نکاح په معامله کښې فریقین او یا یو فریق په خبرې کولو باندې قادر نه وي نو هغوی



ایجاب او قبول په اشارې سره کولی شي خو په دې شرط سره چه هغه اشاره د زوجیت د رشتې انسلاك واضح کوي۔

قال العلامة الکاسانیؒ: کما ینعقد النکاح با لعبارة ینعقد با لاشارة من الاخرس اذا کانت اشارته معلومة الخ.
(بدائع الصنائع ج۲، ص۲۳۱، فصل اما رکن النکاح)

قال ابن عابدینؒ: فان کان الاخرس لا یکتب و کان له اشارة کعرف فی طلاقه و نکاحه و شرائه و بیعه فهو جائز.
(رد المحتار ج۲، ص۴۲۱، کتاب الطلاق)

## د وکیل په ذریعه په تحریري ایجاب سره د نکاح حکم

**سوال:** آیا د نکاح په مجلس کښې د فریقینو حاضریدل او ژبنی ایجاب او قبول ضروري دي او که نه؟ که چېرته د چا له خوا څخه د نکاح په مجلس کښې په تحریري صورت کښې د هغه له موجودوالي بغیر ایجاب وړاندې شي او فریق ثاني د ګواهانو په مخکښې د ا ایجاب قبول کړي نو آیا په دې سره نکاح منعقده کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که بهتره د ا ده چه دواړه عاقدین او یا د هغوی وکیلان د نکاح په مجلس کښې موجود وي لیکن که چېرته یو فریق او یا د هغه وکیل موجود نه وي او د هغه له خوا څخه ایجاب په مستند تحریري شکل کښې موجود وي او فریق ثاني د ګواهانو په مخکښې د قبول اظهار وکړي نو نکاح به صحیح وي۔

قال العلامة الکاسانیؒ: و لو ارسل الیها رسولاً و کتب الیها بذٰلك کتاباً فقبلت بحضرة شاهدین سمعا کلام الرسول و قرأة الکتاب جاز ذٰلك لاتحاد المجلس من حیثُ المعنٰی. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۳۳، فصل اما شرائط النکاح)

و فی الهندیة: و لو ارسل الیها رسولاً و کتب الیها بذٰلك کتاباً فقبلت بحضرة الشاهدین سمعا کلام الرسول و قرأة الکتاب جاز ذٰلك لاتحاد المجلس من حیث المعنٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۹، کتاب النکاح، باب الاوّل)

## د نکاح لپاره د قاضي راوستل ضروري نه دي

**سوال:** آیا د نکاح د تړلو لپاره قاضي او یا نکاح لیکونکی او د اسې نور د نکاح مجلس ته راوستل ضروري دي او که نه؟ او که سړي او ښځې پخپل منځ کښې په ایجاب او قبول سره د ګواهانو په مخکښې د نکاح د تړلو شرعا اجازه شته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه عاقدین یو تر بله د ګواهانو په مخکښې ایجاب او قبول وکړي نو نکاح منعقد کیږي۔ د نکاح د انعقاد لپاره قاضي د نکاح د تړلو لپاره غوښتل او راوستل ضروري نه دي او نه د مروجه نکاح نامې ډکول ضروري دي۔ بیا هم د زمانې د فساد او قانون د باریکۍ لپاره د نکاح نامې ډکول یو مستحسن کار دی۔

قال العلامة المرغینانیؒ: النکاح ینعقد با لایجاب و القبول بلفظین یعبر بهما عن الماضی....... و لا ینعقد

نکاح المسلمین الا بحضور الشاهدین حرین عاقلین بالغین مُسلمین رجلین و رجل و امرأتین الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۸۵/۲۸۶، کتاب النکاح)

قال داماد افندی رحمه اللّٰه: و ینعقد بایجاب عن الزوج او عن الزوجة و قبول من الآخر کلاهما بلفظ الماضی...... و شرط سماع کل واحد من العاقدین...... و حضور شاهدین حرین او حرٍ و حرتین عاقلین بالغین مسلمین سامعین معاً لفظهما. (دُرر المنتقی علی هامش مجمع الانهر ج۱، ص۳۱۷ و ۳۲۰، کتاب النکاح)

## د نکاح نامې د ډکولو شرعي حیثیت

**سوال:** نن صبا په ټول ملك کښې دا رواج دی چه د نکاح په وخت کښې د نکاح نامې د فارم ډکول لازمي ګرځیدلي دي نو آیا د نکاح د انعقاد لپاره شرعا دا فارم ډکول ضروري دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح د عاقدینو ایجاب او قبول ته وایي کله چه دا ایجاب او قبول د دوو ګواهانو په مخکښې وشي۔ د نکاح د انعقاد لپاره د قاضي په مخکښې د نکاح نامې د فارم ډکول یا ستامپ لیکل شرعا ضروري نه دي۔ بیا هم د نن صبا حالاتاتو ته په نظر کولو سره د قانوني مؤاخذې څخه د بچ کیدلو په خاطر د نکاح نامې فارم ډکول خامخا یو مستحسن عمل دی۔

قـال العلامة المرغینانیؒ: النکاح ینعقد با لایجاب و القبول یعبر بهما عن الماضی......... و لا ینعقد نکاح المسلمین الا بحضور شاهدین حرین عاقلین بالغین مسلمین رجُلین او رجل و امرأتین الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۸۵/۲۸۶، کتاب النکاح)

قال داماد افندی رحمه اللّٰه: و ینعقد بایجاب عن الزوج او عن الزوجة و قبول من الآخر کلاهما بلفظ الماضی...... و شرط سماع کل واحد من العاقدین...... و حضور شاهدین حرین او حرٍ و حرتین عاقلین بالغین مسلمین سامعین معاً لفظهما. (دُرر المنتقی علی هامش مجمع الانهر ج۱، ص۳۱۷ و ۳۲۰، کتاب النکاح)

## په ایجاب نامه باندې د لاسلیك په کولو سره نکاح نه منعقده کیږي

**سوال:** که چېرته یو سړی له یوې ښځې سره په دو که باندې سند دستخط کړي چه په هغه کښې په نکاح باندې ایجاب او قبول درج وي نو آیا په نفس تحریر سره نکاح منعقد کیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه نوموړې ښځې په ژبې سره نه وي قبول کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې نکاح د دوو ګواهانو په مخکښې ژبني ایجاب او قبول ته وایي۔ په نفس تحریر سره نکاح نه منعقد کیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فلو کتب تزوجتك فکتبت قبلت لم ینعقد بحر. (رد المحتار ج۲، ص۲۸۸، کتاب النکاح)

قال العلامة ابن نجیمؒ: افاد المصنف ان انعقاد النکاح بکتاب احدهما یشترط فیه سماع الشاهدین قراة الکتاب مع قبول الآخر. (البحر الرائق ج۳، ص۸۹، کتاب النکاح)



## په ایجاب او قبول کښې مطابقت ضروري دی

**سوال:** که چېرته په ایجاب او قبول کښې په ظاهره سره مطابقت نه وي نو آیا په دې سره نکاح منعقد کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هره معامله کښې په ایجاب او قبول کښې مطابقت ضروري دی که چېرته مطابقت نه وي نو معامله به صحیح نه وي۔ همدارنګه که چېرته په نکاح کښې د ایجاب او قبول هم مطابقت نه وي نو نکاح به هم درست نه وي۔

کما قال العلامة الحصکفیؒ: و ینعقد النکاح بایجاب من احدهما و قبول من الآخر وضعا للمضی لان الماضی ادل علی التحقیق کزوجت نفسی او بنتی او مؤکلتی منك و بقبول الآخر تزوجتُ الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۶۳، کتاب النکاح)

و فی الهندیة: و منها ان لا یخالف القبول الایجاب فاذا قال الآخر زوجتك بنتی علی الف درهم فقال الزوج قبلت النکاح و لا اقبل المهر کان باطلاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۶۹، کتاب النکاح، الباب الاوّل)

## په نکاح کښې د ړانده د ګواهۍ حکم

**سوال:** که چېرته د نکاح په مجلس کښې دوه ګواهان موجود وي لیکن دواړه ړانده وي نو آیا د ړندو په ګواهۍ سره نکاح صحیح کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دَ احنافو فقهاووؒ په نزد د نکاح په ګواهانو کښې څلور شرطونه دي۔ (۱) حریت (۲)عقل (۳)بلوغ (۴)اسلام۔ چونکه بینا والی په دغو شرائطو کښې داخل نه دی له دې وجهې د نکاح په معامله کښې د هغوی ګواهي د احنافوؒ په نزد درست دی۔

لما قال العلامة ان نجیم المصریؒ: و شرط فی الشاهد اربعة امور الحریة و العقل و البلوغ و الاسلام. (البحر الرائق ج۳، ص۹۵، کتاب النکاح)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لا ینعقد نکاح المسلمین الا بحضور شاهدین حرین عاقلین بالغین مسلمین رجلین او رجل و امرأتین. (الهدایة ج۲، ص۲۸۶، کتاب النکاح) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۹، کتاب النکاح.

## د نکاح په مجلس کښې د ګواهانو موجودګي ضروري دی

**سوال:** آیا د نکاح د انعقاد په مجلس کښې د ګواهانو موجودوالی ضروري دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح د انعقاد په مجلس کښې له مالکیه ووؒ څخه پرته د ټولو ائمه ووؒ په نزد د ګواهانو موجودوالی ضروري دی د ګواهانو د موجودوالي نه بغیر نکاح صحیح نه ده۔

قال العلامة صدر الشریعةؒ: و حضور حرین او حر و حرتین مکلفین مسلمین سامعین معاً لفظهما. (شرح الوقایة ج۲، ص۹، کتاب النکاح)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لا ینعقد نکاح المسلمین الا بحضور شاهدین حرین عاقلین بالغین مسلمین رجلین او رجل و امرأتین. (الهدایة ج۲، ص۲۸۶، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۶۹، کتاب النکاح، الباب الاول.

## د زاني او مزنیې د نکاح په تړونکي باندې هیڅ عتاب (ملامتي) نشته

**سوال:** که چیرته په بې خبري کښې یو نکاح خوان د زاني او مزنیې نکاح وتړي نو آیا په نکاح خوان باندې څه عتاب وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زاني او مزنیې پخپل منځ کښې نکاح صحیح ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و صح نکاح حُبلٰی من زنا الٰی قوله و ان حرم وطؤها و دواعیه حتی تضع الٰی قوله لو نکحها الزانی حل له وطؤها اتفاقاً. (تنویر الابصار مع الدر المختار ج۲، ص۳۱٦، فصل فی المحرمات، مطلب مهم فی وطء السراری الخ)

قال العلامة المرغینانیؒ: و ان تزوج حُبلٰی من زنا جاز النکاح و لا یطأها حتی تضع حملها الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۹۱/ ۲۹۲، فصل فی بیان المحرمات) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۰٦، فصل فی المحرمات.

لهـــذا کله چه د زاني او مزنیې پخپل منځ نکاح جائز دی نو پـــه نکاح تړونکي باندې هـــم څه عتاب نشته۔

## په نکـــاح کښې یوائې د آمین په ویلو سره نکاح صحیح کیږي

**سوال:** د نکاح د کولو په وخت کښې د مولوي صاحب د دې قول په ځواب کښې چه ما د فلانی لور فلانه د دومره حق مهر په عوض کښې د تا په نکاح کښې درکړې ده او هلك ئې په ځواب کښې د ''قبوله مې ده'' په ځای درې ځله آمین ووایي نو آیا په دې سره نکاح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آمین لفظ د قبول فائده ورکوي نو له دې وجهې په نوموړي صورت کښې د هلك د ایجاب په مقابله کښې په آمین ویلو سره نکاح صحیح کیږي او مهر پرې لازم دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و عبارة الفتح لما علمنا ان الملاحظة من جهة الشرع ثبوت الانعقاد و لزوم حکمه جانب الرضاء فعدینا حکمه الی کل لفظ یفید ذٰلك الخ. (ردّ المحتار ج۲، ص۲۸۷، کتاب النکاح، مطلب التزوّج بارسال کتاب الخ)

و فی الهندیة: امرأة قالت لرجل زوجت نفسی منك فقال الرجل بخداوند کاری پذیرفتم یصح النکاح و لو لم یقل الرجل ذٰلك لکنّه قال لها شاباش ان لم یقل بطریق الطنز یصح النکاح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۲، الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح و ما لا ینعقد) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۲، ص۳، کتاب النکاح، الفصل الاول فی جواز النکاح و الاجازة.

## په نکاح باندې د خوښې ترښکارولو وروسته د ناراضګي حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه حاجي محمد اسلم خپله لور چه نورجهانه نومیدله بشیر محمد د سلطان محمد زوی ته له نن څخه تقریبا اته کاله مخکښې ورکړې ده۔ او په دې وخت کښې د مظفر الله د محمد خان زوی، محمد قریش د مقدر زوی، اسرار محمد د نواري زوی، عثمان غني او د اسې نورو کسانو په موجود الي کښې د مسماه



نورجهانې پلار حاجي محمد اسلم دا الفاظ وویل چه "ما خپله لور نورجهانه بشیر محمد د سلطان محمد زوی ته ورکړه" او فضل محمد د سلطان محمد زوی چه د زوم ورور دی په دې وخت کښې د ګواهانو په مخکښې د وکیل په توګه دا الفاظ وویل چه "ما د خپل ورور بشیر محمد د سلطان محمد زوی لپاره قبوله کړې ده" او مهر ئې اوه تولې سره زر وټاکل شو۔ او له دې نه وروسته خواږه او د اسې نور هم تقسیم شول لیکن د عرف او رواج له وجهې دا خبره په کاغذ و نه لیکل شوه۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه:

﴿۱﴾ د قرآن او سنت په رنا کښې د پورته درج شوي الفاظو په ویلو سره دا نکاح منعقده شوې ده او که نه؟ په د اسې حال کښې چه نوموړې نجلۍ ته د دې خبرې اطلاع هم ور رسیدلې وه او هغه پرې راضي هم وه او د پښتنو د رواج مطابق هغې ته د سرو زرو ګوتې هم ور په ګوته شوې وه۔

﴿۲﴾ اوس د دومره وخت له تیریدو وروسته څو میاشتې مخکښې مسماه نور جهانه د حاجي محمد اسلم لور وویل چه زه خوښه نه یم په د اسې حال کښې چه د اتو کلونو په دوران کښې ئې د خوښې اظهار کوله او له دې نه وروسته مسماه نورجهانه د خپل پلار د خوښې او هغه ته د اطلاع له ورکولو پرته په پټه سره د خالد نومي هلك سره نکاح وکړه۔ او په سرکاري کاغذ اتو کښې ئې نکاح درج هم کړه۔ اوس عرض دا دی چه محمد اسلم کوم چه د ناوې پلار دی (او اوس ئې هم هوش او حواس په ځای دي) په عدالت کښې دا ګواهي ورکړې ده چه ما د خپلې لور نورجهانې نکاح تقریبا اته کاله مخکښې بشیر محمد د سلطان محمد زوی ته په نکاح ورکړې ده۔ اوس د دې خبرې سره سره آیا د قرآن او سنتو په رنا کښې د نور جهانې نکاح د خالد نومي هلك سره منعقده شوې ده او که نه؟ او آیا دا نجلۍ په دې طریقې سره د پلار له رضا پرته خپله مخکښیني نکاح فسخ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ په محمدي ﷺ شریعت کښې نکاح د جانبینو له خوا څخه پخپل منځ کښې ایجاب او قبول ته ویل کیږي اګر که دا ایجاب او قبول د عاقدینو د وکیلانو تر منځ کښې وي او که پخپله له یوه او بل سره ایجاب او قبول وکړي نو نکاح منعقد کیږي۔ لما فی

الدر المختار: و ینعقد ملبسا بایجاب من احدهما و قبول من الآخر و ضعاً للمضی...... الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲٦۳، کتاب النکاح)

﴿۲﴾ د ګواهانو موجود والی او د حق مهر ټاکنه هم د نکاح له شرائطو څخه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و شرط حضور شاهدین حرین او حر و حرتین مکلفین الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۷۲، کتاب النکاح)

و لقوله تعالٰی: وَ ابْتَغُوْا بِاَمْوَالِکُمْ مُّحْصِنِیْنَ غَیْرَ مُسَافِحِیْنَ الآیة.

﴿۳﴾ او کله چه د یوې ښځې نکاح د هغې په خوښې سره له کوم سړي سره وکړی شي او یا د هغې له خبرولو نه پرته ئې نکاح وشي لیکن هغې ته د خبر د رسیدو نه وروسته هغې رد نه کړه

بلکه خاموشه پرې پاتې شوه او یائې د رضامندۍ اظهار وکړ نو له دغو صورتونو نه وروسته به د هغې انکار ناقابل مسموع وي یعنې د اوریدو وړ به نه وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فان استاذنها هو ای الولی او وکیله او رسوله او زوجها ولیها و اخبرها رسوله او فضولیٌّ عدل فسکتت او ضحکت غیر مستهزأة او تبسمت او بکت بلا صوت فهو اذن. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۹۹، کتاب النکاح)

د دې ټولو مقدماتو نه وروسته د صورت مسئوله مطابق د حاجي محمد اسلم د لور نورجهانې نکاح د بشیر محمد د سلطان محمد له زوی سره منعقده شوې ده او د خالد نکاح د منکوحه الغیر سره نکاح ده کومه چه د قراني نص له مخې ممنوع ده۔

لقوله تعالی: وَ الْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ. (سورة النساء آیت )

قال العلامه الحصکفیؒ: و اما النکاح منکوحة الغیر و معتدته...... لانه لم یقل احد بجوازه فلم ینعقد اصلاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۵۹، باب العدّة)

د نکاح انعقاد یوائې د کاغذ په مخکښې راوستل شرعا ضروري نه دي بلکه یوائې د ګواهانو موجودوالی شرط دی۔ لهذا مسماه نورجهانې د حاجي محمد اسلم لور د بشیر محمد ولد سلطان محمد منکوحه ده او د خالد نومي سړي سره ئې نکاح کالعدم ده او همدارنګه د مسماه نورجهانې د بشیر محمد ولد سلطان محمد د نکاح لپاره د اجازې له اخیستلو نه وروسته په نکاح باندې د نه رضامندۍ اظهار کول هم ناقابل تسلیم دی۔

## حلفاً (په قسم سره) د نکـــاح د وعدې کولو شرعـــي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د یوه سړي د مخ کتل نه شم زغملی۔ یو ځل ئې زه یوائې ولیدلم قرآن مجید ئې را واخیست او ما ته نژدې راغی او زه ئې وډارولم او اخطار ئې راکړ چه په دې باندې لاس کښیږده او ووایه چه ته به له ما سره واده کوې۔ ما د ویرې او ډار له وجهې په قرآن مجید باندې لاس کیښوده او "هو" مې وویل۔ نو آیا په داسې کولو سره زما د دې سړي سره نکاح شوې ده او که زه آزاده یم؟ زه اوس هم نه غواړم چه د هغه مخ ووینم۔ که چېرته له ما څخه دا ګناه شوې وي نو د قرآن او سنتو په رڼا کښې ئې کفاره هم را ته وښایاست۔ ډیره مهرباني به مو وي؟ د یوې دردیدلې نجلۍ له خوا څخه۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سوال کښې ذکر شوي الفاظ د نکاح الفاظ نه دي بلکه د نکاح وعده ده۔ که چېرته دا الفاظ د نکاح الفاظ وای نو بیا هم نکاح نه کیده ځکه چه د مستفتي د بیان مطابق دا خبرې اترې له ګواهانو نه پرته شوي دي۔ له دې وجهې ته آزاده یې۔ البته په ظاهره سره دا معامله د حلف او د قسم ده نو ځکه د حنث په صورت کښې به کفاره ورکوې۔



## پـــه خطبه برسیره د بلې خطبې حکم

**سوال:** کله چه د یوې ښځې د کوزدې خبره شوې وي نو اوس د نورو خلکو لپاره له دغې ښځې سره د کوزدې د خبرې کول شرعا څنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د یوې ښځې د کوزدې په کوم ځای کښې خبرې شوې وي نو تر څو پورې چه د هلك او نجلۍ خپلوانو له دغې خبرې څخه اعراض نه وي کړی د نورو خلکو لپاره د دې ښځې سره د کوزدې خبرې کول شرعا جائز نه دي۔ له دې څخه د شرعې مخالفت لازمیږي۔

قال النبیﷺ ایاکم و الظن فان الظن اکذب الحدیث و لا تجسّسوا و لا تحسّسوا و لا تباغضوا و کونوا اخوانا و لا یخطب الرجل علی خطبة اخیه حتی ینکح او یترك. (صحیح البخاری ج۵، ص۱۹۷۶، کتاب النکاح)

قال ابن عابدینؒ: و لا یخطب مخطوبة غیره لانه جفاء خیانة. (رد المحتار ج۳، ص۹، کتاب النکاح) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۸۱، کتاب النکاح.

## د نکـــاح په وخت کښې د وچې خرما شیندل سنت دي

**سوال:** د نکاح په وخت کښې د وچې خرما شیندل سنت دي او که د مجلس په حاضرینو باندې په نکاح کښې فرداً فرداً تقسیمول سنت دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول اللهﷺ له مبارك عمل او د فقهاء کرامو له عباراتو څخه څرګندیږي چه د نکاح د مجلس په شریکانو باندې فرداً فرداً د وچې خرما د تقسیمولو په ځای ئې شیندل سنت دي۔

ذکر العلامة ظفر احمد العثمانیؒ: ان النبیﷺ حضر فی املاك (ای نکاح) فاتی بطباق علیها جوز و لوز و تمر فنثرت فقبضنا ایدینا فقال ما بالکم لا تأخذون فقالوا لانك نهیت عن النهیء فقال مما نهیتکم عن نهی العساکر خذوا علی اسم الله فجاذبنا و جاذبناه. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۱۱، کتاب النکاح، باب الولیمة)

لما في خیر الفتاوٰی: سوال: د واده په وخت کښې خرما شیندل سُنت دي او که ویشل؟ (الجواب) په صورت مسئوله کښې د واده په وخت کښې خُرما شیندل سُنت دي۔ (خیر الفتاوٰی ج۴، ص۵۸۵، کتاب النکاح، باب متفرقات النکاح)

## په اغوا کولو سره نکاح له منځه نه ځي

**سوال:** یوه ښځه اغوا شوه یعنې وتښتوله شوه او اغوا کوونکي نکاح ورسره وکړه نو آیا د بل نکاح په کول سره د ښځې لومړنۍ نکاح ختمیږي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د یوې ښځې یو ځل له یوه سړي سره نکاح وشي نو دا ښځه د هم هغه سړي ښځه ده او له بل سړي سره نکاح کول ورته جائز نه دي او که ئې وکړي نو اوله نکاح پرې له منځه نه ځي تر څو پورې چه خاوند هغې ته طلاق نه وي ورکړی۔

لما فی الهندیة: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره و کذلك المعتدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۰، الباب الثالث فی بیان المحرمات)

قال عالم بن علاء الانصاریؒ: و لا یجوز نکاح منکوحة الغیر و معتداة لغیر عند الکل. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص٤، کتاب النکاح، فی بیان ما یجوز عن الانکحة و ما لا یجوز) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۳۰۰، فصل فی المحرمات.

## د سول میرج شرعي حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام او مفتيان عظام د دې مسئلې په باره کښې چه کوم مسلمانان په يورپي ممالکو کښې د "سول ميرج" په ذريعه ودونه کوي نو په اسلامي شريعت کښې د داسې مسلمانانو په اړه څه حکم دی؟ او آيا دا نظريه اسلامي شريعت قبلوي او که نه؟ که چېرته ئې نه قبلوي نو له دوی څخه چه کوم اولاد پيدا کيږي په اسلامي معاشرې کښې د هغه څه حيثيت وي او هغه په کوم نظر سره قبولي اوکه چېرته ئې نه قبلوي نو د اسې ميړه او ښځه په اسلامي معاشره کښې د کوم حيثيت خاوند ان دي؟ له دې برسيره که چېرته د "سول ميرج" نه وروسته د اسلامي قواعدو او ضوابطو مطابق د نکاح تجديد وکړي نو بيا ئې حالت څنګه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چونکه د "سول ميرج" وضاحت نه دی شوی چه سول ميرج په کومه طريقه ترسره کيږي تر څو چه د شرعي نکاح او سول ميرج مقابله وکړی شي او په جواز او نه جواز باندې ئې د خيال اظهار وشي. بيا هم د خپلو معلوماتو تر حده پورې د شرعي طريقې مطابق د ازدواجي سلسلې څو اصول په قانوني شکل درته وړاندې کيږي. که چېرته سول ميرج د دې اصولو مطابق وي نو بيا به شرعي نکاح وګڼل شي او که چېرته "سول ميرج" د دې اصولو مخالف وي نو بيا شرعي نکاح نه شي بلل کيدلی او له داسې ميړه او ښځې څخه چه کوم اولاد پيدا کيږي هغه به اولاد زنا ګڼل کيږي.

په دې سلسله کښې له ټولو نه مخکښې بايد دا خبره په ذهن کښې کښينوی چه مطلق نکاح قطع نظر د متناکحينو د بالغ والي او نابالغ والي آيا نکاح د دنيا کار دی او که د دين؟ تر څو چه يو څوك آسان پرې پوه شي چه په هغې کښې تصرف کول تصرف فی الدين دی او که تصرف فی الدنيا؟ پس د دې يو معيار دی او هغه معيار دا دی چه د کوم کار په شريعت کښې تاکيدي يعنې وجوبي يا ترغيبي يعنې استحبابي حکم شوی وي او يا په هغه باندې د ثواب وعده شوې وي نو هغه د دين کار دی. بيا که چېرې ئې په ترك کولو باندې وعيد او يا ناراضګي هم وارد شوی وي نو هغه فرض دی او يا واجب. او چه په پرېښودو باندې ئې څه وعيد او يا ناراضګي نه وي وارد شوی نو هغه مستحب دی. او چه په کوم کار کښې دا خبرې نه وي نو هغه د دنيا کار دی اګر که د هغه په اړه کوم احکام وارد شوي وي هغه احکام په هر حال



کښې دين وي او چه له کوم اعتقاد يا عمل څخه په دغو احکامو کښې تغير راځي هغه تغير په دين کښې دی. اوس نکاح چه په دغه معيار باندې په منطبق کولو سره وکتل شي نو په ښکاره سره معلوميږي چه نکاح د دين کار دی ځکه چه په ځينو حالاتو کښې د نکاح حکم تاکيدي وي او په ځينو حالاتو کښې ترغيبي حکم هم دی او د ثواب وعده هم پرې موجوده ده او په پرېښودو سره ئې مذمت او ملامتيا هم راغلې ده لکه څرنګه چه په قرآن مجيد کښې راغلي دي چه: و انکحوا الايامٰی منکم (سورة النور آيت ١١٠) (په تاسو کښې چه کومې ښځې بې نکاح پاتې وي د هغو نکاحونه وتړی). وغيرها من الآيات و الاحاديث.

د امت د علماوو او امامانو له قولونو څخه هم د نکاح د ديني کار د کيدو ثبوتونه موجود دي. په در مختار کښې دي چه: ليس لنا عبادة شرعت عن عهد آدم عليه السلام الی الآن ثم تستمر فی الجنة الا النکاح و الايمان. په دې کښې د نکاح د عبادت والي تصريح موجوده ده او عبادت هم هغه عبادت چه د ټولو شريعتونو مشترك او د عبادت په ديني کار کيدو باندې څوك څه ويلی شي؟ اګر که په جنت کښې د نکاح د استمرار په باره کښې ځينو څه خبرې کړي دي ليکن پاتې اجزاوې ئې د ټولو په نزد مسلّمې دي. او په شامي کښې راغلي دي چه: وقدمه علی الجهاد الی قوله و کذا علی العتق و الوقف و الاضحية و ان کانت عبادات ايضا لانه اقرب الی الارکان الاربع حتی قالوا ان الاشتغال به افضل من التخلّی لنوافل العبادات ای الاشتغال به و ما يستعمل عليه من القيام بمصالحه و اعفاف النفس من الحمام و تربية الولد و نحو ذلك آه.

وګوری په دې عبارت کښې په کوم شدّ و مد سره د نکاح ديني فضيلت بيان شوی دی. چه کله دا ثابته شوه چه نکاح يو د دين کار دی او د هر ديني کار لپاره شريعت څه طريقې او اسلوب بيان کړي دي نو د نکاح لپاره هم رکنونه او شرائط خامخا وي. که چېرته د دغو شرائطو مطابق وکړی شي نو هغه ته به نکاح ويل کيږي او ټولې نتيجې به ئې صحيح وي. او که چېرته د دغو شرائطو مطابق و نه کړی شي نو هغه ته شرعا نکاح نه ويل کيږي او په اسلامي معاشره کښې د هغه هيڅ قيمت نه وي او د ښو نتائجو په ځای بدې نتيجې پرې مرتبې کيږي. د دې مقصد د لاس ته راوړلو او د دې مشکل د حل کولو لپاره مونږ چه کله مونږ د خپل شريعت د اسلامي کتابونو تتبع او پلټنه کوو نو په کتابونو کښې د دې په اړه يو مستقل بحث د "کتاب النکاح" په شکل کښې موجود دی چه له کتنې څخه ئې د شرعي نکاح حقيقت څرګنديږي. د اسلامي شريعت فقهاء کرامو د شرعي نکاح تفسير د اسې بيان کړی دی: هو عقد يفيد ملك المتعة ای حل استمتاع الرجل من امرأة لم يمنع من نکاحها مانع شرعی. (الدر المختار ج۳، ص۳، کتاب النکاح)

يعنې نکاح د سړي او ښځې تر منځ د يوې داسې رابطې او تعلق جوړول دي چه له مخې ئې سړي ته له ښځې څخه او ښځې ته له سړي څخه د نفعې حاصلول حلال يا روا کيږي. په کومو الفاظو سره چه دا خاص ربط او تعلق پيدا کيږي هغه د نکاح ارکان دي. د يوه شي رکن دې ته ويل کيږي چه د هغه شي د ذات دارو مدار په هغه باندې وي. و اما رکنه فالايجاب و القبول

كذا فى الكافى. و الايجاب ما يتلفظ به. اولاً من اى جانب كان و القبول جوابه. هكذا فى العناية. یعنې د شرعي نکاح انعقاد په ایجاب او قبول سره کیږي که دا ایجاب او قبول پخپله سړی او ښځه وکړي چه کله د فتنې ویره نه وي او یا د اولیاوو، وکیلانو او فضولي په ذریعه تر سره شي. اوس د دې ایجاب او قبول د معتبر والي او مسلم والي لپاره څو شرائط دي کوم چه دا ایجاب او قبول ور پورې موقوف دی.

و اما شروطه فمنها العقل و البلوغ و الحرية فى العاقد الا دن الاول شرط الانعقاد فلا ينعقد نكاح المجنون و الصبىّ الذى لا يعقل و الاخيران شرط النفاذ فان نكاح الصبى العاقل يتوقف نفاذه على اجازة وليه. هكذا فى البدائع. و فيها المحل القابل و هى المرأة الاتى احلها الشرع با لنكاح كذا فى النهاية. و منها سماع كل من العاقدين كلام صاحبه هكذا فى فتاوى قاضى خان. و منها الشهادة قال عامة العلماء انها شرط جواز النكاح هكذا فى البدائع و منها سماع الشاهدين كلامهما معاً هكذا فى فتح القدير. و منها رضا المرأة اذا كانت بالغة بكراً كانت او ثيباً و منها ان يكون الايجاب و القبول فى مجلس واحد...... الخ و منها ان لا يخالف القبول الايجاب و منها ان يضيف النكاح الى كلها او ما يعبر من الكل...... الخ و منها ان يكون الزوج و الزوجة معلومين فلو زوج بنة و له بنتان لا يصح الا اذا كانت احداهما متزوجة فينصرف الى الفارغه كذا فى انهما لفائق و الكل. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۸۵ تا ص۲۸۷، كتاب النكاح)

د دغو عباراتو حاصل دا دی چه ایجاب او قبول کوونکي عاقل، بالغ او آزاد وي. په دې کښې اول شرط یعنې عقل د انعقاد شرط دی ځکه چه د مجنون او غیر عاقل هلك نکاح منعقد کیږي هم نه. او آخري دوه شرطونه بلوغ او آزادي د نکاح د نفاذ لپاره شرائط دي. ځکه چه که چېرته هلك عاقل وي نو د نکاح ئې منعقد کیږي لیکن اجازهٔ تر ولي پورې موقوفه وي او دا هم شرط دی چه د کومې ښځې سره نکاح کیږي هغه محلِ صالح وي یعنې د شرعي محرماتو څخه نه وي بلکه مطهر شریعت هغې لره په نکاح کښې راوستل جائز ګرځولې وي. او بله دا چه نکاح کوونکي متعاقدین د یوه او بل خبرې واوري او دا هم شرط دی چه دا ایجاب او قبول د ګواهانو مخامخ وشي کوم چه شهادت ورته وايي.

عامو علماوو دا لیکلي دي چه شهادت د نکاح د جواز لپاره شرط دی. که چېرته ایجاب او قبول وشي لیکن د ګواهانو مخامخ نه وي نو دا نکاح نه دی. او دا هم د نکاح شرط دی چه ګواهان دواړه د متعاقدینو خبرې واوري. که چېرته ښځه بالغه وي که پیغله وي یا کونډه نو د هغې رضامندي او اجازه ضروري ده. او بله دا چه ایجاب او قبول په یوه مجلس کښې وي او دا چه قبول د ایجاب مخالف نه وي او دا چه د نکاح اضافت د هغه د ټول بدن خوا ته وي یا د داسې جزء خوا ته ئې اضافت وي چه تعبیر ئې له ټول بدن څخه کیږي. او دا هم شرط دی چه زوج او زوجه یعنې میړه او ښځه دواړه معلوم وي مجهول نه وي.

له دغو شرطونو او رکنونو برسیره په نکاح ځینې خبرې داسې دي چه د سنتو او مستحباتو درجه لري چه په هغو باندې د عمل کولو له وجهې په ازدواجي سلسله کښې خیر و



برکت پیدا کیږي. د اسلامي فقهې په معتبر کتاب "در مختار" کښې دي چه و يندب اعلانه و تقديم خطبة. و فى الشامى لحديث الترمذى اعلنوا هذا النكاح و جعلوه فى المساجد. (الحديث) و المراد من تقديم الخطبة ما يذكر قبل اجراء العقد من الحمد و التشهد و انها لا تتعين بالفاظ مخصوصة و ان خطب بما ورد فهو احسن.

د دې مطلب دا دی چه د نکاح اعلان مستحب دی او همدارنګه خطبه له ایجاب او قبول څخه مخکښې لوستل کوم چه په حمد او شهادت باندې مشتمله وي مستحبه ده. مخکښې لیکي:

و كونه فى المسجد يوم جمعة بعاقد رشيد و شهود عدل و الاستدانة له و لانظر اليها قبله و كونها دونه سناً و حسباً و عزاً و مالاً و فوقه خلقاً و ادباً و ورعاً و جمالاً. لیکن دا ټولې خبرې داسې دي چه له مخې ئې په ازدواجي سلسلې کښې نور استحکام او خیر او برکت پیدا کیږي او دا امور شرائط او ارکان نه دي چه که چېرته په نظر کښې و نه نیول شي نو نکاح نه صحیح کیږي بلکه دا مستحب امور دي چه په نظر کښې نیول ئې تر نه نیولو بهتر دي.

دا ټول تفصیل ته په کتو سره د شرعي نکاح حقیقت واضح کیږي او دا اندازه ترې لګیدلی شي چه په "سول میرج" (کوم چه په یورپي ممالکو او نورو ځایونو کښې مسلمانان کوي) او شرعي نکاح کښې کوم فرق شته او که نه؟ که چېرته جواب په نفی کښې وي یعنې په دواړو کښې فرق نشته نو فبها و نعمت او که چېرته ئې جواب په اثبات کښې وي چه په دواړو کښې څه فرق شته نو سول میرج ته بیا هیڅکله هم شرعي نکاح ویل صحیح نه دي. هو که چېرته وروسته د پورته ذکر شوي شرائطو مطابق د نکاح تجدید وکړی نو بیا به صحیح وي. او که نه نو حرام کاري کوم چه په معاشرې کښې ګندګي خپروي به ئې لازمي نتیجه وي. عقلِ سلیم، فطرتِ اسلامي او اسلامي شریعت د نر او ښځې لپاره بې باکه او د دین د اصولو په خلاف ملاویدل هیڅکله نه قبلوي. هذا ما عندى و الله اعلم و علمه اتم و احكم.

## د حضرت آدم علیه السلام په نکاح کښې د ګواهانو تحقیق

**سوال:** د حضرت آدم علیه السلام نکاح په کوم ځای کښې وشوه او چا وکړه او همدارنګه ګواهان ئې څوک وو او حق مهر ئې څه شی وټاکل شو؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې مسئلې په اړه په قرآن او حدیث کښې کوم تفصیل نشته او په ظاهره دا معلومیږي چه ده مبارك ته د وحی په ذریعې سره د استمتاع اجازه حاصله شوه لکه څرنګه چه مونږ ته د ګواهانو په مخکښې له ایجاب او قبول څخه د استمتاع اجازه حاصلیږي. البته د حق مهر په اړه په ځینو روایتونو کښې راغلي دي چه د ده حق مهر په پیغمبر آخر الزمان باندې درود ویل مقرر کړی شو. كما فى الصاوي وغيره فليراجع.

لما قال العلامة احمد الصاوى المالكى رحمه الله: و قد خلقت بعد دخوله الجنة نام فلما استيقظ وجدها فاراد ان يمد يده اليها فقالت لهٗ الملائكة مه يا آدم حتىٰ تؤدى مهرها و ما مهرها فقالوا ثلاث صلوات او عشرون صلاة على سيدنا محمد ﷺ. (الصاوى ج۱، ص۲۲، سوره البقرة)

## باب من یجوز بها النکاح و من لا یجوز

## (له کومو ښځو سره نکاح جائزه او له کومو سره ناجائزه ده)

### د خنثی مشکل (نرښځي) سره د نکاح حکم

**سوال:** له خنثی مشکل سره شرعا نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح لپاره د نکاح محل ضروري ده خنثی مشکل چونکه د نکاح محل نه دی نو ځکه له خنثی مشکل سره نکاح جائزه نه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: ای حل استمتاع الرجل من امرأة لم یمنع من نکاحها مانع شرعی فخرج الذکر و الخنثی المشکل. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۱، کتاب النکاح)

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و فی العنایة محله امرأة لم یمنع من نکاحها مانع شرعی فخرج الذکر للذکر و الخنثی مطلقاً. (البحر الرائق ج۳، ص۷۸، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۶۷، کتاب النکاح، الباب الاول فی تفسیره شرعا.

### له شنډې ښځې سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** له شنډې ښځې سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له شنډې ښځې سره په نکاح کولو کښې چونکه ځینې منافع حاصلیږي نو ځکه له هغې سره په نکاح کولو کښې څه حرج نشته۔ بیا هم له نکاح څخه چونکه اعلیٰ مقصد د نسل زیاتوالی دی له دې وجهې له شنډې ښځې څخه علاوه له کومې بلې صحیح او د اولاد وړ ښځې سره نکاح کول افضل دي۔

بوب الامام النسائی فی سننه "کراهیة تزویج العطیم" و ذکر تحته حدیثاً عن معقل بن یسارؓ قال جاء رجل الی رسول اللّٰهﷺ فقال اصبت امرأة ذات حسب و نسب الا انها لا تلد ا فأتزوجها فنهاه ثم اتاه الثانیة فنهاه ثم اتاه الثالثة فنهاه و قال تزوجوا الولود الودود فانی مکاثر بکم. (سنن النساء ج۶، ص۵۴)

قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوریؒ: (تحت حدیث معقل بن یسار جاء رجل الی رسول اللّٰهﷺ الخ و هٰذا یدل علی ان النهی ما کانت للتحریم بل کان مبنی النهی المکاثرة فی الآخرة و هی لا تقتضی التحریم. (بذل المجهود ج۱، ص۱۵) و مثله فی نیل الاوطار ج۶، ص۱۱۰ تا ۱۱۲. و عون المعبود ج۶، ص۴۵.

### د اولې ښځې په موجودوالي کښې دوهمه ښځه کول شرعا جرم نه دی

**سوال:** د ملکي قانون په اعتبار سره د دوهم واده لپاره میړه ته له خپلې ښځې څخه د یونین کونسل په ذریعې سره اجازه اخیستل ضروري دي او له اجازې پرته دوهم واده د عائلي قانون له مخې جرم ګڼل کیږي نو آیا د شریعت له مخې هم جرم دی او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اولې ښځې د ټولو حقوقو له رعایت کولو سره دوهم واده کول د خاوند یو ځانګړی حق دی او په دې کښې له اولې ښځې څخه اجازه اخیستل شرعا ضروري نه دي او نه کوم یونین کونسل په دې کښې واسطه ګرځول ضروري دي۔ د اسې کول خو قانوني تقاضا کیدلی لیکن د اسلامي شریعت تقاضا نه شي کیدلی۔



قال اللّٰه تبارك و تعالیٰ: فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَ ثُلٰثَ وَ رُبٰعَ (الآیة)

قال العلامة طاهر البخاریؒ: رجل له امرأة اراد یتزوج امرأة اخری ان خاف ان لا یعدل لا یسعه و ان لم یخف جاز. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۴۶، کتاب النکاح)

عن ابن عمر رضی اللّٰه عنه ان غیلان بن سلمة الثقفی اسلم و له عشر نسوة فی الجاهلیة فاسلمن معه فقال النبیﷺ امسك اربعاً و فارق سائرهن. (رواه احمد و الترمذی و ابن ماجة. (مشکوٰة ج۲، ص۲۷۴، باب المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۵، کتاب النکاح، فصل الجمع فی الوطی.

### د زاني او مزنیې تر منځ د نکاح حکم

**سوال:** د زاني او مزنیې تر منځ نکاح تړل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

الجواب باسم ملهم الصواب: د زاني او مزنیې تر منځ نکاح تړل کیږي په دې کښې شرعا کومه بدي نشته۔

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: اما تزوّج الزانی فجائز اتفاقاً و تستحق النفقة عند الکل و یحل وطؤها عند الکل کما فی النهایة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۶، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: لو نکحها الزانی حل وطیها اتفاقاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۴۹، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۹، کتاب النکاح، فصل ان لا یکون بها حمل.

### له حامله ښځې سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له حاملې ښځې سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته کومه ښځه له نکاح څخه حامله شوې وي نو د حمل تر وضع پورې نکاح ورسره جائزه نه ده او که چیرته له زنا څخه حامله شوې وي نو نکاح ورسره جائزه ده لیکن که چیرته ئې له خپل زاني سره نکاح تړلې وي نو نوموړي ته جماع هم ورسره جائزه ده او که چیرته ئې له بل چا سره نکاح تړلې وي نو تر وضع د حمل (د حمل تر اچولو) پورې جماع ورسره جائزه نه ده۔

قال العلامة الکاسانیؒ: و منها ان لا یکون بها حمل ثابت النسب فان کان لا یجوز نکاحها........ و علی هٰذا یخرج ما اذا تزوج امرأة حاملاً من الزنا انهٗ یجوز فی قول ابی حنیفةؒ و محمدؒ و لکن لا یطؤها. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۹، کتاب النکاح، فصل و منها ان لا یکون بها حمل)

و قال ابن نجیمؒ: ای و حل تزوج الحبلی من الزنا و لا یجوز تزوج الحبلی من غیر الزنا...... اما تزوج الزانی فجائز اتفاقاً و تستحق النفقة عند الکل و یحل وطؤها عند الکل کما فی النهایة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۶، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی ردّ المحتار ج۳، ص۴۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## د میرې له لور سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د میرې له لور سره کومه چه له مخکښینی میړه څخه ئې وي نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د حرمت کومه بله ذریعه موجوده نه وي نو د میرې له لور سره نکاح کول د شریعت له مخې جائز دي۔ په صورت مسئوله کښې په ظاهره سره چونکه داسې صورت نشته نو ځکه د میرې له لور سره کومه چه د هغې له اولنی میړه څخه وي نکاح جائزه ده۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و اما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۱، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

و قال الشیخ وهبة الزحیلی: و المحرم بهذه الآیة هو زوجة الاب فقط اما بنتها او امها فلا تحرم علی الابن. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۱۳۲، حرمة القرابة الخ) و مثله فی منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۹۴، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## له مخطوبة الاب سره نکاح جائزه ده

**سوال:** یو سړی له یوې ښځې سره باقاعده نکاح نه وه تړلې یوائې ئې د نکاح پیغام ورکړی وو او د نوموړي سړي له مړینې وروسته ئې زوی له نوموړې ښځې سره نکاح کول غواړي نو آیا دا نکاح ورته جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نوموړي سړي او ښځې باقاعده ایجاب او قبول نه وي شوی نو په دې صورت کښې د نوموړي سړي د اعراض او یا مړینې څخه وروسته ئې زوی نوموړې ښځې سره نکاح کولی شي ځکه چه نوموړې ښځه د ده د پلار منکوحه نه ده۔

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله مصاهرة) و تحرم موطؤات ابائه و اجداده و ان علم و لو بزنا و المعقودات لهم علیهن بعقد صحیح. (رد المحتار ج۳، ص۲۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن نجیمؒ: ای ینعقد النکاح ای ذلك العقد الخاص ینعقد با لایجاب و القبول حتی یتم حقیقة فی الوجود. (البحر الرائق ج۳، ص۸۱، کتاب النکاح) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۹۹، کتاب النکاح، فصل رکن النکاح.

## له کونډې سره نکاح کول جائز دي

**سوال:** کومه ښځه چه کونډه شي نو آیا له هغې سره په نکاح کولو کښې کوم حرج شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د حرمت بله وجه موجوده نه وي نو له کونډې ښځې سره نکاح



صحیح ده۔ په مقدس شریعت کښې په هیڅ ځای کښې هم له کونډې ښځې سره د نکاح د ناجائز والي هیڅ یادونه نشته بلکه د حضور اکرم ﷺ په ازواج مطهراتو کښې له حضرت عائشې رضی اللّٰه عنها څخه پرته نورې ټولې بیبیانې مطلقه وې۔ نو له دې وجهې له کونډې سره نکاح بد ګڼل په شریعت کښې له زیاتوالي سره برابره ده۔

قال اللّٰه سبحانه و تعالی وَ اَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ الخ. و الایامی جمع الأیم من النساء من لا زوج لها بکرا کانت او مطلّقة او ارملة. (معجم لغة الفقهاء ص۹۹)

و عن انس رضی اللّٰه عنه قال من السنة اذا تزوج الرجل البکر علی امرأته اقام عندها سبعاً و قسم و اذا تزوج الثیب علی امرأته قام عندها ثلاثا. (نصب الرایة ج۳، ص۲۱۵، کتاب النکاح، باب القسمة) و مثله فی ردّ المحتار ج۲، ص۴۳۴، کتاب النکاح.

## د ښځې له وفات نه څو ورځې وروسته د هغې له خور سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** کله چه د یوه سړي ښځه مړه شي نو د هغې له وفات څخه یوه یا دوه ورځې وروسته د هغې له خور سره نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د میړه لپاره د ښځې د غم ازی ضرورت نشته او نه پرې باندې عدت شته نو له دې وجهې د ښځې له مړینې څخه فوراً وروسته د هغې له خور سره نکاح کول هیڅ پروا نه لري۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و لو من طلاق بائن)...... (فرع) ماتت امرأة له التزوج بأختها بعد یوم من موتها. کما فی الخلاصة عن الاصل. و کذا فی المبسوط لصدر الاسلام و المحیط السرخسی. (رد المحتار ج۳، ص۳۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

و قال فی الهندیة: و یجوز لزوج المرتدة اذا لحقت بدار الحرب تزوج أُختها قبل انقضاء عدّتها کما اذا ماتت. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۹، القسم الرابع المحرمات با لجمع) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۲، ص۶، الفصل الثانی فیمن یکون محلا للنکاح و فیما لا یکون.

## له ناسکه خوابنې سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه له ناسکه خوابنې سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دوه خپلوانې ښځې د یوه سړي په نکاح کښې راټلل په هغه وخت کښې حرام دي چه کله په دواړو کښې هر یو د نر په فرض کولو سره د بل لپاره حرام وګرځي۔ چونکه په نوموړي صورت کښې یوائې له یوې خوا څخه حرمت دی له بلې خوا څخه حرمت نشته نو ځکه د ناسکه خوابنې سره نکاح جائزه ده اګر که د هغې ناسکه لور د هغه په نکاح کښې له مخکښې څخه موجوده هم وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فجاز الجمع بین امرأة و بنت زوجها...... لانه لو فرضت المرأة ذکراً لم یحرم بخلاف عکسه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۹، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال فی الهندیة: و یجوز (الجمع) بین المرأة و بنت زوجها فان المرأة لو فرضت ذکرا حلت له تلك البنت بخلاف العکس. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۷، فصل فی المحرمات) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۹۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## د میرې له خور سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د میرې له خور سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د میرې د خور او د هغه سړي تر منځ کومه د اسې خپلوي نشته چه له وجهې ئې د هغوی تر منځ نکاح جائزه نه شي۔ او دا ښځه د هغه لپاره نه په علی التابید محرماتو کښې او نه په غیر مؤبدو محرماتو کښې شامله ده نو له دې وجهې د میرې له خور سره نکاح جائزه ده۔

قال العلامة الکاسانیؒ: و المحرمات علی التابید ثلاثة انواع محرمات با لقرابة و المحرمات با لمصاهرة و محرمات با لرضاع. (بدائع الصنائع ج۳، ص۲۵۶، کتاب النکاح، فصل ان تکون المرأة محللة)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: اسباب التحریم انواع قرابة مصاهرة رضاع جمع ملك شرك ادخال امة علی حرة فهی سبعة ذکرها المصنف بهٰذا الترتیب و بقی التطلیق ثلاثا و تعلق حق الغیر بنکاح او عدة ذکرهما فی الرجعة. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۲۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۷۳، الباب الثالث فی المحرمات.

## د وفات په عدت کښې د شوې نکاح حکم

**سوال:** که چېرته یوه ښځه د میړه له وفات څخه وروسته په څلورو میاشتو کښې د ننه د ننه له بل سړي سره نکاح وکړي نو آیا دا نکاح صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طلاق او یا د وفات په عدت کښې شوې نکاح کالعدم وي او له عدت نه وروسته چه کومه نکاح وشي هغې لره به اعتبار ورکول کیږي۔

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و منها ان لا تکون معتدة الغیر لقوله تعالٰی: وَ لَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَه. ای ما کتب علیها من التربص ثم قال و سواء کانت العدّة عن طلاق او عن وفات الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۸/۲۶۹، کتاب النکاح، فصل ان لا یکون بها حمل)

قال فی الهندیة: لا یجوز للرجل ان یتزوّج زوجة غیره و کذٰلك المعتدة کذا فی السراج الوهاج سواء کانت العدّة عن طلاق او وفات الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۰، کتاب النکاح، الباب الاوّل، القسم السادس المحرمات التی یتعلق الخ) و مثله فی الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۴۷، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.



## د غیر مدخوله میرې سره د نکاح حکم

**سوال:** آیا له هغې میرې سره نکاح صحیح ده کومه چه پلار ئې له هغې سره کور والی نه وي کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کومې ښځې سره چه پلار نکاح تړلې وي که پلار ئې دخول کړی وي یا ئې نه وي کړی نو د زوی لپاره ئې له هغې ښځې سره نکاح کول د قرآني نص له مخې حرام دي۔

قال ابن عابدین رحمه اللّٰه: (تحت قوله مصاهرة) و تحرم موطوات آبائه و اجداده و ان علو و لو بزنا و المعقودات لهم علیهن بعد صحیح. (رد المحتار ج۳، ص۲۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: اما حلیلة الاب فبقوله تعالٰی: وَ لَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ فتحرم بمجرد العقد علیها. (البحر الرائق ج۳، ص۹۴، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۰، کتاب النکاح، فصل الفرقة الرابعة.

## خوابنې او نږور په یوې نکاح کښې ساتل

**سوال:** آیا یوه ښځه او د هغې د زوی ښځه په یوې نکاح کښې جمع کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صورت مسئوله مطابق په دغو ښځو کښې د اسې رشته نه ده موجوده چه د حرمت اجتماع باعث جوړه شي نو له دې وجهې د دې ښځې او انږور ئې په نکاح کښې یو ځای والی جائز دی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فجاز الجمع بین امرأة و بنت زوجها او امرأة ابنها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۶، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: فی بحثٍ لانه لو جاز نکاح احداهما علی تقدیر مثل المرأة و بنت زوجها او امرأة ابنها فانهٗ یجوز الجمع بینهما عند الائمة الاربعة. (البحر الرائق ج۳، ص۹۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۷، القسم الرابع المحرمات با لجمع.

## د انا او لمسۍ په یوې نکاح کښې د یو ځای کولو حکم

**سوال:** آیا یو سړی یوه ښځه او د هغې لمسۍ په یوه نکاح کښې سره جمع کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمسۍ او انــــــا په یوه نکاح کښې سره یو ځای کول جائز نه دي ځکه چه فقهاء کرامو یوه قاعده لیکلې ده چه که چېرته په دوو ښځو کښې یوه نر فــــــرض کړی شي او پخپل منځ کښې نکاح جائزه نه شي نو د داسې دوو ښځو په یوه نکاح کښې جمع کول جائز نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: حرم الجمع و طأ بملك یمین بین امرأتین ایتهما فرضت ذکراً لم تحل للاخرٰی ابداً.

(الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۳۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن نجیم المصری رحمه الله: للاصل الذی بینا ان کلّ امرأتین لو کانت احداهما ذکرا و الاخریٰ أنثی لم یجز للذکر ان یتزوّج الانثی فانه یحرم الجمع بینهما. (البحر الرائق ج۳، ص۹۵، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۲، کتاب النکاح، فصل ان لا یقع نکاح المرأة.

## ترور او وریره په یوې نکاح کښې د جمع کولو حکم

**سوال:** آیا د سکه ترور او د هغې د وریرې په یوه نکاح کښې شرعا جمع کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ترور او وریرې تر منځ داسې رشته ده چه که چېرته په دواړو کښې یوه نر فرض کړی شي نو د بلې نکاح نه ورسره کیږي نو له دې وجهې ترور او د هغې وریره په یوې نکاح کښې جمع کول شرعا جائز نه دي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: حرم الجمع بین امرأتین اذا کانتا بحیث لو قدرت احداهما ذکراً حرم النکاح بینهما ایتهما کانت المقدرة ذکراً کا لجمع بین المرأة و عمّتها..... لحدیث مسلم لا تنکح المرأة علی عمّتها الخ. (البحر الرائق ج۳، ص۹۷، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و ایتهما فرضت) ای آیة واحدة منهما فرضت ذکراً لم یحل للاخریٰ کا لجمع بین المرأة و عمتها الخ. (رد المحتار ج۳، ص۳۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۲، کتاب النکاح، فصل ان لا یقع نکاح المرأة.

## د دوو خویندو په یوې نکاح کښې د یو ځای کولو حکم

**سوال:** یو سړی له یوې ښځې سره نکاح کړې ده او اوس خپلې ښځې ته له طلاق ورکولو څخه پرته د هغې له خور سره نکاح کول غواړي نو آیا د نوموړي لپاره داسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه ښځه د چا په نکاح کښې وي نو نوموړی د هغې له سکه خور سره نکاح نه شي کولی او د قرآن د نص له مخې حرامه ده۔ داسې نکاح کالعدم پاتې کیږي۔

قال العلامة الکاسانیؒ: لا خلاف ان الجمع بین الأختین فی النکاح حرام. لقولهٖ تعالٰی وَ اَنْ تَجْمَعُوا بَیْنَ الْأُخْتَیْنِ معطوفاً علی قوله عزو وجل حُرِّمَتْ عَلَیْکُمْ اُمَّهَاتُکُمْ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۲، کتاب النکاح، فصل ان لا یقع النکاح المرأة)

قال فی الهندیة: فانه لا یجمع بین الاختین و لا بوطی ملك بمین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ۲۷۷، القسم الرابع المحرمات با لجمع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۹۵، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.



## د ښځې په ګومان سره خپلې مور ته د لاس وروړلو اثرات

**سوال:** د شپې د بې خبرۍ په حالت کښې زید خپله مور خپله ښځه وګڼله او په شهوت سره ئې لاس ور اوږد کړ نو آیا په دې صورت کښې د زید مور د هغه په پلار باندې حرامیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که زید خپلې مور ته په شهوت سره له حجاب پرته لاس وروړې وي او د زید والد ته دا معامله معلومه وي او تصدیق ئې هم کړی وي نو اوس دا ښځه یعنې د زید مور پخپل میړه یعنې د زید په پلار باندې حرامه ده۔ او که نه وي نو نه ده حرامه۔

قال ابن نجیمؒ: و اراد بحرمة المصاهرة المحرمات الاربع، حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً کما فی الوطی الحلال. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۱، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال فی الهندیة: فلو ایقظ زوجته لیجامعها فوصلت یده الی بنته منها فقرصها بشهوة و هی ممن تشتهی یظن انها امها حرمت علیه الام حرمة مؤبدة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۴، فصل فی المحرمات) و قال ایضاً: ثم المس انما یوجب حرمة المصاهرة اذا لم یکن بینهما ثوب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۵، فصل فی المحرمات)

## له خواښې سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه خواښې سره نکاح کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خواښې سره نکاح کول قطعي حرام دي اګر که ئې خپلې ښځې ته طلاق ورکړی وي او یا مړه شوې وي۔ الله تعالی په قرآن کریم کښې د محرماتو په فهرست کښې د ښځې مور (خواښې) هم ذکر کړې ده۔

قال علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: اسباب التحریم انواع قرابة مصاهرة. قال ابن عابدینؒ: مصاهرة کفروع نسائه المدخول بهنّ او نزلن و اُمّهات الزوجات و جداتهن بعقد صحیح و ان علون الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن نجیم المصری رحمه الله: تحت قول الماتن و ام امرأته بیان لما ثبت با لمصاهرة. لقوله تعالٰی "وَ اُمَّهَاتُ نِسَآئِکُمْ" اطلقه فلا بین کونه امرأته مدخولا بها اولا و هو المجمع علیه عند الائمة الاربعة. (البحر الرائق ج۳، ص۹۳، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۲۵۸، کتاب النکاح، فصل النوع الثانی فی المحرمات.

## د میرې د لوڼو سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي خپلې ښځې ته طلاق ورکړی وي او خلاصه کړې ئې وي نو آیا د دې مطلقې د مخکښیني میړه څخه چه کومې لوڼې دي د دوهم میړه د اولې ښځې له لوڼو سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح د حرمت لپاره په منځ کښې د جزئیت د رشتې موجودوالی ضروري ده۔ په صورت مسئوله کښې په ظاهره سره د حرمت کومه خاصه وجه موجوده نه ده چه له مخې ي د نکاح حرمت ثابت شي بلکه د فقهاوو د تصریحاتو په رڼا کښې هم د نسبي ورور له نسبي خور سره د نکاح جواز ثابت دی نو ځکه په نوموړي صورت کښې شوې نکاح هم صحیح ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و تحل أُخت اخیه رضاعاً...... و کذا نسباً بان یکون لاخیه لابیه اخت لام۔ (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۲۱۷، کتاب النکاح، فصل فی الرضاء)

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: ای تحل اخت اخیه نسباً بان یکون له اخ من اب له اخت من اُمّه فانه یجوز له التزوج بها۔ (البحر الرائق ج۳، ص۲۲۷، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع.

## په فیمـــلي کورټ (ښځینه عدالت) کښې د تنسیخ نکـــاح نه وروسته د دوهمې نکـــاح حکم

**سوال:** نن صبا که چېرته د حکومت له خوا ځخه قائم شوي فیملي کورټس (د ښځو عدالتونه) ځخه که چېرته یوه ښځه د نکاح د تنسیخ ډایري حاصله کړي په داسې حال کښې چه مېړه هغې ته طلاق ورکول نه غواړي۔ نو آیا په داسې ډول سره د نکاح د تنسیخ د ډایرۍ د حصول نه وروسته د ښځې په بل ځای کښې نکاح کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مقدس شریعت د طلاق حق یوائې مېړه ته ورکړی دی او بل چاته ئې نه دی ورکړی نو له دې وجهې فیملي کورټس شرعاً دا حق نه لري چه یوه ښځه پرته له کوم شرعي عذر ځخه له خپل خاوند ځخه جدا کړي۔ لهذا که چېرته یوه ښځه پرته له کوم شرعي عذر ځخه د فیملي کورټس ځخه د نکاح د تنسیخ ډګري حاصله کړي نو په دې باندې طلاق نه واقع کیږي۔ له دې وجهې د دې ښځې له بل چا سره نکاح کول باطل دي ځکه چه شرعاً دا ښځه د خپل اول خاوند منکوحه ده۔

قال اللّٰه تبارك و تعالٰی: اِلاَّ اَنْ یَّعْفُوْنَ اَوْ یَعْفُوَ الَّذِیْ بِیَدِهٖ عُقْدَةُ النِّکَاحِ. (البقرة، آیت)

قال العلامة شوکانیؒ: (تحت هٰذه الآیة) فیکون الذی بیده عقدة النکاح حقیقة هو الزوج لانه هو الذی الیه رفعه با لطلاق. (تفسیر فتح القدیر ج۱، ص۲۲۷)

قال العلامة ابن رُشد المالکیؒ: الاصل ان الاطلاق لیس بید احدٍ سوی الزوج او من یوکله الزوج. (بدایة المجتهد ج۲، ص۸۱، کتاب الطلاق) و مثله فی مقدمات ابن رشدؒ ج۲، ص۳۸۲، کتاب طلاق السنة.

## په طلاق مغلظه کښې له حلالې پرته د نکاح د تجدید حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو سړي د دریو ګواهانو په مخکښې خپلې ښځې ته درې مغلظ طلاقونه ورکړل۔ اوس له څو ورځو وروسته له شرعي حلالې ځخه بغیر د جرګې په ذریعې سره



نوموړي د نکاح تجدید کړی دی۔ آیا په دې طریقې سره د نکاح تجدید درست دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې له شرعي حلالې پرته د نوموړې ښځې له خپل مخکښینی مېړه سره نکاح کول باطل دي او دوی دواړه د مېړه او ښځې په حیثي یوه او بل ته حلال نه دي۔ د جرګې په ذریعې سره د دوی تجدید نکاح باطل دی۔ تر څو پورې چه ښځه شرعي حلاله و نه کړي د اول مېړه لپاره نه حلالیږي۔

قال اللّٰه تبارك و تعالٰی: فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلاَ تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰی تَنْکِحَ زَوْجاً غَیْرَهٗ. (سورة البقرة، آیت ۲۳۰)

و فی الهندیة: و ان کان الطلاق ثلاثاً فی الحرة ثنتین فی الامة لم تحل حتی تَنْکِحَ زَوْجاً غَیْرَهٗ نکاحا صحیحاً و یدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۷۳، الباب السادس فی الرجعة، فصل فیما تحل به المطلقة و ما یتصل به) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۸۳، باب الرجعة، مطلب فی العقد علی المبانة.

## د مطلقه ښځې د وضع حمل نه مخکښې د دوهمې نکاح حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی خپلې ښځې ته په داسې حالت کښې طلاق ورکړي چه د دریو میاشتو حامله وي او بیا نوموړې ښځه د حمل له وضعې نه مخکښې له بل چا سره نکاح وکړي نو آیا د دې ښځې دا ډول نکاح صحیح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې مطلقه ښځې ته کومه چه حامله وي او حمل ئې هم ثابت النسبه وي بل نکاح کول باطل دي۔ له دې وجهې په نوموړي صورت کښې د دې مطلقې ښځې نکاح د حمل له وضعې ځخه مخکښې باطله ده۔ نوموړې ښځه باید چه د حمل له وضع ځخه وروسته بیا نکاح وکړي۔

و فی الهندیة: و حبلٰی ثابت النسب لا یجوز نکاحها اجماعاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۰، کتاب النکاح، القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و منها ان لا یکون بها حملٌ ثابت النسب من الغیر فان کان لا یجوز نکاحها و ان لم تکن معتدة...... لوجود حمل ثابت النسب...... الخ. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۶۹، کتاب النکاح، فصل و منها ان لا یکون بها حمل) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۰۶، اوائل کتاب النکاح.

## د متعې شـــرعي حیثیت

**سوال:** د متعې شرعي حیثیت څه شی دی؟ آیا په رښتیا هم امام مالك د متعې د جواز قائل وو؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسلام په ابتدا کښې متعه جائزه وه لیکن وروسته دا حکم منسوخ شو۔ له دې وجهې د اهل السنت و الجماعت په نزد متعه په اتفاق سره حرامه ده اګر که په

هدایه کښې د امام مالك رحمه الله خوا ته د جواز قول راجح دی لیکن حقیقت د دې خلاف دی. دلته د کاتب او یا د هدایه له ناسخ څخه غلطي شوې ده.

قال العلامة شیخ زادهؒ: و اعلم ان نکاح المتعة قد کان مباحاً بین ایام خیبر و ایام فتح مکة الا انهٗ صار منسوخاً باجماع الصحابة رضی الله عنهم حتیٰ لو قضیٰ بجوازه لم یجز و لو اباحه صار کافراً..... فعلی هٰذا یلزم عدم ثبوت ما نقل من اباحته عند مالكؒ الخ. (مجمع الانهر ج۱، ص۳۳۱، کتاب النکاح، باب المحرمات)

قال العلامة المرغینانیؒ: و نکاح المتعة باطلٌ و هو ان یقول لامرأة اتمتع بك کذا مدة بکذا من المال و قال مالكؒ هو جائز لانه کان مُباحاً فیبقی الا ان یظهر ناسخه قلنا ثبت النسخ باجماع الصحابةؓ الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۹۲، کتاب النکاح) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۱۵۰، کتاب النکاح، فصل فی بیان المحرمات.

## د موقت نکـــــاح تعریف

**سوال:** موقت نکاح څه ته وایي او په مقدس شریعت کښې ئې حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د موقت نکاح تعریف دا دی چه هلك او نجلۍ د دوو ګواهانو په مخکښې د کوم معین او معلوم وخته پورې مثلاً د یوې میاشتې، یا دوه میاشتې او د اسې نور وخت لپاره سره نکاح وکړي. دا ډول نکاح د شریعت له مخې باطل ده. بیا هم که چېرته په نکاح کښې د اسې وخت مقرر کړي چه د دوی د دواړو ژوندی پاتې کیدل پکښې محال وي نو د اسې نکاح به جائز او صحیح وي.

قال العلامة شیخ زادهؒ: و لا یصح نکاح المتعة و الموقت و الفرق بینهما ان یذکر فی الموقت لفظ النکاح او التزویج مع التوقیت...... و عن الامام اذا وقتاً وقتاً لا یعیشان الیه کمائة سنة او اکثر یکون صحیحاً. (مجمع الانهر ج۱، ص۳۳۱، کتاب النکاح، باب المحرمات)

قال العلامة المرغینانیؒ: و النکاح الموقت باطل مثل ان یتزوج امرأة بشهادة شاهدین عشرة ایّامٍ الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۹۲، کتاب النکاح) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۲۰، کتاب النکاح.

## د عیسایۍ او یهودۍ ښځې سره د نکاح حکم

**سوال:** آیا د موجوده زمانې عیسایۍ او یهودۍ ښځې سره د مسلمان سړي نکاح جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اهل کتابو (یهودو او نصاراوو) له ښځو سره اګر که د مسلمان سړي نکاح مرخصه ده لیکن که چیرته د یوه مسلمان له هغوی سره د نکاح کولو په صورت کښې د عقیدې او مذهب د خرابیدو خطر وي نو بیا ترې ځان ساتل ضروري دي. همدا وجه ده چه فقهاووؒ د یهودو او نصاراوو له ښځو سره د مسلمان سړي نکاح مکروه بللې ده.

کما قال العلامة الحصکفیؒ: و صح نکاح کتابیة و ان کره تنزیهاً مومنة بنبی مرسل مقرة بکتاب منزل و ان اعتقد و المسیح الٰها. و قال ابن عابدینؒ ففی الفتح و یجوز تزوج الکتابیات و الاولی ان لا یفعل و لا یأکل ذبیحتهم الا



لضرورة و تکره الکتابیة الحربیة اجماعاً لافتتاح باب الفتنة من امکان التعلق المستدعی للمقام معها فی دار الحرب. (رد المحتار ج۳، ص۴۵، کتاب النکاح، مطلب مهم فی وطی السراری الخ)

قال ابن نجیمؒ: و حل تزوّج الکتابیة. لقوله تعالیٰ: و المُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الکِتٰبَ....... و الاولی ان لا یتزوج کتابیة و لا یأکل ذبائحهم الا لضرورة و فی المحیط یکره تزوج الکتابیة الحربیة لان الانسان لا یأمن ان یکون بینهما فینشأ علی طبائع اهل الحرب. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۳، فصل فی المحرمات) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۱۳۵، فصل فی المحرمات.

## د مسلمانې ښځې له کافر سره د نکاح حکم

**سوال:** له یوې مسلمانې ښځې سره د کافر سړي نکاح جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مسلمانې ښځې سره د کافر سړي نکاح جائز نه دی اګر که دا نکاح طوعا او که کرهاً یعنې که په رضا وي او یا په زوره او که دا کافر اهل کتاب وي او که بل دهري کافر له یوه سره هم د مسلمانې ښځې نکاح جائز نه دی.

لقوله تعالیٰ: وَلاَ تَنْکِحُوا الْمُشْرِکِیْنَ حَتّٰی یُؤْمِنُوا وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَیْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَکُمْ. (سورة البقرة، آیت ۲۲۱)

قال العلامة الکاسانی رحمه اللّٰه: و منها اسلام الرجل اذا کانت المرأة مسلمة. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۷۱، فصل کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۸۲، کتاب النکاح.

## له قادیانۍ ښځې سره د نکاح د کولو حکم

**سوال:** له یوې اهل کتابې ښځې سره خو مسلمان سړی نکاح کولی شي نو آیا له یوې قادیانۍ ښځې سره هم د مسلمان سړي نکاح جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادیانیان چونکه د امت د اجماع له مخې مرتدین او د اسلام له دائرې څخه د باندې دي له دې وجهې له دوی سره هیڅ ډول خپلوي جائز نه دی. لکه څرنګه چه د یوه قادیاني له مسلمانې ښځې سره نکاح نه صحیح کیږي همدا رنګه یو مسلمان سړی له قادیانۍ ښځې سره نکاح نه شي کولی ځکه چه قادیانیان د اهل کتابو په حکم کښې نه دي بلکه مرتد او د اسلام له دائرې څخه خارج دي.

کما قال شیخ الاسلام برهان الدین المرغینانیؒ: ان تصرفات المرتد علی اقسام نافذ بالاتفاق کالاستیلاء و الطلاق لانه لا یفتقر الی حقیقة الملك و تمام الولایة و باطل بالاتفاق کالنکاح و الذبیحة لانه یعتمد الملة. (الهدایة ج۲، ص۶۰۳، باب المرتد)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و المرتدة لا یجوز نکاحها مع احد و کذٰلك المرتد لا یجوز نکاحه مع احد. (فتاوی تاتارخانیة ج۳، ص۸، کتاب النکاح) و مثله فی الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۳، ص۳۳۰، باب المرتد.

## د میره په مرتد کیدو سره د نکاح حکم

**سوال:** یو میړه او یوه ښځه دواړه مسلمانان وو او ښه ژوند ئي سره تیرول چه ناڅاپه ئي میړه د قادیانیانو ښکار شو او مرتد شو په داسې حال کښې چه ښځه ئي د اسلام په حق دین باندې قائمه ولاړه ده. په داسې حالت کښې نوموړې ښځه باید څه وکړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادیاني چونکه د مرتد په حکم کښې دی نو ځکه په صورت مسئوله کښې د خاوند د مرتد والي له وجهې د مسلمانې بي بي سره د هغه د نکاح رشته ختمه شوې ده. په داسې حالت کښې نوموړې ښځه باید د عدت له تیرولو وروسته بل ځای نکاح وکړي.

قال العلامة الحصكفیؒ: و ارتد احدهما ای الزوجین فسخ عاجل. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۲۵، باب نکاح الکافر)

و قال فی الهندیة: ارتد احد الزوجین عن الاسلام وقعت الفرقة بینهما كذا فی الکافی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۳۹، الباب العاشر فی النکاح الکفار) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۴۸، فصل فی النکاح الکافر.

## په ناپوهۍ کښې له قادیاني سره د نکاح حکم

**سوال:** د یوې مسلمانې ښځې نکاح د بې خبرۍ په حالت کښې له کوم قادیاني سره وشوه یعنې هغه د نکاح په وخت کښې ځان مسلمان ښکاره کړ لیکن له نکاح نه وروسته معلومه شوه چه نوموړی قادیاني دی. نو آیا په دې صورت کښې د انکاح قائمه شوې ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قادیاني چونکه مرتد او د اسلام له دائرې څخه خارج دی له دې وجهې د کوم سړي په اړه چه دا خبره یقیني وي چه قادیاني دی نو له هغه سره د مسلمانې ښځې نکاح شرعا جائزه نه ده او په بې خبرۍ کښې شوې نکاح کالعدم ګرځي۔

كما فی الهندیة: ارتد احد الزوجین عن الاسلام وقعت الفرقة بغیر طلاق فی الحال. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۳۹، الباب العاشر فی نکاح الکفار)

و قال العلامة الحصكفیؒ: و ارتد احدهما ای الزوجین فسخ عاجل. (الدر المختار ج۲، ص۴۲۵، کتاب النکاح) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۴۸، کتاب النکاح.

## له شیعه ښځې سره د سُني سړي د نکاح حکم

**سوال:** کوم شیعه ګان چه د حضرت علي کرم الله وجهه د الوهیت قائل دي او له حضرت جبرائیل علیه السلام څخه د غلطۍ د صادریدو عقیده ولري او د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د منکر والي سره سره د قذف عائشه رضی الله عنها هم قائل وي او همدارنګه په قرآن مجید کښې د انحراف قائل هم وي نو له داسې شیعه ښځې سره د سُني سړي د نکاح حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم روافض چه د اسلام د قطعیاتو خلاف کومه عقیده ولري هغوی



کافر بلل کیږي لکه د حضرت علي الوهیت، په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې د قذف قائل والی کوم چه د قرآن کریم د قطعي نص خلاف دی، له حضرت جبرائیل علیه السلام څخه د غلطۍ عقیده لرل او همدارنګه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د صحبت څخه منکر وي نو له داسې ډول ګمراهو خلکو سره د مناکحت له رشتې څخه احتراز او اجتناب ضروري دی او د داسې خلکو حکم د مرتد غوندې دی او له مرتد سره نکاح جائز نه دی۔

كما فی الهندیة: و یجب اکفار الروافض فی قولهم برجعة الاموات الی الدنیا...... و احکامهم احکام المرتدین. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲۶۴)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: یجب اکفار الروافض فی قولهم لرجع الاموات الی الدنیا...... و هؤلاء القوم خارجون عن ملة الاسلام و احکامهم احکام المرتدین. (فتاوی تاتارخانیة ج۵، ص۵۳۸، کتاب احکام المرتدین) و مثله فی الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۱۸، باب المرتد.

## په بې خبرۍ کښې له رضاعي خور سره د نکاح د کولو حکم

**سوال:** که چېرته په بې خبرۍ او غلطۍ سره یو څوک له خپلې رضاعي خور سره نکاح وکړي او له کال یا دوه کاله وروسته پرې خبر شي نو آیا سره جلا کیږي او که نکاح به ئي په ځای پاتې وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې اګر که له رضاعي خور سره نکاح شرعا حرام دی لیکن کله چه په فاسد نکاح سره دواړه سره یو ځای شي نو مهر واجبیږي. لهذا نوموړې ښځه له خپل خاوند څخه د مهر د اخیستلو حقداره ګرځي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و یجب مهر المثل فی نکاح فاسد بالوطی لا بغیره. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۸۱/۴۸۲، باب المهر)

و فی الهندیة: و لو تزوّج امرأة فقالت امرأة ارضعتکما...... و اذا فارقها...... و ان کان بعد الدخول بها فالافضل للزوج ان یعطیها کمال المهر و النفقة و السکنی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۴۷، کتاب الرضاع)

## کافره ښځه په زور سره د مسلمانولو په صورت کښې له هغې سره د نکاح حکم

**سوال:** په افغانستان کښې د روسیانو له راتګ څخه وروسته چه کله جهاد شروع شو نو ځینو مجاهدینو روسی ښځې جبرا مسلمانولې او له هغوسره ئي نکاح ګانې کولې. نو آیا د نوموړیو ښځو اسلام راوړل معتبر دي او له هغوی سره نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یو کافر په اسلام باندې مجبور کړی شي او کلمهٔ شهادت پرې وویل شي نو هغه به مسلمان ګنل کیږي لهذا په نوموړي صورت کښې د روسی ښځو اسلام راوړل صحیح او د ځینو مجاهدینو سره ئي نکاح جائزه ده۔

لما قال العلامة فخر الدین الشهیر بقاضی خانؒ: و اذا اجبر الکافر علی الاسلام فاسلم صح اسلامه فان ارتدّ بعد ذلك یجبر علی الاعلام و لا یقتل. (فتاوی قاضی خان ج۴، ص۴۱۶، باب الاکراه)

## د وراره له لور سره د نکاح حکم

**سوال:** زید د زینب علاتي ورور دی او رقیه د زینب لور دی او کلثوم د رقیه لور دی۔ اوس نو آیا د زید نکاح له کلثوم سره جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خپل والدینو د هر یوه له فروع سره (اولاد چه په کومه درجه کښې هم وي) نکاح جائز نه دی۔ له دې وجهې د زید نکاح له کلثوم سره جائز نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و فروع و ان نزلن فتحرم بنات الاخوة و الاخوات و بنات اولاد الاخوة و الاخوات و ان نزلن. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۳۰۰، فصل فی المحرمات)

و فی الهندیة: القسم الاوّل المحرمات با لنسب و هن الامهات و البنات و الاخوات...... الی قوله و اما الاخوات فا لأخت لابَ و الأمَ و الأخت لاب و الأخت لأمٍ و کذا بنات الاخ و الاخت و ان سفلن. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۳، الباب الثالث فی بیان المحرمات) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۸۷، فصل فی بیان المحرمات.

## د اخشي د بلې ښځې له لور سره د نکاح حکم

**سوال:** د خور د میړه د دوهمې ښځې له لور سره نکاح جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ورور لپاره د خپلې خور د میړه د دوهمې ښځې له لور سره نکاح جائزه ده ځکه چه په دې نجلۍ کښې د نوموړې سړي په نسبت د حرمت هیڅ وجه نشته۔

قال اللّٰه تبارك و تعالٰی بعد ذکر المحرمات: وَ اُحِلَّ لَکُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمْ. (سورة النساء، آیت ۲۴)

قال العلامة علاؤ الدین الکاسانیؒ: و المحرمات علی التابید ثلاثة انواع محرمات با لقـــــرابة و محرمات با لمصاهرة و محرمات با لرضاع. اما النوع الاول فا لمحرمات با لقرابة سبع فرقٍ الامّهات و البنات و العمّات...... قـــــال اللّٰه تبارك و تعالٰی: حُرِّمَتْ عَلَیْکُمْ اُمَّهٰتُکُمْ الآیة. و فی الصفحة الثانیة و تحل لهٗ بنت العمّة و الخالة و بنت العمّ و الخال لان اللّٰه تعالٰی ذکـــــر المحرمات فی آیة التحریم ثم اخبر سبحانه و تعالٰی انّه اهل ما وراء ذٰلك بقوله وَ اُحِلَّ لَکُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمْ الآیة. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۵۶/۲۵۷، فصل و منها ان تکون المرأة محللة) و مثلـــــه فی الهدایة ج۲، ص۲۸۷، فصل فی بیان المحرمات.

## په یوه ځـــــای کښې د نجلۍ په نکاح کښې تر ورکولو وروسته په بـــــل ځای کښې هم د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته د یوې نجلۍ والدین خپله لور په یوه ځای کښې په نکاح ورکړي او بیا ئې وروسته په بل ځای کښې هم په نکاح ورکړي نو آیا د دې نجلۍ نکاح په بل ځای کښې صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کوزدې په وخت کښې په صحیح او شرعي توګه سره ایجاب او قبول شوی وي نو له هغه نه وروسته ئې بیا په بل ځای کښې ورکول جائز نه دي۔ په بل ځای کښې ئې په هغه وخت کښې ورکول جائز دي چه ایجاب او قبول نه وي شوی نو د یوائې د



ورکولو وعده نکاح نه ده او د وعده خلافي له وجهې ګنهګار دی لیکن د نجلۍ نکاح نه ده تړل شوې۔

قال ابن عابدینؒ: لو قال هل اعطتنیها فقال اعطیت ان کان المجلس للوعد فوعد و ان کان للعقد فنکاح آه. (رد المحتار ج۲، ص۲۸۷، کتاب النکاح)

و فی الهندیة: و لو قال تزوجنی نفسك فقبلت العقد، ان لم یقصد به الاستقبال هکذا فی النهر الفائق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۲۷۰، الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح) و مثله فی تبیین الحقائق ج۲، ص۹۶، کتاب النکاح.

## یوه نجلۍ او د هغې میره په یوې نکاح کښې د راتللو حکم

**سوال:** یوه سړي یوه نجلۍ او د هغې میره په یو نکاح کښې جمع کړي دي نو آیا نوموړي سړي ته د دغو دواړو ښځو (لور او میره) په یوې نکاح کښې جمع کول صحیح دي او که نه او آیا دا په اَنْ تَجْمَعُوا بَیْنَ الْاُخْتَیْنِ کښې راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جمع بین الاختین د پیژندلو لپاره فقهاء کرامو چه کومه قاعده مقرره کړې ده هغه دا ده چه په دواړو کښې چه هر یو سړی فرض کړی شي له بل سره ئې نکاح صحیح نه وي۔ له دې وجهې په صورت مسئوله کښې که چېرته نجلۍ نر فرض کړی شي نو له میرې سره ئې نکاح د منکوحه الاب له وجهې صحیح نه ده۔ لیکن که چېرته میره نر وګڼل شي له دې نه وروسته د نکاح په عدم جواز باندې هیڅ دلیل نشته۔ نو ځکه دا صورت په اَنْ تَجْمَعُوا بَیْنَ الْاُخْتَیْنِ کښې نه راځي۔ دواړه د یوه سړي په نکاح کښې جمع کیدلی شي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: حرم الجمع وطاء بملك یمین بین امرأتین ایتهما فرضت ذکراً لم تحل للأخرٰی ابداً...... فجاز الجمع بین امرأة و بنت زوجها او امرأة ابنها الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۰۹، فصل فی المحرمات)

و فی الهندیة: و یجوز بین امرأة و بنت زوجها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۷، الباب الثانی فی بیان المحرمات، القسم الرابع المحرمات با لجمع)

## په ټوکه کښې شوې نکاح منعقده کیږي

**سوال:** که چېرته یو هلك او یوه نجلۍ په ټوکه ټوکه کښې د ګواهانو په مخکښې ایجاب او قبول وکړي او وروسته هلك نجلۍ ته ووایي چه تا له ما سره نکاح کړې ده له دې وجهې ته زما ښځه ئې په داسې حال کښې چه نجلۍ دعوٰی کوي چه هغه خو مو ټوکې سره کولې زما د نکاح اراده نه وه۔ اوس پوښتنه دا ده چه د ټوکه په صورت کښې نکاح منعقده کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې څو شیان داسې دي چه په هغو کښې ټوکه او حقیقت دواړه سره مساوي دي چه د هغو له جملې څخه نکاح هم ده۔ نو نکاح که د ټوکې په

صورت کښې هم وتړل شي منعقده کيږي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې دا نجلۍ اوس د نومړي هلك منكوحه ده او د نجلۍ دعوىٰ باطله ده۔

لقوله عليه الصلوٰة و السلام: ثلاث جدهن جد و هزلهن جد الطلاق و العتاق و النكاح. (مشكوٰة ص۲۸۴، باب الخلع و الطلاق)

عن ابى هريرةؓ قال قال رسول اللهﷺ ثلاث جدهن جد و هزلهن جد. (ابو داؤد ج۱، ص۱۴۲، باب ما جاء فى الجد و الهزل فى الطلاق) و مثله فى الترمذى باب ما جاء فى الجد و الهزل فى الطلاق.

## د وړوکي بچيانو د نكاح حكم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! دلته د دير په علاقه کښې والدين د وړوکي بچيانو نکاحونه په وړوکوالي کښې سره تړي په داسې حال کښې چه هغوی تر اوسه پورې په هيڅ هم نه پوهيږي نو آيا د داسې بچيانو نكاح جائزه ده او كه نه او آيا دا ډول عمل په وړوکي بچيانو باندې ظلم خو نه دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شريعت کښې كله چه د يوه بچي ولي هغه ته نكاح ور وتړي نو نكاح ئې صحيح ده او بچي ته د پوهې ضرورت نشته۔ يو اځې ولي لره دا كافي دى چه عاقل به وي او دا په بچيانو باندې ظلم هم نه دى۔

قال العلامة برهان الدين المرغينانى رحمه الله: يجوز نكاح الصغير و الصغيرة اذا زوجهما الولى بكراً كانت الصغيرة او ثيباً. (الهداية ج۲، ص۲۹۵، باب الاولياء)

و فى الهندية: لولىّ الصغير و الصغيرة ان ينكحهما و ان لم يرضيا بذلك سواء كانت بكراً و ثيباً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۸۵، كتاب النكاح، الباب الرابع فى الاولياء) و مثله فى الدر المختار ج۳، ص۵۵، كتاب الولى.

## د ربيب له كونډې يا د مطلقې سره د نكاح د كولو حكم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! كه چېرته يو سړى د يوې ښځې سره واده وكړي او د هغه له ښځې د اولنۍ ميړه څخه يو هلك هم شته چه ساتنه دو هم ميړه كړې دى۔ اوس كه چېرته دا هلك خپلې ښځې ته طلاق وركړي او يا مړ شي نو آيا دا سړى د خپل ربيب ښځه يا د مطلقې سره نكاح كولى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ربيب او يا متبنې د حقيقي او يا رضاعي زامنو غوندې نه دى نو ځكه په نومړي صورت کښې د ربيب له كونډې او يا مطلقې سره مربي نكاح كولى شي۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (تحت قوله و اما بنت زوجة ابيه و ابنه فحلال) و لا تحرم زوجة الرّبيب و لا زوجة الرّاب. (رد المحتار ج۲، ص۳۰۳، فصل فى المحرمات)

و فى الهندية: و لا تحرم حليلة الابن المتبنّى على الابّ المتبنّى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۷۴، الباب الثالث فى بيان المحرمات، القسم الثانى المحرمات با لصهرية) و مثله فى الهداية ج۲، ص۲۸۸، كتاب النكاح، فصل فى بيان المحرمات.



## د عدت په دوران کښې له خوښيني سره د نكاح حكم

**سوال:** كه چېرته يو سړى خپلې ښځې ته طلاق وركړي او د عدت په دوران کښې ئې له خور سره نكاه وكړي نو آيا دا ورته جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونكه د عدت په دوران کښې ښځه د ميړه په نكاح کښې من وجه (له يوې وجهې) پاتې وي نو له دې وجهې په دې وخت کښې د ښځې له خور سره نكاح جائز نه دى او كه چېرته وغواړي چه له عدت څخه وروسته د خپلې مطلقې له خور سره نكاح وكړي نو كولى ئې شي۔

لما قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و الجمع نكاحاً و عدّة و لو من طلاق بائن. (الدر المختار على هامش ردّ المحتار ج۲، ص۳۰۸، فصل فى المحرمات)

قال العلامة بُرهان الدين المرغينانى رحمه الله: و اذا طلق امرأته طلاقا بائناً او رجعياً لم يجز له ان يتزوج باختها حتى تنقضى عدّتها. (الهداية ج۲، ص۲۸۹، كتاب النكاح، فصل فى بيان المحرمات) و مثله فى الهندية، الباب الثالث فى بيان المحرمات، القسم الرابع المحرمات با لجمع)

قال الله تبارك و تعالىٰ: وَ رَبَائِبُكُمُ الّتِىْ فِىْ حُجُوْرِكُمْ مِنْ نِسَآئِكُمُ اللّٰتِىْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ. (سورة البقرة)

## د منكوحې له لور سره د نكاح حكم

**سوال:** يوه سړي له يوې مطلقې يا كونډې سره نكاح وكړه او د نومړې مطلقې يا كونډې له مخكښيني ميړه څخه يوه پيغله لور هم شته۔ او نومړي سړي دې ښځې ته له دخول څخه مخكښې طلاق وركړ او اوس ئې له لور سره غواړي چه نكاح وكړي نو آيا دا سړى د خپلې مطلقې له لور سره نكاح كولى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منكوحې له لور سره شرعا نكاح حرامه ده ليكن دا حرمت د خلوت صحيحه او يا دخول پورې تړلې دى۔ كه چېرته له خلوت او يا دخول څخه مخكښې طلاق واقع شي نو د منكوحې له لور سره نكاح جائزه ده او كه نه وي نو د خلوت صحيحه او دخول په صورت کښې نكاح ناجائز او حرام دى۔ په صورت مسئوله کښې چونكه خلوت صحيحه او يا دخول نه دى شوى نو له دې وجهې د نومړي سړي له نومړې نجلۍ سره نكاح جائز دى۔

قال العلامة المرغينانىؒ: و لا بام امرأته دخل بها او لم يدخل لقوله تعالىٰ: وَ اُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ من غير قيد الدخول و لا ببنت إمرأته التى دخل بها الثبوت قيد الدخول با لنص سواءً كانت فى حجره او فى حجر غيره. (الهداية ج۲، ص۲۸۷، كتاب النكاح، فصل فى المحرمات)

قال الله تبارك و تعالىٰ: وَ رَبَائِبُكُمُ اللّٰتِىْ فِىْ حُجُوْرِكُمْ مِنْ نِسَآئِكُمُ اللّٰتِىْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ. (سورة البقرة)

## د پلار له ناسکه لور (چه د ښځې له مخکښیني خاوند څخه ئې وي) سره نکاح جائز دی

**سوال:** یو څوك د خپل پلار د بلې ښځې له لور سره په د اسې حال کښې چه دا لور د دغې ښځې له مخکښینی میړه څخه وي نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پلار د بلې ښځې له لور سره چه د هغې له بل میړه څخه وي شرعا نکاح جائزه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و اما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال) قال ابن عابدینؒ: و کذا بنت ابنهما الخ. (الدر المختار مع رد المحتار ج۲، ص۳۰۳/۳۰۲، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال العلامة صدر الشهید رحمه اللّٰه: و تحل اخت اخیه رضاعاً کما تحل نسبا کاخ من الاب له اخت من امة تحل لاخیه من ابیه. (شرح الوقایة ج۲، ص۶۹/۶۸، کتاب النکاح)

## د زوی له مزنیې سره د نکـــاح حکم

**سوال:** د یوه هلك له یوې نجلۍ سره ناجائز تعلقات دي او څو ورځې مخکښې دواړه په همدې ناوړه عمل باندې سر په سر نیول شوي هم وو۔ د علاقې جرګې فیصله وکړه چه د نوموړي هلك له همدې نجلۍ سره نکاح وکړی لیکن هلك په هیڅ صورت هم له دې سره نکاح ته تیار نه دی په داسې حال کښې چه د هلك پلار وایي چه زه نکاح ورسره کوم۔ اوس پوښتنه دا ده چه آیا د هلك (زاني) د پلار نکاح د دې نجلۍ (مزنیې) سره جائزه ده او که نه د حنفي فقهې له مخې ځواب راکړی ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفي فقهې له مخې زنا هم د حرمت مصاهرت سبب دی۔ لهذا که چېرته په رښتیا هم نوموړی هلك له دې نجلۍ سره د زنا د ناوړه عمل ارتکاب کړی وي نو دا نجلۍ د هلك د پلار لپاره په منزله د منکوحه الابن ده په د اسې حال کښې چه له نږور سره شرعا نکاح جائزه نه ده۔ له دې وجهې د زوی له مزنیې سره پلار نکاح نه شي کولی۔

لما فی الهندیة: کذا تحرم المزنی بها علی آباء الزانی و اجداده و ان علو و ابنائه و ان سفلوا کذا فی فتح القدیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ، کتاب النکاح، الباب الثالث)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حرم ایضاً بالصهریة اصل مزنیة. قال ابن عابدینؒ تحته حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۴، کتاب النکاح)

## د زوی له خوابنې سره د نکاح حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما خُسر مړ شوی دی او واړه بچیان ئې پاتې دي اوس زه غواړم چه خپله کونډه خوابنې خپل پلار ته په نکاح کړم تر څو چه مونږ په دواړه په ګډه سره د هغوی تنه وکړی شو نو آیا شرعا زما د پلار او خوابنې نکاح سره جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت کښې د دواړو تر منځ داسې کومه رشته نشته چه د حرمت سبب وګرځي له دې وجهې د دوی دواړو نکاح شرعا جائز دی او امید دی چه په دې کار خیر باندې د خدای له طرفه تاته اجر هم درکړل شي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و لا تحرم ام زوجة الابن. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۳، کتاب النکاح)

قال العلامة مفتی عبد الرحیم رحمه اللّٰه: الجواب: حامداً و مصلیاً و مسلماً!د زید پلار د زید د ښځې له پلار یعنې پلار د خپل زوی له خوابنې سره نکاح کولی شي۔ دا رشته حرامه نه ده۔ (فتاوی رحیمیه ج۱، ص۱۹۴، کتاب النکاح)

## له نوې مسلمـــانې شوې ښځې سره د هغې د عدت تـــر ختمیدو مخکښې د نکـــاح حکم

**سوال:** که چېرته یوه کافره واده شوې ښځه اسلام قبول کړي نو آیا د عدت له تیریدو څخه مخکښې له هغې سره نکاح کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه کافره واده شوې ښځه اسلام قبول کړي او میړه ئې کافر وي نو د هغې نکاح پخپله ماتیږي او له منځه ځي۔ اوس که چېرته نوموړې ښځه په دار الحرب کښې وي نو یواځې د درې حیضونو له تیرولو وروسته له کوم مسلمان سړي سره نکاح کولی شي او که چېرته په دار الاسلام کښې وي نو د قاضي له جلا کولو وروسته د دوباره نکاح لپاره ورته د درېو حیضونو تیرول لازمي دي او د درېو حیضونو له تیرولو مخکښې ئې نکاح جائز نه دی۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و لو اسلم احدهما ان احد المجوسین او امرأة الکتابی ثمة ای فی دار الحرب و ملحق بها کالبحر الملح لم تبن حتی تحیض ثلاثاً او تمضی ثلاثة اشهر قبل اسلام الآخر اقامة لشرط الفرقة مقام السبب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۹۰، کتاب النکاح)

## باب المهـــر
## (د حق مهر احــــکام او مسئلې)

### لـــــه رخصتی څخه مخکښې د طلاق په ورکولو ســـره نجلۍ ته د څـــه پیسو د ورکولو حکم

**سوال:** دلته د یوه هلك له یوې نجلۍ سره نکاح وشوه لیکن له کومې وجهې ئې خلوت سره و نه شو بلکه هلك نجلۍ ته طلاق ورکړ. اوس که چېرته دا هلك د نجلۍ خپلوانو ته څه پیسې ورکړي نو دا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نکاح په وخت کښې مهر مقرر شوی وي نو له دخول څخه مخکښې د طلاق په صورت کښې د مهر مسمّیٰ نیمایي لازم دی او که چېرته مهر نه وي تاکل شوی نو بیا متعه ورکول لازمي دي. بیا هم که چېرته د هلك خپلوان د ځان له خوا څخه له مهر مسمّیٰ پرته څه روپۍ نجلۍ او یا د هغې خپلوانو ته د هدیې په توګه ورکړي نو دا به ډېره بهتره وي.

قال العلامة برهان الدين المرغيناني رحمه اللّٰه: و من سمى مهراً عشرة فما زاد فعليه المسمى ان دخل بها او مات عنها....... و ان طلقها قبل الدخول و الخلوة فلها نصف المسمىٰ........ قال و ان تزوجها و لم يسم لها مهراً و تزوجها علىٰ ان لا مهر لها فلها مهر مثلها ان دخل بها او مات عنها....... و لو طلّقها قبل الدخول بها فلها المتعة. (الهداية ج۲، ص۳۰٤، باب المهر)

قال اللّٰه تبارك و تعالىٰ: لَاجُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً. وَ مَتِّعُوْهُنَّ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَ عَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ مَتَاعاً بِالْمَعْرُوْفِ حَقّاً عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ. وَ اِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَ قَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ. (سورة البقرة، پ۲، آیت۲۳٦) و مثله فى الهندية ج۱، ص۳۰۳، كتاب النكاح، باب المهر.

### د مهـــــر کمه اندازه

**سوال:** په اسلامي شریعت کښې د مهر کم تر کمه اندازه څومره ده او قیمت به ئې څومره وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر کم تر کمه اندازه لس درهمه ده چه وزني مقدار ئې تقریباً ۳۵ ګرامه سپین زر جوړېږي. او قیمت ئې د هغه د رائج الوقت قیمت په اعتبار سره به وي.

قال فى الهندية: اقل المهر عشرة دراهم مضروبة او غير مضروبة حتى يجوز وزن عشرة تبراً و ان كانت قيمته اقل. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۰۲، الفصل الاول فى بيان ادنى مقدار المهر)

قال العلامة ابو بكر الكاسانيؒ: و اما بيان ادنى المقدار الذى يصلح مهراً فادناه عشرة دراهم او ما قيمته عشرة دراهم. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۷۵، فصل و اما بيان ادنى المقدار)



### د مهر فـــــاطمي اندازه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مهر فاطميؓ (د حضرت فاطمه الزهراء حق مهر) څومره وه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول اللّٰهﷺ د هرې مبارکې لور حق مهر ٤۸۰ درهمه وه کومه چه د موجوده نظام اوزان په مطابق ۱.٦۳۲۹٦ کیلو سپین زر جوړېږي او یا د رائج الوقت روپو په حساب سره د هغه قیمت لره اعتبار دی.

قال عمر ابن الخطاب رضى اللّٰه تعالىٰ عنه ما علمت رسول اللّٰهﷺ نكح شيئاً من نسائه و لا انكح شيئاً مّن بناته على اكثر من ثنتى عشرة اوقيةً هٰذا حديث حسن صحيح. (ترمذى ج۱، ص۱٦۵، باب ما جاء فى مهور النساء)

و ذكر الامام ابو داؤد السجستانيؒ: عن ابى العجفاء قال خطبنا عمرؓ فقال الا لا تغالوا بصدق النساء فانها لو كانت مكرمةً فى الدّنيا او تقوىً عندا للّٰه كان اولاكم بها النبىﷺ ما اصدق رسول اللّٰهﷺ امراة نسائه و لا اُصدقت امرأة من بناته اكثر من ثنتى عشرة اوقيةً. (ابو داؤد ج۱، ص۲۹٤، باب الصدق)

### لــــه حلاله نه وروسته په نکاح کښې د مهر تاکــــل لازم دي

**سوال:** کوم سړی چه د مغلظ طلاق نه وروسته شرعي حلاله کوي او دوباره نکاح کول غواړي نو هغه ته دوباره مهر مقررول ضروري دي او که مخکښینی مهر کفایت کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر تاکنه د نکاح په تړلو پورې اړه لري. کله چه نکاح تړل کیږي نو مهر به تاکل کیږي که هغه له خپلې مطلقې سره د شرعي حلالې نه وروسته نکاح وي او که له کومې بلې ښځې سره نکاح تړل وي. له دې وجهې په صورت مسئوله کښې به دوباره مهر تاکي او که نه نو مهر مثل به لازمي وي.

قال العلامة الحصكفىؒ: و كذا يجب مهر المثل فيما اذا لم يسم مهراً او نفى ان وطئ الزوج او مات عنها اذا لم يتراضيا على شىء يصلح مهراً و الا فذلك الشىء هو الواجب. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳٦۳، باب المهر)

قال العلامة القاضى خانؒ: المهر يتكرر با لعقد مرة و با لوطى اخرىٰ يتكرر بهما. (فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۳۹۲، فصل فى تكرار المهر)

### د متعددو ازواجو په صورت کښې په مهر کښې د برابروالي مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ اوریدلي دي چه که د یوه سړي له یوې څخه زیاتې ښځې وي نو د هغوی تر منځه مساوات یعنې برابروالی شرعا ضروري ده نو آیا په مهر کښې به هم د مساواتو لحاظ کوي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د ښځو د حقوقو په خیال ساتلو سره سړي ته له یوې ښځې څخه د زیاتو ښځو تر منځه د مساوات حکم ورکړی دی لیکن دا مساوات په خوراك، څښاك، لباس، استوګنه او د شپې په تیرولو کښې دی. په مهر کښې دا برابروالی نه جاري کیږي. له دې

وجهې مهر تاکل یوائې د سړي کار نه دی بلکه د دوی تر منځه د رضامندۍ مسئله ده نو ځکه د ګنو ښځو تر منځ په مهر کښې تفاوت د ګناه موجب نه دی.

قال العلامة ابن نجیم المصری: یجب علیه التسویة بین الحرتین او الامتین فی الماکول و المشروب و الملبوس و السکنٰی و البیتوتة. (البحر الرائق ج۳، ص ۲۳۴، باب القسم)

قال العلامة القاضی خانؒ: و ما یجب علی الازواج للنساء العدل و التسویة بینهنّ فیما یملك و هو البیتوتة عندها للصُحبة و المؤانسة لا فیما لا یملك. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص ۴۳۹، فصل فی القسم) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص ۳۳۲، فصل و منها وجوب العدل بین النسآء.

## په حق مهر کښې د نقدو روپو په ځای د زمکې او د اسې نورو د ورکولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په علاقه کښې دا رواج دی چه خلك په مهر کښې د نقدو روپو په ځای کور، زمکه او یا د سرو زرو ګینړې ورکوي نو آیا د نقدو په ځای د نوموړي شیانو ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مهر کښې د هر هغه شي ورکول جائز دي چه بنفسه مال وي. په صورت مسئوله کښې چونکه نوموړي شیان مال متقوم دي له دې وجهې د دغو شیانو په مهر کښې ورکول جائز دي.

و فی الهندیة: المهر انما یصح بکل ما هو مال متقوم. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۳۰۲، الفصل الاوّل فی بیان ادنٰی مقدار المهر و بیان ما یصلح مهراً......)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: منها ان یکون المسمّٰی مالاً متقوماً. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۲۷۷، فصل و اما بیان ما یصح تسمیة مهر)

## د نکاح له انعقاد نه وروسته په مهر کښې د زیاتوالي د راوستلو حکم

**سوال:** آیا د نکاح له انعقاد نه وروسته میړه په مهر کښې زیاتوالی کولی شي او که نه؟ او که چېرته ئې وکړي نو ښځه د همدې زیاتوالي غوښتنه کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه له نکاح څخه مخکښې په مهر کښې کمی او زیاتوالی کیدلی شي همداسې د نکاح له انعقاد څخه وروسته خاوند په مهر کښې زیاتوالی کولی شي او ښځه هم د دې زیاتوالي د غوښتنې حق لري.

و فی الهندیة: الزیادة فی المهر صحیحة حال قیام النکاح....... فاذا زادها فی المهر بعد العقد لزمته الزیادة کذا فی السراج الوهاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۳۱۲، الفصل السابع فی الزیادة فی المهر و الحط عنه و فیما یزید و ینقص)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: (تحت قوله و ما فرض بعد العقد او زید لا یتنصف) دل وضع المسئلة علی جواز الزیادة فی المهر بعد العقد و هی لازمة لهٗ بشرط قبولها فی المجلس علی الاصح. (البحر الرائق ج۳، ص ۱۴۸، باب المهر)



## له خپل حیثیت څخه د زیات مهر د تاکلو حکم

**سوال:** کوم سړی چه د نکاح په وخت کښې له خپل حیثیت څخه زیات مهر مقرر کړي نو د هغه د دې عمل حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر په تاکنه کښې سړی باید خپل حیثیت ته وګوري. رسول اللّٰه ﷺ په مهر کښې زیاتوالی نه دی خوښ کړی له دې وجهې له خپل حیثیت څخه زیات مهر تاکل ښه کار نه دی لیکن له تاکلو نه وروسته د خاوند په ذمه باندې د مهر اداکول ضروري دي.

قال رسول اللّٰه ﷺ لا تغالوا صدقة النسآء. (مشکوٰة ص ۲۷۷، باب الصداق)

قال المفتی عزیز الرحمٰن رحمه اللّٰه: د زیات مهر تاکل ښه نه دي ګڼل شوي. (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۸، ص ۲۴۱، مسائل و احکام مهر)

## ښځه به د خپل مهر غوښتنه له چا څخه کوي

**سوال:** دلته په صوبه سرحد کښې د ځوانانو او پیغلو ودونه د هغو والدین کوي نو آیا ښځه به د مهر غوښتنه له خاوند څخه کوي او که به له خُسر څخه یعنې چا چه هغې له خپل زوی ته په نکاح کړې ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مهر د زوجیت د منفعت عوض دی کوم چه شرعاً د خاوند په ذمه واجب دی. په صورت مسئوله کښې که چېرته د هلك پلار د مهر د ضمان ذمه پخپله غاړه اخیستې وي نو ښځه د خاوند او خُسر له دواړو څخه د مهر مطالبه کولی شي. او که نه وي نو د مهر غوښتنه به یوائې له خاوند څخه کیږي.

و فی الهندیة: زوج ابنة الصغیرة او الکبیرة و هی بکر او مجنونة رجلاً او ضمن عنه مهرها صح ضمانه ثم هی با لخیار ان شاء ت طالبت زوجها او ولیها ان کانت اهلاً لذٰلك و یرجع الولی بعد الاداء علی الزوج ان ضمن بامره. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۳۲۶، الفصل الرابع عشر فی ضمان المهر)

و قال العلامة الحصکفیؒ: (و تطالب ایا شاء ت) من زوجها البالغ او الولی الضامن. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۳۸۷، مطلب فی ضمان المهر) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۲، ص ۲۴۴، مسائل و احکام مهر.

## د ښځې وارثان د ښځې له خاوند څخه د مهر مطالبه کولی شي

**سوال:** یوې ښځې لره خپل خاوند طلاقه کړه. له طلاق نه وروسته ئې له خپل لیور سره نکاح وکړه. اوس نوموړې ښځه مړه شوې ده نو آیا د ښځې وارثان د ښځې له دواړو خاوندانو څخه د مهر غوښتنه کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نکاح څخه وروسته مهر د ښځې حق دی کوم چه په هر وخت کښې ئې ترې غوښتلی شي. چونکه دې ښځې له دوو سړو سره یو په بل پسې نکاح کړې ده له دې وجهې که چېرته دواړو د هغې د وفات تر وخته پورې مهر نه وي ادا کړی نو د هغوی په ذمه

باندې د ښځې مهر لازم دی او د ښځې له وفات څخه وروسته د ښځې وارثان له دواړو څخه د ښځې د مهر غوښتنه کولی شي۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: افاد ان المهر وجب بنفس العقد. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۸، باب المهر)

قال العلامة الکاسانیؒ: المهر فی النکاح الصحیح یجب با لعقد لانهٗ احدث الملك و المهر یجب بمقابلة احداث الملك. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۸۷، فصل و اما بیان ما یجب المهر) و مثله فی فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۹۲، فصل فی تکرار المهر.

## مهر د ښځې وارثانو ته ورکول کیدلی شي

**سوال:** که چېرته یوه ښځه د خاوند په کور کښې مړه شي او والدین یا نور خپلوان ئې له خاوند څخه د مهر مطالبه وکړي نو آیا مهر به ئې وارثانو ته ورکول کیږي او که خاوند به ئې ډیر حقدار وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ئې مهر د خاوند په ذمه باندې قرض وي نو د ښځې له وفات نه وروسته به مهر د میراث په توګه ویشل کیږي چه د ښځې میړه، اولاد او والدین ټول شریك دي نو له دې وجهې به نه مهر ټول د خاوند وي او نه به ټول خپلوانو ته ورکول کیږي۔

قال العلامة الکاسانیؒ: و منها الارث من الجانبین جمیعاً لقوله عزّ و جل وَ لَکُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُکُمْ الی قوله عزّ و جلّ: وَ لَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَکْتُمْ مِّنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْدَیْن. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۳۲، فصل و منها الارث)

قال العلامة المفتی عزیز الرحمٰنؒ: د هندې چه کوم مهر د میړه په ذمه دی هغه به نیم د میړه وي او نیم به د هندې د والدینو وي۔ زید پخپله برخه کښې اختیار لري چه خیرات کوي ئې او که نه۔ د والدینو برخه باید پخپله والدینو ته ورکول شي۔ (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۸، ص۲۱۴، فصل اوّل مسائل و احکام مهر)

## د نابالغ د مهر حکم

**سوال:** یوه سړي په کوچنیوالي کښې خپل زوی ته واده وکړ نو آیا د ښځې مهر به د نابالغ خاوند په ذمه باندې واجب وي او که به د هلك په پلار باندې واجب وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر د وجوب لپاره بلوغ شرط نه دی بلکه مهر په نکاح پورې اړه لري یعنې له ځا سره چه نکاح شوی دی مهر به په هغه باندې واجب وي که هغه بالغ وي او که نابالغ۔ اګر که پلار د مهر ضامن کیدلي شي۔

و فی الهندیة: و اذا زوّج ابنه الصغیر امرأة و ضمن عنه المهر و کان ذٰلك فی صحته جاز اذا قبلت المرأة الضمان و اذا ادّی الابّ ذٰلك ان کان الاداء فی حالة الصحة لا یرجع علی الابن بما ادّی استحساناً الاّ اذا کان بشرط الرجوع فی اصل الضمان. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۲۶، الفصل الرابع عشر فی ضمان المهر)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و تطالب ایّا شاء ت) من زوجها البالغ او الولی الضامن. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۷، مطلب فی ضمان الولی المهر)



## د جرګې په ذریعه د طلاق د اخیستلو په صورت کښې د مهر غوښتنه

**سوال:** ځینې ښځې د کور د شخړو له وجهې له خاوند څخه د جرګې په ذریعه طلاق غواړي نو آیا د طلاق له اخیستلو نه وروسته ښځه د مهر غوښتنه کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د طلاق د ورکولو په وخت کښې ئې خاوند د مهر د معاف کولو شرط لګولی وي او ښځې قبول کړي وي نو بیا هغه د مهر د غوښتنې حق نه لري او که چېرته د طلاق په وخت کښې د اسې کوم شرط نه وي لګول شوی او نه ښځې خپل مهر معاف کړی وي نو مهر ئې حق دی او غوښتنه ئې کولی شي۔

قال ابن عابدینؒ: افاد انّ المهر وجب بنفس العقد...... انما یتاکد لزوم تمامه با لوطی و نحوه. (رد المحتار ج۲، ص۳۵۸، باب المهر)

و فی الهندیة: امرأة قالت لزوجها اخلعی او قالت خو یشتن خریدم فقال الزوج مجیباً لها انت طالق صار بمنزلة قوله خلعت هکذا ذکر فی النوازل و الفتوی علی انه اراد به الجواب یکون جواباً و لو قال فروختم بیك طلاق و یکون جوابا بدون النیّة و بعد اسطر..... و هل یبرأ الزوج عن المهر اختلفوا فیما بینهم قال بعضهم لا یبرأ و هو الاصح. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۹۱، الفصل الاول فی شرائط الخلع و حکمه و ما یتعلق به) و مثله فی فتاوی دیوبند ج۸، ص۲۱۵، مسائل و احکامِ مهر.

## جبراً د مهر د معاف کولو حکم

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د جبر او اکراه له مخې مهر معاف کړي نو آیا مهر به معاف کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د الٰهي نص په تقاضا سره د مهر د معافی لپاره طیب نفس ضروري دی۔ په جبر او اکراه سره په چا باندې د مهر په معاف کولو سره مهر نه معاف کیږي۔

لقوله تعالٰی: فَاِنْ طِبْنَ لَکُمْ عَنْ شَیْءٍ مِّنْهُ نَفْساً فَکُلُوْهُ هَنِیْئاً مَّرِیْئاً. (سورة النسآء، آیت ۴)

قال الشیخ المفتی محمد شفیع رحمه اللّٰه: په ننني دور کښې لکه څرنګه چه ښځې د امنې چه خپل مهر ئې لاس ته نه ورځي۔ که چېرته ئې غوښتنه وکړي یا ئې ورته معاف نه کړي نو زړه بد والی منځ ته راځي۔ نو له دې وجهې ئې په نه زړه سره معاف کوي۔ د اسې معافي هیڅ اعتبار نه لري۔ (معارف القرآن ج۲، ص۲۹۸، سورة النساء)

## د مهر په مقدار کښې د اختلاف د پیدا کیدو حکم

**سوال:** که چېرته کله د میړه او ښځې تر منځ د مهر په مقدار کښې اختلاف پیدا شي او شرعي دلیل له یوه سره هم نه وي نو آیا په دواړو کښې به د کوم یوه خبره معتبره وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح په معامله کښې اصل مهر مثل دی۔ کله چه د ښځې او میړه تر منځه د مهر په مقدار کښې اختلاف پیدا شي او دلیل له یوه سره هم موجود نه وي نو په

د اسې متنازع صورت کښې به فیصله په مهر مثل باندې کیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و قالا یقضی بمهر المثل کحال حیاة و به یفتی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۹۳، باب المهر)

و فی الهندیة: اذا اختلف الزوجان فی قدر المهر حال قیام النکاح عند ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالی یحکم مهر المثل. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۱۹، الفصل الثانی عشر فی اختلاف الزوجین فی المهر) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۳۰۵، فصل و اما حکم اختلاف الزوجین فی المهر.

## د محکمې په ذریعه د مهر د کمولو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی مفلس او غریب وي او د نکاح په وخت کښې د نجلۍ خپلوانو مهر زیات مقرر کړی وي نو اوس که چېرته هغه د عدالت په ذریعه د مهر کمول وغواړي نو آیا کمولی ئې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر تاکنه د خاوند او ښځې په رضا او رغبت سره کیږي۔ د تاکلو نه وروسته چه کله مهر یو ځل متاکد او متقین شي نو د ښځې له رضا پرته عدالت او جرګه مهر نه شي کمولی او نه ئې ختمولی شي۔ په خاوند باندې ئې ادا کول لازم دي۔

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: فالمهر یتاکد باحد معان ثلاثة....... لا یسقط بعد ذلک الاّ بالابراء. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۹۱، فصل بیان ما یتاکد به المهر)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و اما المسمی فانّما قام مقامه للتراضی به ثم عرف المهر فی العنایة بانهٗ اسم للمال الذی یجب فی عقد النکاح علی الزوج فی مقابلة البضع اما بالتسمیة او بالعقد. (ردّ المحتار ج۲، ص۳۵۷، باب المهر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۰۳، الفصل الثانی فیما یتاکد به المهر و المتعة.

## د مهر په تاجیل او تعجیل کښې عرف لره اعتبار دی

**سوال:** که چېرته د نکاح په وخت کښې د مهر د تاجیل او تعجیل څه ذکر نه وي شوي نو آیا ښځه دا حق لري چه مهر فوراً وغواړي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم مهر چه د نکاح په وخت کښې د تاجیل او تعجیل ذکر نه وي شوی نو په داسې صورت کښې به مهر د عرف په تابع کیدو سره چه څومره مال مؤجل ورکول کیږي ښځه د هغومره حق مهر غوښتنه کولی شي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و لها منعه عن الوطی و السفر بها و لو بعد وطءٍ و خلوة رضیتهما لاخذ ما بین تعجیله او قدر ما یعجل لمثلها عرفاً و ان لم یؤجل. قال الحصکفیؒ به یفتی لان المعروف کالمشروط. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۹، باب المهر)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: اذا کان المهر معجلاً بان تزوجها علی صداق عاجل او کان مسکوتاً عن التعجیل و التاجیل لا حکم المسکوت حکم المعجل لان هٰذا عقد معاوضة فیقتضی المساوات من الجانبین و المرأة لمیت حق الزوج فیجب ان یعین الزوج حقها و انما یتعین بالتسلیم. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۸۸، فصل و اما بیان ما یجب به المهر و بیان وقت وجوبه)



## له رخصتۍ (د خاوند کورته له تګ) څخه مخکښې د میړه په وفات باندې ښځه د ټول مهر حقداره ده

**سوال:** که چېرته د کومې ښځې خاوند له هغې سره تر یو ځای کیدو مخکښې مړ شي نو آیا ښځه به د پوره مهر حقداره وي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مرګ یوه داسې حادثه ده چه د هغه په وجه سره مهر متاکد کیږي لهٰذا د صورت مسئوله مطابق که چېرته د رخصتۍ څخه مخکښې د یوې ښځې خاوند مړ شي نو ښځه د نکاح په وخت کښې د تاکل شوي مهر پوره حقداره ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یتأکد عند وطء او خلوة صحت من الزوج او موت احدهما الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۵۸، باب المهر)

قال فی الهندیة: و المهر یتأکد باحد معان ثلاثة الدخول و الخلوة الصحیحة و موت احد الزوجین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۰۳، الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر و المتعة)

## د لور د مهر په پیسو باندې لورته د جهیز د سامان اخیستلو حکم

**سوال:** په ځینو علاقو کښې رواج دی چه پلار د لور مهر اخلي او د لور لپاره د جهیز سامان پرې اخلي نو آیا شرعاً د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر په پیسو باندې د لور لپاره د سامان اخیستل جائز دي او دا سامان به د هغې ذاتي ملکیت ګڼل کیږي د پلار په دې قبضې سره ئې د خاوند ذمه فارغیږي۔

قال ابن عابدینؒ: و فیها قبض الاب المهر و هی بالغة اولا و جهزها او قبض مکان المهر عینا لیس لها ان لا تجیز لان ولایة قبض المهر الی الاباء و کذا التصرف فیها. (ردّ المحتار ج۲، ص۵۰۸، باب المهر قبیل باب النکاح الرقیق)

قال العلامة المفتی عزیز الرحمٰنؒ: د لور د سامان لپاره پلار څه برخه ترې اخیستل او بیا ئې مصرفول ورته جائز دي۔ (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۸، ص۲۴۳، مسائل و احکام مهر)

## د جهیز شـــــرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا مونږ له ډیر خلکو څخه دا خبرې اورو چه د جهیز لعنت زمونږ په سرونو باندې پیتی دی نو آیا دا واقعي یو لعنت دی او که په شریعت کښې ئې څه ثبوت هم شته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یو پلار چه کله د خپلې لور د واده کولو اراده ولري نو سنت طریقه دا ده چه د خپل وسعت مطابق څه ناڅه سامان په جهیز کښې ورکړي۔ رسول اللهﷺ حضرت فاطمې رضی الله عنها ته د ودیدو په وخت کښې جهیز ورکړی وو۔ بیا هم له خپل طاقت څخه د زیاتو شیانو اخیستل مناسب نه دي۔

عن علیؓ رضی الله عنه ان رسول اللهﷺ لما زوّجه فاطمةؓ بعث معها بخمیلة و وسادة اُدمٍ حشوها لیف و

رحائین و سقائین...... الحدیث. (الاصابة ج٤، ص۳۷۹)

له حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی چه کله نبي کریم ﷺ حضرت فاطمه رضی الله عنها ما ته واده کړه نو په جهیز کښې ئې یو څادر او یوه ګدۍ چه په منځ کښې ئې د خُرما د ونې پاڼې وې او دوه چکۍ او دوه مشکونه ورکړي وو۔ (امداد الاحکام ج۲، ص۳۷۱، باب المهر)

عن عليٍ رضی الله عنه قال جهّز رسول الله ﷺ فاطمةً فی خمیل و قربة و وسادة حشوها ادخر. (سنن النسائی ج۲، ص۹۲، جهاز الرجل ابنته)

## د جهیز د سامان د ملکیت حکم

**سوال:** د نجلۍ والدین کوم چه د جهیز سامان خپلې لور ته د ودیدو په وخت کښې ورکوي نو دا سامان به د چا ملکیت وي د نجلۍ او که د میړه ئې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جهیز دا سامان د ورکوونکو تر نیت پورې اړه لري۔ که چېرته هغو هلك ته ورکړي وي نو بیا به د هلك ملکیت وي او که چېرته ئې نجلۍ ته ورکړي وي نو بیا به نجلۍ ملکیت وي۔ چونکه دا سامان په عمومي توګه خلك خپلې لور ته ورکوي نو له دې وجهې د عدم نیت په صورت کښې به دا سامان د نجلۍ ګڼل کیږي۔

قال فی الهندیة: لو جهز ابنته و سلمه الیها لیس لهٗ فی الاستحسان استرداده و علیه الفتوی...... و اذا بعث الزوج الی اهل زوجته اشیاء عند زفافها منها دیباج فلما زفت الیه اراد ان یسترد من المرأة الدیباج لیس لهٗ ذٰلك اذا بعث الیها علی جهة التملیك کذا فی الفصول العمادیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۲۷، الفصل السادس عشر فی جهاز البنت)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: "سئل" فیما اذا زوّجا بنتهما البالغة و جهّزها بجهاز سلماه منها فی صحتهما ثم ماتا عنها و عن ورثة غیرها یریدون قسمة الجهاز بینهم مع البنت فهل لیس لهٗ ذٰلك. الجواب "نعم". (تنقیح الحامدیة ج۱، ص۲۶، مسائل الجهاز) و مثله فی جامع الفصولین ج۱، ص۱۹۲، فی الفصل العشرون فی دعوی النکاح.

## د مهر له معاف کولو نه وروسته دوباره غوښتنه

**سوال:** دلته زمونږ په کلي کښې یوې ښځې خپل مهر میړه ته معاف کړی وو او د کورنۍ شخړې له وجهې خبره طلاق ته ورسیده نو آیا دا ښځه دوباره خپل مهر له خاوند څخه غوښتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه ښځه په رضا او رغبت سره یو ځل خپل مهر معاف کړي نو بیا دوباره د غوښتنې حق نه لري۔ له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د ښځې دوباره د خپل مهر غوښتنه صحیح نه ده۔

و فی الهندیة: للمرأة ان تهب مالها لزوجها من صداق دخل بها زوجها او لم یدخل و لیس لاحد من اولیائها ابٌ و لا غیره الاعتراض علیها. (الفتاوی الهندیة ج۸، ص۳۱۶، الباب السابع فی المهر، الفصل العاشر فی هبة المهر)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (و صح حطها) لکُلّه او بعضه (عنه) قبل اولاد الخ. قال العلامة ابن عابدین



رحمه الله تحت هٰذه العبارة (و صح حطها) و قید بحطها لان حط ابیها غیر صحیح لو صغیرةً و لو کبیرة توقف علی اجازتها و لا بد من رضاها. (الدر المختار مع رد المحتار ج۳، ص۱۱۳، باب المهر، مطلب فی حط المهر و للابواء منه) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۰۵، باب المهر.

## د مهر په معاف کولو سره د وارثانو اعتراض

**سوال:** آیا ښځه خپل میړه ته مهر بخښلی شي او که نه؟ که چېرته ئې بخښلی شي نو آیا له بخښلو نه وروسته د ښځې پلار او یا د نورو خپلوانو اعتراضونه به معتبر وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې ښځه د خپل مهر مالکه ده او خپل مهر په هرې طریقې سره استعمالولی شي که میړه ته ئې بخښي او که ئې بل چا ته په هدیه ورکوي پلار او نور خپلوان ئې د اعتراض حق نه لري۔

و فی الهندیة: للمرأة ان تهب مالها لزوجها من صداق دخل بها زوجها او لم یدخل و لیس لاحد من اولیائها ابٌ و لا غیره الاعتراض علیها. (الفتاوی الهندیة ج۸، ص۳۱۶، الباب السابع فی المهر، الفصل العاشر فی هبة المهر)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (و صح حطها) لکُلّه او بعضه (عنه) قبل اولاد الخ. قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت هٰذه العبارة (و صح حطها) و قید بحطها لان حط ابیها غیر صحیح لو صغیرةً و لو کبیرة توقف علی اجازتها و لا بد من رضاها. (الدر المختار مع رد المحتار ج۳، ص۱۱۳، باب المهر، مطلب فی حط المهر و للابواء منه) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۳۰۵، باب المهر.

## تر خلوت صحیحه وروسته به نامرده خاوند تول مهر ورکوي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په کلي کښې څو کاله مخکښې یو هلك واده وکړ۔ له واده نه وروسته د هغه په اړه دا ثابته شوه چه نامرده دی په داسې حال کښې چه دې ښځې د شپې وختې خپل خاوند ته ځان حواله کړی وو نو آیا اوس له طلاق نه وروسته ښځې ته به نیم مهر ورکوي او که تول؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر تاکید یوائې په دخول پورې اړه نه لري بلکه د ښځې خپل ځان خاوند ته په حواله کولو سره هم مهر مؤکد کیږي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه ښځې خپل ځان خپل خاوند ته حواله کړی دی نو له دې وجهې د تول مهر حقداره ده۔

و فی الهندیة: و خلوة المجبوب خلوةٌ صحیحةٌ عند ابی حنیفةؒ و خلوة العنین و الخصیّ خلوة صحیحة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۰۵، الباب السابع فی المهر، الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر و المتعة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و اذا خلا المجبوب بامرأته ثم طلّقها فلها کمال المهر عند ابی حنیفةؒ و قال علیه نصف المهر لانه اعجز من المریض بخلاف العنین...... لان الحکم ادبر علی سلامة الاله الخ. (الهدایة ج۲، ص۳۰۶، باب المهر) و مثله فی الدر المختار مع رد المحتار ج۳، ص۱۱۷/۱۱۸، باب المهر، مطلب فی احکام الخلوة.

## په دې خبرې سره چه "تا ته مې خلع درکړې ده" د مهر د سقوط حکم

**سوال:** که چېرته يو سړی خپلې ښځې ته دا الفاظ ووايي چه ما تا ته خلع درکړې ده ليکن د خلع عوض ذکر نه کړي او ښځه ئې قبوله هم کړي نو آيا په دې سره مهر ساقطيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خلع سره چونکه د خاوند او ښځې حقوق ساقطيږي ليکن که چېرته ښځې خپل مهر نه وي وصول کړی نو د خلع په قبلولو سره ئې مهر د خاوند له ذمې څخه ساقطيږي او که چېرته ئې وصول کړی وي نو بيا د خلع په قبلولو کښې هيڅ هم پرې نه لازميږي يعنې په ښځې باندې د مهر واپس کول نه لازميږي ځکه چه د خلع په سوال کښې د خلع بدله نه ده ذکر شوې۔

و فی الهندية: و اذا خالعها علی مال مسمی معروف سوی الصداق فان كانت المرأة مدخولاً بها و المهر مقبوضاً فانها تسلم الی الزوج بدل الخلع و لا يتبع احدهما صاحبه بعد الطلاق بشیء و ان كان المهر غير مقبوض فا لمرأة تسلم الی الزوج بدل الخلع و لا ترجع علی الزوج بشیء من المهر الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۴۸۹، الباب الثامن فی الخلع...... الخ)

قال العلامة قاضيخانؒ: و امّا حكم المهر فان كانت المرأة مدخولة فقد قبضت المهر يلزمها البدل و لا يرجع احدهما علی صاحبه بشیء فی قولهم. (فتاوی قاضی خان ج۲، ص۲۵۶، باب الخُلع) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۲، ص۱۰۱، الفصل الثالث فی الخلع.

## د زوم له خپلوانو څخه د واده د مصرف اخيستلو حکم

**سوال:** ځينې خلک د نجلۍ د ورکولو نه وروسته د هلك له خپلوانو څخه د مختلفو رواجونو تر نامه لاندې د واده خرڅه او د اسې نور شيان اخلي نو آيا شرعا د اسې عمل جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نکاح کښې د نجلۍ د ورکولو له وجهې د هلك او يا د هغه له خپلوانو څخه د رسوماتو په بهانه د واده خرڅه او د اسې نور شيان اخيستل ناجائز او حرام دي۔ که چېرته ئې پيسې اخيستي وي نو واپس کول ئې ورته لازم دي۔ بيا هم نکاح ترې نه متاثره کيږي۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه: و من اسخت ما يأخذه الصهر من الختن بسبب بنته بطيب نفسه حتی لو كان بطلبه يرجع الختن. (ردّ المحتار ج۵، ص۳۰۱، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البيع)

قال العلامة الحصكفیؒ: اخذ اهل المرأة شيئاً عند التسليم فللزوج ان يسترده لانهٗ رشوة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۹۷، مطلب انفق علی معتدة الغير) و مثله فی الهندية ج۱، ص۳۲۷، الفصل السادس عشر فی جهاز البنت.



## د مهـــــر ډولونه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مهر په څو قسمه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شريعت کښې مهر په دوه قسمه دی۔

﴿۱﴾ **مهر مسمّی:** دا هغه مهر دی چه د نکاح په وخت کښې ئې زوجين او يا د هغوی وکيلان ئې پخپل منځ کښې په رضا او رغبت سره ټاکي۔

﴿۲﴾ **مهر مثل:** دا هغه مهر دی چه د ښځې د خاند ان نورې ښځې مثلاً خوندې، ترندې او د تره د لونړو د مهر په اندازه مقرر کړی شي۔ د امام ابو حنيفةؒ په نزد اصل مهر مهر مثل دی۔

قال الشيخ وهبة الزحيلی: المهر عند الفقهاء نوعان مهر مسمی و مهر مثل. اما المهر المسمی فهو ما سمی فی العقد او بعد با لتراضی.... اما مهر المثل فقد حدرد الحنفية بانه مهر امرأة تماثل الزوجة وقت العقد من جهة ابيها لا امها ان لم تكن من قوم ابيها كاختها و عمّتها و بنت عمّها فی بلدها و عصرها. (الفقه الاسلامی و ادلّته ج۷، ص۲۶۶، رابعاً انواع المهر)

## د مهر اداکول په خاوند باندې واجب دی

**سوال:** د نکاح په وخت کښې که چېرته د بالغ هلك پلار په مهر کښې د ټاکل شوي مال د اداکولو وعده وکړي ليکن د غربت له وجهې ئې اداکولی نه شوای نو آيا د ښځې په خاوند باندې د ښځې مهر واجب دی او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صراحتاً او يا عرفا د هلك له خوا څخه د اجازې په صورت کښې نوموړی مهر په هغه باندې واجب الاداء دی او د مهر د اداکولو اصل ذمه وار خاوند وي۔ بيا هم که چېرته پلار د زوی په ځای باندې په مهر کښې څه شی ورکړي نو هغه مهر ګڼل کيږي۔ په خاوند باندې ئې دوباره اداکول لازم نه دي۔ او که چېرته ئې پلار وعده وکړي او ور ئې نه کړي نو په خاوند باندې ئې لازمي دي چه ټاکل شوی مهر ور اداکړي۔

قال ابن نجيمؒ: اما ولی الزوج الكبير فهو وكيل عنه كا لاجنبی ولايته عليه و لاية استحباب و حكم ضمان مهره كحكم ضمان الاجنبی فان ضمن عنه باذنهٖ رجع و الا فلا. (البحر الرائق ج۳، ص۱۷۵، باب المهر)

قال فی الهندية: و يرجع الولی بعد الاداء علی الزوج ان ضمن بامره هٰكذا فی التبيين. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۳۲۶، الفصل الرابع فی ضمان المهر) و مثله فی الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۲، ص۱۴۱، باب المهر، مطلب فی ضمان الولی المهر.

## له مهر څخه پرته د نکاح حکم

**سوال:** د نکاح د انعقاد په وخت کښې که چېرته د ايجاب او قبول په وخت کښې مهر و نه ټاکل شي نو آيا په دې صورت کښې شرعا نکاح رواکيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر ټاکنه د نکاح له ضرورياتو څخه دی او رکن نه دی۔ لهذا که

چېرته د نکاح په مجلس کښې د ګواهانو په مخکښې په شرعي طريقې سره نکاح تړل شوې وي نو اګر که د مهر یادونه پکښې نه وي شوی نکاح بيا هم صحيح ده ليکن په مېړه باندې له دخول نه وروسته د مهر مثل ادا کول واجبيږي۔

قال العلامة ابن نجيمؒ: (تحت قوله الماتن) صح النكاح بلا ذكره لان النكاح عقد انضمام و ازدواج لغة فيتم با لزوجين ثم المهر واجب شرعا ابانة لشرف المحل فلا يحتاج الى ذكره لصحة النكاح........ و ذكر الاكمل و الكمال انهٗ لا خلاف لاحد فى صحته بلا ذكر المهر. (البحر الرائق ج۳، ص۱٤۲، باب المهر)

قال العلامة العثمانیؒ: عن علقمة قال اتى عبدا لله فى امرأة تزوّجها رجل ثم مات عنها و لم يفرض لها صداقا و لم يكن دخل قال فاختلفوا اليه فقال ارى لها مثل مهر نسائها ثم ذكر ان معقل بن سنان الاشجعى شهد ان النبى ﷺ قضى فى واقعة مثل ما قضيت. رواه الخمسة و صححه الترمذى. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۸۷،) و قال فى الهندية: و ان تزوّجها و لم يسم لها مهرا او تزوجها على ان لا مهر لها فلها مهر مثلها ان دخل بها او مات عنها. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۰٤، الفصل الثانى فيما يتأكد به المهر و المتعة) و مثله فى بدائع الصنائع ج۲، ص۲۷٤، فصل ان لا يكون مجهولا جهالة.

## په تاکل شوي مهر کښې زياتوالی جائز دی

**سوال:** که چېرته د خاوند له خوا ښځه په مهر کښې زياتوالی وشي نو آيا ښځه د همدې زياتوالي حقداره وي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مهر کښې کموالی او زياتوالی دواړه شرعا جائز دي۔ له دې وجهې د ښځې د قبلولو په صورت کښې د خاوند له خوا ښځه په تاکل شوي مهر کښې زياتوالی درست او نافذ دی او ښځه به د هغه مالکه ګڼل کيږي۔

قال فى الهندية: الزيادة فى المهر صحيحة حال قيام النكاح عند علمائنا الثلاثة كذا فى المحيط. فاذا زادها فى المهر بعد العقد لزمته الزيادة. كذا فى السراج الوهاج. هذا اذا قبلت المرأة الزيادة سواء كانت من جنس المهر او لا من زوج او من ولى كذا فى النهر الفائق. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۱۲، الفصل السابع فى الزيادة فى المهر الخ)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه اللّٰه: و دل وضع المسئلة على جواز الزيادة فى المهر بعد العقد و هى لازمة له بشرط قبولها فى المجلس على الاصح. (البحر الرائق ج۳، ص۱٤۸، باب المهر)

## له خاوند څخه له مهر برسېره د نور مال د اخيستلو حکم

**سوال:** له واده څخه مخکښې د نجلۍ خپلوانو ته د مهر نه بغير له هلك څخه څه پيسې او داسې نورو شيانو اخيستل څنګه دي او آيا هلك له واده څخه مخکښې او يا وروسته د هغو روپو او شيانو غوښتنه کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له واده څخه مخکښې د نجلۍ د والدينو او يا نورو خپلوانو لپاره له مهر برسېره له هلك څخه نقدې روپۍ او يا د جنس په شکل کښې نور څه اخيستل حرام او ناجائز دي۔ داسې مال د هلك ملکيت دی او هغه په هر وخت کښې د هغه د واپسۍ غوښتنه کولی شي۔



قال العلامة الحصكفیؒ: اخذ اهل المرأة شيئاً عند التسليم فللزوج ان يسترده لانه رشوة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۱٥٦، آخر باب المهر)

قال فى الهندية: و لو اخذ اهل المرأة شيئاً عند التسليم فللزوج ان يسترده لانهٗ رشوة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۲۷، الفصل السادس عشر فى جهاز البنت) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۱۸٦/۱۸۷، باب المهر.

## د مهر د لاس ته راوړو لپاره ښځه خپل ځان له خاوند څخه منع کولی شي

**سوال:** د مهر د لاس ته راوړو لپاره ښځه خپل ځان خاوند ته له سپارلو څخه منع کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته خاوند ښځې ته مهر معجل ور نه کړي نو د مهر د لاس ته راوړو لپاره ښځه خپل ځان تر هغه وخته پورې له خاوند څخه منع کولی شي تر څو پورې ئې چه مهر ورکړی نه وي۔

قال فى الهندية: فى كل موضع دخل بها او صحت الخلوة و تأكد كل المهر لو ارادت ان تمنع نفسها لاستيفاء المعجل لها ذٰلك عندهٗ خلافاً لهما...... و قبل تسليم النفس لها ذٰلك با لاجماع. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۱۷، الفصل الحادى عشر فى منع المرأة نفسها بمهرها)

قال ابن عابدين رحمه اللّٰه: تحت قول الماتن و لها منعه من الوطى و كذا الولى الصغيرة المنع المذكور حتى يقبض مهرها. (رد المحتار ج۳، ص۱٤۳، مطلب فى منع الزوجة نفسها ليقبض المهر) و مثله فى بدائع الصنائع ج۲، ص۲۸۸، فصل يجب به المهر.

## د مهر په قسطونو سره د اداکولو حکم

**سوال:** که چېرته مهر زيات وي او د خاوند لپاره په يوه ځای اداکول ئې مشکل وي نو آيا په قسطونو ئې اداکولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د نکاح په وخت کښې ټول مهر او يا د ځينې مؤجل او د ځينې معجل (په يوه ځای او يا په قسطونو) باندې ئې د ورکولو فيصله شوې وي نو د فيصلې موافق په عمل کولو کښې هيڅ حرج نشته۔

قال العلامة الحصكفیؒ: ان لم يؤجل او يعجل كله فكما شرط لان الصريح يفوق الدلالة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۱٤٤، مطلب ضمان الولى)

قال فى الهندية: و ان بينوا قدر المعجل يعجل ذٰلك و ان لم يبينوا شيئاً ينظر الى المرأة و الى المهر المذكور فى العقد انه كم يكون المعجل لمثل هٰذه المرأة من مثل هٰذا المهر فيجعل ذٰلك معجلا و لا يقدر با لربع و لا با لخمس و انما ينظر الى المتعارف و ان شرطوا فى العقد تعجيل كل المهر يجعل الكل معجلاً و يترك العرف. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۳۱۸، الفصل الحادى عشر فى منع المرأة نفسها) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۱۷۸، باب المهر.

## د مهر تقلیل (کموالی) مندوب دی

**سوال:** د مهر کوم معیار په کار دی په ځینو علاقو کښې د زیات مهر مقررول د لوئي، عظمت او شرافت علامه ګڼل کیږي په داسې حال کښې چه په ځینو علاقو کښې د مهر کموالی ثواب ګڼل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هلك مالي حالت ته په نظر کولو سره مهر مقررول په کار دي۔ که چېرته د هلك د غربت د معلومیدو سره سره زیات مهر مقرر کړی شي نو دا بیا په هلك باندې د بې ځایه پیټې سره برابره ده۔ بیا هم د مهر د زیات نه زیاتې اندازې لپاره حد مقرر نه دی۔ لیکن سره له دې مهر باید دومره وي چه ادا کول ئې د هلك په طاقت او قدرت کښې وي۔

عن عائشه رضی الله عنها ان رسول اللهﷺ ان اعظم النکاح برکة ایسره مؤنة. رواه احمد. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۸۹، کتاب النکاح)

و عن عائشةؓ عن النبیﷺ قال ان من یمن المرأة تیسر خطبتها و تیسر صداقها و تیسر رحمها. اخرجه الحاکم و غیره بسند حسن قاله الالبانی. (سلسلة الاحادیث الضعیفة ج۳، ص۲۴۴) و مثله رواه احمد و اصحاب السنن الاربعة و الدارمی عن عمر رضی الله عنه. (مشکٰوة المصابیح ج۲، ص۲۷۷)

## د مهر تحدید جائز نه دی

**سوال:** آیا د وخت حاکم او یا د قوم مشران دا حق لري چه د مهر کثیر حد مقرر کړي مثلاً داسې چه هیڅوك هم له لسو زرو روپو څخه زیات مهر نه شي تاکلی او دا ځکه کوي چه خلك له مغالات في المهور (په مهرونو کښې له زیاتوالي) څخه بچ او منع شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مهر حد اکثر او تحدید د قرآن او حدیثو له هیڅ یوه دلیل څخه هم ثابت نه دی بلکه له ځینو آیات کریمه وو څخه ئې تکثیر او له ځینو دلائلو څخه ئې اطلاق معلومیږي۔ لهذا د وخت د حاکم او یا د اهل حل و عقد لپاره جائز نه دي چه د مهر تحدید وکړي۔ بیا دې هم د ذرائع ابلاغو په ذریعې سره د هغه د تقلیل د مسنونیت ترغیب ورکړي او د اقتدار خاوندان، علماء او حکام دې عملي نمونه خلکو ته وړاندې کړي۔

قال الله سبحانه و تعالٰی: وَ اٰتَیْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَیْئًا وَ اٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً. وَ اُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِیْنَ غَیْرَ مُسٰفِحِیْنَ. (سورة النسآء)

قـــال الشیخ وهبة الزحیلی: و قد نبهت امرأة الی هٰذه الایة حینما اراد عمر بن الخطابؓ تحدید المهور فنهی ان یزاد فی الصداق علی اربعمائة درهم و خطب الناس فیه...... فقالت لهٗ امرأة من قریش بعـــد نزوله من علی المنبر لیس ذٰلك الیك یا عمرؓ فقال و لم؟ قالت لان اللّٰـــه تعالٰی یقول وَ اٰتَیْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَیْئًا اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِیْنًا. فقال عمرؓ امرأة اصابت و رجل اخطأ. و رواه ابو یعلی فی الکبیر فقال اللّٰهـــم اغفر کل الناس افقـــه من عمرؓ ثم رجع فرکب المنبر فقال ایُّها الناس انی کنت نهیتکم ان تزیدوا النساء فی صدقاتهن علی



اربعمائة درهـــم فمن شاء ان یعطی مـــن ماله ما احب. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۲۵۶) و مثله فی الفتاوٰ الاسلامیة ج۲، ص۳۳۳، و ابحاث هیئة کبار العلماء ج۲، ص۴۰۹.

## جهیز د چـــا حق دی

**سوال:** د واده په وخت کښې چه کوم مال، سامان او داسې نور والدین له نجلۍ سره د هغې د خاوند کور ته لیږي نو هغه سامان به د چا وي د خاوند او که د ښځې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د والدینو له خوا څخه د واده په وخت کښې چه کوم سامان او داسې نور نجلۍ ته ورکول کیږي اصل حقدار ئې نجلۍ ده او د خاوند ئې له داسې سامان سره هیڅ تعلق نشته۔

قال فی الهندیة: لو جهز ابنته و سلمه الیها لیس له فی الاستحسان استرداده منها و علیه الفتوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۲۷، الفصل السادس عشر فی جهاز البنت)

قال العلامة الحصکفیؒ: جهز ابنته بجهاز و سلمها ذٰلك لیس له الاسترداد و لا لورثته بعده ان سلمها ذٰلك فی صحته بل تختص به. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۱۶۵، مطلب انفق علی معتدة الغیر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۸۷، باب المهر.

## مطلقه (طلاقه شوې ښځه) د مهر حقداره ده

**سوال:** یوه سړي خپلې مدخوله ښځې ته د هغې د بې حیایی له وجهې طلاق ورکړ نو آیا دا ښځه اوس د مهر حقداره ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دخول سره مهر مؤکد ګرځي له دې وجهې له دخول نه وروسته په طلاق ورکولو سره په مهر باندې هیڅ اثر نه پریووزي۔ مطلقه ښځه په اصل کښې د مهر حقداره ده اګر که طلاق په کومې وجهې باندې ورکړ شوی وي۔

قال فی الهندیة: و لمهر یتأکد باحد معان ثلاثة. الدخول و الخلوة الصحیحة و موت احد الزوجین سواء کان مسمی او مهر المثل حتٰی لا یسقط منه شیء بعد ذٰلك الا با لابراء من صاحب الحق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۰۴، الباب السابع فی المهر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یتأکد عند وطی او خلوة صحت من الزوج او موت احدهما. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۱۰۲، باب المهر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۴۳، باب المهر.

## د خاوند له مرګ څخه وروسته هم کونډه د مهر حقداره ده

**سوال:** په ځینو علاقو کښې دا رواج دی چه که چېرته خاوند مړ شي او کونډه ئې له بل چا سره نکاح وکړي نو هغې ته له اول خاوند له خوا څخه مهر نه ورکول کیږي آیا دا شرعاً صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح نه وروسته د خاوند په مرګ سره د ښځې مهر مؤکد ګرځي نو

له دې وجهې کونډه د مهر حقد اره ده که بل ځای نکاح وکړي او که نه.

قال فی الهندیة: و المهر یتأکد باحد معان ثلاثة الدخول و الخلوة الصحیحة و موت احد الزوجین سواء کان مسمّی او مهر المثل حتی لا یسقط منه شیء بعد ذٰلك الا با لابراء من صاحب الحق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۰۴، الباب السابع فی المهر)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یتأکد عند وطء او خلوة صحت من الزوج او موت احدهما. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۱۰۲، باب المهر) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۴۳، باب المهر.

## له دخول څخه مخکښې د طلاق په صورت کښې د مهر اندازه

**سوال:** یوې منکوحې ښځې ته له دخول څخه مخکښې طلاق ورکړی شو نو آیا دا ښځه به د څومره مهر حقداره وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یوې ښځې ته له خلوت صحیحه او جماع نه مخکښې طلاق ورکړی شي نو دا سې ښځه د نیم مهر حقد اره ګرځي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و یجب نصفه بطلاق قبل وطأ او خلوة فلو کان علی ما قیمته خمسة کان لها نصفه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۱۰۴، باب المهر)

قال النسفیؒ: و با لطلاق قبل الدخول یتنصف. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۱۴۴، باب المهر)

## د مهر په ورکولو کښې پلار د زوی له خوا څخه د ضامن کیدلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چېرته پلار د ګواهانو په مخکښې د خپل زوی د مهر د ادا کولو وعده وکړي او د ګواهانو په مخکښې دستخط هم وکړي نو د زوی د وفات په صورت کښې به نجلۍ او یا ئې والدین د هلك له پلار څخه مهر غوښتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې پلار د زوی له خوا څخه د مهر ضامن دی. که چېرته ښځې خپل مهر نه بخښلو نو د هغې د خاوند له وفات نه وروسته ښځه او یا ئې والدین د هلك له پلار څخه د مهر غوښتنه کولی شي.

قال العلامة المرغینانیؒ: و اذا ضمن الولی المهر صح ضمانه ثم المرأة با لخیار فی مطالبتها زوجها او ولیّها الخ. (الهدایة ج۲، ص۳۱۳، باب المهر)



# باب الاولیاء و الاکفاء

# (د ولایت او د کفوې احکام او مسئلې)

## قریشیان د ساداتو کفو دي

**سوال:** آیا هغه قریشي چه سید نه وي د ساداتو کفو دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قریشو ټول خاندان یعني شعوب پخپل منځ کښې سره برابر دي. هیڅ یو ئې په بل باندې د نکاح په معامله کښې کوم فوقیت نه لري. نو له دې وجهې د قریشي ساداتو نکاح د غیر سید قریشي سره جائز دی.

قال ابن عابدینؒ: (تحت قول الحصکفیؒ) فقریش بعضهم اکفاء بعض اشار به الی انهٗ لا تفاضل فیما بینهم من الهاشمی و النوفلی و التیمی و العدوی و غیرهم و لهٰذا زوج علی و هو هاشمی ام کلثوم بنت فاطمة لعمر و هو عدوی. (ردّ المحتار ج۳، ص۸۶، باب الاکفاء)

قال فی الهندیة: فقریش بعضهم اکفاء لبعض کیف کانوا حتٰی ان القریشی الذی لیس بهاشمی کفاء للهاشمی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۹۰، الباب الخامس فی الاکفاء) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۳۰، فصل فی الاکفاء. و بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۹.

## د دیني عالم له لور سره د عامي سړي د نکاح حکم

**سوال:** د یوه عالم دین یا پیش امام له لور سره د غیر عالم نکاح څنګه ده. آیا یو جاهل سړی د عالم د لور کفوه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** علم او یا جهالت د کفو د جوړیدو صفات نه دي نو له دې وجهې که چېرته د کفائت نور اقسام موجود وي نو د ولي په رضا سره غیر عالم د عالم له لور سره نکاح کولی شي.

قال العلامة الکاسانیؒ: لان فی الکفائة حقاً للاولیاء لانهم ینتفعون بذٰلك...... و لو کان التزویج برضاهم یلزم حتٰی لا یکون لهم حق الاعتراض. (بدائع الصنائع ج۳، ص۳۱۸، فصل فی النکاح الذی الکفاءة)

قال ابن نجیمؒ: تحت قول النسفیؒ و رضاء البعض کا لکل ای و رضاء بعض الاولیاء المستوین فی الدرجة کرضاء کلهم حتٰی لا یتعرض احد منهم بعد ذٰلك. (البحر الرائق ج۳، ص۱۲۹، باب الاولیاء و الاکفاء) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب الاولیاء.

## له فاسق سره د نیك سړي په ګومان د خپلوي حکم

**سوال:** یوه سړي په یو بې دینه هلك باندې د صالح ګمان وکړ او خپله نابالغه لور ئې په نکاح ورکړه. له نکاح نه وروسته هلك فاسق وختو نو له دې وروسته ئې د نکاح څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نجلۍ له بلوغ نه وروسته په دې نکاح باندې ناراضتیا

ښکاره کړي او د نجلۍ اکثره افراد صالحان وي نو دا نکاح باطله ده۔ د دواړو تر منځه به جدايي راولي۔

قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله ان عرف لا يصح النكاح) زوج بنته الصغيرة ممن ينكر انه يشرب مسكرًا فاذا هو مدمن له فقالت لا ارضى با لنكاح اى بعد ما كبرت ان لم يكن يعرفه الاب بشر به و كان غلبة اهل بيته صالحين فا لنكاح باطل لانه انما زوج على ظن انه كف آه. (ردّ المحتار ج۳، ص۶۷، باب الاولياء)

قال فى الهندية: رجل زوج ابنته الصغيرة من رجل على ظن انهٗ صالح لا يشرب الخمر فوجده الاب شريباً مدمنا و كبرت الابنة فقالت لا ارضى با لنكاح ان لم يعرف ابوها بشرب الخمر و غلبة اهل بيته الصالحون فا لنكاح باطل و هذه المسئلة با لاتفاق كذا فى الذخيرة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۹۱، الباب الخامس فى الاكفاء) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۱۳۵، فصل فى الاكفاء.

## د غیر سید له سیدۍ سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د يوه غير سيد سړي نکاح له سيدۍ نجلۍ سره کيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د سيدۍ نجلۍ پلار د يوه غير سيد هلك سره په خپلوي کولو باندې عار او شرم نه محسوسوي او نجلۍ هم راضي وي نو د غير سيد سړي له سيدۍ سره د نکاح په کولو کښې شرعا څه حرج نشته۔

قال ابن نجيمؒ: تحت قول النسفىؒ (و رضاء البعض كا لكل) اى و رضاء بعض الاولياء المستوين فى الدرجة كرضاء كلهم حتى لا يتعرض احد منهم بعد ذٰلك. (البحر الرائق ج۳، ص۱۲۹، فصل فى الاكفاء)

قال العلامة الكاسانىؒ: لان فى الكفاءة حقا للاولياء لانهم ينتفعون بذٰلك...... و لو كان التزوج برضاهم يلزم حتى لا يكون لهم حق الاعتراض. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۸، فصل فا لنكاح الذى الكفاءة فيه شرط) و مثله فى ردّ المحتار ج۳، ص۸٤، فصل فى الاكفاء.

## مجنون او لیونی د عاقلې ښځې کفو نه شي جوړیدلی

**سوال:** آيا مجنون او ليونی سړی د عاقلې ښځې کفو جوړيدلی شي او که نه او آيا د مجنون او ليوني نکاح له عاقلې سره روا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جنون يا ليونتوب د اسې شی دی چه د عار او شرم د جوړيدو سبب جوړيږي۔ نو له دې وجهې مجنون سړی د راجح قول مطابق د عاقلې ښځې کفو نه شي جوړيدلی او نکاح ئې هم نه صحيح کيږي۔

قال ابن عابدينؒ: قال فى النهر و قيل لا يعتبر لانه يفوت مقاصد النكاح فكان اشد من الفقر و دناءة الحرفة و ينبغى اعتماده لان الناس يعيرون بتزويج المجنون اكثر من دنئى الحرفة الدنيئة و فى البناية عن المرغينانىؒ لا يكون المجنون كفؤا للعاقلة و عند بقية الائمة هو من العيوب التى ينفسخ لها النكاح. (منحة الخالق على هامش البحر الرائق ج۳، ص۱۳٤، فصل فى الاكفاء)



قال العلامة الحصكفىؒ: فى النهر عن المرغينانىؒ: المجنون ليس بكف للعاقلة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۹۳، فصل فى الاكفاء)

## په نکـــــاح کښې د ولایت ترتیب

**سوال:** په نکاح کښې د ولايت ترتيب څه شی دی اوکوم ولي په بل باندې مقدم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح په ولايت کښې تر ټولو مقدم ولي د ارث او حجب په ترتيب سره عصبه دي۔ بيا هم که چېرته عصبه نه وي نو بيا مور ولي ده۔

قال العلامة الكاسانىؒ: و اما شرط التقدم فشيئان احدهما العصوبة عند ابى حنيفةؒ فتقدم العصبة على ذوى الرحم سواء كانت العصبة اقرب او ابعد....... و عند عدم العصبات تثبت الولاية لذوى الرحم الاقرب منهم يتقدّم على الابعد. (بدائع الصنائع ج۲، ص۲۵۰، فصل شروط التقدم فشيئان)

قال فى الهندية: و عند عدم العصبة كل قريب يرث الصغير و الصغيرة من ذوى الارحام يملك تزويجهما فى ظاهر الرواية....... و الاقرب عند ابى حنيفةؒ الام ثم البنت ثم بنت الابن الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۸٤، الباب الرابع فى الاولياء) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۱۲٤، باب الاولياء و الاكفاء.

## د قریب ولي په موجودوالي کښې د بعید ولي د نکاح حکم

**سوال:** د پلار په موجودوالي کښې چه د يوې نابالغې نجلۍ تره هغې لره په نکاح ورکړي او پلار ئې ناخوښي هم ښکاره کړي نو آيا د اسې نکاح شرعا صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نژدې ولي په موجودوالي کښې که چېرته لرې ولي کومه نجلۍ په نکاح ورکړي نو دا نکاح به د نژدې خپل يا ولي تر اجازې پورې موقوفه وي۔ که چېرته اجازه ورکړي نو نکاح صحيح ده او که چېرته اجازه ور نه کړي نو بيا د اسې نکاح اعتبار نه لري۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د تره له خوا څخه شوې نکاح د پلار د ناخوښي له وجهې صحيح نه ده۔

قال ابن نجيمؒ: و اما اذا كان احدهما اقرب من الآخر فلا ولاية للابعد مع الاقرب الا اذا غاب غيبة منقطعة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۱۹، باب الاولياء و الاكفاء)

قال فى الهندية: و ان زوج الصغير او الصغيرة ابعد الاولياء فان كان الاقرب حاضر و هو من اهل الولاية توقف نكاح الابعد على اجازته. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۸۵، الباب الرابع فى الاولياء) و مثله فى ردّ المحتار ج۳، ص۸۱، باب الاولياء.

## د پـــــلار او نیکه څخه پرته کوم بل ولي د نابالغې نجلۍ له غیر کفو سـره د نکاح کولو حکـم

**سوال:** تره خپله يوه نابالغه وريره يوه فاسق سړي ته په نکاح ورکړه په د اسې حال کښې چه نجلۍ صالحه او نيك سيرته وه نو آيا شرعا دا نکاح صحيح ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فسق چونکه د شرم او حيا د جوړيدو سبب دی نو ځکه صالحه ښځه د

فاسق سړي کفو نه ده او د پلار او نیکه څخه پرته ولیانو لره نابالغه صالحه نجلۍ د فاسق او غیر کفو په نکاح کښې د ورکولو څخه نکاح نه منعقده کیږي بلکه نجلۍ له بالغیدو سره د نکاح د فسخ کولو حق لري۔ که وغواړي نو د انکاح ختمولی شي۔

قال العلامة الکاسانیؒ: و اما انکاح الاب و الجد الصغیر الصغیرة فا لکفائة فیه لیست بشرط للزومه عند ابی حنیفةؒ...... بخلاف انکاح الاخ و العم من غیر الکفؤ انه لا یجوز با لاجماع لانه ضرر محض. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۸، فصل فا لنکاح الذی الکفائة فیه شرط)

قال النسفیؒ: و لو زوج طفله من غیر کفؤ او بغبن فاحش صح و لم یجز ذٰلك لغیر الاب و الجد. (البحر الرائق ج۳، ص۱۳٤، فصل فی الاکفاء) و مثله فی ردّ المحتار ج۳، ص۶۷، باب الاولیاء.

## د یوه ولي د خپل ولایت د حق په استعمالو سره د نورو ولیانو د حق حکم

**سوال:** که چېرته څوك ګڼ شمیر اولیا ولري او په هغوی کښې یوه ولي د خپل حق په استعمالولو سره د چا نکاح وکړي نو آیا له نکاح څخه وروسته ئې نور اولیاء د ردولو حق لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه ښځه د یوې مرتبې ګڼ شمیر اولیاء ولري نو کوم ولي ئې چه مخکښې دې لره په نکاح ورکړې وي هغه نکاح صحیح ده او د نورو اولیاوو ئې په ردولو سره نکاح نه باطلیږي۔

قال ابن نجیمؒ: ثم اذا اجتمع فی الصغیر او الصغیرة ولیان فی الدرجة علی السواء فزوج احدهما جاز اجاز الاوّل او فسخ. (البحر الرائق ج۳، ص۱۱۹، باب الاولیاء و الاکفاء)

قال فی الهندیة: و اذا اجتمع للصغیر و الصغیرة ولیان مستویان کا لاخوین و العمین فایهما جاز عندنا. کذا فی فتاوٰی قاضیخان. (الفتاوٰی الهندیة ج۱، ص۲۸٤، الباب الرابع فی الاولیاء) و مثله فی الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص۸۲، باب الاولیاء.

## د مور لـــــه خوا نیکه چه خپله نابالغه لمسۍ په نکاح ورکړي نو نجـــلۍ د خیار بلوغ حق لـــــري

**سوال:** د مور له خوا څخه نیکه خپله نابالغه لمسۍ په نکاح ورکړه نو له بلوغ نه وروسته نجلۍ د خیار بلوغ حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقه په کتابونو کښې راغلي دي چـــــه پلار او یا نیکه کله چه نابالغه لور یا لمسۍ په نکاح ورکړي نو له بلوغ وروسته نجلۍ بیا د نکاح د فسخ کولو حق نه لري۔ په صورت مسئوله کښـــــې چونکه نوموړې نجلۍ د هغې د مور له خوا نیکه په نکاح ورکړې ده کوم چه د ولایت حق هم نه لري نو له دې وجهې نجلۍ د بالغیدو نه وروسته د خیار بلوغ له وجهې د نکاح د فسخ کولو حق لري۔ بیا هـــــم د نکاح د فسخ کولو حق حاکم او یا قاضي لري یعنې حاکـــــم او یا د قاضي په ذریعې سره به نکاح فسخ کیږي چه له



هغه وروسته بیا نجلۍ پـــــه بل ځای کښې نکاح کولی شي۔

قال النسفیؒ: و لهما خیار الفسخ با لبلوغ فی غیر الاب و الجد بشرط القضاء. (البحرا لرائق ج۳، ص۱۲۰، باب الاولیاء و الاکفاء)

قال ابن عابدینؒ: و حاصله انه اذا کان المزوج للصغیر او الصغیرة غیر الاب و الجد فلها الخیار با لبلوغ او العلم به فان اختار الفسخ لا یثبت الفسخ الا بشرط القضاء. (رد المحتار ج۳، ص۷۰، باب الاولیاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۸۵، الباب الرابع فی الاولیاء.

## په کفائت کښې مالداري ته د اعتبار ورکولو حکم

**سوال:** یو تره خپله نابالغه یتیمه وریره خپل عدیم المال زوی ته په نکاح کړه نو آیا دا نکاح شرعا معتبره ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مختار روایت په بناء د نکاح د صحت لپاره کفائت شرط دی او په کومو شیانو کښې چه کفائت شرط دی په هغو کښې یو شرط مال هم دی۔ په صورت مسئوله کښې که چېرته هلك د مهر معجل او محترف د نشت والي له کبله د یوې میاشتې په نفقې باندې قادر وي او نجلۍ هم له بلوغ نه وروسته راضي وي نو نکاح صحیح ده او که نه نو نه ده صحیح۔

قال ابن عابدینؒ: تحت قوله الحصکفیؒ: (الکفائة معتبرة فی ابتداء النکاح للزومه او لصحته) و هذا بناء علی ظاهر الروایة من ان العقد صحیح و للولی الاعتراض اما علی روایة الحسن المختارة للفتوٰی من انه لا یصح فا لمعنی معتبرة فی الصحة انتهی. و قال العلامة الحصکفیؒ و مالاً بان یقدر علی المعجل و نفقة شهر لو غیر محترف. (رد المحتار ج۳، ص۸٤، باب الکفائة)

و قال ابن نجیم المصریؒ: الفقیر لا یکون کفؤا للغنیة کبیرة کانت او صغیرة الا ن یکون عالماً او شریفاً. (الاشباه و النظائر ج۲، ص۱۶، کتاب النکاح) و مثله فی بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۹، فصل ما تعتبر فیه الکفائة.

## په شریعت کښې د انسان بلوغ ته د رسیدو حد

**سوال:** په شریعت کښې د نجلۍ او هلك د بلوغ حد څومره دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هلك کښې د بلوغ علامه او نښه احتلام (د شیطان خطا کول) دي او د نجلۍ د بلوغ علامه یا نښه د حیض راتلل دي۔ که چېرته دواړه علامې نه وي نو د مفتی به قول له مخې د پنځلسو کالو په پوره کیدو سره د بلوغ حکم پرې جاري کیږي۔

قال فی الهندیة: بلوغ الغلام با لاحتلام او الاحبال او الانزال و الجاریة با لاحتلام او الحیض او الحبل کذا فی المختار. و السن الذی یحکم ببلوغ الغلام و الجاریة اذا انتهیا الیه خمس عشرة سنة عند ابی یوسف و محمد رحمهما الله تعالٰی و هو روایة عن ابی حنیفةؒ و علیه الفتوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۶۱، الباب الثانی فی الحجر، الفصل الثانی فی معرفة البلوغ)

قال النسفیؒ: بلوغ الغلام با لاحتلام و الاحبال و الانزال...... و الجاریة با لحیض و الاحتلام و الحبل...... و یفتی با لبلوغ فیهما بخمسة عشرة سنة. (البحر الرائق ج۸، ص۸۵، باب الحجر) و مثله فی البدائع الصنائع ج۷، ص۱۷۱، کتاب الحجر، فصل حکم الحجر اما معرفة البلوغ.

## د وکیل په ذریعــــــه د نکاح حکم

**سوال:** که چېرته هلك او نجلۍ د خپل نکاح لپاره څوك وکیل وټاکي او هغه وکیل د دوی له خوا څخه ایجاب او قبول وکړي نو آیا نکاح منعقده کېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نکاح او انکاح له هغو امورو څخه دي چه وکالت پکښې جائز دی. پس هلك او یا نجلۍ چه پخپل نکاح کښې د ایجاب او قبول لپاره څوك وکیل جوړ کړي او په هغه باندې اکتفا وکړي نو نکاح ئې منعقده کېږي.

قال العلامة الكاسانیؒ: ثم النكاح كما ينعقده بهذه الالفاظ بطريق الاصالة ينعقد بها بطريق النيابة با لوكالة و الرسالة لان تصرف الوكيل كتصرف المؤكل. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۲۳۱، فصل ركن النكاح)

قال فی الهندية: يصح التوكيل با لنكاح و ان لم يحضره الشهود. كذا فی التاتارخانية. (الفتاوى الهندية ج۱، ص ۲۹٤، الباب السادس فی الوكالة با لنكاح) و مثله فی ردّ المحتار ج۳، ص۹۵، مطلب فی الوكيل و الفضولی فی النكاح.

## په نکاح کښې د نابالغ د وکالت حکم

**سوال:** آیا په نکاح کښې یو نابالغ هلك وکیل جوړېدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نابالغ هلك کله چه عاقل او ممیز وي نو په نکاح کښې ئې وکالت صحیح دی.

قال العلامة الكاسانیؒ: و اما البلوغ و الحرية فليسا بشرط لصحة الوكالة فتصح وكالة الصّبیّ العاقل الخ. (بدائع الصنائع ج٦، ص ۲۰، فصل الشرائط الوكالة)

قال الشيخ النسفیؒ: صح التوكيل و هو اقامة الغير مقام نفسه فی التصرف ممن يملكه اذا كان الوكيل يعقل العقد و لو صبيًا الخ. (البحر الرائق ج۷، ص۱٤۲، كتاب الوكالة) و مثله فی الهندية ج۳، ص۵٦۲، كتاب الوكالة، الباب الاول.

## په نکاح کښې د کوم پردي سړي د توکیل لپاره تصریح ضروري ده

**سوال:** د بالغې ښځې څخه که چېرته یو بیګانه سړی د نکاح اجازه وغواړي نو په داسې حالت کښې د ښځې ژړا او یا خاموشه کیدل یو ډول اجازه او یا نه اجازه ده او که صراحتاً ویل ورته ضروري دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اجنبي یعنې بیګانه سړي د اجازې غوښتلو په وخت کښې د ښځې ژړا او یا خاموشه اوسیدل اجازه نه ګڼل کیږي بلکه په داسې حالت کښې تصریح با لقول یعنې په واضحو الفاظو سره اجازه اخیستل ترې ضروري دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: فان استاذنها غير الاقرب كاجنبی او ولی بعيد فلا عبرة لسكوتها بل لا بد من القول كا لثيب البالغة. (الدر المختار علی صدر ردّ المحتار ج۳، ص ٦۲، كتاب النكاح، باب الولی)

قــــــال ابن نجيم المصری رحمه اللّٰه: تحت قول المتن و ان استاذنها غير الولی فلا بد من القول كا لثيب ای فلا يكفی لقلة الالتفات ای كلامه فلم يقع دلالة عــــــلی الرضاء. (البحر الرائق ج۳، ص۱۱۵، كتاب



النكاح، باب الاولياء و الاكفاء) و مثله فی البزازية علی هامش الهندية ج٤، ص۱۲۷، باب الاولياء و الاكفاء.

## په نکاح کښې پخپله د عاقد وکیل جوړېدل

**سوال:** یوې ښځې یوه سړي ته اختیار ورکړ چه ته زما له طرفه وکیل يې ته زما نکاح له خپل نفس سره وتړه. نوموړي سړي د دوو ګواهانو په وړاندې دا عمل وکړ نو آیا په دې طریقې سره شرعا نکاح منعقده کېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح په عقد کښې لکه څرنګه چه یو سړی د سړي او د ښځې د دواړو له خوا نه وکیل جوړېدلی شي همدارنګه یو سړی له یوې خوا نه اصیل او له بلې خوا څخه وکیل جوړېدلی او نکاح کولی شي. له دې وجهې په صورت مسئوله کښې ښځه چه کله نوموړي سړي لره وکیل جوړ کړ چه له خپل نفس سره زما نکاح وکړه نو هغه چه د ګواهانو په مخکښې نکاح وتړي نو دا نکاح ئې صحیح ده.

قال العلامة الحصكفیؒ: كما للوكيل الذی وكلته ان يزوجها من نفسه فان لهٗ ذلك فيكون اصيلاً من جانب وكيلاً من آخر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۹۸، كتاب النكاح، باب الاكفاء)

قال ابن نجيم المصری رحمه اللّٰه: تحت قول الماتن. و للوكيل ان يزوج مؤكلته من نفسه و المراد با لوكيل الوكيل فی ان يزوجها من نفسه لما فی المحيط لو وكلته بتزويجها من رجل فزوجها من نفسه لم يجز. (البحر الرائق ج۳، ص۱۳٦، كتاب النكاح، فصل لابن العم ان يزوج الخ) و مثله فی الهندية ج۱، ص۲۹۵، الباب السادس فی الوكالة با لنكاح و غيرها.

## د خیــــار بلوغ له مخې په عدالت کښــــې د نکاح د فسخ کولو نه بغیر پــــه بل ځای کښې د نکاح د کولو حکم

**سوال:** یوې نجلۍ چه مور ئې په وړوکوالي کښې چا ته په نکاح ورکړې وه له بالغیدو وروسته ئې په محکمې کښې له فسخ کولو پرته په بل ځای کښې نکاح وکړه نو آیا دا نکاح صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه نجلۍ چه د خیار بلوغ حق ولري له بالغیدو نه وروسته باقاعده په عدالت کښې د نکاح له فسخ کولو نه وروسته په بل ځای کښې نکاح کولی شي. له عدالت څخه د نکاح د فسخ کولو له سند نه بغیر په بل ځای کښې نکاح کول ورته صحیح نه دي. د نکاح د تنسیخ لپاره له عدالت څخه د کومك اخیستل ضروري دي.

قال ابن عابدين رحمه اللّٰه: (تحت بشرط القضاء للفسخ) و حاصله انهٗ اذا كانت المزوج للصغير او الصغيرة غير الاب و الجد فلها الخيار با لبلوغ او العلم بهٖ فان اختار الفسخ لا يثبت الفسخ الا بشرط القضاء. (رد المحتار ج۳، ص ۷۰، كتاب النكاح، باب الولی مطلب مهم هل للعصبة تزويج الصغير الخ)

قال النسفیؒ: و لهما خيار الفسخ با لبلوغ فی غير الاب و الجد بشرط القضاء. (البحرِ الرائق ج۳، ص ۱۲۰، كتاب النكاح، باب الاولياء و الاكفاء) و مثله فی الهندية ج۱، ص ۲۸۵، الباب الرابع فی الاولياء

## د نکاح د وکیل شرائط

**سوال:** کوم نکاح چه د وکیل په ذریعه وتړل شي نو د هغه د انعقاد لپاره په وکیل کښې د کومو شرائطو شتون ضروري دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح انعقاد د وکیل په ذریعه کیدلی شي خو په دې شرط چه وکیل بالغ او عاقل وي او که نه وي نو نکاح صحیح نه وي. بیا هم که چېرته وکیل نابالغ وي لیکن په ښه او بد، نفع او نقصان باندې پوهیده نو په دې صورت کښې هم د حنفیه وو په نزد نکاح صحیح کیږي.

قال العلامة داماد افندیؒ: فیصح توکیل الحر البالغ بقرینة الاتی او المأذون الصبی او البالغ من جهة الولی او المولی حراً بالغا او ماذونا. (در المنتقی علی هامش مجمع الانهر ج۲، ص۲۲۲، کتاب الوکالة)

و فی مجمع الانهر: الصبیّ العاقل الذی اذن له الولی و العبد الذی اذن له المولی ای یصح توکیل کل منهما. (مجمع الانهر ج۲، ص ۲۲۲، کتاب الوکالة)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ثم ذکر شرط التوکیل فقال اذا کان الوکیل یعقل و لو صبیاً او عبداً محجوراً لا یخفی ان الکلام الآن فی صحة الوکالة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۵، ص۵۱۱، کتاب الوکالة) و مثله فی رد المحتار ج۵، ص ۵۱۱، کتاب الوکالة.

## په ولایت کښې د نژدې او لرې وارثانو اعتبار

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په کلي کښې یوه یتیمه نجلۍ ده چه په اولیاوو کښې ئې نیکه او دوه ترونه پاتې دي. د نجلۍ د بلوغ په صورت کښې ئې وروکی تره د خپل پلار او مشر ورور له اجازې پرته نوموړې نجلۍ په نکاح ورکړه. کله چه د نجلۍ نیکه ته معلومه شوه نو دې نکاح له منظوره نه کړه. نو آیا دې نجلۍ د انکاح صحیح ده او که د نیکه د انکار له وجهې د نوموړې نکاح حیثیت له منځه ځي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښکاره خبره ده چه اولیاء په دوه ډوله دي. (۱) قریب (۲) بعید که چېرته کومه نجلۍ لرې ولي د نژدې ولي له اجازې پرته په نکاح ورکړي نو هغه به د نژدې ولي تر اجازې پورې موقوفه وي. که چېرته اجازه ورکړي نو فبها و النعمت او که ئې رده کړي نو هغه نکاح باطلیږي.

قال العلامة السرخسیؒ: فان زوجها الابعد و الاقرب حاضرٌ توقف علی اجازة الاقرب لان الابعد کا لاجنبی عند حضرة الاقرب فیتوقف عقده علی اجازة الولی الخ. (المبسوط ج٤، ص ۲۲۰، کتاب النکاح، باب نکاح الصغیر و الصغیرة)

قال ابن عابدینؒ: (قوله و الا) ای و ان لم یستووا فی الدرجة و قد رضی الابعد فللاقرب الاعتراض. (رد المحتار ج۳، ص۳۲۳، کتاب النکاح، باب الولی) و مثله فی درر المنتقی شرح الملتقی ج۱، ص ۳۳۹، کتاب النکاح، باب الاولیاء و الاکفاء.



## په مساوي وارثانو کښې د یوه له خوا ځخه کومې نابالغه نجلۍ په نکاح کښې د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته د نابالغې نجلۍ پلار مړ شي او په اولیاوو کښې ئې دوه ترونه پاتې وي او په هغوی کښې ئې یو تره نوموړې نجلۍ چاته په نکاح ورکړي نو آیا دا نکاح به صحیح وي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې چونکه د نجلۍ دریواړه ترونه په خپلوي کښې سره برابر دي او په قرابت کښې تجزیه هم نه شي کیدلی نو له دې وجهې راجح مذهب دا دی چه په دریواړو ترونو کښې ئې چه کوم یو تره نوموړې نجلۍ په نکاح ورکړي نو جائز دي. په دې کښې شرعا څه قباحت نشته.

قال العلامة السرخسیؒ: و اذا اجتمع فی الصغیرة اخوان لابٍ و اُمٍّ فایهما زوجها جاز عندنا...... علی ان کل واحد منهما ینفرد با لعقد و المعنی فیه ان سبب الولایة هو القرابة و هو غیر محتمل للوصف با لتجزی الخ. (المبسوط ج٤، ص۲۱۸، کتاب النکاح، باب نکاح الصغیر و الصغیرة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله لثبوته لکل کملا) لانه حق و احدٌ لا یتجزأ لانه ثبت بسبب لا یتجزأ. (رد المحتار ج۲، ص۳۲۳، کتاب النکاح، باب الولی) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۲۸٤، کتاب النکاح، الباب الرابع فی الاولیاء.

## د عدالت په ذریعه د نکاح په فسخ کولو باندې د مهر حکم

**سوال:** یوې نجلۍ پخپل سر باندې د غیر کفو سره نکاح وکړه او وارثانو ئې د عدالت په ذریعه دا نکاح بیرته ختمه کړه نو آیا نجلۍ به اوس د مهر مالکه وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د غیر کفو سره له نکاح نه وروسته که چېرته دخول شوی وي نو مهر په خاوند باندې لازم دی او د عدم دخول په صورت کښې په جدایي سره نوموړې نجلۍ د مهر غوښتنه نه شي کولی.

و فی الهندیة: و لو تزوجت المرأة و نقصت من مهر مثلها فللولی الاعتراض علیها حتی یتمّ لها مهرها او یفارقها و اذا فارقها قبل الدخول فلا مهر لها و ان فارقها بعده فلها المسمّی الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۹۳/۲۹٤، الباب الخامس فی الاکفاء)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا فسخ القاضی بینهما تکون هذه فرقة بغیر طلاق حتی لو لم یکن الزوج دخل بها فلا شیء لها من المهر و ان کان قد دخل بها فلها ما سمی من المهر و علیها العدة. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص ٦٤، کتاب النکاح، الفصل الخامس عشر فی الکفائة) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۵۲، باب الکفائة.

## له عدالت څخه د نکاح د تنسیخ د سند له لاس ته راوړو نه بغیر په بل ځای کښې د نکاح د کولو حکم

**سوال:** یوې نجلۍ د وارثانو له خوښې پرته له غیر کفو سره نکاح وکړه. بیا وروسته وارثانو ئې نجلۍ خپل کور ته راوستله او بل چا ته ئې په نکاح ورکړه په د اسې حال کښې چه له عدالت

ښځه ئې د تنسیخ سند نه دی اخیستی۔ نو آیا په دې صورت کښې دوهمه نکاح صحیح ده او که به په عدالت کښې به لومړی اوله نکاح منسوخوي او بیا به دوهمه نکاح تړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ځینې تفاریق داسې دي چه په هغو کښې د قاضي قضاء (د عدالت په ذریعې سره جلاوالی) لازمي وي چه له هغو ښځه یو هم دا صورت دی کوم چه په سوال کښې راغلی دی۔ لهذا د نومړې نجلۍ دوهمه نکاح تر هغه وخته پورې صحیح نه ده تر څو پورې ئې چه له عدالت ښځه د نکاح د تنسیخ سند نه وي اخیستل شوی۔

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: ثم الفرقة التی تختص بقضاء القاضی هی الفرقة با لجب و اللعنة و اللعان و باءِ الزوج الاسلام. هو طلاقٌ و بخیار البلوغ و عدم الکفائة و نقصانٌ فی المهر فسخٌ. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص۲۸، کتاب النکاح، الفصل الحادی عشر فی معرفة الاولیاء)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و له) ای للولی (اذا کان عصبة) ...... (الاعتراض فی غیر الکفؤ) فینسخه القاضی و یتجدد بتجدد النکاح الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۲۲، کتاب النکاح، باب الولی) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۹۲، کتاب النکاح، الباب الخامس فی الاکفاء.

## کفائت له یوې خوا ضروري ده

**سوال:** آیا کفائت له دواړو خواوو ښځه ضروري ده او که یوائې د سړي لپاره د ښځې کفوت ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ائمهٔ کرامو متفقه فیصله ده چه په نکاح کښې د سړي لپاره د ښځې کفائت ضروري ده او د ښځې لپاره دا شرط ضروري نه دی ځکه چه له نکاح نه وروسته ښځه پخپله د خاوند کفو جوړیږي۔

قال العلامة الجزریؒ: ان الکفائة معتبرةٌ فی جانب الرجل لا فی جانب المرأة فللرجل ان یتزوج من یشاء و لو امة او خادمة الخ. (الفقه علی المذاهب الاربعة ج۴، ص۵۷، کتاب النکاح، مبحث الکفائة فی الزواج)

قال العلامة وهبة الزحیلی: یری جمهور الفقهاء ان الکفائة تطلب للنساء لا للرجال بمعنی ان الکفائة تعد فی جانب الرجال للنساء، فهو حق فی صالح المرأة لا فی صالح الرجل الخ. (الفقه الاسلامی و ادلّته ج۷، ص۲۳۹، الفصل الخامس الکفائة فی الزواج، المبحث الرابع من تطلب الکفائة فی جانبه) و مثله فی الاحوال الشخصیه ص۱۴۱، ۱۱۷، الجانب الذی تشترط فیه الکفائة.

## د کفائت شرائط

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په کفائت کښې کوم امور داخل دي چه په نه موجودوالي سره ئې سړی د ښځې له کفائت ښځه اوځي؟ بینو اتوجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کفائت په باره کښې ائمه اربعه وو مختلف امور ذکر کړي دي لیکن د حنفیه ووؒ په نزد اسلام، نسب، آزادي، پیشه او کسب، دیانت او د مال غوندې امور په کفوئت کښې داخل دي۔



قال العلامة الجزریؒ: ان الکفائة هی مساواة الرجل للمرأة فی امور مخصوصة و هی ستٌ النسب و الاسلام و الحرفة و الحریة و الدیانة و المال الخ. (الفقه علی المذاهب الاربعة ج۴، ص۵۴، کتاب النکاح، مبحث الکفائة فی الزوج)

قال الدکتور وهبة الزحیلی: و فی اصطلاح الفقهاء المماثلة بین الزوجین دفعاً للعار فی امورٍ مخصوصة هی عند المالکیة. الدی و الحال (ای السلامة من العیوب التی توجب لها الخیار) و عند الجمهور الدین و النسب و الحریة و الحرفة (او الصناعة) و زاد الحنفیة و الحنابلة الیسار (و المال). (الفقه الاسلامی و ادلته ج۷، ص۲۳۹، الفصل الخامس الکفائة فی الزوج) و مثله فی الاحوال الشخصیه ص۳۵، کتاب النکاح، الجانب الذی تشترط فیه الکفائة.

## د قاضي جلاوالی طلاق دی او که فسخ

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ په سبق کښې له استاذ ښځه دا خبره اوریدلې وه چه د عدم کفو په بناء باندې قاضي تفریق کولی شي۔ اوس پوښتنه دا ده چه دا تفریق یا جلاوالی د طلاق په درجه کښې دی او که د فسخ؟ د حنفي فقهاووؒ په دې باره کښې څه رایه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عدم کفائت په وجه سره چه عدالت کوم تفریق بین الزوجین راولي هغه د نکاح فسخ ده او طلاق نه دی۔

و فی الهندیة: و لا یکون التفریق بذلك الا عند القاضی. اما بدون فسخ القاضی فلا ینفسخ النکاح بینهما و تکون هٰذه فرقةٌ بغیر طلاق حتی لو لم یکن الزوج دخل بها فلا شیء لها من المهر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۹۲، الباب الخامس فی الاکفاء)

قال ابن عابدین رحمه اللّٰه: تحت هٰذه العبارة (قوله او یفرق القاضی) و لا تکون هٰذه الفرقة الا عند القاضی و ما لم یقض القاضی با لفرقة بینهما فحکم الطلاق و الظهار و للایلاء و المیراث باق....... و بعد اسطرٍ قال (تحت قوله فلا مهر لها) لان الفرقة جائت من قبل من له الحق و هی فسخٌ الخ. (الدرالمختار مع رد المحتار ج۲، ص۳۵۲، کتاب النکاح، باب الکفائة) و مثله فی الفتاوی قاضی خان ج۲، ص۱۶۴، کتاب النکاح، فصل فی الکفائة.

## د یوې نجلۍ پخپله خوښه په غیر کفو کښې د نکاح کولو حکم

**سوال:** که چېرته یوه نجلۍ له یوه هلك سره وتښتي او هلك د کسب په لحاظ سره د نجلۍ کفو نه وي یعنې د هلك کسب د شرم او عار قابل وي په داسې حال کښې چه د نجلۍ خپلوانو ته په هغه وخت کښې معلوم شو چه کله د هغې یو بچی پیدا شو نو آیا د نجلۍ وارثان اوس دا نکاح فسخ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عدم کفوئت له وجهې د زمانې په تیریدو سره د اولیاوو حق نه ساقطیږي مګر دا چه اولیاء خوښي پرې ښکاره کړي او یا د هغه سړي له ښځې ښځه بچی پیدا شي۔ نو له دې وجهې په نومړي صورت کښې د بچي له پیدا کیدو نه وروسته د نجلۍ اولیاء د هیڅ ډول اعتراض حق نه لري۔

قال العلامة الدکتور وهبة الزحیلی: و یثبت هٰذا الحق عند الحنفیة للاقرب من الاولیاء العصبة فا لاقرب فاذا لم یرضوا فلهم ان یفرقوا بین المرأة و زوجها ما لم تلد او تحمل حملاً ظاهراً فی ظاهر الروایة الخ. (الفقه الاسلامی و ادلته

ج۷، ص۲۳۷، الفصل الخامس فی الکفائة فی الزوج، المبحث الثالث صاحب الحق فی الکفائة)

قال العلامة عبد الرحمٰن الجزریؒ: ان الکفائة فی الامور المذکورة من حق الولی بشرط ان یکون عصبة و لو کان غیر محرم کان ابن عمٍّ یحل له زواجها....... ثم اذا سکت الولی عن الاعتراض حتی ولدت المراۃ فان حقه یسقط فی الکفائة الخ. (الفقه علی المذاهب الاربعة ج٤، ص٤٥٦، کتاب النکاح، مبحث الکفائة فی الزوج) و مثله فی الحوال الشخصیه للامام محمد ابو زهرة ص١٤٢، ١١٩ من له حق الکفائة.

## په کفائت کښې وخت لره اعتبار دی

**سوال:** یو سړی نیک، پرهیزګار او مالداره دی او هغه په یوې مالدارې کورنۍ کښې واده وکړ. څو کاله وروسته نوموړی ډیوالي شو او اوس یوې روپۍ ته هم محتاج دی او خسر ګنی ئې غواړي چه خپله لور ترې آزاده کړي چه دا اوس ستا کفو نه دی او دا زمونږ لپاره د عار او شرم سبب دی نو آیا د دومره وخت په تیریدو سره په دې پلمه باندې هغوی خپله لور په عدالت کښې آزادولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلامي شریعت اګر که د نکاح لپاره کفائت ته اعتبار ورکړی دی لیکن دا خبره یاده ساتی چه دا اعتبار تر یوه خاص وخته پورې تړاو لري او کله چه هغه وخت تیر شي نو بیا هیڅ اعتبار نه لري. چه هغه وخت د عقد د ابتداء وخت دی. نو په صورت مسئوله کښې د نجلۍ والدین د دومره وخت له تیریدو نه وروسته د کفائت د دعوې حق نه لري او نه عدالت د دې حق لري چه د ښځې او میړه تر منځ بې ځای جلا والی راولي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و الکفائة اعتبارها عند ابتداء العقد فلا یضر زوالها بعده فلو کان وقته کفؤا ثم فجر لم یفسخ الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص٣٥٠، کتاب النکاح، باب الکفائة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و لا یخفی ان اعتبار هٰذه الکفائة بین الزوج و ابیها و ان الظاهر اعتبارها وقت الزوج الخ. (البحر الرائق ج٣، ص١٣٣، کتاب النکاح، فصل فی الاکفاء) و مثله فی الفتاوی قاضی خان ج٢، ص١٦٣، فصل فی الکفائة.

## د ګونګ سړي په اشارې سره د نکاح کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو ګونګ سړی د خپلې لور نکاح د نکاح په مجلس کښې په مخصوصې اشارې سره وکړي نو آیا دا نکاح به منعقده وي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ګونګ سړی لپاره پخپلو مخصوصو اشارو سره (چه یوائې د نکاح لپاره مخصوصه وي او د مجلس حاضرینو له دغو اشارو څخه د نکاح مراد اخیستلو) د خپلې لور په نکاح ورکول صحیح دي.

قال ابن نجیمؒ: الاشارة من الاخرس معتبرة قائمة مقام العبارة فی کل شیء الی ان قال الا فی الحدود....... و لا بد فی اشارة الاخرس ان تکون معهودة و الا لا تعتبره. (الاشباه و النظائر ج٣، ص٤٥٤، فی بیان احکام الاشارة)

قال العلامة ابن الهمامؒ: (تحت قول صاحب الهدایة) و طلاق الاخرس واقع با لاشارة لانها صارت مفهومة فکانت کا لعبارة فی الدلالة استحساناً فیصح بها نکاحه و طلاقه و عتاقه و بیعه و شراؤه سواء قدر علی الکتابة او لا و هٰذا



استحساناً با لضرورة الخ. (فتح القدیر ج٣، ص٣٤٨، کتاب الطلاق) و مثله فی البحر الرائق ج٣، ص٢٤٨، کتاب الطلاق.

## بالغه نجلۍ د هغې له اجازې پرته چا ته په نکاح ورکول

**سوال:** په ځینو علاقو کښې نجونو ته معلومات هم نه وي چه پلرونو په نکاح ورکړي وي. آیا یو پلار خپله بالغه لور د هغې له اجازې پرته چا ته په نکاح ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلامي شریعت حرې بالغې ته د خپل نفس د فیصلې اختیار ورکړی دی نو له دې وجهې که چېرته چا خپله لور د هغې له اجازې پرته چا ته په نکاح ورکړه نو د اسې نکاح به د هغې تر اجازې پورې موقوفه وي. که چېرته اجازه وکړي او رضامندي پرې ښکاره کړي نو صحیح ده او که نه نو نه ده صحیح.

قال العلامة ابن عابدینؒ: (سئل) فی بکر بالغة عاقلة رشیدة زوجها ابوها رجلاً بلا اذنها و لا وکالة عنها فردّت النکاح حین بلغها فوراً فهل یرتد بردّها و الحالة هٰذه (الجواب) نعم. (تنقیح الحامدیة ج١، ص٣٠، کتاب النکاح، فی مسائل منورة من ابواب النکاح)

قال العلامة فخر الدین المعروف بقاضی خانؒ: و لا یزوج البکر البالغة ابوها علی کره منها خلافاً للشافعیؒ. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج١، ص٣٥٨، فی الفصل الاولیاء) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج٤، ص٢٤، کتاب النکاح، معرفة الاولیاء.

## ښځه په څو ورځو کښې د والدینو کره تللې شي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ښځې ته شرعاً له څو ورځو وروسته د والدینو کور ته د تللو اجازه په کار ده. که چېرته یو سړی خپله ښځه په کلونو کلونو د پلار کره نه پرېږدي نو د داسې عمل څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مقدس شریعت ښځې ته دا حق ورکړی دی چه که چېرته ممکن وي نو په هفته کښې یو ځل د والدینو د زیارت لپاره تللی شي. دا د هغې شرعي حق دی. کوم سړی چه په ظلم او تعدی سره خپله ښځه د والدینو له زیارت څخه منع کوي نو ګنهګار دی. او که چېرته بیا هم د والدینو کور ته په تللو کښې د فتنې خطره وي نو والدینو ته په کار دي چه هغوی دې پخپله د لور د لیدو لپاره د لور کره راشي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و لا یمنعها من الخروج الی الوالدین فی کل جمعة ان لم یقدرا علی اتیانها علی ما اختیاره فی الاختیار فی هامشه هٰکذا نعم ما ذکرو الشارح. (رد المحتار ج٢، ص٦٦٤، کتاب النکاح)

قال قاضی خانؒ: و یجوز للزوج ان یأذن لها با لخروج و لا یصیر عاصیاً با لاذن و منها الخروج الی زیارة الوالدین و تعزیتهما و عیادتهما و زیارة المحارم. (الفتاوی الخانیة علی هامش الهندیة ج١، ص٤٤٤، کتاب النکاح) و مثله فی الاشباه و النظائر ج٢، ص١٠٩، کتاب النکاح.

## په بدي کښې د نجلۍ د ورکولو د رواج شرعي حکم

**سوال:** په پښتنو کښې له تېرې زمانې څخه يو رواج را روان دی چه کله هغوی په کومه جګړه يا شخړه کښې صلح سره کوي نو فريق مخالف ته نجلۍ په نکاح ورکوي کوم چه په عرف کښې ورته سوره ويل کيږي. اوس پوښتنه دا ده چه په دې ډول معامله کښې که چېرته پلار خپله نابالغه لور ورکړي نو آيا دا نجلۍ له بلوغ نه وروسته د خيار بلوغ حق لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا يو جاهلانه رواج دی. په دې کښې خلك انتقام د دغې مظلومې نجلۍ څخه اخلي. په کور کښې هغه د يوې زرخريدې وينزې غوندې ساتله کيږي. بلکه په معاشره کښې هم معيوبه ګڼل کيږي. له دې وجهې د اسې مظلومه نجلۍ د پلار د سوء اختيار په وجه سره د خيار بلوغ حق لري. که چېرته وغواړي نو اختيار استعمالولی شي او ځان جلا کولی شي.

عن خنساء بنت خذام الانصاريةؓ ان اباها زوجها وهی ثيبٌ فكرهت ذٰلك فاتت رسول اللهﷺ فردّ نكاحه. (مختصر صحيح البخارى ج۲، ص۴۳۱، باب اذا زوج الرجل ابنته و هی كارهة فنكاحه مردودٌ)

قال العلامة المرغينانیؒ: و لا يجوز للولی اجبار البكر البالغة على النكاح. و بعد اسطر و لنا انها حرة فلا يكون للغير عليها ولاية الاجبار. (الهداية ج۲، ص۱۰، كتاب النكاح)

و قال ايضاً: و اذا زوج الاب ابنته الصغيرة و نقص من مهرها او ابنه الصغير و زاد فی مهر امرأته جاز ذٰلك عليهما و لا يجوز ذٰلك لغير الاب و الجد و هٰذا عند ابی حنيفةؒ و قال لا يجوز الحط و الزيادة الا بما يتغابن الناس فيه و معنی هٰذا الكلام انه لا يجوز العقد عندهما لان الولاية مفيدة بشرط النظر فعند فواته يبطل العقد. (الهداية ج۲، ص۱۷، كتاب النكاح، فصل فی الكفائة)

## په غير کفو کښې خپله لور چا ته په نکاح د ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته د يوه ديني يا دنيوي مصلحت په خاطر خپله لور په غير کفو کښې په نکاح ورکړي په داسې حال کښې چه نجلۍ پرې راضي وي نو آيا دا نکاح صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په غير کفو کښې نکاح د عيب او رسوايي له وجهې د اعتراض قابل دی. او که نه نو في نفسهٖ په دې کښې هيڅ حرج نشته ځکه که چېرته نجلۍ بالغه وي او د پلار په دې فيصلې باندې راضي وي نو نکاح صحيح ده.

ال الشيخ ظفر احمد العثماني: که چېرته نجلۍ بالغه او باکره وي او ولي ئې هغې لره په غير کفو کښې په نکاح ورکوي او نجلۍ پرې خاموشه شي او يا ئې په ژبې سره منظوره کړي نو نکاح صحيح ده. د غير کفو سره په دې صورت کښې دوستي کول څه پروا نه لري. (امداد الاحكام ج۲، ص۳۲۳، كتاب النكاح)



قال العلامة الكاسانیؒ: و اما انكاح الابَ و الجد الصغير و الصغيرة فا لكفائة فيه لسيت بشرط للزومه عند ابی حنيفةؒ كما انها ليست بشرط الجواز عنده فيجوز ذٰلك و يلزم لصدوره ممن له كمال النظر لكمال الشفقه. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۸، فصل و اما الثانی فا لنكاح الذی) و مثله فی امداد الاحكام ج۲، ص۳۲۳، كتاب النكاح.

## په غير کفو کښې د نکاح په صورت کښې د اولياوو د اعتراض حکم

**سوال:** نن صبا ځينې نجلۍ د کوم غير کفو هلك سره تښتي او نکاح کوي نو آيا د داسې نجونو اولياء په نکاح باندې د اعتراض کولو حق لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه يوه نجلۍ پخپل سر باندې د غير کفو سره واده وکړي کوم چه د خاندان لپاره ئې د رسوايي او ذلت سبب وي نو د نجلۍ وارثان په داسې نکاح باندې د اعتراض حق لري.

قال العلامة المرغينانیؒ: اذا زوجت المرأة نفسها من غير كفو فلاولياء ان يفرّقوا بينهما دفعاً لضرر العار عن انفسهم. (الهداية ج۲، ص۲۹۹، كتاب النكاح، باب الاكفاء و الاولياء)

قال العلامة الكاسانیؒ: حتٰی لو زوجت نفسها من غير كفؤ عن غير رضاء الاولياء لا يلزم و للاولياء حق الاعتراض لان فی الكفائة حقاً للاولياء لانهم ينتفعون بذٰلك الا ترى انهم يتفاخرون بعلو نسب الختن و يتعيرون بدنائة نسبه فيتضررون بذٰلك فكان لهم ان يدفعوا الضرر عن انفسهم با لاعتراض. (بدائع الصنائع ج۲، ص۳۱۸، كتاب النكاح، فصل و اما الثانی)

## فاسق او فاجر هلك د ديندارې کورنۍ د نجلۍ کفو نه دی

**سوال:** د يوې نيکې او ديندارې کورنۍ سره د تعلق لرونکې نجلۍ د عشق او معاشقې له وجهې که چېرته له يوه فاسق او فاجر او بې دينه هلك سره د اولياوو له رضا پرته پخپل سر واده وکړي نو آيا په دې نکاح باندې د نجلۍ اولياء د اعتراض حق لري او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کومه نکاح يا دوستي د کورنۍ لپاره د عار او شرم باعث جوړيږي په هغې باندې د نجلۍ اولياء د اعتراض حق لري. چونکه فسق، فجور او بې ديني هم يو عيب دی چه له نيك او ديندار خاندان لپاره د شرم او عار سبب دی له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د نجلۍ اولياء د اعتراض حق لري ليکن دا خبره په ذهن کښې کښينوی چه له فسق څخه هغه فسق مراد دی چه د عار سبب وي.

لما قال العلامة الكاسانی رحمه اللّٰه: حتٰی لو ان امرأة من بنات الصالحين اذا زوجت نفسها من فاسق كان للاولياء حق الاعتراض....... لان التفاخر با لدين احق من التفاخر با لنسب. (بدائع الصنائع ج۲، ص۴۲۱، كتاب النكاح، الفصل الثانی)

قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: و الظاهر ان الصّلاح لو منها او من آبائهم كاف لعدم كون الفاسق كفأهم. (البحر الرائق ج۲، ص۶۳۲، كتاب النكاح، فصل فی الاكفاء و الاولياء)

## په ولایت کښې مور له انا څخه مقدمه ده

**سوال:** که چېرته د یوې نجلۍ په پلرني خپلوانو کښې څوك سړي و نه لري نو آیا د ولایت حق به ئې نیا ته حاصل وي او که ئې مور ته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د یوې نجلۍ په پلرني خپلوانو کښې څوك سړی یا نر پاتې نه وي نو د ولایت حق ئې د دې نجلۍ مور ته حاصل دی نه بل چا ته۔

قال العلامة الحصكفیؒ: فان لم تكن عصبة فا لولاية للأم ثم لام الاب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۷۸، باب الاولیاء)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: ثم عصبة مولی العتاقة ثم الأمَ ثم ذو الارحام الاقرب فا لاقرب و هذا قول ابی حنیفةؒ و انهٗ استحسان. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص۱۹، الفصل الحادی عشر فی معرفة الاولیاء)

## د ولي له اجازې پرته د بالغ سړي او ښځې د نکاح حکم

**سوال:** آیا د یوه بالغ سړي او بالغې نجلۍ نکاح د ولي له اجازې پرته جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفیه ووؒ په نزد بالغ سړی او بالغه ښځه د خپلو نفسونو مالکان دي نو له دې وجهې دواړه د ولي له اجازې پرته نکاح سره کولی شي او د اسې نکاح شرعا صحیح ده۔ لیکن د اوسني نازك دور حالاتو ته په نظر کولو سره اجازه اخیستل د فتنې او فساد د ختم کیدو یوه ذریعه ده۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و ینعقد نکاح الحرة العاقلة البالغة برضاها و ان لم یرضی علیها و لی بكراً كانت او ثیباً عند ابی حنیفة و ابی یوسف رحمهما اللّٰه فی ظاهر الروایة. (الهدایة ج۲، ص۵۷٤، باب فی الاولیاء و الاكفاء)

قال العلامة داماد افندیؒ: نفذ ای صح نکاح حرة احترازا عن الامة لان نکاحها موقوفٌ علی اذن مولاها كتوقف نکاح الصغیرة و المجنونة و المعتوهة علی اذن المولی و لذا قال مكلفه بكراً كان او ثیباً بلا ولی الی و لو كان النکاح بلا اذن ولی و حضوره عند الشیخینؒ فی ظاهر الروایة لانها تصرف فی خالص حقها و هی من اهله لكونها عاقلةً بالغةً الخ. (درر المنتقی شرح ملتقی ج۲، ص۳۳۲، باب الاولیاء و الاكفاء)

## د بالغې نجلۍ په خپلې کفوې کښې نکاح صحیح ده

**سوال:** که چېرته یوه بالغه نجلۍ د والدینو له رضاء پرته پخپلې کفوې کښې نکاح وکړي نو آیا دا نکاح به صحیح وي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوې بالغې او عاقلې نجلۍ لپاره د والدینو له رضاء پرته پخپلې کفوې کښې نکاح کول د احنافوؒ په نزد صحیح ده ځکه چه بالغه نجلۍ د خپل نفس د اختیار حق لري۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و ینعقد النکاح الحرة العاقلة البالغة برضائها و ان لم یعقد ولیٌ...... للولی الاعتراض فی غیر الكفو و عن ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ انهٗ لا یجوز فی غیر الكفؤ الخ. (الهدایة ج۲، ص۲۹٤، باب فی الاولیاء و الاكفاء)

و فی الهندیة: ثم المرأة اذا زوجت نفسها من غیر كفو صح النکاح فی ظاهر الروایة..... و لكن الاولیاء حق الاعتراض و روی الحسن عن ابی حنیفةؒ ان النکاح لا ینعقد و به اخذ كثیر من مشائخنا و المختار فی زماننا للفتوی روایة الحسن الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۹۲، الباب الخامس فی الاكفاء) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۱۱۰، باب الاولیاء و الاكفاء.



# بـــــاب الرضاع
## (د رضاعت احـــکام او مسئلې)

## د رضاعي ورور له مور ســـره د نکاح حکم

**سوال:** زید د بکر د مور شیدې د رضاعت په وخت کښې رودلي دي نو اوس بکر د زید له مور سره نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د بکر مور د زید رضاعي مور ده او د هغې اولاد د زید رضاعي خویندې او وروڼه دي چه د زید نکاح ورسره جائزه نه ده۔ البته که چېرته د زید مور له بکر سره د اسې رشته و نه لري چه له وجهې ئې د نکاح حرمت راغلی وي نو د بکر نکاح د زید له حقیقي مور سره جائزه ده۔

قال ابن نجیم المصریؒ: تحت قوله (و حرم به و ان قل فی ثلاثین شهرا ما حرم منه النسب الا ام اخته و اخت ابنه) یعنی فانهما یحلان من الرضاع دون النسب اطلق المضاف و المضاف الیه ففی ام اخته ثلاث صور الاولی الام رضاعاً و الاخت نسباً بان ارضعت اجنبیة اخته نسباً ولم ترضعه الثانیة عکسه ان یکون لاخته رضاعاً ام من النسب. (البحر الرائق ج۳، ص۲۲۳، کتاب الرضاع)

قال ابن عابدینؒ: (و ام اخت صادق بان یکون کل منهما من الرضاع کان یکون لك اخت من الرضاع ام اخری من الرضاع ارضعتها وحدها و بان تکون الاخت فقط من الرضاع لها ام نسبیة. (ردّ المحتار ج۳، ص۲۱٤، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳٤۳، کتاب الرضاع.

## له رضاعي وریرې سره نکاح حرامه ده

**سوال:** رشیده د خالد د ښځې تی د رضاعت په وخت کښې رودلی دی نو آیا د خالد د ورور (بکر) نکاح له رشیدې سره جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې رشیده د خالد د ورور (بکر) رضاعي وریره ده نو لکه څرنګه چه له نسبي (حقیقي) وریرې سره نکاح جائزه نه ده همدارنګه له رضاعي وریرې سره هم نکاح ناجائزه او حرامه ده۔

عن ابن عباسؓ قال قیل للنبیﷺ لا تزوج ابنة حمزةؓ قال انها ابنة اخی من الرضاعة. (الصحیح البخاری ج۲، ص۷٦٤، کتاب النکاح، باب یحرم من الرضاعة ما یحرم من النسب)

قال الشیخ النسفیؒ: زوج مرضعة لبنها منه اب للرضیع و ابنه اخ و بنته اخت و اخوه عم و اخته عمة. (کنزا الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۲۲٦، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳٤۳، کتاب الرضاع.

## د خپلې ښځې د تي په رودلو سره په نکاح باندې کوم اثر نه پریووزي

**سوال:** که چېرته یو سړی د خپلې ښځې په تي باندې خوله ولګوي قصداً یا سهواً ئې تی ورووي نو آیا په دې سره ئې په نکاح باندې کوم اثر پریووزي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حرمت رضاعت لپاره د رضاعت په موده (د دوو کلونو) په عمر کښې د یوې ښځې د تي رودل ضروري دي او کومې شیدې چه د رضاعت له مودې نه وروسته وچښل شي اګر که حرامه ده لیکن د رضاعت حرمت پرې نه ثابتیږي. په صورت مسئوله کښې که چېرته د ښځې د خاوند عمر له دوو کلونو څخه زیات وي نو نکاح ئې نه خرابیږي. البته د لوی سړي لپاره د ښځې د تي رودل حرام دي.

قال العلامه الحصکفیؒ: مص رجل ثدی زوجته لم تحرم. قال ابن عابدینؒ تحته قید به احترازاً عما اذا کان الزوج صغیراً فی مدة الرضاع فانها تحرم علیه. (رد المحتار ج۳، ص۲۲۵، کتاب الرضاع)

قال فی الهندیة: و لا بأس بان یسعط الجرل بلبن المرأة و یشربه للدواء و فی شرب لبن المرأة للبالغ من غیر ضرورة اختلاف المتاخرین. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی الخ)

## د رضاعي ورور له خور سره د نکاح حکم

**سوال:** د رضاعي ورور له خور سره نکاح جائزه ده او که نه؟ د مثال په توګه زید او بکر د یو بل رضاعي ورونه دي. زید د بکر د مور تی رودلی دی نو اوس بکر د زید له خور سره نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زید د خور او د بکر تر منځ کومه د اسې رشته نشته چه د حرمت سبب جوړ شي نو له دې وجهې بکر د خپل رضاعي ورور له سکه خور سره نکاح کولی شي. البته زید د بکر له نسبي خور سره نکاح نه شي کولی ځکه چه د بکر خور د زید رضاعي خور ده.

قال العلامة الحصکفیؒ: و تحل اخت اخیه رضاعاً یصح اتصاله با لمضاف کان یکون له اخ نسبی لهٗ اخت رضاعیة و با لمضاف الیه کان یکون لاخیه رضاعاً اخت نسباً و بهما و هو ظاهر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۲۱۷، کتاب الرضاع)

قال ابن نجیمؒ: تحت قول النسفیؒ: (و تحل اُخت اخیه رضاعا) یصح اتصاله بکل من المضاف و المضاف الیه و بهما کما قدمناه. (البحر الرائق ج۳، ص۲۲۷، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع.

## له نکاح نه وروسته د رضاعت د ثبوت حکم

**سوال:** له نکاح نه وروسته که چېرته د نجلۍ پلار د رضاعت دعوٰی وکړي نو آیا دغې دعوې ته نه اعتبار ورکول کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت د ثبوت لپاره کامل حجت ضروري دی کوم چه د دوو عادلو سړو یا یو عادل سړی او دوه عادلې ښځې ګواهي ده. یوائې د یوه سړي او یا یوائې د یوې



ښځې او یا دوو ښځو خبره د رضاعت د دعوې د ثبوت لپاره کافي نه ده. بیا هم له نکاح څخه مخکښې که چېرته یوه ښځه د رضاعت خبره وکړي نو احتیاط په دې کښې ده چه خبرې ته ئې اعتبار ورکړل شي او له نکاح څخه اجتناب وکړی شي. البته که چېرته زوجین د یوې ښځې په قول باندې اعتماد وکړي او یقین ئې راشي نو په د اسې حالت کښې د دوی تصدیق د ګواهانو د ګواهي محتاج نه دی.

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لا تجوز شهادة امرأة واحدة علی الرضاع اجنبیة کانت او ام احد الزوجین فان وقع فی قلبه صدق المخبر فا لافضل ان یتنزه قبل العقد و بعد العقد یسعها المقام معه حتی یشهد علی ذٰلک رجلان او رجل و امرأتان عدول و لا یقبل شهادة النساء وحدهن. (خلاصة الفتاوٰی ج۲، ص۱۱، الفصل الرابع فی الرضاع)

قال ابن نجیمؒ: تحت قول النسفیؒ (و یثبت بما یثبت به المال) و هو شهادة رجلین عدلین او رجل و امرأتین عدول........ و ان کان الخبر بعد النکاح و هما کبیران فا لاحوط ان یفارقها روی ذٰلک عن رسول اللهﷺ انه امر با لمفارقة. (البحر الرائق ج۳، ص۲۳۲، کتاب الرضاع) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۲۲۴، کتاب الرضاع.

## د رضاعت د ثبوت لپاره یو ځـــــل د تي رودل کافي دي

**سوال:** آیا د رضاعت د ثبوت لپاره پنځه ځلې د تي رودل ضروري دي او که یوائې د یو ځل په رودلو سره رضاعت ثابتیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد د شیدو حلق ته په رسیدو سره حرمت ثابتیږي که یو ځل وي او یا پنځه ځله. البته د شوافعوؒ په نزد په پنځه ځله رودلو سره حرمت ثابتیږي.

قال العلامة المرغینانیؒ: قلیل الرضاع و کثیره سواءٌ اذا حصل فی مدة الرضاع یتعلق به التحریم قال الشافعیؒ لا یثبت التحریم الا بخمس رضعات. (الهدایة ج۱، ص۳۲۹، کتاب الرضاع)

قال العلامة صدر الشریعةؒ: یثبت بمصة فی حولین و نصف لا بعده....... عند الشافعیؒ یثبت بخمس مصاتٍ. (شرح الوقایة ج۲، ص۶۴، کتاب الرضاع) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۳۰۴، کتاب الرضاع.

## د رضاعي لور لـــــه نسبي خور سره د نکاح حکم

**سوال:** آیا د رضیعې (هغه نجلۍ چه تی ئې رودلی وي) له نسبي خور سره د مرضعې (هغه ښځه چه شیدې ئې ورکړي وي) خاوند نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت په حرمت کښې د رضیعې له خوا څخه مرضعه او په میړه باندې ئې یوائې رضیعه او د هغې اولاد حرام ګرځي. له نورو سره د مرضعې او د هغې د خاوند د حرمت هیڅ رشته نشته نو له دې وجهې د مرضعې خاوند د رضیعې له نسبي خور سره نکاح کولی شي.

قال العلامة المرغینانیؒ: و تجوز تزوج اخت ابنه من الرضاع و لا یجوز ذٰلک من النسب. (الهدایة ج۱، ص۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و یحرم منه ما یحرم من النسب..... الا ام اخیه و اخته..... و قس علیه

اخت ابنه و بنته. قال ابن عابدینؒ تحت قوله اخت ابنه انما حرمت علیه اخت ابنه و بنته نسباً لکونه بنته او بنت امرأته و هذا المعنی مفقود فی الرضاع. (رد المحتار ج۲، ص۴۰۶، باب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۲۳، کتاب الرضاع.

## په رضیعه باندې د مرضعه او د هغې د خاوند اصول او فروع حرام دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه رضیعه یعنې شیدې رودونکې بچې باندې د مرضعې یعنې تی ورکوونکې ښځې او د هغې د خاوند له خوا څه کوم خپلوان حرامیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت حرمت د مرضعې او د هغې د خاوند له خوا څخه په رضیعې باندې د هغو اصول او فروع دواړه حرام دي۔ یعنې د مرضعې آباء او اجداد او د او اولاد ئې او همدارنګه د خاوند آباء او اجداد او اولاد ئې په رضیعې باندې حرام دي۔

قال العلامة المرغينانی رحمه اللّٰه: و یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب لحدیث الذی روینا. (الهدایة ج۱، ص۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فیحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۵، باب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۲۲، کتاب الرضاع.

## په رضاعت باندې اجرت اخیستل جائز دي

**سوال:** آیا مرضعه ښځه په رضاعت باندې د رضیعې له پلار او یا ولي څخه اجرت اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رضاعت یو داسې عمل دی چه د اجرت په جواز باندې ئې د ټولو علماوو اتفاق دی نو له دې وجهې مرضعه په رضاعت باندې اجرت اخیستلی شي شرعاً پکښې څه قباحت نشته۔

لما فی الهندیة: و اجمعوا علی ان مدة الرضاع فی استحقاق اجرة الرضاع مقدر بحولین حتی ان المطلقة اذا طالبته بعد الحولین باجرة الرضاع فابی الاب ان یعطی لا یجبر و یجبر فی الحولین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع)

قال العلامة فخر الدین قاضی خانؒ: و اجمعوا علی ان مدة الرَّضاع فی استحقاق اجرة الرضاع مقدر بحولین حتی ان المطلقة اذا طالبته بعد الحولین باجرة الرضاع فابی الاب ان یعطی لا یجبر و یجبر فی الحولین. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۴۱۷، باب الرضاع)

## د زړې ښځې له تی څخه په راوتونکو سپینو اوبو باندې رضاعت نه ثابتیږي

**سوال:** که چیرته یو بچي د زړې ښځې (کومه چه د ایاس سن ته رسیدلې وي) له تی څخه سپینې اوبه رودلې وي نو آیا په دې سره د رضاعت حرمت ثابتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د کومې زړې ښځې له تي څخه سپینې اوبه ووځي چه د



شیدو غوندې نه وي نو په چښلو سره ئې د رضاعت حرمت نه ثابتیږي۔ لهذا په صورت مسئوله کښې که چیرته په رښتیا هم نوموړي بچي سپینې اوبه رودلي وي نو حرمت نه ثابتیږي او که سپینې اوبه نه وې بلکه شیدې وې نو بیا ثابتیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لبن بکر بنت تسع سنین فاکثر محرم و الا لا جوهرة. قال ابن عابدینؒ تحت هذا القول ای و ان لم تبلغ تسع سنین فنزل لها لبن لا تحرم جوهرة لانهم نصبوا علی ان اللبن لا یتصور الا ممن تتصور منه الولادة فیحکم بانه لیس لبناً کما لو نزل للبر ماء اصفر لا یثبت من ارضاعه تحریم کما فی شرح الوهبانیة. (ردّ المحتار ج۲، ص۴۳۳، باب الرضاع)

## یوائې د دعوې په کولو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي

**سوال:** که چیرته مرضعه (تی ورکوونکې) دا دعوی وکړي چه فلانی هلك ته ما شیدې ورکړې دي لیکن ګواه موجود نه وي نو آیا یوائې د مرضعې په دعې دعوې سره د رضاعت حرمت ثابتیږي او که نه؟ او د هلك د مرضعې له لور سره نکاح حرامیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت د اثبات لپاره د شرعي ګواهانو موجودوالی ضروري دي کوم چه په نوموړي صورت کښې نشته۔ نو له دې وجهې یوائې د مرضعې په دعوې سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي۔ البته که چیرته مرضعه پخپله دعوی کښې رښتونې وي نو څومره چه کیدلی شي اجتناب ترې بهتر دی اګر که نکاح هم صحیح کیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و حجته حجة المال و هی شهادة عدلین او عدل و عدلتین. قال ابن عابدین و لو احداهما المرضعة. (رد المحتار ج۲، ص۴۴۸، باب الرضاع)

قال العلامة المرغینانیؒ: و لا یقبل فی الرضاع شهادة النساء منفردات و انما یثبت بشهادة رجلین او رجل و امرأتین. (الهدایة ج۲، ص۳۳۳، کتاب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۳۲، کتاب الرضاع.

## د خپلې ښځې د تي په رودلو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي

**سوال:** په عوامو کښې دا خبره مشهوره ده چه که چیرته خاوند د خپلې ښځې په تي باندې خوله ولګوي او شیدې ترې وروي چه له حلق څخه ئې تیرې شي نو د نوموړي سره نکاح ماتیږي او ښځه ئې ورته د مور په مرتبه کښې شي نو آیا شرعاً د دې خبرې حقیقت څه دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت د حرمت لپاره د رضاعت په موده کښې د تي رودل ضروري دي۔ که چیرته یو څوك د رضاعت له مودې څخه وروسته د خپلې ښځې تی وروي نو حرمت پرې نه ثابتیږي۔ له دې وجهې د عوامو دا خبره غلطه ده او د خاوند د خپلې ښځې د شیدو په رودلو سره نکاح نه ماتیږي او نه ئې ښځه ورته د مور په مرتبه کښې کیږي۔ لیکن د سړي لپاره د خپلې ښځې د تي رودل حرام دي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: ثم مدة الرضاع ثلثون شهراً عن ابی حنیفةؒ و قالا سنتان و هو قول الشافعیؒ......

قال النبی ﷺ لا رضاع بعد حولین. (الهدایة ج۲، ص ۳۲۹، کتاب الرضاع)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: و حولان و نصف عنده و حولان فقط عندهما و هو الاصح فتح و به یفتی کما فی تصحیح القدوری. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۳، باب الرضاع) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص۳۰۹، کتاب الرضاع.

## د رضاعي لور د مرضعې د مخکښینې خاوند سره نکاح جائزه ده

**سوال:** یوه نجلۍ د یوې ښځې مثلاً د هندې شیدې په کوچنیوالي کښې رودلي دي نو ښکاره خبره ده چه د دې نجلۍ نکاح د هندې له موجوده خاوند (کوم چه له وجهې ئې په ښځې کښې شیدې پیدا شوي دي) او د نوموړې نجلۍ رضاعي پلار دی جائزه نه ده لیکن آیا دا نجلۍ د هندې د مخکښینی خاوند لپاره هم حرامه ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رضیعې باندې د مرضعې هغه خاوند حرام دی چه د هغه له وجهې په هغې کښې شیدې پیدا شوي وي ځکه چه هغه د رضیعې رضاعي پلار دی۔ له ده بغیر که چېرته د هندې مخکښینی خاوند وي او له هغه سره د نوموړې نجلۍ د حرمت کومه بله رشته نه وي نو له هغه سره د دې نجلۍ نکاح صحیح ده او شرعاً څه قباحت پکښې نشته۔

قال العلامة المرغینانی: لبن الفحل یتعلق به التحریم و هو ان ترضع المرأة صبیّة فتحرم هذه الصبیّة علی زوجها و علی آبائه و ابنائه و یصیر الزوج الذی نزل لها منه اللبن ابا للمرضعة. (الهدایة ج۲، ص ۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: (زوج مرضعة لبنها منه ابٌ للرضیع) بیان لان لبن الفحل یتعلق به التحریم لعموم الحدیث المشهور و اذا ثبت کونه ابا له لا یحل لکل منهما موطوٴة الآخر. (البحر الرائق ج۳، ص۲۲۶، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع.

## د رضاعي زوی له کونډې سره د نکاح حکم

**سوال:** زید په کوچنیوالي کښې د زینب تی رودلی دی۔ اوس چونکه زید مړ شوی دی نو آیا د زید رضاعي پلار د هغه له کونډې سره نکاح کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم بچی چه د یوې ښځې تی وروي نو د هغې خاوند کوم چه له وجهې ئې په هغې کښې شیدې پیدا شوي دي د نوموړي بچي رضاعي پلار جوړیږي۔ لکه څرنګه چه د نسبي زوی له ښځې سره نکاح جائزه نه ده همدا رنګه د رضاعي زوی له ښځې سره هم نکاح جائزه نه ده۔ نو له دې وجهې د زینب خاوند د زید له ښځې سره نکاح نه شي کولی۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: لا لاحلال حلیلة الابن رضاعاً فانها تحرم کا لنسب بحر و غیره. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۳، فصل فی المحرمات)

قال العلامة ابن نجیم المصری: معناه ان الحرمة بسبب الرضاع تعتبر بحرمة النسب فشمل حلیلة الابن و الابٌ من الرضاع لانها حرام بسبب النسب و کذا بسبب الرضاع. (البحر الرائق ج۳، ص۲۲۲، کتاب الرضاع) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع.



## د نسبي ورور لــه رضاعي خور سره د نکاح حکم

**سوال:** زید د هندې سره په کوچنیوالي کښې د هغې د مور تی رودلی دی نو آیا د هندې نکاح د زید له بل ورور سره جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت په حرمت کښې هغه خپلوان حرامیږي چه په هغو کښې حرمت ثابتیږي۔ چونکه په صورت مسئوله کښې د هندې له زید سره د جزئیت رشته ثابته شوې ده او د هغه له ورور یعني بکر سره نه ده ثابته شوې نو له دې وجهې د هندې نکاح له بکر سره جائزه ده۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و تحل اخت اخیه رضاعاً یصح اتصاله با لمضاف کان یکون له اخ نسبی له اخت رضاعیة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۵۶۱، باب الرضاع)

قال العلامة المرغینانی: و یجوز ان یتزوج الرجل باخت اخیه من الرضاع لانه یجوز ان یتزوج باخت اخیه من النسب. (الهدایة ج۲، ص ۳۳۰، کتاب الرضاع) و مثله فی شرح الوقایة ج۲، ص۶۷، کتاب الرضاع.

## د رضاعي پلار له منکوحې سره د نکاح حکم

**سوال:** یو هلك د یوه سړي د ښځې تی د رضاعت په موده کښې رودلی وو اوس هغه بالغ شوی دی او د دې سړي له بلې ښځې سره غواړي چه نکاح وکړي نو آیا دا هلك د نوموړي سړي له بلې ښځې سره نکاح کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا سړی د نوموړي هلك رضاعي پلار دی نو لکه څرنګه چه د خپل نسبي پلار د موطوئه سره نکاح جائزه نه ده همدا رنګه د رضاعي پلار موطوئه سره هم نکاح جائزه ده۔

قال ابن عابدین: (تحت قوله ما یحرم من النسب) معناه ان الحرمة بسبب الرضاع معتبرة بحرمة النسب فشمل زوجة الابن و الابٌ من الرضاع لانها حرام بسبب النسب و کذا بسبب الرضاع و هو قول اکثر اهل العلم کذا فی المبسوط بحر. (رد المحتار ج۲، ص۵۵۷، باب الرضاع)

قال العلامة المرغینانی: و امرأة ابیه و امرأة ابنه من الرضاع لا یجوز ان یتزوجها کما لا یجوز ذلك من النسب. (الهدایة ج۲، ص ۳۱۰، کتاب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص ۲۲۲، کتاب الرضاع.

## په غلطۍ سره د کومې ښځې د تي په رودلو سره هم رضاعت ثابتیږي

**سوال:** که چېرته یو بچی په غلطۍ سره او یا په دوکې سره د یوې ښځې تی وروي نو آیا په دې سره حرمت رضاعت ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت (شیر خوری) په موده کښې کله چه یو بچی د کومې ښځې تی وروي نو د رضاعت حرمت ثابتیږي۔ چونکه په صورت مسئوله کښې که په غلطۍ سره وي یا په قصد سره رضاعت ثابتیږي۔

چېرته یو ښځه د بل چا بچي ته له دوو کلونو نه وروسته شیدې ورکړي نو د رضاعت حرمت پرې نه ثابتیږي۔

قال النبی ﷺ: لا رضاع بعد حولین. (الهدایة ج۲، ص ۳۲۹، کتاب الرضاع)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: هو حولان و نصف عنده و حولان فقط عندهما و هو الاصح فتح و به یفتی کما فی تصحیح القدوری....... و لا یصح الارضاع بعد مدته (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۳/۴۰۴ باب الرضاع) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص ۳۰۹، کتاب الرضاع.

## د رضاعي مور لـــــه لمسی سره د نکاح مسئله

**سوال:** یو هلك له دوه کلنی څخه مخکښې د خپلې انا تی رودلی دی۔ اوس هغه د خپل تره له لور سره غواړي چه نکاح وکړي نو آیا ده لپاره به تره لور حلاله وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې دا نجلی د نومړي هلك رضاعي وریره ګرځیدلې ده او له وریرې سره شرعا نکاح صحیح نه ده۔ لهذا نوموړی هلك د خپل تره له لور سره نکاح نه شي کولی۔

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب لحدیث الذی روینا. (الهدایة ج۱، ص ۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فیحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب. (الدر المختارعلی هامش رد المحتار ج۲، ص۴۰۵، باب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص ۲۲۲، کتاب الرضاع.

## د رضاعت موده

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د رضاعت د مودې او اثبات لپاره ئې کوم تاکلی وخت شته او که یو څوك چه په هر وخت کښې د یوې ښځې تی وروي نو د رضاعت حرمت ثابتیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رضاعت د حرمت لپاره د جمهورو علماوو په نزد د دوو کلونو موده تاکل شوې ده په داسې حال کښې چه د امام ابو حنیفهؒ په نزد دیرش میاشتې یعنې دوه نیم کاله ده۔ لهذا په دې موده کښې د ننه چه کله هم څوك د خپلې مور نه پرته د بلې ښځې تی وروي نو رضاعت پرې ثابتیږي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: مدة الرضاع ثلثون شهراً عند ابی حنیفةؒ و قالا سنتان و هو قول الشافعیؒ (الهدایة ج۲، ص۳۲۹، کتاب الرضاع)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: هو حولان و نصف عنده و حولان فقط عندهما و هو الاصح فتح و به یفتی کما فی تصحیح القدوری. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۴۰۳، باب الرضاع) و مثله فی فتح القدیر ج۳، ص ۳۰۹، کتاب الرضاع.



## له رضاعي خورزې سره نکاح نه ده جائزه

**سوال:** که چېرته یو ښځه یوه هلك ته شیدې ورکړي وي او د دې ښځې لور کومې بلې نجلۍ ته تی ورکړی وي نو د دې هلك او نجلۍ په خپل منځ کښې نکاح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خورزې سره که هغه حقیقي وي او که رضاعي په دواړو صورتونو کښې نکاح جائزه نه ده۔ چونکه په نوموړي صورت کښې دا نجلۍ د نوموړي هلك رضاعي خورزه ګرځي نو له دې وجهې د دوی نکاح جائزه نه ده۔

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: و یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب لحدیث الذی روینا. (الهدایة ج۱، ص ۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فیحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب. (الدر المختارعلی هامش رد المحتار ج۲، ص ۴۰۵، باب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص ۲۲۲، کتاب الرضاع

## د رضاعت حرمت یوائې د اسلام حکم دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د رضاعت حرمت له اسلامه پرته په نورو دینونو کښې هم موجود وو او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د نورو منفرد اتو برسیره په دې مسئله کښې هم منفرد دین دی چه د رضاعت په وجه سره هم د نسبي رشتې غوندې حرمت بیان شوی دی او له اسلام نه پرته په نورو دینونو کښې دا حکم نه وو۔

قال الشیخ ابو زهرةؒ: انفردت الشریعة الاسلامیة من بین الشرائع السماویة القائمة الان یجعل الرضاع سبباً من اسباب التحریم. (الاحوال الشخصیه ص۸۳، التحریم با لرضاع)

## د خپلې مور او د مور لـــــه خوا د انا د تي په رودلو ســـره د ماما لـــــه اولادونو سره د نکاح حکم

**سوال:** زما مشر ورور او یوه خور د مور او د مور د مور یعنې انا شیدې چښلي دي۔ اوس پوښتنه دا ده چه که چېرته مونږ د خپل یوه ورور نکاح د ماما او یا د ترور له لور سره وکړو نو په شریعت کښې به دا نکاح جائزه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم ورور او خور چه د انا تی رودلی وي نو د هغوی نکاح د ماما او ترور له اولادونو سره حرامه ده او کوم ورور او یا خور چه د انا تی نه وي رودلی د هغوی نکاح د ترور او د ماما له هغو اولادونو سره جائزه ده چه نه ئې د دغې انا تی رودلی وي او نه د دغو خویندو او ورونو د مور تی ئې رودلی وي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فیحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب الا ام اخیه و اخته و اخت ابنه و بنته و جدة ابنه و بنته و ام عمه و عمته الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۴۳۹، کتاب النکاح، باب الرضاع)

و فی الهندیة: و تثبت حرمة المصاهرة فی الرضاع حتی ان امرأة الرجل حرام علی الرضیع و امرأة الرضیع حرام علی الرجل و علی هذا القیاس الا فی المسئلتین احدهما ان لا یجوز للرجل ان یتزوّج اخت ابنه من النسب و یجوز فی الرضاع. و المسئلة الثانیة لا یجوز لرجل ان یتزوج ام اُخته من النسب و یجوز فی الرضاع الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۴۳، کتاب الرضاع)

## له رضاعي ترور سره د نکاح حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یو هلك په کوچنیوالي کښې د یوې ښځې تی رودلی دی اوس ئې مور پلار د هغې ښځې له کوچني خور سره د خپل زوی نکاح غواړي نو آیا شرعاً ئې نکاح صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت د قانون له مخې چه د کومې ښځې نکاح د نسبي رشتې له وجهې حرامه وي نو د رضاعي رشتې په وجه هم له هغې سره نکاح حرامه وي. په نوْموړي صورت کښې د انجلۍ چونکه د نوموړي هلك رضاعي ترور ده له دې وجهې د نسبي ترور غوندې له رضاعي ترور سره هم نکاح جائزه نه ده.

لما قال العلامة المرغینانی رحمه الله: یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب للحدیث الذی روینا. (الهدایة ج۲، ص۳۳۰، کتاب الرضاع)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یحرم منه ای بسببه ما یحرم من النسب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۰۵، باب الرضاع) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۲۲۲، کتاب الرضاع.



# باب فی الحرمة المصاهرة

## (د حرمت مصاهرت احکام او مسئلې)

## خوابنې ته بغیر له شهوته د لاس لګولو حکم

**سوال:** یو سړي د خپلې ښځې د ویښولو په وخت کښې د ښځې په ځای په خوابنې باندې لاس ولګیده او په زړه کښې ئې د جماع خیال وو لیکن شهوت نه وو نو آیا په دې سره حرمت مصاهرت ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حرمت مصاهرت لپاره په شهوت سره لمس یعنې لاس لګول ضروري دي او کوم لمس چه په شهوت سره نه وي په هغه باندې حرمت مصاهرت نه ثابتیږي. لهذا په صورت مسئوله کښې د حرمت مصاهرت د نه ثابت کیدو له وجهې په نوموړي سړي باندې به خپله ښځه حرامه نه وي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و فی المس لا تحرم ما لم تعلم الشهوة لان الاصل فی التقبیل الشهوة بخلاف المس. (الدر المختار علی ردّ المحتار ج۳، ص۳۶، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابو البرکات النسفیؒ: و الزنا و اللمس و النظر بشهوة یوجب حرمة المصاهرة. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۹۸، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن نجیمؒ: و قید یکون اللمس عن غیر شهوة لم یوجب الحرمة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۰، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۵، الباب الثالث فی المحرمات.

## خوابنې ته په شهوت سره د کتلو حکم

**سوال:** که چېرته څوك خپلې خوابنې ته په شهوت سره وګوري نو آیا په دې سره حرمت مصاهرت ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د خپلې خوابنې د فرج داخل ته د شهوت په نظر سره وګوري نو حرمت مصاهرت ثابتیږي او که نه نو مطلق د شهوت په نظر سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږي.

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و المنظور الی فرجها) قید با لفرج لان ظاهر الذخیرة و غیرها انهم اتفقوا علی ان النظر بشهوة الی سائر اعضائها لا عبرة به ما عدا الفرج. (رد المحتار ج۳، ص۳۳، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال فی الهندیة: لا تثبت با لنظر الی سائر الاعضاء لا بشهوة و لا بمس سائر الاعضاء لا عن شهوة بلا خلاف. کذا فی البدائع و المعتبر النظر الی الفرج الداخل هکذا فی الهدایة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۴، فصل فی المحرمات)

## له خوابنې سره په زنا کولو باندې د ښځې د حرامیدو حکم

**سوال:** له خپلې خوابنې سره د زنا ارتکاب کوونکي سړي لپاره خپله ښځه حرامیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك له خپلې خوابنې سره زنا وکړي او یا په شهوت سره

خپله خوابنې لمس او یا تقبیل (ښکل) کړي نو د دې ښځې لور کومه چه د نوموړي ښځه ده د همیشه لپاره په نوموړي سړي باندې حرامیږي۔

قال ابن نجیمؒ: و اراد بحرمة المصاهرة المحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً کما فی الوطیء الحلال. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۱، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

و فی الهندية: فمن زنی بامرأة حرمت علیه امها و ان علت و ابنتها و ان سفلت. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷٤، الباب الثالث فی المحرمات) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۳۲، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## لور ته په شهوت سره د لاس په لګولو سره په نکاح باندې اثرات

**سوال:** که چېرته چا خپلې لور ته په شهوت سره لاس وروړ نو په دې عمل سره ئې په نکاح باندې کوم اثر کیږي او که نه؟ او آیا خپله ښځه ئې پرې حرامیږي او که به ورته حلاله وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو سړي خپلې لور ته په شهوت سره لاس ولګوي او په منځ کښې ئې د اسې شی حائل هم نه وي چه د لور د بدن د حرارت د احساس څخه مانع وي او نه ئې لور له نهو کلونو څخه کوچنۍ وي نو په دې صورت کښې حرمت مصاهرت ثابتیږي او خپله ښځه ئې پرې حرامیږي۔ او که چېرته چه په یادو شویو شرائطو کښې یو شرط موجود نه وي یعنې یائې لور له نهو کلونو څخه کوچنۍ وي او یا د لاس وروړلو په وخت کښې کوم شی حائل وي چه د لور د بدن د حرارت مانع وي نو بیا حرمت مصاهرت نه ثابتیږي۔

قال فی الهندية: فلو ایقظ زوجته لیجامعها فوصلت یده الٰی بنته منها فقرصها بشهوة و هی ممن تشتهی یظن انها امها حرمت علیه الام حرمة مؤبدة. کذا فی فتح القدیر...... ثمّ لا فرق فی ثبوت الحرمة بین کونه عامداً او ناسیاً...... ثم المس انما یوجب حرمة المصاهرة اذا لم یکن بینهما ثوب اما اذا کان بینهما ثوب.فان کان رقیقاً بحیث تصل حرارة الممسوس الٰی یده تثبت کذا فی الذخیرة...... و ألفتوٰی علی ان بنت تسع محل الشهوة لا ما دونها. کذا فی معراج الدرایة. انتهٰی. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷٤، الباب الثاث فی المحرمات)

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و لا فرق فیما ذکر بین اللمس و النظر بشهوة بین عمدٍ و نسیان و خطـــــاء و اکراه فلو ایقظ زوجته او ایقظته هی لجماعها فمست یده بنتها المشتهاة او یدها ابنه حرمت الاُمّ ابدا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۳، ص۳۵، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۰۰، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات.

## د زاني او مزنيې د اولادونو تر منځ نکاح جائزه ده

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د دې مسئلې وضاحت ستاسو له محترم حضور څخه غواړو چه د زاني او مزنيې تر منځ نکاح جائزه ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو په زنا سره د حرمت مصاهرت اثبات په څلور ډولونو



ویشلی دی کوم چه په هغو کښې صورت مسئوله شامله نه ده نو له دې وجهې د زاني او مزنيې د اولادونو پخپل منځ کښې نکاح جائزه او صحیح ده۔

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و اراد بحرمة المصاهرة المحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً کما فی الوطیء الحلال و یحل لأصول الزانی و فروعه اصول المزنی بها و فروعها. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۱، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله حرم ایضاً با لصهرية اصل مزنية)...... و مثله ما قدمناه قریباً عن القهستانی عن النظم و غیره و قوله و یحل الخ ای کما یحل ذٰلك با لوطیء الحلال و تقییده با لحرمات الاربع مخرج لما عداها و تقدم آنفاً الکلام علیه. (رد المحتار ج۳، ص۳۲، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷۵، الباب الثالث فی المحرمات.

## د نابالغ هلك له بالغې نجلۍ سره د زنا په کولو سره د حرمت مصاهرت حکم

**سوال:** که چېرته یو نابالغ هلك له کومې بالغې نجلۍ سره زنا وکړي نو آیا حرمت مصاهرت پرې ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زنا سره د حرمت مصاهرت د ثبوت لپاره د هلك او نجلۍ بلوغ ضروري دی او که نه نو کم تر کمه مراهق والی خو ئې شرط دی۔ نو له دې وجهې هغه هلك چه مراهق نه وي په زنا سره ئې حرمت مصاهرت نه ثابتیږي۔

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و کذا تشترط الشهوة فی الذکر حتی لو جامع اربع سنین زوجة ابیه لا تثبت الحرمة. و فی الذخیرة خلافه و ظاهر الاوّل انه یعتبر فیه السّنّ المذکور لها و هو تسع سنین. (البحر الرائق ج۳، ص۹۹)

و قال ایضاً: المراهق کا لبالغ. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۰، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

قال ابن عابدین رحمه اللّٰه: (تحت قول کبالغ)..... و فی الفتح لو مس المراهق و اقر انه بشهوة ثبت الحرمة. (رد المحتار ج۳، ص۳۷، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات) و مثله فی الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷۵، الباب الثالث فی المحرمات.

## د زوی له منکوحې سره نکاح حرامه ده

**سوال:** یو هلك نکاح وکړه لیکن په جماع باندې قادر نه وو۔ اوس که چېرته د هلك پلار وغواړي چه له نوموړې نجلۍ سره نکاح وکړي نو کولی ئې شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې کله چه یوه ښځه یو ځل د چا په نکاح شي نو د همیشه لپاره د سړي په پلار باندې حرامیږي او په هیڅ صورت کښې هم د هلك پلار له هغې سره نکاح نه شي کولی۔

قال اللّٰه تبارك وتعالٰی: وَ حَلَائِلُ اَبْنَآئِکُمُ الَّذِیْنَ مِنْ اَصْلَابِکُمْ. (سورة النسآء، آیت ٤)

و فی الهندية: و حلیلة الابن و ابن الابن و ابن البنت و ان سفلوا دخل بها الابن ام لا. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷٤، القسم الثانی فی المحرمات با لصهرية) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۸۸، کتاب النکاح.

## د ناسکه زوی سره زنا کوونکې ښځه پخپل خاوند باندې حرامیږي

**سوال:** که چیرته یوه ښځه له خپل ناسکه زوی سره زنا وکړي نو آیا دا ښځه د خپل خاوند لپاره حلاله ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه یوه ښځه د خپل خاوند له بالغ او یا مراهق زوی سره زنا وکړي نو د دغې زنا له وجهې دا ښځه پخپل خاوند باندې د تل لپاره حرامیږي۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: قال فی البحر اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۴، فصل فی المحرمات)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و المحرمین و اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً. و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۱، فصل فی المحرمات) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۷۵، الباب الثالث فی المحرمات.

## د نابالغ هلك سره زنا د حرمت مصاهرت سبب نه ده

**سوال:** یوې ښځې د شهوت د شدت له وجهې له یوه نابالغ هلك سره زنا وکړه او اوس دا ښځه غواړي چه نوموړي هلك ته خپله لور په نکاح ورکړي نو آیا د دغو دواړو نکاح صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حرمت مصاهرت د اثبات لپاره هغه زنا د اعتباره وړ ده چه په هغې کښې دواړه خواوې بالغې او مراهقې وي۔ په صورت مسئوله کښې چونکه هلك مراهق هم نه دی له دې وجهې حرمت مصاهرت نه ثابتیږي او نکاح ئې له یو بل سره جائز دی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: فلو جامع غیر مراهق زوجة ابیه لم تحرم. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۹، فصل فی المحرمات)

و فی الهندیة: و کذا تشترط الشهوة فی الذکر حتی لو جامع ابن اربع سنین زوجة ابیه لا تثبت به حرمة المصاهرة کذا فی فتح القدیر. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۵، القسم الثانی فی المحرمات با لصهریة) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۹۹، فصل فی المحرمات.

## د فرج داخــــــل ته کتل د حرمت مصاهرت موجب دی

**سوال:** د فقه په کتابونو کښې راغلي دي چه د شهوت په نظر په کتلو سره حرمت مصاهرت ثابتیږي په داسې حال کښې چه نن صبا اکثر بد معاشه ځوانان په بازارونو کښې نجونو ته د شهوت په نظر سره ګوري نو آیا په دې سره حرمت مصاهرت ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مطلق د شهوت په نظر سره کتل د حرمت مصاهرت سبب نه دی بلکه د یوې ښځې د فرج داخل ته د شهوت په نظر سره کتل د حرمت سبب دی او نور بدن ته د شهوت



په نظر په کتلو سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و المنظور الی فرجها الداخل. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۶، باب المحرمات)

و فی الهندیة: و المعتبر النظر الی الفرج الداخل هکذا فی الهدایة و علیه الفتوی هکذا فی الظهیریة الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۴، القسم الثانی فی المحرمات با لصهریة) و مثله فی الهدایة ج۲، ص۲۷۹، کتاب النکاح.

## کم عمرې نجلۍ ته په شهوت سره لاس وروړل د حرمت مصاهرت سبب نه دی

**سوال:** که چیرته یو سړی د ۷ یا ۸ کالو له عمر څخه کوچنۍ نجلۍ په شهوت سره مس کړي نو آیا په دې سره حرمت مصاهرت ثابتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حرمت مصاهرت په هغه وخت کښې ثابتیږي چه نجلۍ مشتهاته وي چونکه د ۷ یا ۸ کالو نجلۍ مشتهاته نه وي نو له دې وجهې په نوموړي صورت کښې حرمت مصاهرت نه ثابتیږي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه اللّٰه: و بنت سنها دون تسع لیست بمشتهاة. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۹، فصل فی المحرمات)

و فی الهندیة: الفتوی علی بنت تسع محل الشهوة لا ما دونها. کذا فی معراج الدرایة. قال الفقیه ابو اللیثؒ ما دون تسع سنین لا تکون مشتهاة و علیه الفتوی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۷۵، القسم الثانی فی المحرمات الصهریة) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص۹۹، فصل فی المحرمات، کتاب النکاح.

## له خواښې سره د زنا تر اقرار وروسته انکار هیڅ حیثیت نه لري

**سوال:** جناب مفتي صاحب! دلته د علاقایي جرګې په وړاندې یوه سړي اقرار وکړ چه ما له خپلې خواښې سره زنا کړې ده لیکن اوس له خپلې خبرې څخه منکر دی نو آیا اوس خپله ښځه ورته حلاله ده او که حرامه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته په رښتیا هم همداسې وي نو د یو ځل له اقرار کولو نه وروسته انکار هیڅ فائده نه ورکوي او خپله ښځه پرې حرامه شوې ده جرګه دې د ده د انکار تصدیق نه کوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فی الخلاصة قیل لهٗ ما فعلت بامرأتك فقال جامعتُها تثبت الحرمة و لا یصدق انه کذب و لو هازلاً. قال ابن عابدینؒ (قوله و لا یصدق انه کذب الخ) ای عند القاضی اما بینه و بین اللّٰه تعالٰی و ان کان کاذباً فیما اقر لم تثبت الحرمة. (رد المحتار ج۲، ص۳۹۰، فصل فی المحرمات)

قال ابن نجیمؒ: قیل لرجل ما فعلت بام امرأتك قال جامعتُها تثبت الحرمة و لا یصدق انه کذب و ان کانوا هازلین و الاصرار لیس بشرط فی الاقرار لحرمة المصاهرة. (البحر الرائق ج۱، ص۱۰۱، کتاب النکاح، فصل فی المحرمات)

## د مزنیه کافرې ښځې له لور سره د نکاح حکم

**سوال:** دلته په لندن کښې د يوه مسلمان وګړي له کافرې ښځې سره ناجائز تعلقات وو. او اوس نوموړي سړي توبه ايستلې ده او د نوموړې ښځې له مسلمانې لور سره غواړي چه نکاح وکړي نو آيا دا نکاح ورته جائزه ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يوې ښځې لره که مسلمانه وي او که کافره په شهوت سره مس کول او يا له هغې سره ناجائز تعلقات جوړول د حرمت مصاهرت موجب دی. د دې حرمت له وجهې د دغې ښځې اصول او فروع په مس کوونکي باندې حراميږي نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د مسلمان سړي لپاره د دغې کافرې ښځې له مسلمانې لور سره نکاح جائزه نه ده.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و اصل ممسوسة بشهوة و لو بشعر على الرأس....... و فروعهن مطلقاً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۵، فصل فى المحرمات)

و فى الهندية: فمن زنى بامرأة حرمت عليه امها و ان علت و ابنتها و ان سفلت و كذا تحرم المزنى بها على آباء الزانى و اجداده و ان علوا و ابنائه و ان سفلوا كذا فى فتح القدير...... كما تثبت هٰذه الحرمة با لوطىء تثبت با لمس و التقبيل و النظر الى الفرج بشهوة كذا فى الذخيرة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۲۷۴، القسم الثانى فى المحرمات الصهرية) و مثله فى الهداية ج۲، ص۲۸۹، كتاب النكاح.

## د خواښې د تي په نيولو سره خپله ښځه په سړي حراميږي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چېرته زوم د خواښې تی په لاس کښې ونيسي نو آيا خپله ښځه پرې حراميږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته زوم په شهوت سره د خواښې تي ته له حائل پرته لاس وروړي او يا حائل وي ليکن دومره نری وي چه بيا هم لذت ورته حاصليده نو په دې سره په نوموړي سړي باندې خپله ښځه حراميږي.

قال العلامة الحصكفى: و حرم اصل ممسوسة بشهوة و لو بشعر على الرأس بحائل لا يمنع الحرارة....... و فروعهن مطلقاً و العبرة للشهوة عند المس. قال ابن عابدين (تحت قوله بشهوة) اى و لو من احدهما (قوله بحائل) اى لو بحائل...... فلو كان مانعاً لا تثبت الحرمة. (رد المحتار ج۲، ص۳۸۵، فصل فى المحرمات)

قال العلامة ابن نجيم: فما على الرأس كا لبدن بخلاف المسترسل و انصرف اللمس الى اى موضع من البدن بغير حائل و اما اذا كان بحائل فان وصلت حرارة البدن الى يده تثبت الحرمة و الا فلا. (البحر الرائق ج۳، ص۱۰۰، فصل فى المحرمات)

## د حرمت مصاهرت د اثبات لپاره د ګواهانو تعداد

**سوال:** د حرمت مصاهرت د اثبات لپاره د څو ګواهانو موجودوالی ضروري دی تر څو چه که چېرته يو څوک انکار وکړي نو د هغوی په ګواهي سره دعوٰی ثابتيدلی شي؟ بينوا توجروا.



**الجواب باسم ملهم الصواب:** له زنا پرته د نورو حقوقو او دعوو د اثبات لپاره د دوو سړو يا يو سړی او دوو ښځو ګواهي ضروري ده له دې وجهې حرمت مصاهرت هم د همدومره ګواهانو په ګواهي سره ثابتيدلی شي.

قال العلامة الحصكفى: و لغيرها من الحقوق سواء كان الحق مالاً او غيره كنكاح و طلاق و وكالة...... الخ. رجلان او رجل و امرأتان. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۴، ص۵۱۴، كتاب الشهادة)

قال العلامة ابن نجيم: و لغيرها رجلان او رجل و امرأتان للآية اطلقه فشمل المال و غيره كا لنكاح و الطلاق و الوكالة و الوصيّة و النسب. (البحر الرائق ج۷، ص۶۲، كتاب الشهادة)

## د مزنيې د لور نکاح د زاني له زوی سره جائز دی

**سوال:** يوه سړي له کومې ښځې سره ناجائز تعلقات درلود او اوس غواړي چه د نوموړې ښځې لور خپل زوی ته په نکاح کړي نو آيا دا نکاح به جائزه وي او که نه په داسې حال کښې چه د مزنيې دغه لور ئې له خپل خاوند څخه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حرمت مصاهرت کښې په جانبينو باندې د يوه او بل اصول او فروع حراميږي. په صورت مسئوله کښې چونکه د زاني زوی او د مزنيې د لور تر منځه د حرمت کومه رشته نشته نو ځکه د دوی دواړو نکاح د زاني او مزنيې د ناجائزو تعلقاتو له وجهې نه متاثر کيږي.

و فى الهندية: لا بأس بان يتزوج الرجل امرأة و يتزوج ابنه ابنتها او امها كذا فى محيط السرخسى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۴۷۷، القسم الثانى فى المحرمات با لصهرية)

قال العلامة المرغينانى: و يجوز ان يتزوج الرجل باخت اخيه من الرضاع لانه يجوز ان يتزوّج باخت اخيه من النسب. (الهداية ج۲، ص۳۳۰، كتاب الرضاع)

## د مزنيې له رضاعي لور او يا لمسۍ سره د نکاح حکم

**سوال:** آيا د مزنيې له رضاعي لور او يا لمسۍ سره نکاح جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زنا چونکه د حرمت مصاهرت سبب دی او له وجهې ئې په جانبينو باندې د يوه او بل اصول او فروع که نسبي وي او که رضاعي دواړه حراميږي. نو له دې وجهې د زاني د مزنيې له رضاعي لور يا لمسي سره نکاح جائز نه دی.

قال العلامة الحصكفى: حرمت المرأة على اصول الزانى و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمت اصولها و فروعها على الزانى نسباً و رضاعاً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۴، فصل فى المحرمات)

قال العلامة ابو البركات النسفى رحمه الله: حرم تزوج اُمه و بنته و ان بعدتا و اُخته و بنتها وبنت اخيه و عمته و خالته و ام امرأته و بنتها ان دخل بها و امرأة ابيه و ابنه و ان بعدا و الكل رضاعاً. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۳، ص۹۲، فصل فى المحرمات) و مثله فى الهندية ج۱، ص۲۷۵، الباب الثالث فى المحرمات.

## د مزنيې له لمسي سره د زاني د نکاح حکم

**سوال:** يوه سړي له کومې ښځې سره ناجائز تعلقات درلودل چه له وجهې ئې د لمس او تقبيل (ښکلولو) نه علاوه د زنا ارتکاب هم ورنه شوی دی. اوس نوموړی سړی غواړي چه د همدې ښځې له لمسۍ سره نکاح وکړي نو آيا دا نکاح به جائزه وي او که څنګه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمس او تقبيل او زنا له ارتکاب څخه د مزنيې اصول او فروع په زاني او د زاني په اصولو او فروعو باندې حراميږي. نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د مزنيې لمسۍ د زاني لپاره حرامه ده.

قال العلامة الحصکفیؒ: حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمت اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۴، فصل فی المحرمات)

و فی الهندية: فمن زنا بامرأة حرمت عليه امها و ان علت و ابنتها و ان سفلت الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷۴، القسم الثانی فی المحرمات با لصهرية) و مثله فی کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۹۲، فصل فی المحرمات.

## د منکوحې له ربيبه لور سره د زنا په کولو سره د منکوحه حکم

**سوال:** يوه سړي د خپلې منکوحې له لور (چه د هغې له مخکښينی خاوند څخه ده) زنا وکړه نو آيا په نوموړي سړي باندې خپله منکوحه حراميږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه سړي له خپلې ناسکه لور سره زنا د حرمت مصاهرت سبب دی. نو له دې وجهې په نوموړي سړي باندې خپله ښځه حراميږي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه: قال فی البحر اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة علی اصول الزانی و فروعه نسباً و رضاعاً و حرمة اصولها و فروعها علی الزانی نسباً و رضاعاً. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۴، فصل فی المحرمات)

و فی الهندية: فمن زنا بامرأة حرمت عليه امها و ان علت و ابنتها و ان سفلت الخ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷۴، القسم الثانی فی المحرمات با لصهرية) و مثله فی کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۳، ص۹۲، فصل فی المحرمات.

## د غير مدخوله منکوحې (جماع ئې ورسره نه وي کړې) له لور سره د نکاح حکم

**سوال:** يوه سړي له کومې ښځې سره نکاح وکړ ليکن تر اوسه پورې ئې دخول نه دی کړی. اوس غواړي چه د دې ښځې له لور کومه چه د دې له مخکښيني ميړه څخه ئې ده نکاح وکړي. نو آيا دا نکاح جائز ده او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د منکوحې ښځې لور اګرکه له محرماتو څخه ده ليکن د هغې حرمت له دخول پورې اړه لري يعنې دخول ورته شرط دی. چونکه په صورت مسئوله کښې دخول نه دی شوی نو له دې وجهې نوموړی سړی دې ښځې ته له طلاق ورکولو او عدت له تيريدلو وروسته د هغې له لور سره نکاح کولی شي.



لقوله تعالی: وَ رَبَآئِبُکُمُ الّٰتِیْ فِیْ حُجُوْرِکُمْ مِّنْ نِّسَآئِکُمُ الّٰتِیْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ. (النساء آيت۲۳)

قال العلامة الحصکفیؒ: و حرم با لمصاهرة زوجة الموطوئة و ام زوجته و جدتها مطلقاً بمجرد العقد الصحيح. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۳۸۲، فصل فی المحرمات) و مثله فی الهداية ج۲، ص۲۸۷، فصل فی بيان المحرمات

## د زوی د غير مدخوله منکوحې سره د نکاح حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ يوه خپل ته په يوه ځای کښې کوزده وکړه چه په باقاعده توګه سره مو نکاح هم وتړله. تر اوسه پورې لا سره يو ځای شوي نه وو چه هغه په کومه حادثه کښې مړ شو. نو اوس که چېرته د دې هلک پلار وغواړي چه له همدې نجلۍ سره نکاح وکړي نو په شريعت کښې ورته اجازه شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه د شرعي ګواهانو په مخکښې يو ځل ايجاب او قبول وشي او نکاح په صحيح صورت کښې وتړل شي نو دا نجلۍ د همدغه سړي منکوحه ده چه له چا سره ئې نکاح شوې وي. د پلار ئې له دغې ښځې سره نکاح حرام او ناجائز دی که زوی ئې دخول پکښې کړی وي او که نه.

قال العلامة المرغينانیؒ: و لا بامرأة ابنه و بنی اولاده. لقوله تعالی وَ حَلَآئِلُ اَبْنَآئِکُمُ الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِکُمْ. (الهداية ج۲، ص۲۸۸، فصل فی بيان المحرمات)

قال ابن نجيمؒ: اما حليلة الابن فبقوله تعالی وَ حَلَآئِلُ اَبْنَآئِکُمُ الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِکُمْ فان اعتبرت الحليلة من حلول الفراش و حل الازار و تناولت الموطوئة بملك اليمين او شبهة او زنیٰ فيحرم الکل علی الآباء...... و الفرض انها بمجرد العقد تحرم علی الآباء. (البحر الرائق ج۳، ۹۴، فصل فی المحرمات) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۲۶۸، فصل فی المحرمات.

## په خسر باندې يوائې د زنا په دعوې سره ښځه پخپل خاوند باندې نه حراميږي

**سوال:** که چېرته يوه ښځه دا دعویٰ وکړي چه له ما سره خپل خسر زنا کړې ده په داسې حال کښې چه خسر ئې ترې منکر وي. نو آيا دا ښځه د ده د زوی لپاره حلاله ده او که حرامه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې له ګواهانو او يا د خسر له اقراره پرته دعویٰ نه ثابتيږي او يوائې د دعوې په کولو سره د خاوند او ښځې تر منځ حرمت نه ثابتيږي تر څو پورې ئې چه خاوند هغه کار قبول کړی نه وي. د خاوند له تسليمولو پرته د اقرار په صورت کښې هم حرمت نه ثابتيږي. بيا هم که چېرته په رښتيا سره دا کار شوی وي نو په يوې مناسبې طريقې سره به د دوی تر منځ جلا والی راوستل کيږي.

و فی الهندية: رجل تزوج امرأة علی انها عذراً فلما اراد وقاعها و جدها قد افتضت فقال لها من افتضك فقالت ابوك ان صدقها الزوج بانت منه و لا مهر لها و ان کذبها فهی امرأته. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۲۷۶، القسم الثانی فی المحرمات با لصهرية)

## د مزنيې اصول او فروع په زاني باندې حراميږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زيد د يوې مطلقې سره د عدت له ختم کيدو نه مخکښې نکاح کوي او بيا له خپلې فاسدې منکوحې سره له جماع نه څه وخت وروسته له خپلې خوابنې سره د زنا مرتکب ګرځي. د مطلقې منکوحې سره د زيد بچيان هم شته او اوس ئې حمل له زيد څخه دی نو د دواړو د نکاح څه حکم دی؟ او آيا دوباره په کومې طريقې سره هغوی د ازدواج په رشته کښې سره منسلك کيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زيد او د موصوفې مطلقې تر منځ نکاح د تل لپاره حرامه ده او د جواز ئې کومه حيله او طريقه وجود نه لري.

قال العلامة الحصكفيؒ: و حرم بالصهرية اصل مزنيته و اصل ممسوسة بشهوة و ناظرة الى ذكره...... الى قوله و فروعهن مطلقا. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۳۰۳/۳۰۴، فصل فى المحرمات)

قال العلامة المرغينانيؒ: و من زنى بامرأة حرمت عليه اُمّها و بنتها....... فيصير اصولها و فروعها كاصوله و فروعه الخ. (الهداية ج۲، ص۲۸۹، فصل فى بيان المحرمات) و مثله فى البحر الرائق ج۳، ص۹۸، فصل فى المحرمات.

## د وينې په ورکولو سره د حرمت مصاهرت حکم

**سوال:** که چېرته د خاوند او ښځې د وينې ګروپ سره يو وي نو آيا د خاوند وينه ښځې ته په ورکولو سره حرمت مصاهرت ثابتيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خاوند خپلې ښځې ته د وينې په ورکولو سره حرمت مصاهرت نه ثابتيږي لکه څرنګه چه يو سړی د کومې ښځې شيدې وچښي او له حرمت څخه ئې حرمت مصاهرت نه ثابتيږي اګر که هغه شيدې د بدن جزء هم جوړيږي.

## له خوښيني سره په زنا کولو باندې نکاح نه ماتيږي

**سوال:** که چېرته زيد د خپلې ښځې له خور سره په زوره زنا وکړي نو آيا خپله ښځه ئې پرې حراميږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له خوښيني سره په زور او جبر سره په زنا کولو باندې په زيد باندې خپله ښځه نه حراميږي البته سخت ګنهګاريږي.

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و فى الفتاوى النسفى رجل وطىء اخت امرأته لا تحرم عليه امرأته آه (خلاصة الفتاوى ج۲، ص۷، كتاب النكاح، الفصل الثانى فيمن يكون محلا للنكاح و فيما لا يكون)

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفيؒ: و فى الخلاصة وطى اخت امرأته لا تحرم عليه امرأته. قال ابن عابدينؒ (قوله فى الخلاصة) هذا محترزا لتقييد با لاصول و الفروع و قوله لا تحرم اى لا تثبت حرمة المصاهرة فا لمعنى لا تحرم حرمة مؤبدة و الا فتحرم الى انقضاء عدة الموطوئة لوبشبهه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۳، ص۳۴، كتاب النكاح، فصل فى المحرمات) و مثله فى فتاوى دار العلوم ديوبند ج۷، ص۳۴۴، كتاب النكاح، فصل فى حرمة المصاهرة.



# باب الحضانة

## (د کوچنيانو د پروش او تربيې احکام او مسئلې)

## د کوچنيانو د ساتنې حق مور لره دی

**سوال:** يوې ښځې د خاوند له وفات نه وروسته خپلې پلار ګنې ته لاړه او په کوچنې بچيانو ئې د هغوی نيکه او انا قبضه کړې ده او له مور سره ئې نه پريږدي نو آيا په داسې حالت کښې د دغو بچيانو د ساتنې حق خپله مور ئې لري او که نيکه او انائې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شريعت له مخې په نوموړې صورت کښې مور د خپلو بچيانو د تربيې حق لري اګر که دغه مور د خاوند په نکاح کښې وي او که له خاوند نه د جدايې په حالت کښې وي. په نوموړې صورت کښې کله چه مور خپل بچيان د تربيت لپاره غواړي نو د پلار وارثان ئې چه دغه کوچنيان له خپلې مور څخه منع کوي نو دا منع کول د دوی ظلم او زياتی دی.

لما قال العلامة التمرتاشيؒ: تثبت للاُمّ و لو بعد الفرقة الا ان تكون مُرتدّة. (تنوير الابصار على هامش رد المحتار ج۲، ص۶۸۷، باب الحضانة)

و قال فى الهندية: احق الناس بحضانة الصغير حال قيام النكاح او بعد الفرقة الأمّ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۴۱، الباب السادس عشر فى الحضانة) و مثله فى البحر الرائق ج۴، ص۱۶۷، باب الحضانة.

## له مور نه وروسته د مور له خوا انا د تربيت زياته حقداره ده

**سوال:** د يوې ښځې له وفات نه وروسته د هغې د کوچنيانو د ساتنې او پرورش په سر د مور له خوا انا او د پلار له خوا انا تر منځ جنجال پيدا شوی دی. هره يوه د نوموړې کوچنيانو د ساتنې دعوی لري نو آيا په داسې حالت کښې د شريعت له مخې کومه يوه د تربيت حق لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شريعت کښې د مور مور يعنې د مور له خوا انا تر بلوغه پورې د پرورش حق لري يعنې تر بلوغه پورې دغه کوچنيان به د مور له مور سره وي. له بلوغ نه وروسته بيا د هغوی خپله خوښه ده که د پلار په کور کښې اوسيږي او که د مور د مور (انا) په کور کښې اوسيږي خو په دې شرط چه په دې وخت کښې د انا په کور کښې د دوی عصمت او پاکدامنۍ ته کوم خطر متوجه نه وي.

لما قال فى الهندية: و ان لم يكن له ام تستحق الحضانة بان كانت غير اهل للحضانة او متزوجة بغير محرم او ماتت فاُم الأم اولى من كل واحدة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۴۱، الباب السادس عشر فى الحضانة)

و قال العلامة الحصكفيؒ: (ثم) اى بعد الأمّ بان ماتت او لم تقبل او سقطت حقها او تزوجت باجنبى (ام الامّ). (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۲، ص۶۹۲، باب الحضانة) و مثله فى البحر الرائق ج۴، ص۱۶۷، باب الحضانة.

## د پلار په ځای انا (د مور مور) د ساتنې زیاته حقداره ده

**سوال:** یوه سړي خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړه او له همدې ښځې څخه یوه لور هم لري چه له طلاق نه وروسته له خپلې مور سره وه او پلار ئې د خپلې لور خرڅه ورکوله. څه وخت وروسته مطلقې له چاسره دوهمه نکاح وکړه او اوس ئې انا (د مور مور) وایي چه د دغې بچۍ د ساتنې زه ډېره حقداره یم په داسې حال کښې چه پلار ئې وایي چه دا بچۍ به اوس له ما سره وي نو په شریعت کښې د دغې بچۍ د ساتنې زیات حقدار څوك دی، پلار ئې که د مور له خوا انائې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د مطلقې له دوهمې نکاح نه وروسته له هغې څخه د بچي د ساتنې حق ساقطیږي لیکن د پلار په ځای ئې د بچي د ساتنې حق د مور مور یعنې انا ته حاصل دی. بیا به هم د بچي ټوله خرڅه په پلار باندې وي.

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: ثم ای بعد الام اُم الام. (تنویر الابصار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص٦٩٢، باب الحضانة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: ثم ام الام ای بعد الام. (البحر الرائق ج٤، ص١٦٧، باب الحضانة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٥٤١، الباب السادس عشرا فی الحضانة.

## د نجلۍ د پرورش د حق موده

**سوال:** که چېرته د یوې نجلۍ د تربیت ذمه واره د هغې په مور باندې وي نو مور تر څومره وخته پورې د دې د ساتنې حق لري. آیا پلار کله دا حق لري چه دا خپله لور له ځان سره خپل کور ته بوځي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مور تر بلوغه پورې خپل بچي له ځان سره ساتلی شي او په دې دوران کښې دا د خپلو بچیانو د ساتنې او پرورش حق لري. تر څو پورې چه د حق تربیت د اسقاط اسباب موجود شوي نه وي پلار له مور څخه دغه بچیان نه شي بوتللی. البته له بلوغ نه وروسته بچیان پخپله خوښه په والدینو کښې چه له کوم یوه سره اوسیدل غواړي اوسیدلی شي.

لما ذکر علاؤ الدین الحصکفیؒ: و الام و الجدة احق بها حتٰی تحیض و غیرهما احق بها حتٰی تشتهی و قدر بتسع و به یفتی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٦٩٥، باب الحضانة)

قال ابن نجیم المصریؒ: و قدره ابو لیث بتسع سنین و علیه الفتوٰی. (البحر الرائق ج٤، ص١٧٠، باب الحضانة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٥٤٢، الباب السادس عشرا فی الحضانة.

## د کونډې د دوهم نکاح په صورت کښې د هغې د کوچنیانو د تربیت مسئله

**سوال:** یوې کونډې ښځې دوهمه نکاح وکړه او په غېږ کښې د څلور میاشتو تي رودونکی بچی هم شته. د نکاح په وخت کښې له دواړو خواوو څخه یوې خوا هم د بچي د تربیت د استحقاق مسئله و نه څېړله. اوس نجلۍ دوه کلنه ده او وارثان ئې غواړي چه له مور څخه ئې جلا کړي او خپل کور ته ئې راولي. نو اوس پوښتنه دا ده چه دا بچۍ د بچي خپل عصبه له مور څخه





واپس اخیستلی شي او که نه په داسې حال کښې چه د بچي ناسکه پلار ئې تربیت ته تیار دی؟

40

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه خاوند د ربیبې د خرڅې او تربیت ذمه واري شرعا قبلوي نو ښکاره خبره ده چه له مور سره په اوسیدو باندې بچي ته چه کوم سکون او اطمینان حاصلیږي له عصبه وو سره په اوسیدو باندې ممکن نه دی. نو له دې وجهې بهتره هم دا ده چه بچی له خپلې مور سره و اوسیږي او وارثان ئې هم د واپسۍ دعوه پرېږدي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و فی الحاوی تزوجت باجنبی و طلبت تربیته بنفقة و التزمه ابن عمه مجاناً و لا حاضنة له فله ذٰلك. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص٦٩٠، باب الحضانة)

قال ابن نجیم المصریؒ: و الصحیح انه یقال للوالدة اما ان تمسکی الولد بغیر اجر و اما ان تدفعیه الی العمة. (البحر الرائق ج٤، ص٢٠٤، باب النفقة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٥٤٣، الباب السادس عشر فی الحضانة.

## د کونډې له کوم غیر محرم سره د نکـــــاح په صورت کښې د تـــــــربیت حق ساقطیږي

**سوال:** یوې کونډې د عدت له تیرولو وروسته له یوه داسې سړي سره نکاح وکړه چه د مخکښینی خاوند د بچي خپل نه وو بلکه یو پردی سړی وو او د کونډې د لور له خپل ځان سره د ساتلو او د هغې په تربیت باندې زړه نازړه هم وو لیکن ښځه د تربیت د استحقاق په دعوٰی باندې اصرار کوي چه دا بچۍ به له ما سره وي. آیا دا ښځه خپلې لور لره له خپل ځان سره د ساتلو حق لري او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له غیر محرم سره په نکاح کولو باندې له دې ښځې څخه د خپل بچي د حضانت حق ساقطیږي. له دې وجهې په صورت مسئوله کښې د بچۍ انا د هغې د حضانت حق لري.

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: یسقط حقها بنکاح غیر محرمه. (تنویر الابصار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص٦٩٤، باب الحضانة)

و قال العلامة ابی البرکات عبد اللّٰه بن احمد النسفیؒ: و من نکحت غیر محرم سقط حقها. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج٤، ص١٦٨، باب الحضانة) و مثله فی فتح القدیر ج٤، ص١٨٥، باب الولد من احق به.

## د اخــــــلاقي حالت او کردار د متاثر کیدو په صورت کښې د مــــــور د تربیت حق ســـــاقطیږي

**سوال:** یوه بچۍ د مور په غېږ کښې ده اګر که شرعا او عرفاً والده ئې زیات د تربیت حق لري او مور چه د بچي کوم تربیت کولی شي په هغه اندازه د بل چا تربیت مشکل دی لیکن له دې سره سره د مور اخلاقي حالت او کردار ډېر خراب دی او که چېرته بچۍ ئې ورسره پرېښودل شي نو دا ویره ده چه والدې د تربیت او اخلاق څخه به متاثره شي او بد اخلاقه به لویه شي نو آیا په داسې حالت کښې د مور د تربیت حق ساقطیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت کښې د بچي دیني تربیت او د کردار تحفظ ډېر اهمیت

لري لیکن کله چه د مور د فسق او فجور له وجهې بچي بې دینه او بد اخلاقه کیږي او د اخلاقي تربیې د سقوط قوي احتمال وي نو د تربیت نورو اصحابو ته په کار دي چه چېرته هم د هغې ژوند، اخلاق، عصمت او عفت د تحفظ ضمانت وجود ولري نو هم هلته دې د هغې د تربیت انتظام وکړي۔

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: للام و لو بعد الفرقة الا ان تکون مرتدة او فاجرة او غیر مامونة. (تنویر الابصار علی هامش رد المحتار ج۲، ص۶۸۷، باب الحضانة)

و فی الهندیة: احق الناس بحضانة الصغیر حال قیام النکاح او بعد الفرقة الأم الا ان تکون مرتدة او فاجرة غیر مامونة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۴۱، الباب السادس عشر فی الحضانة) و مثله فی البحر الرائق ج۴، ص۱۶۸، باب الحضانة.

## د ولد الزنا د حضانت ذمه واري په چا باندې ده

**سوال:** کوم بچی چه له زنا څخه پیدا شوی وي نو د هغه د ساتنې او تربیت ذمه وار به څوك وي، زاني او که مزنیه (د بچي مور)؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم بچي چه پلار معلوم نه وي نو د هغه نسبت د مور خوا ته کیږي۔ لهذا د هغه د تربیت ذمه واري به هم د هغه په مور باندې وي۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: الحضانة تثبت للأمّ النسبية. (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ج۲، ص۶۸۸، باب الحضانة)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا وقعت الفرقة بین الزوجین فا لأمّ احق با لولد. (الهدایة ج۲، ص۴۱۳، باب حضانة الولد و من احق به) و مثله فی فتاوی دار العلوم دیوبند ج۱۱، ص۹۱، باب الحضانة.

## ښځه دا حق نه لري چه خپل بچی له ځان سره دار الحرب ته بوځي

**سوال:** یو سړی له دې ځای څخه جاپان ته لاړ او هلته ئې له کومې ښځې سره نکاح وکړه او له څو کلونو وروسته بیرته پاکستان ته راغی او بیا همدلته پاتې شو۔ او له څه وخت نه وروسته د ښځې او خاوند تر منځ د څه جنجال له وجهې خبره طلاق ته ورسیده او خپلې ښځې ته ئې طلاق ورکړ۔ او د نوموړي سړي له همدې ښځې څخه یو وړوکی بچی هم شته کوم چه اوس ئې خپله مور له ځان سره غواړي چه جاپان ته یوسي په د اسې حال کښې چه خاوند ئې خپل بچی جاپان ته نه ورسره پریږدي نو آیا دا ښځه د دې حق لري چه خپل بچی له ځان سره جاپان ته یوسي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حضانت کښې دا ضروري ده چه د بچي تربیت به په زوجینو کښې د یوه په کور کښې کیږي لیکن دار الحرب له دې څخه مستثنٰی ده۔ نو له دې وجهې په صورت مسئوله کښې دا ښځه خپل بچی له ځان سره جاپان ته نه شي وړلی بلکه د خپل بچي تربیت به په پاکستان کښې د اوسیدو په صورت کښې کوي۔

لما فی الهندیة: لیس للمرأة ان تنقل ولده الی دار الحرب و ان کان تزوجها هناك و کانت حربیة بعد ان یکون زوجها مسلما او ذمیاً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۴۵، الباب السادس عشر فی الحضانة)



# باب الولیمه

## (د ولیمې احکام او مسئلې)

## د ولیمـــــــــه شرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په مقدس شریعت کښې ولیمه واجبه ده او که سنت؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ولیمې دعوت سنت دی او د جناب نبي کریمﷺ قول او فعل دواړه پرې دال دي لیکن واجب نه دی۔ د حضرت عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه په باره کښې د اسې حدیث راغلی دی چه: فخرج الی السوق فباع و اشتری فاصاب شیئاً من اقط و سمن فتزوج فقال النبیﷺ اولم و لو بشاة. (الصحیح البخاری ج۲، ص۷۷۷، باب من اولم علی بعض نسائه)

عن انسؓ و عنه قال ما اولم رسول اللهﷺ علی احد من نسائه ما اولم علی زینب اولم بشاة. (مشکوٰة ج۲، ص۲۷۸، باب الولیمة)

قال فی الهندیة: و ولیمة العرس سنة و فیها مثوبة عظیمة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۳، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات) و مثله فی اعلاء السنن ج۱۱، ص۱۰، باب استحباب الولیمة.

## د ولیمې د دعوت مسنون وخت

**سوال:** د ولیمې د دعوت مسنون وخت کوم دی له واده نه مخکښې او که وروسته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ولیمې د دعوت مسنو وخت د ناوې له راوړلو نه وروسته دی۔ د خلوت صحیحه او دخول نه وروسته د مړې ورکول سنت دي۔ او د ناوې کور ته له راوړلو نه مخکښې ډوډۍ ورکول مسنونه ولیمه نه ده بلکه د عام دعوت حیثیت لري لکه د قربانۍ څناور چه د قربانۍ له وخت څخه مخکښې ذبح کړی شي نو قرباني ئې نه کیږي۔ بیا هم خوړل ئې جائز دي۔

قال فی الهندیة: و ولیمة العرس سُنة و فیها مثوبة عظیمة و هی اذا بنی الرجل بامرأته ینبغی ان یدعوا لجیران و الاقرباء و الاصدقاء و یذبح لهم و یصنع لهم طعاماً. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۳، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات)

عن انس رضی الله عنه قال اصبح النبیﷺ بها (بزینب ابنة حجشؓ) عروساً فدعا القوم فاصابوا من الطعام ثم خرجوا و بقی رهط. (الصحیح البخاری ج۲، ص۷۷۶) و قال الشیخ العثمانیؒ نقلا عن فتح الباری و حدیث انس فی هٰذا الباب صریح انها ای الولیمة بعد الدخول لقوله فیه اصبح عروساً بزینبؓ فدعا القوم. (اعلاء السنن ج۱۱، ص۱۱)

## د ولیمــــــې په دعوت کښې د غیر شرعي امورو د ارتکـــــــاب له وجهې د شریکیدلو حکـــــم

**سوال:** د ولیمې په دعوت کښې که چېرته د غیر شرعي امورو ارتکاب کیده نو په هغه کښې شرکت جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ولیمې په دعوت کښې که چېرته د غیر شرعي امورو ارتکاب کیده او دا خبره له اوله معلومه وه نو شرکت پکښې جائز نه دی۔ او که چېرته له تللو نه وروسته معلوم شي نو که چېرته دا لهو لعب دسترخوان ته نژدې نه وي نو عالم او مقتداء دې واپس راشي او که چېرته عوام الناس وي نو په پاتې کیدو کښې ئې څه ناڅه ګنجائش شته۔ او که چېرته د غیر شرعي امورو ارتکاب له دسترخوان سره نژدې کیده نو بیا دې ترې بیرته راشي اګر که عوام هم وي۔

قال العلامة المرغینانیؒ: و من دعی الٰی ولیمة او طعام فوجد ثمه لعباً او غناء فلا بأس با یقعد و یأکل. قال ابو حنیفةؒ ابتلیت بهٰذا مرة فصبرت و هٰذا لان اجابة الدعوة سنة. قال علیه السلام من لم یجب الدعوة فقد عصی ابا القاسم فلا یترکها لما اقترنت به من البدعة من غیره کصلٰوة الجنازة واجبة الاقامة و ان حضرتها نیاحة فان قدر علی المنع منعهم و ان لم یقدر یصبر و هٰذا اذا لم یکن مقتدی فان کان و لم یقدر علی منعهم یخرج و لا یقعد لان فی ذٰلك شئین الدین و فتح باب المعصیة علی المسلمین و المحکی عن ابی حنیفةؒ فی الکتاب کان قبل ان یصیر مقتدی و لو کان ذٰلك علی المائدة لا ینبغی ان یعقد و ان لم یکن مقتدی لقوله تعالٰی فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّکْرٰی مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ. هٰذا کله بعد الحضور و لو علم قبل الحضور لا یحضر لانه لم یلزمه حق الدعوة بخلاف ما اذا هجم علیه لانه قد لزمه. (الهدایة ج٤، ص٤٥٥، کتاب الکراهیة)

قال الطوریؒ: و ان کان ذٰلك علی المائدة فلا یقعد و ان کان هُناك لعب و غناء قبل ان یحضر فلا یحضر لانه لا یلزمه الاجابة اذا کان هناك منکر لما روی عن علیؓ قال صنعت للنبی ﷺ طعاماً فدعوته لهٗ فحضر فرأی فی البیت تصاویر فرجع. (البحر الرائق ج٨، ص١٨٨، کتاب الکراهیة) و مثله فی بدائع الصنائع ج٥، ص١٢٨، کتاب الاستحسان.

## د نجلۍ د خپلوانو له خوا ښځه ډوډۍ ورکول په ولیمه کښې نه شمارېږي

**سوال:** د نجلۍ د خپلوانو له خوا ښځه له یو ځای کیدو مخکښې چه کوم خوراك ورکول کیږي آیا هغه په ولیمه کښې ګڼل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نجلۍ د خپلوانو له خوا ښځه (یو ځای کیدو) نه مخکښې میلمنو ته خواړه او داسې نور ورکول په ولیمه کښې نه ګڼل کیږي۔ ولیمه هغه خواړه ته ویل کیږي چه د خاوند له خوا ښځه له وادہ نه وروسته خلکو ته ورکول کیږي۔

قال فی الهندیة: و ولیمة العرس سنة و فیها مثوبة عظیمة و هی اذا بنی الرجل بامرأته ان یدعوا لجیران و الاقرباء و الاصدقاء و یذبح لهم و یصنع لهم طعاماً. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٣٤٣، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات)

عن انس رضی الله عنه: قال ما رأیت النبی ﷺ اولم علٰی احد من نسائه ما اولم علٰی زینب اُولم بشاة. (مشکٰوة المصابیح ج٢، ص٢٧٨، باب الولیمة) و مثله فی اعلاء السنن ج١١، ص١٠، باب استحباب الولیمة.

## ولیمه تر څو ورځو پورې جائزه ده

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ولیمه یوائې یوه ورځ ورکول په کار دي او که ډیرې ورځې هم ورکول کیږي؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** ولیمه هغه دعوت ته ویل کیږي چه له واده نه وروسته خلکو ته د ډوډۍ لپاره ورکول کیږي۔ شریعت د هغه لپاره کومه خاصه ورځ نه ده ټاکلې بلکه دا دعوت ئې د واده د خلکو په طاقت او استطاعت پورې تړلی دی۔ که چېرته څوك د یوې ورځې په ځای ډیرې ورځې خلکو ته ډوډۍ ورکړي نو کوم قباحت پکښې نشته۔

لما فی الحدیث: عن انس رضی الله عنه قال تزوج النبی ﷺ صفیةؓ و جعل عتقها صداقها و جعل الولیمة ثلاثة ایام. (اعلاء السنن ج١١، ص١٣، باب جواز الولیمة الٰی ایام ان لم یکن فخراً)

عن حفصة بنت سیرین قالت لما تزوج ابی دعا الصحابة سبعة ایام فلما کان یوم الانصار دعا ابی بن کعب و زید بن ثابت و غیرهما فکان ابی صائماً فلما طعموا دعا ابی و اثنی. (اعلاء السنن ج١١، ص١٣، باب جواز الولیمة الٰی ایام ان لم یکن فخراً)

## د کوزدې په وخت کښې د خورو،شیانو د تقسیمولو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه زید وایي چه د نکاح په مجلس کښې کوم چه په عرف کښې ورته کوزده ویل کیږي له خرماوو او مټاییو نه پرته د نورو شیانو خوړل ناجائز دي او د نبي کریم ﷺ سنت هم په دغو دوو شیانو باندې جاري دی او د دلیل په توګه دا آیت کریمه لَکُم فِی رَسُوْلِ اللهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ وَ مَا اٰتَاکُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَ مَا نَهَاکُم عَنْهُ فَانْتَهُوْا وړاندې کوي په داسې حال کښې چه عمرو فرمایي چه خرما او مټایي هم یو ډول خوراك دی له دې وجهې د خطبې او عقد نه وروسته هر ډول خواړه جائز دي او په دلیل کښې دا آیت کریمه هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ لَکُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعاً وړاندې کوي او وایي چه د حرمت لپاره په دې باندې دلیل نیول په کار دي۔ او همدارنګه دا هم فرمایي چه نبي کریم ﷺ په دې موقع کښې د هیڅ ډول خوراك او څښاك څخه منع نه ده فرمایلې۔ د قرآن او سنتو په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وفرمایی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نکاح په مجلس کښې د خوړلو د شیانو تقسیم که هغه خرما یا خواږه او یا نور شیان وي نه فرض دی نه واجب او نه سنت مؤکد۔ ځکه چه په صحیحو روایتونو کښې د نکاح په وخت کښې د دغو شیانو نه ذکر راغلی دی او نه حضور ﷺ په دغو شیانو باندې مواظبت کړی دی او نه د ده مبارك ﷺ له وصال نه وروسته صحابۀ کرامو په دې باندې د مواظبت په توګه عمل کړی دی۔ لهذا که چېرته دا عمل لازم یا سنت وګڼل شي او وئې کړی نو ناجائز دی لیکن که چېرته د نکاح په وخت کښې د خوراکي شیانو تقسیم او یا په جانبینو کښې د یوه جانب له خوا د خوراك انتظام په دې غرض سره وشي چه چونکه دا یو مبارك مجلس دی کوم چه پکښې د یوه مسلمان سړي او یوې مسلمانې ښځې د نکاح عقد شوی دی کوم چه یو اهم عبادت هم دی او د الله تعالٰی له لوري یو نعمت هم دی تر څو پخپل منځ کښې مو محبت نور هم زیات شي او دوستي مو مضبوطه شي نو په داسې کولو باندې شرعا کوم قباحت نشته او څه لرې خبره هم نه ده چه د زړونو د تړاو او تالیف په نیت سره شوی عمل د اجر او ثواب

ذریعه هم جوړه شي ځکه چه شریعت د هر هغه عمل ترغیب ورکړی دی چه له وجهې ئې پخپل منځ کښې محبت زیاتیږي او دیني تعلقات مضبوطیږي. د جناب نبي کریم ﷺ مبارك ارشاد دی چه: اطعموا الطعام و افشوا السلام الخ. او وئې فرمایل چه: تحابوا تهادوا. (الحدیث)

له دې برسیره په ځینو روایتونو کښې دا هم راغلي دي چه د حضور ﷺ په مبارکه زمانه کښې کله کله خوراکي شیان د نکاحونو په مجلسونو کښې خوړل شوي هم دي لکه څرنګه چه په بیهقي، اوسط او معجم کښې راغلي دي: ان النبی ﷺ حضر فی املاك ای عقد نکاح فاتی باطباق علیها جوز و لوز و تمر فنشرت فقبضنا ایدینا فقال رسول الله ﷺ ما لکم لا تأخذون فقالوا انك نهیت عن النهبی فقال انما نهیتکم عن فهی العساکر خذوا علی اسم الله الخ. (مجموعة الفتاوی ج ۱، ص ۴۴۶)

علامه جلال الدین سیوطي رحمه الله د ام المؤمنین سیده ام حبیبه رضی الله عنها د نکاح واقعه (کومه چه د حضور ﷺ سره د شاه حبشه نجاشي په واسطه سره شوې وه) طبقات ابن سعد څخه نقل کوي او لیکي چه: ثم بعد الفراغ من النکاح ارادوا ان یقوموا فقال اجلسوا فان سنة الانبیاء اذا تزوجوا ان یؤکل طعام علی التزویج ندعی بطعام فاکلوا ثم تفرقوا انتهی. (مجموعة الفتاوی ج ۱، ص ۴۴۶)

چونکه د دې دواړو روایتونو اسناد ضعیف دي له دې وجهې له دغو حدیثونو څخه ئې سنتیت، وجوب او فرضیت نه شي ثابت کیدلی البته اباحت او جواز ئې ثابتیدلی شي.

په هر حال که چېرته د دغو شیانو ثبوت په نبوي ﷺ زمانې او د صحابهٔ کرامو په زمانه کښې له صحیحو احادیثو او معتبرو روایتونو څخه هم و نه شي بیا هم دې ته ناجائز او حرام نه شي ویل کیدلی بلکه دا عمل له مباحو امورو څخه ګڼل کیږي خو په دې شرط چه په هغه کښې د ناجائزو کارونو ارتکاب و نه شي. د مثال په توګه خوراکي شیان د جانبینو له خوا څخه په طیب خاطر (په ښه زړه) سره وي او په هغو باندې څه جبر نه وي او نه پرې ناراضه وي او سنت او لازم ئې هم و نه ګڼي او دا یواځې د خپل منځي مینې او محبت او مودت لپاره وي. نو په داسې حالت کښې به دا ډول مجلسونه د یو ډول ضیافت او میلمستیا په توګه وي کوم چه په هیڅ وخت کښې هغو ته مونږ ناجائز نه شو ویلی. فقط و الله اعلم



# بـــــــاب حقوق الزوجین

## (د خاوند او ښځې په یو بل باندې د حقوقو احـــــکام او مسئلې)

### د خاوند او ښځې په یو بـــــل باندې د حقوقو حکم

**سوال:** په مقدس شریعت کښې د خاوند په ښځې باندې او د ښځې په خاوند باندې کوم کوم حقونه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خاوند او ښځې په یوه او بل باندې ډیر حقونه دي چه ادا کــــــول ئې پرې د شریعت مطهره له مخې لازمي دي. په دغو حقوقو کښې ځینې مشترك دي او ځینې خـــــاص دي. مثلاً مهر، نفقه، کسوه، مکان، اعفاف، الزوجه، عدل و انصاف او داسې نور د ښځې ځانګړي حقونه دي. او په جائزو امورو کښې د خاوند اطــــــاعت، د هغه د امانت حفاظت (لکه د خپل عصمت، مال او اولاد ساتنه) د خاوند د تادیب حق او د ښځې لره له حیض او نفاس څخه په پاکیدو باندې د جنابت لپاره غسل او داسې نور د خاوند ځانګړي حقونه دي. او لـــــه یو بل سره حسن معاشرت (ښه ژوندتیرول) او د نرمي سلوك او د یو بل تکلیف برداشتول او داسې نور حقونه د دواړو تر منځ مشترك دي. لیکن د خاوند د ذمه واریو د کثرت له وجهې د هغه حق په ښځې باندې زیات دی.

و یدل علیه ما یأتی. قال الله سبحانه و تعالی: الرِّجَالُ قَوَّامُوْنَ عَلَی النِّسَآءِ. (سورة النساء، آیت ۳۴) وَ لَهُنَّ مِثْلُ الَّذِیْ عَلَیْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ و لِلرِّجَالِ عَلَیْهِنَّ دَرَجَةٌ. (سورة البقرة، آیت ۲۲۸) وَ عَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ. (سورة النساء، آیت ۱۹)

و قال النبی ﷺ و ان لزوجك علیك حقا. (صحیح البخاری ج ۵، ص ۱۹۹۵، کتاب النکاح) و استوصوا بالنساء خیرا. (صحیح بخاری ج ۵، ص ۱۹۸۷، کتاب النکاح)

و انظر للتفصیل البحر الرائق ج ۴، ص ۱۷۸، کتاب النکاح، و الفقه الاسلامی و ادلته ج ۷، ص ۳۲۷ الی ۳۴۳، الفصل السابع، حقوق الزواج و واجباته)

### د ښځې لپاره د خپل خاوند له مال څخه د خپل حق د وصولولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم سړی ښځې ته د نفقې له ورکولو څخه انکار وکړي نو آیا ښځه دا حق لري چه د خپل خاوند له مال څخه د هغه له اجازې پرته خپل حق واخلي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د خاوند له نفقې څخه انکار د کومې داسې وجهې څخه وي چه په هغه کښې د ښځې د جرم کوم دخل نه وي نو نفقه د لزوم له وجهې د ښځې حق دی او په کومې بهانې سره د خاوند له مال څخه خپل حق وصولولی شي. بیا هم که چېرته خاوند خپلې ښځې ته د هغې د نافرمانۍ او سرکشۍ له وجهې نفقه نه ورکوله نو بیا ښځه د دې نافرمانۍ له مخې دا حق نه لري چه د خپل خاوند له مال څخه د هغه له اجازې پرته خپل حق واخلي.

عن عائشه رضی الله عنها قالت ان هنده بنت عُتبة قالت یا رسول اللهﷺ ان ابا سفیان رجل شحیح و لیس یعطینی ما یکفینی و ولدی الا ما اخذت منه و هو لا یعلم فقال خذی ما یکفیك و ولدك با لمعروف. متفق علیه. (مشکوٰة المصابیح ج۲، ص ۲۹۰، کتاب النکاح)

قال فی الهندیة: فی کل موضع کان للقاضی ان یقضی لها با لنفقة فلها ان تأخذ من مال الزوج ما یکفیها با لمعروف بغیر قضاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۵۵۰، الباب السابع عشر فی النفقات) و مثله فی البحر الرائق ج۴، ص۱۷۷و ۱۹۶، باب النفقة.

## له یوې ښځې سره ډېر محبت د نورو ښځو د حق ضائع کول نه دي

**سوال:** که چېرته د یوه سړي درې یا څلور ښځې وي او په هغوی کښې یوې ته میلان او له هغې سره محبت زیات وي نو آیا په دې سره ئې د نورو ښځو د حقوقو تر پښنو لاندې کول راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په درېو او څلورو ښځو کښې له یوې سره چه له کومې وجهې د زړه محبت زیات وي او په نورو حقوقو کښې ئې له ټولو سره یو ډول چلن او عدل کاوه نو په دې باندې کومه مؤاخذه نشته۔ په شریعت مطهره کښې خاوند د داسې حقوقو مکلف دی چه د هغه په اختیار کښې وي په داسې حال کښې چه له یوې سره قلبي محبت د هغه له قدرت څخه د باندې خبره ده۔

قال فی الهندیة: و ممّا یجب علی الازواج للنساء العدل و التسویة بینهن فیما یملکه و البیتوتة عندها للصحبة و المؤانسة لا فیما لا یملك و هو الحبّ و الجماع. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص ۵۴۴، الباب السابع عشر فی النفقات)

قال العلامة الکاسانی رحمه الله: و روی عن ابی قلابة ان النبیﷺ کان یعدل بین نسائه فی القسمة و یقول اللهمّ هٰذه قسمتی فیما املك فلا تؤاخذنی فیما تملك و لا املك. (بدائع الصنائع ج۲، ص ۳۳۲، باب النفقات) و مثله فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۲، ص ۴۳۲، کتاب النکاح، باب النفقات.

## د ښځې لپاره د جلا کور جوړول د خاوند ذمه واري ده

**سوال:** که چېرته ښځه د خاوند له خپلوانو (مور، پلار او د اسې نورو) سره اوسېدل نه غوښت او د خپلې استوګنې لپاره ئې د جلا کور مطالبه کوله نو آیا د خاوند په ذمې باندې لازم دي چه د هغې لپاره د ځانته کور انتظام وکړي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ښځې له کومې وجهې د خاوند له خپلوانو سره یو ځای اوسېدل نه غوښت نو د ا د خاوند ذمه واري ده چه د ښځې لپاره په بېل ځای کښې د اوسېدلو انتظام وکړي لیکن د ا ضروري نه ده چه په بل ځای کښې دې ځانته کور ورته جوړ کړي بلکه که چېرته په کور کښې د ننه کومه د اسې کوټه وي چه یوازې د ښځې د اوسېدو لپاره ځانګړې شوې وي او د کور نور غړي په هغې کښې کار نه درلود نو بیا ئې هم د ا ذمه واري پوره کېږي۔



قال ابن عابدین رحمه الله: و کذا تجب لها السکنٰی فی بیت خالٍ عن اهله سوی طفله الذی لا یفهم الجماع و امته و ام ولدها من غیره. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۷۱۹)

قال ابن نجیم رحمه الله: ای الاسکان للزوجة علی زوجها لان من کفایتها فتجب لها کا لنفقة و قد اوجبها الله تعالٰی کما اوجب النفقة. بقوله تعالٰی اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِّنْ وُّجْدِكُمْ. ای من طاقتکم مما تطیقونه مِلکاً او اجارة او عاریة اجماعاً و اذا وجبت حقا لها لیس له ان یشترك غیرها لانها تتضرر به........ و لو کان الخلاء مشترکا بعد ان غلّقه یخصه و لیس لها ان تطالبه بمسکن آخر. (البحر الرائق ج۴، ص۱۹۳/۱۹۴، باب النفقة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۵۵۶، الباب السابع فی النفقات.

## خاوند خپله ښځه د هغې له رضاء نه بغیر بل ملك ته نه شي بیولی

**سوال:** د یوه هلك او یوې نجلۍ تر منځ نکاح شوې ده لیکن هلك د یوه ملك دی او نجلۍ د بل ملك دی اوس هلك غواړي چه نجلۍ یعنې خپله ښځه له ځانه سره خپل ملك ته بوځي په د اسې حال کښې چه نجلۍ او مور او پلار ئې د ا نه غواړي چه نجلۍ له هغه سره بل ملك ته لاړه شي نو آیا خاوند د ا حق لري چه په زبردستۍ سره خپله ښځه له ځانه سره بوځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نجلۍ او والدین ئې راضي نه وي نو هلك د ا نجلۍ جبراً له ځان سره بل ملك ته نه شي بوولی۔

قال فی الهندیة: و کثیر من المشائخ علٰی انه لیس للزوج ان یسافر بها فی زماننا و ان اوفاها المهر و لکن بنقلها الی القرٰی این احبّ و علیه الفتوٰی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۱۷، الفصل الحادی عشر فی منع المرأة نفسها بمهرها)

قال ابن عابدینؒ: ثم ذکر عن الفقیهین ابی القاسم الصغارؒ و ابی اللیثؒ انه لیس لهٗ السفر مطلقاً بلا رضاها لفساد الزمان لانها لا تأمن علی نفسها فی منزلها فکیف اذا خرجت و انه صرح فی المختار بان علیه الفتوٰی و فی المحیط انه المختار و فی الولولجیة ان جواب ظاهر الروایة کان فی زمانهم اما فی زماننا فلا. (رد المحتار ج۲، ص ۳۹۱، باب النفقة) و مثله فی البحر الرائق ج۳، ص ۱۷۹، باب النفقة.

## له ښځې سره په کومو وختونو کښې کوروالي ناجائزه ده؟

**سوال:** آیا له ښځې سره د جماع لپاره کوم ممنوع اوقات شته او که نه په د اسې حال کښې چه ځینې خلك وایي چه د ماسپښین تر لمانځه وروسته، د اختر په ورځ او په شبِ برأت او د اسې نورو وختونو کښې جماع منع ده نو آیا د ا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي موانعو (حیض او نفاس) نه علاوه د جماع لپاره د مخصوصو اوقاتو تعین او په ځینو وختونو کښې د ممانعت هیڅ شرعي دلیل نشته۔

قال الله سبحانه و تعالی: نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَاْتُوا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ. (البقرة، آیت۲۲۳)

قال الرازی رحمه الله: اختلف المفسرون فی تفسیر قوله اَنّٰى شِئْتُمْ و المشهور ما ذکرناه انه یجوز للزوج ان یاتیها من قُبُلها و من دُبُرها فی قُبُلها و الثانی ان المعنی ای وقت شئتم من اوقات الحل یعنی اذا لم تکن اجنبیة او محرمة او

ثمانية او حائضا...... و الخامس متى شئتم من ليل او نهار (تفسير كبير للرازى ج٦، ص٦٨، سورة البقرة)

قال العلامة الكاسانیؒ و للزوج ان يطالبها متى شاء الا عند اعتراض اسباب مانعة من الوطیء كالحيض و النفاس و الظهار و الاحرام و غير ذلك. (بدائع الصنائع ج٢، ص٣٣١، النفقات) و مثله فى نيل الاوطار ج٦، ص٢٢٥، باب النفقات.

## د مباشرت صحیح طریقه

**سوال:** د مباشرت صحیح طریقه څرنګه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خولې او دُبر څخه اجتناب وکړی او د حیض او نفاس په حالت کښې له نامه څخه تر زنګنونو پورې نفع اخیستل جائز نه دي او پاتې نور ټول کیفیات جائز دي.

قال الله تبارك و تعالى: نِسَآئُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ. (البقرة، آيت ٢٢٣) و قال الله عز و جلّ فاعتزلوا النساء فى المحيض. (البقرة، آيت ٢٢٢)

عن ابن عباسؓ قال جاء عمرؓ الى النبیﷺ فقال يا رسول الله هلكت قال و ما الذى اهلكك قال حولت رحلى البارحة فلم يرد عليه شیء قال فاوحى الله الى رسوله هذه الآية نِسَآئُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ. اقبل و ادبر و اتقوا الدبر و الحيضة. رواه احمد و الترمذى و قال حديث حسن غريب. (نيل الاوطار ج٦، ص٢١٧، و ذكر الشوكانیؒ حديث آخر. فلما قدم المهاجرون المدينة تزوج رجل امرأة من الانصار فذهب يصنع بها ذلك فانكرته عليه و قالت انما كنا نؤتى على حرف فاصنع ذلك و الا فجتنبنى فسرى امرهما حتى بلغ رسول اللهﷺ فانزل الله عز وجل نِسَآئُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ يعنى مقبلات و مدبرات و مستقليات يعنى بذلك الموضع الولد. (المرجع السابق) و مثله فى تفسير القرطبى ج٣، ص٩٣، سورة البقرة.

## د جمـــــاع آداب

**سوال:** د جماع لپاره کوم کوم آداب دي وضاحت ئې وکړی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له جماع څخه مقصود اولاد او تحصین الفرج (د فرج حفاظت) دی نه د شهوت پوره کول. د جماع په وخت کښې به د پردې اهتمام کوي یعنې با لکل به لوڅ نه وي، قبلې خواته به مخامخ جماع نه کوي، له جماع څخه مخکښې به ماثوره دعاګانې لولي، د جماع په حالت کښې به ډیرې خبرې نه کوي، له جماع څخه مخکښې به ضم او تقبیل کوي، سړی به د ښځې له انزال نه وروسته جګیږي او د اسې نور شیان د جماع له آدابو څخه دي

قال الله عز وجل و اُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسَافِحِيْنَ. (النساء)

و قال النبیﷺ لو ان احدكم اذا اتى اهله قال بسم الله اللّٰهم جنبنا الشيطان و جنب الشيطان ما رزقتنا فقضى بينهما ولد لم يضره. (صحيح البخارى ج١، ص٦٦، كتاب الوضوء)

قال النبیﷺ اذا اتى احدكم اهله فليستر و لا يتجرد تجرد العيرين. رواه ابن ماجة. (نيل الاوطار ج٦، ص٣٤٤، كتاب النكاح، باب التسمية و الستر عند الجماع) و مثله فى اعلاء السنن ج١٧، ص٤٠٨، كتاب الحظر و الاباحة.



قال الدكتور وهبة الزحيلى: للجماع آداب كثيرة ثابتة فى السنة النبوية منها ما يأتى تستحب التسمية و يقرأ (قل هو الله احد) و يكبر و يهلل و يقول و لو مع اليأس عن الولد بسم الله العلى العظيم اللّٰهم اجعلها ذرّية طيبة ان كنت قدرت ان تخرج ذٰلك من صلبى اللّٰهم جنبنى الشيطان و جنب الشيطان ما رزقتنى رواه ابو داؤد. و ينحرف عن القبلة و لا يستقبل القبلة با لوقاع اكراماً للقبلة و ان يتغطى نفسه هو و اهله بغطاء و الا يكونا متجردين فذلك مكروه كما سيأتى. و ان يبدأ با لملاعبة و الضم و التقبيل و اذا قضى وطره فليتمهل لتقضى و طرها فان انزالها بما تأخر و يكره الاكثار من الكلام حال الجماع. (الفقه الاسلامى و ادلته ج٣، ص٥٥٥، الفصل السابع فى حقوق الزواج)

## د ښځې د عـــــلاج خرڅه په چا باندې ده؟

**سوال:** له واده نه وروسته د مریضې په صورت کښې د نجلۍ والدین چه کومه خرڅه په نجلۍ باندې کوي نو آیا دا خرڅه ئې له خاوند څخه اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مرض د علاج خرڅه شرعا په خاوند باندې نه ده. که چېرته ئې تبرعا وکړي نو د اجر او ثواب سبب دی.

قال فى الهندية: و لا يجب الدواء للمرض و لا اُجرة الطبيب و لا القصد و لا الحجامة. (الفتاوى الهندية ج١، ص٥٤٩، الباب السابع فى النفقات)

قال ابن عابدين رحمه اللّٰه: و عليه ما تقطع به الصنان لا الدواء للمرض و لا اُجرة الطبيب و لا الفصاد و لا الحجام. (رد المحتار ج٢، ص٧٠٤، باب النفقة) و مثله فى البحر الرائق ج٤، ص١٧٧، باب النفقة.

## له حامله ښځې سره د جماع مسئله

**سوال:** آیا له خپلې ښځې سره د حمل په حالت کښې جماع جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ښځې ته د ضرر او تکلیف رسیدو خطره نه وي نو له حامله ښځې سره جماع کول جائز دي.

قال فى الهندية: و اما اذا اقر الزوج ان الحبل منه فا لنكاح صحيح با لاتفاق و هو غير ممنوع من وطئها. (الفتاوى الهندية ج١، ص٥٤٦، الباب السابع عشر فى النفقات)

قال ابن نجيمؒ: اما التزوج الزانى لها (للحاملة) فجائز اتفاقاً و تستحق النفقة عند الكل و يحل وطؤها عند الكل كما فى النهاية. (البحر الرائق ج٤، ص١٠٦، باب النفقة) و مثله فى رد المحتار ج٢، ص٣١٧، باب النفقة.

## له خپلې نابالغې ښځې سره د جماع حکم

**سوال:** آیا یو خاوند له خپلې نابالغې ښځې سره جماع کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له ښځې سره د جماع د کولو لپاره د عمر کوم خاص قید نشته بلکه چه کله هم په منکوحه کښې د جماع لپاره د برداشت قوت پیدا شي او له هغې سره د جماع په صورت کښې د کوم مرض خطره نه وي نو جماع ورسره جائزه ده. بیا هم که چېرته کومه ښځه په د اسې حالت کښې وي چه له بالغ والي سره سره د هغې صحت د جماع اجازه نه ورکوله بلکه د

جماع په کولو سره هغې ته د امراضو د پیدا کیدو خطره وي نو په داسې حالت کښې د منکوحې سره د بلوغ په صورت کښې هم جماع کول جائز نه دي۔

قال فی الهندیة: و اکثر المشائخ علی انه لا عبرة للسن فی هٰذا الباب و انما العبرة للطاقة ان کانت فحمه سمینة تطیق الرجال و لا یخاف علیها المرض من ذٰلك کان للزوج ان یدخل بها و ان لم تبلغ تسع سنین و ان کانت نحیفة مهزولة لا تطیق الجماع و یخاف علیها المرض لا یحل للزوج ان یدخل بها و ان کبر سنها. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۲۸۷، الباب الرابع فی الاولیاء (الضابطة)

قال ابن نجیمؒ: و فی الخلاصة و اکثر المشائخ علی انه لا عبرة للسن فیهما انما المعتبر الطاقة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۲۰، باب الاولیاء و الاکفاء) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۳۲۹، و ص۳۷۷، باب الاولیاء و الاکفاء.

## د حیض پـــــه حالت کښې له جماع نه علاوه له خپلې ښځې څخـــــه د استمتـــــاع اخیستلو حکم

**سوال:** د حیض په حالت کښې خاوند خو له خپلې ښځې سره جماع نه شي کولی لیکن له جماع پرته د نورې استمتاع اخیستلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض او نفاس په حالت کښې د خاوند لپاره له خپلې ښځې سره جماع کول حرام او ناجائز دي لیکن له دې پرته (مافوق الاِزار) په استمتاع کښې هیڅ حرج نشته۔ بیا هم که چېرته د استمتاع په اخیستلو کښې د جماع خطره وي نو له استمتاع څخه دې هم باید سړی ځان وساتي۔ او په زنا باندې له مبتلا کیدو څخه د ځان ساتنې لپاره دَ مافوق الاِزار استمتاع زیاته محتاطه طریقه ده۔

قال فی الهندیة: و له ان یقبلها و یضاجعها و یستمتع لجمیع بدنها ما خلا بین السرة و الرکبة عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۹، الفصل الرابو فی احکام الحیض و النفاس)

قال ابن نجیمؒ: و یمنع الحیض قربان زوجها ما تحت ازارها اما حرمة وطئها فجمع علیها لقوله تعالٰی وَ لاَ تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰی یَطْهُرْنَ......و اما الاستمتاع بها بغیر الجماع فمذهب ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ و الشافعیؒ و مالك یحرم علیه ما بین السرة و الرکبة و هو المراد بما تحت الازار. (البحر الرائق ج۱، ص۱۹۷) و مثله فی بدائع الصنائع ج۱، ص۴۴، کتاب الحیض.

## له خپلې ښځې سره د استمناء بالید حکم

**سوال:** که چېرته د کوم سړي ښځه د حیض، نفاس او یا نورو امراضو له وجهې د جماع قابله نه وي او خاوند ته ئې د جماع ضرورت وي نو آیا د ښځې په لاس باندې استمناء کولی شي او که نه په داسې حال کښې چه د دې استمناء له وجهې د زنا له ارتکاب څخه د بچ کیدو امکان وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مذکوره اعذارو له وجهې له خپلې ښځې سره د استمناء بالید کول



جائز دي او که دا اعذار نه وي نو بیا مکروه تنزیهي دی۔

قال ابن عابدینؒ: و یجوز ان یستمنی بید زوجته و خادمته و لیذکر الشارح فی الحدود عن الجوهرة انه یکره و لعل المراد به کراهة تنزیهیة. (رد المحتار ج۲، ص۱۰۹)

قال ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: و هل یجوز الاستمناء با لکف خارج رمضان ان اراد الشهوة لا یحل لقوله علیه السلام ناکح الید ملعون و ان اراد التسکین الشهوة یرجی ان لا یکون علیه وبال. (البحر الرائق ج۲، ص۲۷۲، باب ما یفسد الصوم و ما لا یفسد) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰۳، الباب الرابع فیما یفسد الصوم و ما لا یفسد.

## د خپلې ښځې لـــــوڅ (بربنډ) بدن ته د کتلو حکم

**سوال:** آیا خاوند د خپلې ښځې لوڅ بدن د جماع په حالت کښې او یا له جماع پرته په بل وخت کښې کتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآن کریم له دې بیان چه هُنَّ لِبَاسٌ لَّکُمْ وَ اَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ څخه معلومیږي چه د ښځې او خاوند تر منځ د ازدواج د رشتې له وجهې د پردې کیفیت باقي نه پاتې کیږي نو د دې لپاره د ښځې او خاوند یوه او بل ته په نظر کولو کښې کوم حرج نشته۔ بیا هم فقهاء کرامو فرج ته له کتلو څخه اجتناب بهتر ګڼلی دی۔

قال الطوریؒ: تحت قول النسفیؒ: و ینظر الرجل الی فرج امته و زوجته یعنی عن شهوة و غیر شهوة. قال علیه الصلٰوة و السلام غض بصرك الا عن زوجتك و امتك و ما روی عن عائشةؓ قالت کنت اغتسل انا و رسول اللّٰهﷺ من اناء واحد. (البحر الرائق ج۸، ص۱۹۳، کتاب الکراهیة، فصل فی النظر)

قال فی الهندیة: اما النظر الی زوجته و مملوکته فهو حلا من قرنها الی قدمها عن شهوة و غیر شهوة و هٰذا ظاهر الا ان الاولٰی ان لا ینظر کل واحد منهما الی عورة صاحبه کذا فی الذخیرة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۷، الباب الثامن فیما یحل للرجل النظر الیه) و مثله فی بدائع الصنائع ج۵، ص۱۱۹، کتاب الاستحسان.